بسم الله الرحمن الرحيم

## د ترتیب ورکونکی درخواست

اللهم لك الحمد لله كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك، اللهم ما أصبح بي من نعمة او بأحد من خلقك، فمنك لا شريك لك، اللهم ولك الشكر، اللهم لك الحمد، لا أحصي ثناءً عليك أنت كما أثنيت على نفسك. اللهم صل وسلم وبارك على سيدنا ومولانا محمد النبي الأمي وعلى آله وصحبه وتابعيهم وتبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

دالله تعالی بے حده کرم او احسان دے چه د استاذ الاساتذه شیخ الحدیث حضرت مولانا سلیم الله خان صاحب دامت فیوضهم وبرکاتهم د درس صحیح بخاری شریف یو جلد د ترتیب ،تحقیق او تعلیق سره عالمانو ،طالبانو او د علم حدیث شوق لرونکو په خدمت کښے د وړاندے کولو سعادت حاصلیږی.

حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم زمونږ د اکابرو د هغه خوش قسمته ډلے سره تعلق ساتی.چه محدث کبیر، مجاهد اعظم، شیخ الاسلام حضرت مولانا سیدحسین احمد مدنی قدس سره د صبحت او درس نه د استفادے سعادت ورته اصل دے.دعلم ددے بے کناره سمندرنه هر کس د خپل استعداد مطابق فائده اخستے ده .زمونږ حضرت مدظلهم هم د حضرت شیخ الاسلام قدس سره د علمی درستخوان نه ښه پوره استفاده اخستے ده.او بیا ئے تر اوسه پورے خپل ټول ژوند د دغه علومو په خوررولو کښے تیر کړے دے.نن د لوستونکو په خدمت کښے چه دا کومه علمی کارنامه پیش کولے شی.دا هم په اصل کښے د خپل استاذ شیخ الاسلام حضرت مدنی نورالله مرقده د درسی خصوصیاتو کامل مظهر دے.په راروانو صفحاتو کښے به تاسو د حضرت شیخ الاسلام نورالله مرقده د حالاتو په ضمن کښے د هغوی د درس خصوصیات په تفصیل سره اوګورئ.بیا دالله تعالی دا خصوصی کرم دے.چه د پورتنئ آمالئ د لیکلو نه وړاندے حضرت مد ظلهم څلیریشت کاله د بخاری شریف درس ورکړے دے.او د جامع ترمذی تدریس خو ددے نه هم زیات دے.

*این سعادت بزور بازو نیست تانه بخشد خدائے بخشنده*

لکه چه د بخاری شریف دا تقریر د دوی د استاذ محترم د درسی افاداتو نه علاوه تقریبا د صدئ د خلورمے حصے د شپے او ورځے تدرسی مشاغلو او د حدیث د ډیرو کتابونو د مطالعے خلاصه او نچوړ دے.د بخاری په دے تقریر کښے د لاندینو خبرو د اول نه تر آخره پورے اهتمام کړے شوے دے.

① د ترجمة الباب تفصیل او قابل اعتماد تشریح.
② دترجمة الباب او باب په مینځ کښے د مطابقت دپاره نفیس توجیهات.
③ د ترجمة الباب د ماقبل او مابعد سره ربط.
④ په متشابه تراجمو کښے د فرق وضاحت.
⑤ د حدیث په راویانو کښے د هر راوی په قدر د حاجت پیژندګلو.

⑥ د کومو راویانو په نومونو کښې چه اشتباه راځي.د هغې وضاحت.
⑦د کومو راویانونه چه په صحیح بخاری کښې صرف یو یا دوه روایتونه منقول دی.دداسې راویانو خودلو سره سره د هغوی د مرویاتو نشاندهی هم کول.
⑧ د بخاری په راویانو کښې چه په چا باندې محدثینوکلام کړې وی.د هغې علمی طور منصفانه جائزه.
⑨ دحدیث د معنی قابل اعتماد زړه ته پریوتونکې وضاحت.
⑩ په مکررو روایاتو باندې تنبیه چه آیا د سند او متن اتحاد سره تکرار شوې دې.او که په دې دواړو کښې د یو د اختلاف سره.
⑪ د فقهاوٴ دمذاهبو د پوره تفصیل اهتمام او دهغې تنقیح.
⑫ د فقهی مذاهبو د بیان دپاره د اصل ماخذو د حوالو اهتمام.
⑬ د فقهی مسائلو په آسانه طریقه باندې تفهیم او تشریح.
⑭ د فقهاوٴ او محدثینو په مختلفو اقوالو کښې محاکمه.
⑮ په سند کښې د ,,تحویل،، د راتلو په صورت کښې دا اهتمام کول چه دلته کوم حدیث ذکر دې.دا د اولنی سند روایت دې.اوکه د دویم دغه شان ددې خبرې وضاحت چه دویم سند د کوم روایت چه دلته مذکور نه دې.هغه مصنف په کوم ځائې کښې بیان کړې دې.
⑯ د معلقاتو په باره کښې ددې خودلو اهتمام چه مصنف یا بل محدث دا موصولاً په کوم ځائې کښې ذکر کړې دې.
⑰ دآثارې موقوفه په باره کښې دا خودل چه یو محدث دا موصولاً په کوم ځائې کښې ذکر کړې دې.
⑱ د موقعې په مناسبت سره د امام بخاری رحمه الله او نورو شارحینو په وهمونو تنبیه.
⑲ د بعضې تراجمو او نورو مواقعو باندې د ابهام وضاحت.
⑳ په صحیح بخاری کښې په بعضې ځایونوکښې باب وی.او ترجمه نه وی.او په بعضې ځایونو کښې ترجمه وی.او حدیث نه وی.بلکه آیت ذکر وی.او په بعضې کښې نه حدیث وی اونه آیت وی.بلکه صرف ترجمه ذکر وی.په داسې موقعو باندې تسلی بخش کلام.
㉑ ,,قال بعض الناس،، د ماله وما علیه سره ذکر کول.
㉒ په براعت اختتام باندې عموماً تنبیه ورکول.

بیا دوه اهم ترینې مقدمې هم په اصل تقریر پاند زیاتی دی.یوه مقدمۃ العلم په دې کښې دعلم حدیث تعریف ،وجه تسمیه،موضوع،غرض اوغایت،دعلم حدیث مرتبې د حدیث دکتابونو اقسام ،تدوین حدیث،د منکرین حدیث اعتراضات اود هغې په جوابونو مشتمل سیر حاصل مباحث ذکر شوی دی.او دویمه مقدمه ,,مقدمۃ الکتاب ده.په دې کښې د صاحب تقریر نه واخله تر امام بخاری رحمه الله پورې چه د سند د رجالو تفصیلی حالات مذکور دی.دغه شان دا مقدمه صحیح بخاری سره متعلقه په ټولو تفصیلونو هم مشتمله ده.

تقریر حتی الوسع سهل او د سلیس ساتلو کوشش شوے دے.په مینځ کښے چه کوم عربی عبارات دی.دټولو د ترجمے التزام نه دے شوے.ځکه چه دا کتاب بنیادی طور د عالمانو او منتهی طالبانو دپاره دے.دوی ته د ے څه خاص ضرورت نه وی. خو که چرته ګران عبارت یا څه ګران شعر راغلے دے.نو د هغے تشریح شوے ده.

د دے نه علاوه په حواشی کښے ئے د لاندینی امور التزام شوے دے.

①د تقریر په مینځ کښے که چرته څه حدیث راغلے دے.نو د هغے مکمل تخریج شوے دے.او د متعلقه کتاب حواله د صفحاتو سره ورکړے شوے ده.

②که د حدیث څه حصه ذکر شوے وی.نو بعضے وخت د ضرورت مطابق پوره حدیث په حاشیه کښے نقل کړے شوے دے.

③د عالمانو ،فقهاؤ،او شارحینو د اقوالو په سلسله کښے دا کوشش شوے دے.چه د هغوی د خپلو تصنیفاتو نه حوالے ورکړے شی .خوچه یو کتاب نه دے ملاؤ شوے.نو په دے صورت کښے د معتمد علیه شروحو اوکتابونو حوالے ورکړے شوی دی.

④د بخاری شریف د هرحدث تخریج د اصول ستهٔ په دائره کښے دننه شوے دے.

⑤حدیث باب په بخاری شریف کښے څو خله راغلے دے.او په کوم کوم ځائے کښے ذکر دے؟ ددے خودنه شوے ده.

⑥د قرآن کریم د آیاتونو د حوالے دپاره د سورت او آیت نمبر ذکر کړے شوے دے.

احقرته خپل علمی سامان او سرمائے د کم والی پوره احساس او اعتراف دے.هم د دے احساس د وجے زما دپاره د اسے اهم علمی خدمت ته تیاریدل هم په ظاهره ګران وو.خو چونکه د حضرت شیخ الحدیث صاحب مد ظلهم د طرف نه پوره ډاډګیرنه، دعاګانے او پوره راهنمائی راته حاصله ده.نو ځکه په الله باندے توکل کولو سره مے په دے کار شروع اوکړهٔ.

بنده تر خپله وسه پورے کوشش کړے دے.چه کار پوره وی.او یوه خبره هم د حوالے نه بغیر پاتے نشی.خو یقینی ده.چه په دے کښے د ډیرو خبرو حوالئ پاتے شوی دی.بله دا چه په دومره غټ کار کښے دغلطئ د امکان نه هم انکار نشی کولے. حضرت اهل علموٴ ته درخواست دے.که څه غلطئ باندے خبر شی.او دا دے د مرتب خامی اوګنړی.او دے دے د دغه غلطئ اودغه شان د خپلو فائده مندو تجویزونو او مشورونو نه خبر کړی. چه غلطئ لرے کړی شی.او د تجویزونو او مشورونو په رڼا کښے راروان جلدونه د زیات نه زیات فائده مند جوړولو کوشش اوکړے شی.احقربه دے احسان منونکے او شکرګزار وی.

دتقریر د ترتیب په دوران کښے چه د حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم هدایات، راهنمائی اودلچسپئ زما د همت او ډاډګیرنے باعث دے.اوهغه د هر قسم رسمی شکریه نه ډیر اوچت دے.الله تعالی دے حضرت صاحب ته صحت او پوره عافیت ورکړی.او هم ددوی وړاندے دے دا کتاب آخرته اورسوی.او په خپل دربار کښے دے ئے قبول کړی.او د عالمانو، طالبانو او دیندارو دپاره دے مفید اوګرځوی.

د کتاب په ,,مقدمة العلم،،باندے تحقیقی کار اول محب محترم مولانا عبد الرحمن صاحب ملیباری حفظه الله تعالی شروع کړے وو.روستو اګرچه احقر په هغے باندے د سر نه محنت

اوکړلو.خو د هغوی په کار سره احقر ته ددے کار په تکمیل کښے ډیره آسانتیا ملاؤ شوه.الله تعالی دے هغوی ته جزائے خیر ورکړی.
دکتاب د کمپوزنګ نه پس د پروف د تصحیح مسئله وه.الله تعالی په خپل فضل او رحم سره دا ګرانه مرحله هم په آسانئ سره پوره کړه.په دے باره کښے د عزیز ګرامی مولانا محمد انیس صاحب (استاذ جامعه احتشامیه کراچی) شکریه ادا کول ډیر ضروری ګنړم.چه هغوی ډیر په شوق سره د خپلو مصروفو وختونو نه زما دپاره وخت اوویستلو.او د تصحیح په ټولو مرحلو کښے ئے زما پوره مدد اوکړلو.الله تعالی دے هغوی ته جزائے خیر ورکړی.او علمی او عملی ترقئ دے ورته ورکړی.
په آخر کښے قدرمندو لوستونکو ته درخواست دے.چه د صاحب تقریر حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت فیوضهم وبرکاتهم د صحت اوعافیت دپاره خصوصی دعا کوی.دغه شان د مرتب دپاره دے هم دعا کوی.چه ددے کار زر پوره کولو توفیق ورته ورکړی.او په خپل دربار کښے ورته د قبولیت شرف ورکړی.اود احقر دپاره، د احقر د مورپلار دپاره او ټولوملګرو او دوستانو دپاره ئے د آخرت توښه اوګرځوی.آمین.

نورالبشر بن محمد نورالحق
استاذ جامعه فاروقیه و رفیق شعبهٔ تصنیف وتالیف جامعه

.........................................................................................

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## د مترجم د طرفه

د بنده شاه فیصل د هغه وخت نه د ,,کشف الباری،، د ترجمے شوق اوخواهش پیدا شوے وو.کله چه ئے د ,,الفوز العالی فی إعتبار البخاری،، په نوم د وفاق المدارس، دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک او جامعه امدادالعلوم پېښور د پنځو کالو بخاری پرچو حل لیکلو.نوپه دغه وخت کښے د دے شرحے نه ډیر زیات متاثره شو.یوځو کاله پس په خپلو دوو عربی کتابونو ,,دروس العبادة،، او ,,سنن الصلاة فی فقه الأحناف،، باندے د تقریظ اخستلو په غرض د شیخ الحدیث ، صاحب تقریر په خدمت کښے حاضرشوم.د تقریظ لیکلو سره مے ترے د کشف الباری د ترجمے اجازت هم طلب کړلو.حضرت راته اوفرمائیل.چه مونږ به پرے مشوره اوکړو. غالباً د حضرت مولانا ابن الحسن عباسی ,,صاحب القلم،، او حضرت مولانا نورالبشر سره د مشورے نه پس ئے ماته د ترجمے اجازت اوکړلو.او د احقر په دواړو کتابونو د تقریظ لیکلو نه پس دحضرت هغه دوه کلمات زما دپاره د نه هیرولو قابل دی.چه د مازیګر نه پس د جامعے په چمن کښے تشریف فرما وو.او حضرت مولانا ابن الحسن عباسی صاحب ته ئے د خپل تبسم په مخصوص انداز کښے اوفرمائیل.،، ماشاءالله مولانا صاحب مستعد بهی هے او تجربه کار بهی،، دا وو د ترجمے د اجازت نامے یو څو ټکی .

بنده شاه فیصل خطیب جامع مسجد الفرقان حسین ټاؤن
نزد پولیس چوکئ اتحاد روډ پېښور ښار

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذی فضل بنی آدم بالعلم والعمل علی جمیع العالم ،والصلاۃ والسلام علی محمد سید العرب والعجم، وعلی آله وأصحابه ینابیع العلوم والحکم.

په اول کښې دمقدمة العلم او مقدمة الکتاب پیژندل ضروري دي.د ټولو نه وړاندې به دمقدمة العلم ذکر کولې شي.او ددې نه پس د مقدمة الکتاب ذکر کولې شي.په مقدمة العلم کښې د اته مباحثو ذکر کولې شي.په کومو سره چه دعلم حدیث سره متعلق ضروري معلومات حاصلیږي.دې مباحثوته ,,رووس ثمانیه،، یا ,,مباحث ثمانیه،، ونیلی شي.

# مقدمة العلم

**اولنی بحث:** د ټولونه اولنې بحث د ,,علم اصول حدیث،، تعریف سره متعلق دې.اول به د مطلق ,,علم حدیث،، تعریف کیږي.او دویم به د علم ,,روایة الحدیث،، او دریم به د ,,علم درایة الحدیث،، او څلورم به د ,,علم اصول حدیث،، تعریف کیږي.

**د مطلق علم حدیث تعریف:** علامه کرماني او علامه عیني (رحمهما الله) ددې تعریف کړې دې.

((هو علم یعرف به أقوال رسول الله ﷺ وأفعاله وأحواله))(۱)

**د علم روایة الحدیث تعریف:** ((هو علم یشتمل علی نقل أفعال رسول الله ﷺ وأقواله وصفاته وتقریراته))(۲)

**د علم درایة الحدیث تعریف:** ((هو علم یشتمل علی شرح أقوال رسول الله ﷺ وأفعاله وصفاته وبیان کرلیه معاني ألفاظه، ویتعلم به طرق أستنباط الأحکام، ویعرف به ترجیح الراجح منها والتطبیق بین الأحادیث))(۳)

**د علم اصول حدیث تعریف:** هو علم بقوانین یعرف بها أحوال السند والمتن،،(۴)

---

(۱) الکرماني (۱۲/۱) وعمدة القاري (۱۱/۱)

(۲) اوګورئ تدریب الراوي (۲۰/۱)

(۳) قال الأکفاني.. وعلم الحدیث الخاص بالدرایة :علم یعرف به حقیقة الروایة وشروطها وأنواعها وأحکامها وحال الرواة وشروطهم وأصناف المرویات.. انظر تدریب الراوي (۴۰/۱)

(۴) تدریب الراوي (۴۱/۱) د اصول حدیث دټولو نه غوره تعریف هغه دې.کوم چه حافظ بن حجر رحمه الله کړې دې ..معرفة القواعد المعرفة بحال الراوي (تدریب الراوي ۴۱/۱)

علامه سیوطیؒ په الفیه (دا د هغوی یوه رساله ده.چه یوزر شعرونو باندے مشتمله ده.څکه ورته الفیه وائی) دا تعریف د مطلق علم حدیث تعریف ګرځولے دے.هغوی فرمائی.

علم الحدیث ذو قوانین تحد یدری بها أحوال متن وسند(١)

یعنی په علم حدیث کښے داسے قوانین وی.چه په هغے باندے د متن او سند حالات معلومیږی.
دغه شان علامه کرمانیؒ هم دا تعریف د مطلق علم حدیث تعریف ګرځولے دے.(٢) خو صحیح دا ده.چه ذکر شوے تعریف د علم اصول حدیث دے.
د قول رسول ﷺ نه مراد د دوی ارشادات مبارکه دی.لکه نبی ﷺ چه فرمائیلی دی.
((الدین النصیحة))(٣)

یادغه شان د نبی ﷺ دا ارشاد دے.((بنی الإسلام علی خمس شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله وإقام الصلاة وإیتاء الزکاة والحج وصوم رمضان))(٤) یا لکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.((إنما الأعمال بالنیات وإنما لإمرئ ما نوی فمن کانت هجرته إلی الله ورسوله فهجرته إلی الله ورسوله ومن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إلی إمرأة ینکحها فهجرته إلی ما هاجر إلیه)) (٥)
او د افعال الرسول ﷺ نه د نبی ﷺ هغه افعال مراد دی.کوم چه د نبی ﷺ نه صادر شوی وی. مثلاً ((راح رسول الله ﷺ مهجراً فجمع بین الظهر والعصر))(٦)
یا مثلاً ((إن رسول الله ﷺ جمع فی حجة الوداع المغرب والعشاء بالمزدلفة))(٧)
دنبی ﷺ صفات په دوه قسمه دی.① اختیاریه ② غیراختیاریه

---

(١) اوجزالمسالک (١/٥)
(٢) اوجزالمسالک (١/٥)

(٣) أخرجه مسلم فی صحیحه (١/٥٤) عن تمیم الداری فی کتاب الإیمان باب بیان أن الدین النصیحة والترمذی فی جامعه (٢/١٤) عن أبی هریرة فی أبواب البر والصلة عن رسول الله ﷺ باب ماجاء فی النصیحة.....والنسائی فی سننه(٢/٥٨١) عن أبی هریرة ﷺ فی کتاب البیعة .النصیحة للإمام .وأحمد فی مسنده (١/٣٥١) عن ابن عباس ﷺ
(٤) أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب الإیمان باب قول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس (١/٦) ومسلم فی کتاب الإیمان باب بیان أرکان الإسلام ودعائمه العظام (١/٣٢) والترمذی فی جامعه فی أبواب الإیمان عن رسول الله ﷺ باب ما جاء بنی الإسلام علی خمس (٢/٨٥)
(٥) أخرجه النسائی فی سننه فی کتاب الطهارة باب النیة فی الوضوء (١/٢٤) والبخاری فی صحیحه باب کیف کان بدء الوحی إلی رسول الله ﷺ (١/٣)
(٦) أخرجه أبوداود فی سننه فی کتاب المناسک باب الخروج إلی عرفة (١/٢٧٢)

(٧) أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب المناسک باب من جمع بینهما ولم یتطوع (١/٢٢٧) ومسلم فی کتاب الحج باب الإفاضة من عرفات إلی مزدلفة وإستحباب صلاتی المغرب والعصر جمعاً بالمزدلفة فی هذه اللیلة (١/٤١٧)

① اختياريه صفات دا دي.جود وسخا، عبديت، تواضع او حلم بردباري وغيره
② غيراختياريه صفات لکه د نبی ﷺ جسمانی صفات. ((وكان ربعة من القوم))(١) يعني نبی ﷺ ميانه قد وو.((بعيد ما بين المنكبين))(٢) د نبی ﷺ د دواړو اوګو په مينځ کښے فاصله لګه غونډے زياته وه.دا دواړه صفتونه د نبی ﷺ د بدن مبارك سره متعلق دی.بدنی صفات غيراختياري دی.روحانيت او اخلاقو سره چه د کومو صفاتو تعلق دے.هغه ټول اختياری دی.حضرات محدثين ﷺ چه په کوم علم رواية الحديث کښے مشغول دی.نو هغه دواړه قسمه صفات بيانوی.اوفقهاء کرام ﷺ چونکه د مسائلو په استنباط پسے لګيدلی دی. نوهغوی ځکه صرف د صفات اختياريه نه بحث کوی.ځکه چه داحکامو تعلق ددے سره دے. د صفات غير اختياريه سره د احکامو تعلق نشته.

**تقارير** تقارير جمع د تقرير ده.اودلته کښے د تقرير نه مراد دا دے.چه د شريعت يو متبع د نبی ﷺ وړاندے څه کار يا څه خبره کړے وی.او په هغے باندے نبی ﷺ چپوالے اختيار کړے وی.او انکار ئے پرے نه وی کړے.(٣) دے سکوت ته تقرير وائی.او د نبی ﷺ سکوت حجت دے.او د غير نبی سکوت حجت نه دے.نو کوم عمل چه نبی ﷺ ليدلی وی.يا ئے کومه خبره اوريدلی وی.اوسکوت ئے اختيار کړے وی.نودا ددے عمل يا قول د صحت دليل دے.

**فائده** : طالب هغه کس ته وائی.چه هغه د حديث په طلب او د روايت په اخستلو کښے شروع اوکړی.(٤) اوچه څوك روايات نقل کوی.هغه ته محدث وائی.شيخ الادب حضرت مولانا اعزازعلی ﷺدا هم فرمائيلی دی.چه د محدث تعريف دے.((من يعتنی بروايته ويکتفی بدرايته)) يعنی چه دهغه روايت معتبر وی.اوچه د حديث کومه شرح کوی.هغه قابل اعتماد وی.

ملا علی قاری ﷺ په شرح نخبه کښے ليکلی دی.چه کوم محدث ته يو لاکه روايتونه سنداً ومتناً، جرحاً وتعديلاً ياد وی.هغه ,,حافظ،، دے.اوکوم محدث ته چه درے لکه احاديث سنداً ومتناً جرحاً وتعديلاً ياد وی.هغه ته ,,حجت،، وائی.اوکوم محدث ته چه ټول روايتونه سنداً ومتناً جرحاً وتعديلاً ياد وی.هغه ته ,,حاکم،، وئيلے شی (٥) خو صحيح خبره دا ده.چه د ,,حافظ،، حجت ، او حاکم کوم تعريفونه چه ملا علی قاری ﷺبيان کړی دی.هغه د محدثينو حضراتو په نيز معتبر نه دی.او د متقدمينو ﷺ په کلام کښے ددے ذکر نشته.(٦)
,,فقيه،، هغه کس ته وائی.چه د مسائلو د استنباط اهتما کوی.او په اقوالو کښے ترجيح کر کوی.او کوم کس چه احکام شرعيه او مسائل فقهيه د تطبيق او ترجيح او استنباط په ذريعه

(١) أخرجه الترمذی فی شمائله باب ما جآء فی خلق رسول الله ﷺ (ص.١)
(٢) ...... أخرجه الترمذی فی شمائله باب ما جآء فی خلق رسول الله ﷺ (ص.١)
(٣) لمعات التنقيح (٢٢/١)
(٤) مقدمه اعلاء السنن (٢٢/١)
(٥) ..... شرح نخبة الفكر (ص.٣) ناشر مکتبه اسلاميه ميزان مارکيټ کوئټه.
(٦) د تفصيل دپاره اوګورئ ..قواعد في علوم الحديث (ص.٢١، ٢٢)

بنکاره کوی.اود تعارض لرے کولو کوشش کوی.هغه ته محقق وائی.

**حدیث اثر او خبر** دحضرات محدثینو ﷭ په نیزدلته یو بحث دا هم شوے دے.چه حدیث، اثر، اوخبر، الفاظ مترادفه دی.اوکه په دے کښےڅه فرق شته؟

شیخ محدث عبدالحق دهلوی﷫ حدیث او اثر مترادف گرځولی دی.(۱) او مشهوره دا ده.چه د حدیث اطلاق په مرفوع الی النبی ﷺ باندے کیږی.اود صحابی ﷛ اثر ته موقوف وائی.او د تابعی اثر ته مقطوع ونیلے شی.(۲)

دریم قول دا دے.چه مرفوع الی النبی ﷺ او اثرموقوف د صحابی ﷛ ته حدیث وائی.اود تابعی اثر ته مقطوع ونیلے شی.(۳)

دحدیث او خبر متعلق یو قول دا دے.چه دا دواړه مترادف دی.اوبل قول دا دے. چه د حدیث اطلاق د رسول الله ﷺ په اقوالو، افعالو وغیره باندے کیږی.او خبر عام دے.د نبی ﷺ او د بادشاهانو او حاکمانو دواړو باندے ددے اطلاق کیږی.(۴)

**یواشکال اود هغے جواب** : دلته یو اشکال کیږی.چه د حدیثو بعضے کتابونه لکه مصنف ابن ابی شیبه او مصنف عبدالرزاق کښے عام طور باندے د صحابه کرامو﷢ او تابعینو ﷭ آثار موجود دی.د مرفوع احادیثو ذخیره په کښے ډیره کمه ده.نو بیا دا د حدیثو په کتابونو کښے ولے شمارلی شي؟حالانکه دحدیث لفظ د ,,مرفوع الی النبی ﷺ ،، دپاره استعمالیږی

د ذکر شوی اشکال جواب خو دا دے.چه د صحابی ﷛ یا تابعی﷫ آثار به د دوو حالتونو نه خالی نه وی.یا به هغه مدرك بالقیاس وی.او یا به غیر مدرس بالقیاس وی.که هغه غیر مدرك بالقیاس وی.نود هغے حکم د حدیث مرفوع دے.نو د حدیث په کتاب کښے ددے په ذکر کولوباندے اشکال وارد نشو.

او که هغه مدرك بالقیاس وی.نو دحسن ظن په بناء به دا گڼرلے شی.چه صحابه کرامو﷢ او تابعینو ﷭ دا د نبی ﷺ نه نقل کړی دی.او د خپل طرفه ئے نه دی بیان کړی.اگرچه نبی کریم ﷺ ته ئے د هغے نسبت نه دے کړے.نو په دے صورت کښے هم دحدیث په کتاب کښے ددے په ذکر کولو اشکال نه دے پکار.

دویم جواب دا دے.لکه چه شیخ عبدالحق محدث دهلوی ﷫ فرمائیلی دی.چه دحدیث اطلاق لکه څنګه چه د نبی ﷺ په اقوالو افعالو تقاریرو او صفاتو باندے کیږی.دغه شان د صحابه کرامو﷢ او تابعینو ﷭ په آثارو باندے هم کیږی.دا بیله خبره ده.چه بیا نبی کریم ﷺ ته د کوم قول او فعل نسبت شوے وی.هغے ته مرفوع اوچه صحابی ﷛ ته د کوم قول او فعل نسبت شوے وی.هغے ته موقوف او چه تابعی ته د کوم قول او فعل نسبت شوے وی.هغے ته مقطوع ونیلی شی.(۵) په حقیقت کښے دا درے واړه په حدیث کښے شامل دی.او په دے

(۱) مقدمه مشکاة المصابیح اووری لمعات التنقیح (۲۲/۱)
(۲) اوگوری قواعد في علوم الحدیث (مقدمه اعلاء السنن (ص،۲۸)
(۳) لمعات (۲۲/۱)
(۴) ....اوگوری شرح نخبة الفکر (ص، ۸)
(۵) اوگوری لمعات التنقیح (۲۲/۱)

درے واړو کښے د فرق دپاره يو ته ,,حديث،، دويم ته ,,موقوف،، او دريم ته ,,مقطوع،، ونيلی شي.
**د حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم شان** حقيقت هم دا دے چه ددے حضراتو آثار په حديث کښے داخل کړے شي. ځکه چه دا د رسول الله ﷺ د نبوت دلائل دي. خاص کر د صحابه کرامو رضي الله عنهم شان دومره ښکاره او اوچت دے چه د انکار ګنجائش په کښے نشته.
په قرآن کريم کښے د صحابه کرامو رضي الله عنهم دپاره في الحقيقت عام طور ﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾ فرمائيلی شوی دی.(١) الله تعالی چه دهغه شان ﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ﴾(٢) او ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾(٣) هغه د صحابه کرامو دپاره د خپلے رضا زيرے ورکړے دے.
اودا معلومه ده چه قصداً عمداً د ګناه ارتکاب کونکو او په هغے باندے د اصرار کونکو دپاره د الله تعالی رضا نه وی. نو ددے وجے دوی ته معصوم خو نه دی. ځکه چه عصمت د پيغمبرانو عليهم السلام پورے خاص دے. خو محفوظ منل او دحق معيار ګرځول ضرور دی. الله تعالی ددوی ايمان پخپله معيار خودلے دے. ﴿وَإِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ۭ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ﴾(٤) دمنافقانو نه مطالبه کړے شوے ده چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم پشان ايمان راوړی. که دوی دحق معيار نه وو. نو د دوی پشان دايمان راوړلو مطالبه به ولے کولے شوه؟ حقيقت دا دے چه په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښے څنګه اخلاص، تقوی او للهيت پيدا شوے وو. هم د هغے مطالبه د منافقانو نه شوے وه. ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا﴾(٥) په دے آيت کښے ﴿فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ﴾ الفاظ د خصوصی توجه مستحق دی. ددے نه د صحابه کرامو رضي الله عنهم خلوص او تقوی ښکاره ثابتيږی.
په بل ځائے کښے ددوی متعلق فرمائيلی شوی دی. ﴿يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا﴾(٦) په دريم ځائے کښے بيا ارشاد دے ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى ۭ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ﴾(٧) اوپه يو ځائے کښے ارشاد دے. ﴿وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى﴾(٨)

---

(١) المجادلة – ٢٢)
(٢) سبا-٣)
(٣) التغابن-١٨)
(٤) البقره-١٣)
(٥) الفتح-١٨)
(٦) الفتح-٢٩)
(٧) الحجرات: ٣)
(٨) النساء: ٩٥. والحديد: ١٠)

په حدیث شریف کښې فرمائیلی شوی دی.«أصحابي كالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم» (١) په یو ځائې کښې دا هم ارشاد دے چه زما د صحابو د یو مد یا د نیم مد صدقه د نورو د احد دغر هومره صدقې نه غوره ده.(٢) اوښکاره ده چه د هغوی دا کمال داخلاص د وجې دے.نو د صحابه کرامو رضی الله عنهم حالات او واقعات په حقیقت کښې دنبی ﷺ د حالاتو او واقعاتو سیورے اوعکس دے.نوځکه ددے آثار په حدیث کښې شاملول پکار دی.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قول دے.«أولئك أصحاب محمد ﷺ كانوا أفضل هذه الأمة أبرها قلوباً وأعمقها علماً وأقلها تكلفاً اختارهم الله لصحبة نبيه ولإقامة دينه» (٣) الله تعالی دے حضراتو ته په پرهیزګارئ ، علم او سادګئ کښې کمال ورکړے وو.او د رسول الله ﷺ د مقصد د تکمیل دپاره ئې ددوی انتخاب کړے وو.نوبیادے ولې ددوی آثار په حدیث کښې شامل نکړے شی؟ او ولې دے د هغوی د معیار حق کیدو نه انکار اوکړے شی؟

دریم جواب دا دے چه مصنف ابن ابی شیبه او مصنف عبدالرزاق پشان کتابونه چه په دے کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعین رحمهم الله آثار په کثرت سره موجود دی.کتب الآثار ورته وئیلی شی.کتب الحدیث ورته نشی وئیلے.لکه چه په دے جواب کښې په حدیث او اثر کښې د فرق لحاظ شوے دے.

**یوبل سوال او د هغې جواب:** باقی پاتې شو دا سوال چه په بخاری شریف او سنن ابی داود وغیره کښې هم د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار موجود دی.نو بیا دا دحدیثو په کتابونو کښې ولې شمارلے شی؟

نوددے جواب دا دے چه اول خو د مرفوع احادیثو په مقابله کښې ددے آثارو تعداد ډیر کم دے.نودغالب په اعتبار سره دا د حدیثو په کتابونو کښې شمارلے شی. دویمه خبره دا ده. چه په دے کتابونو کښې د آثارو ذکر تبعاً او ضمناً شوے دے.

مقصود بالذات د مرفوع احادیثو بیان دے.

**دویم بحث: وجه تسمیه** : د حدیث دوجه تسمیه په باره کښې حافظ جلال الدین سیوطی رحمه الله فرمائی.«وأما الحديث فأصله ضد القديم، وقد استعمل في قليل الخبر وكثيره، لأنه محدث شيأ فشيأ» (٤) یعنی حدیث دقدیم ضد دے.اود حدوث نه ماخوذ دے.ددے اطلاق په خبر قلیل او کثیر دواړو باندے کیږی.اوخبر په یوځل نه صادریږی.بلکه ,,شیأفشیأ،، یعنی تدریجاً ددے ظهور کیږی.او دخبر دا شان د نبی ﷺ په احادیثو کښې موجود دے.نوځکه ورته حدیث وائی.

حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله د بخاری په شرح کښې فرمائی.«المراد بالحديث في عرف الشرع ما

---

(١) مشكاة المصابيح باب مناقب الصحابة (٥٥٤)
(٢) الصحيح البخاری كتاب المناقب باب قول النبي ﷺ لو كنت متخذاً خليلاً (١/٥١٨)
(٣) مشكاة المصابيح باب الإعتصام بالكتاب والسنة (ص.٣٢)
(٤) تدريب الراوی (١/٤٢)

يضاف إلى النبى ﷺ، وكأنه أريد به مقابلة القرآن لأنه قديم»(۱) يعنى د شريعت په عرف كښے حديث هرهغه څيز دے چه نبى ﷺ ته ئے نسبت شوے وى. اوكوم څيز چه نبى ﷺ ته منسوب وى. هغے ته د قرآن په تقابل كښے چه چونكه قرآن قديم دے حديث وائى. ځكه چه نبى ﷺ پخپله حادث دے نو د دوى كلام به هم حادث وى. اوالله تعالى پخپله قديم دے نو د هغه كلام به هم قديم وى.

علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله په وجه د تسميه كښے فرمائيلى دى چه قرآن پاك كښے الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوٰى ۞ وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى ۞ وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَاَغْنٰى ۞ فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ ۞ وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ ۞ وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۞﴾ ﴿فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ ۞﴾ دا د ﴿اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوٰى ۞﴾ په مقابله كښے دے او د ﴿وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ ۞﴾ دا دريم نمبر احسان په مقابله كښے دے كوم چه په ﴿وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَاَغْنٰى ۞﴾ كښے مذكور دے يعنى په دويم نمبر چه هدايت دے دا د دريم نمبر احسان په مقابله كښے دے اودريم نمبر هدايت چه ﴿وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۞﴾ دے دا د دويم نمبر احسان ﴿وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى ۞﴾ په مقابله كښے دے.

اوپه دے كښے دا خودلى شوى دى چه الله تعالى كوم شريعت تاته دركړے دے د هغے نه دا مخلوق خبر كړه. او دا مفهوم په صيغه د ﴿فَحَدِّثْ ۞﴾ سره ادا شوے دے. ددے وجے د نبى ﷺ اقوال، افعال، تقارير او صفات كوم چه د شريعت د بيان دپاره دى. په هغے ټولو دحديث اطلاق كيږى. نود دے وجے حديث ته حديث وائى.(۲)

**دريم بحث : دعلم حديث موضوع:** علامه كرمانى رحمه الله دحديث موضوع د نبى ﷺ ذات گرامى گرځولے دے.(۳) خو ذات د رسول ﷺ «من حيث أنه رسول» په حيثيت موضوع ده.

حافظ جلال الدين سيوطى رحمه الله په تدريب الراوى كښے نقل كړى دى(۴) چه زمونږ استاذ كافيجى رحمه الله د امام كرمانى رحمه الله په قول باندے اعتراض كړے دے چه ذات د رسول چونكه بشر دے نوځكه دا د علم طب موضوع گرځول پكار دى. دعلم حديث موضوع نه.

علامه سيوطى رحمه الله دخپل استاذ امام كافيجى رحمه الله اعتراض نقل كړے دے خو رد كړے ئے نه دے حالانكه ښكاره خبره ده چه امام كرمانى رحمه الله د نبى ﷺ ذات دعلم حديث موضوع د «من حيث أن رسول» په اعتبار سره گرځولے دے او د نبى ﷺ ذات د «من حيث الصحة والمرض» په اعتبار سره د علم طب موضوع ده. او دا خبره معلومه ده چه د حيثيت په اعتبار سره دموضوع اختلاف ټيك دے. ددے وجے د علامه كافيجى رحمه الله خبره خو غلطه ده. خو د حافظ

---

(۱) پورتنى حواله

(۲) مقدمه فتح الملهم (۱/۱)

(۳) الكرمانى رحمه الله (۱۲/۱)

(۴) الكرمانى رحمه الله (۴۱/۱)

جلال الدين سيوطى رحمه الله دخپل استاذ اعتراض نه رد كول هم قابل تعجب خبره ده.

دا خبره د لحاظ قابله ده چه د رسول الله ﷺ ذات «من حيث أنه رسول» د مطلق علم حديث موضوع ده.د علم روايت حديث موضوع نه ده.ځكه چه د علم دراية الحديث موضوع د شيخ الحديث حضرت مولانا زكريا رحمه الله «المرويات والروايات من حيث الإتصال والإنقطاع دى.(١) اود علم درايت حديث موضوع «الروايات والمرويات من حيث شرح الألفاظ واستنباط الأحكام منها» ده.(٢)او دعلم اصول حديث موضوع متون او اسانيد دى.

**څلورم بحث غرض او غايت** غرض هغه مقصد او ارادے ته وائى.چه دهغے دحاصلولودپاره يوكار كولے شى. او غايت هغه نتيجه ده.كومه چه په دغه فعل باندے مرتب وى.مثلاً د جامو اخستلو اراده چه دهغے دپاره بازار ته تګ كولے شى.غرض دے.اوجامه اخستل دا غايت دے.نوغرض اوغايت دواړه د مصداق په اعتبار سره يو دى.صرف دابتداء اوانتهاء فرق دے.

علامه كرمانى رحمه الله دعلم حديث غرض او غايت «الفوز بسعادة الدارين» ګرخولے دے.(٣) خودا خبره مجمله ده.ددے تفصيل دادے.چه د علم حديث غرض او غايت د صحابه كرامو سره مشابهت پيدا كول دى.اودا مشابهت داسے دے.لكه څنګه چه به صحابه كرامو رضي الله عنهم د نبى ﷺ په بارګاه كښے احاديث اوريدل.اودا به ئے يادول.نودغه شان مشتغلين بالحديث هم كوى.او دا د دواړو جهانو د كاميابئ كونجى ده.يو شعر دے.

أهل الحديث هم أهل النبى وإن لم يصحبوا نفسه أنفاسه صحبوا

يعنى محدثين رحمهم الله د نبى ﷺ سره خاص تعلق ساتى.اګرچه دوى ته د نبى ﷺ صحبت نه دے نصيب شوے.ليكن دوى د نبى ﷺ د اقوالو، افعالو،صفاتو او تقاريرو امين او محافظ دى.او هروخت په دے كښے مشغول وى.داهم د سعادت عنوان دے.

حضرت شاه ولى الله رحمه الله په فيوض الحرمين كښے ارشاد فرمائى.يوځل د حرمين شريفين د قيام په دوران كښے څه مبشرات په نظر راغلل.هم په دغه مبشراتو كښے دا انكشاف اوشو.چه د نبى ﷺ د زړه مبارك نه د نور تارونه اوځى.او د محدثينو حضراتو زړونو ته رسى.اوپه دے كښے څه شك نشته.چه دا د محدثينو رحمهم الله دپاره د ډير فضيلت او شرافت خبره ده.

دعلم حديث دغرض او غايت دپاره دا سعادت چرته تلے شى.چه په سنن ترمذى كښے دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دے.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى. «أولى الناس بى يوم القيامة أكثرهم على صلاة» (٤) يعنى د قيامت په ورځ به دنبى ﷺ نزديكت هغه خلقو ته نصيب

(١) مقدمة أوجز المسالک(ص.٧)_
(٢) مقدمة أوجز المسالک (ص.٧) مطبوعة ندوة العلماء لكهنوا (الهند)
(٣) الكرمانى (١٢/١)
(٤) سنن ترمذى أبواب الوتر باب ماجآء فى فضل الصلاة على النبى ﷺ (١١/١)

وی.څوک چه په نبی ﷺ باندے زیات درود وائی.اودا خبره ښکاره ده.چه د حضرات محدثینو ﷺ نه علاوه نورڅوک په نبی ﷺ باندے زیات درود نه وائی.نودا ونیلی شی.چه ددے علم غرض او غایت په قیامت کښے نبی ﷺ ته زیات نزدیکت حاصلول دی.
دغه شان طبرانی رحمه الله په ..اوسط،، کښے دحضرت عبدالله بن عباس نه روایت نقل کړے دے.چه ((قال النبی ﷺ اللهم ارحم خلفائی،قلنا یارسول الله ومن خلفاؤك؟ قال ﷺ الذین یأتون من بعدی یروون أحادیثی ویعلمونها الناس))[1]
دا روایت په دے باندے دلالت کوی.چه محدثینو ﷺ ته د نبی ﷺ خلافت ملاؤ شوے دے.نوتاسو داهم ونیلے شئ.چه ددے علم غرض او غایت د خلافت رسول حاصلول دی.
امام ترمذی اوبعضے نورو حضراتو ﷺ دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت نقل کړے دے.چه ((قال رسول الله ﷺ نضر الله عبداً أسمع مقالتی فحفظها ووعاها وأداها))[2]
حضرات محدثیو ﷺ په دے کښے دوه احتمالات ذکر کړی دی.چه دا خو یا جمله دعائیه ده.او یا جمله خبریه ده.([3]) که دا جمله خبره اوګنړلے شی.نو بیا هم په دے کښے د محدثینو د منقبت اړخ ښکاره دے.چه نبی ﷺ د دوی دپاره د تازګئ او شادابئ دعا کړے ده.نو ددے دعا حاصلول هم د علم حدیث غرض اوغایت ګرځولے شی.اوکه دا جمله خبریه شی.نوبه دے کښے رسول الله ﷺ محدثینو ﷺ ته د تازګئ او شادابئ زیرے ورکړے دے.نودا بشارت هم تاسو د علم حدیث غرض اوغایت شمارلے شئ.
شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا رحمه الله فرمائی.چه دعلم حدیث دغرض او غایت دپاره دا یوه خبره کافی ده.چه نبی ﷺ زمونږ محبوب دے.ځکه چه د هیڅ یو کس ایمان ترهغه وخته پورے نشی کامل کیدے.ترڅوچه د نبی ﷺ محبت په ټولو محبتونو باندے غالب نشی.او نبی ﷺ نے محبوب جوړ نشی.په حدیث کښے دی.((لایؤمن أحدکم حتی أکون أحب إلیه من والده وولده والناس أجمعین))[4]
هرکله چه نبی ﷺ زمونږ محبوب دے.اوقاعده دا ده.چه محب سره د محبوب د حالاتو پیژندلو اشتیاق وی.اودهغه دحالاتو په لوستلو، وئیلو،اوریدو او اورولو کښے خوند محسوسوی. نودحدیث ذخیره چه د نبی ﷺ په اقوالو،افعالو،تقریراتو اوصفاتو باندے مشتمله ده.د یو مومن دپاره ددے خپله لوستل، بل ته لوستلو، په خپله اوریدل،بل ته اورول، پکار ده چه خوښه مشغله وی.او دمحبت د تقاضا مطابق ددے علم غرض اوغایت هم دا دے.چه د نبی ﷺ حالات پخپله لوستلواو نورو ته لوستلوکښے مشغول وی.

---

(۱) مجمع الزوائد کتاب العلم باب فی فضل العلماء ومجالسهم (۱۲۶/۱)
(۲) مشکاة المصابیح.کتاب العلم (ص.۳۵)
(۳) مرقاة المفاتیح (۲۸۸/۱)
(۴) الصحیح البخاری کتاب الإیمان باب حب الرسول ﷺ من الإیمان (۷/۱)

**پنځم بحث دعلومو اجناس** په روؤس ثمانيه کښې دا بحث هم شامل دے.چه دا علم دکوم جنس سره تعلق ساتی.دعلومو اول دوه قسمونه دی.① علوم نقليه ②علوم عقليه بيا په دے کښې د هريو دوه قسمونه دی.①علوم عاليه مقصوده② علوم آليه غيرمقصوده.
حديث ،تفسير،فقه ،نحو،صرف، ادب،معاني،بيان. لغت دا ټول علوم نقليه دی. اوحکمت ، فلسفه، منطق، رمل، جعفر، علوم عقليه کښې شمارلے شی.بيا حديث، تفسير، اوفقه په علوم عاليه مقصوده کښې شامل دی.اوباقی علوم په علوم نقليه آليه غيرمقصوده کښې داخل دی.ددے شمار په وسائلو کښې کيږی.ده شان فلسفه او علم رمل او جعفر علوم عقليه کښې علوم عاليه مقصوده کښې دخل دی.او باقی علوم عقليه آليه غير مقصوده دی.اودا په وسائلو کښې شمارل شی. ددے تفصيل نه معلومه شوه.چه حديث په علوم نقليه کښې دے. او عاليه مقصوده کښې داخل دے.
بيا د علوم عاليه دوه قسمونه دی.① علوم عاليه اصليه ② علوم اصليه فرعيه. کتاب الله اواحاديث په علوم عاليه اصليه کښې شامل دی.او فقه په علوم فرعيه کښې داخل ده.
په اجناس العلوم کښې د ټولو نه جامع کتاب د حضرت مولانا محمد اعلی تهانوی رحمه الله کشاف اصطلاحات الفنون،، دے.په دے کښې د اجناسو د اووه کتابونو ذکر هم دے.په دے فن کښې نواب صديق حسن خان رحمه الله هم يوعظيم کتاب ليکلے دے.چه د ,,ابجدالعلوم،، په نوم سره مشهور دے.

**شپږم بحث: دعلم حديث مرتبه:** دعلم حديث دوه مرتبے دی.يوپه اعتبار د فضيلت او بله په اعتبار دتعليم،د فضيلت په اعتبار سره دا علم په دويمه درجه دے.اولنۍ درجه دعلم تفسير ده.خکه چه دشريعت په څلورو اصولو کښې قرآن کريم په اوله درجه دے.او حديث نبوی په دويمه درجه دے.دعلم تفسير موضوع د قرآن کريم الفاظ دی.کوم چه دالله تعالی کلام دے.اودهغه صفت دے.او دالله تعالی صفت د ټولو موضوعاتو نه غوره دے.د بعضو په نيز علم حديث افضل دے.خکه چه د علم تفسير موضوع چه د قرآن کوم الفاظ دی.هغه کلام لفظی دے.اوکلام لفظی د الله تعالی صفت نشی کيدے.بلکه دالله تعالی صفت کلام نفسی دے.او کلام لفظی د علم حديث د موضوع نه چه رسول الله ﷺ دے.ددے نه غوره نه دے.
دتعليم په اعتبار سره د حديث درجه دټولو نه په آخر کښې ده.خکه دوره حديث د ټولو په آخر کښې وی.ددے نه وړاندے دعلوم آليه تعليم ورکولے شی.چه د مقاصدو په فهم کښې آسانتيا پيدا شی.اوپه طالب کښې ددے د پوهيدو استعداد پيدا شی.دغه شان چه د حديث په روايت کښې د خطرناکو غلطيانو نه بچ شی.خکه چه ددے خطرو دوجے ويره ده.چه د «کذب علی النبی ﷺ» په وعيد کښې شامل نشی.لکه چه امام اصمعی رحمه الله چه فرمائی:«أخوف ما أخاف علی طالب العلم إذا لم يعرف النحو أن يدخل فی جملة قوله ﷺ من کذب علی متعمداً» الحديث (۱)
باقی پاتو شو دا سوال چه تفسير په حديث باندے ولے مقدم کړے شو.نو ددے جواب دا دے.

(۱) مقدمة أوجزالمسالک (۱/۱۲۶) مطبوعه اداره تاليفات اشرفيه ملتان پاکستان.

چه چونکه قرآن کریم متن دے.او احادیث ددے تشریح ده.او قاعده دا ده.چه د متن تعلیم وړاندے وی.او هغه د تفسیر په ذریعه ورکولے شی.او د شرح تعلیم روستو وی.نوځکه د تفسیر تعلیم په حدیث باندے مقدم شوے دے.

**اووم بحث د کتابونو تقسیم او تدوین** شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله په ,,عجاله نافعه.. کښے د حدیثو دکتابونو شپږقسمونه ذکر کړی دی.① جوامع ② مسانید ③ معاجم ④ اجزاء ⑤ رسائل ⑥ اربعینات.(۱) هغوی سنن اربعه د جوامع سره یوځائے شمارلی دی.خو که جوامع اوسنن جدا جدا شمار کړے شی.نوبیا به اووه قسمونه جوړیږی.عام طور دا اووه قسمونه ذکر کولے شی.اوهم دا اووه قسمونه مشهور دی.اګرچه د حدیثو دکتابونو قسمونه داووه نه زیات دی.دلته به ددے اوووه سره د نورو ذکر هم کیږی.

**جوامع** دا دجامع جمع ده.اوجوامع دحدیث هغه کتابونه دی.چه په هغے کښے اته قسمه مضامینو احادیث ذکرکولے شی.دا اته مضامین چا په یو شعر کښے جمع کړی دی.

**سیر اداب ه تفسیروعقائد فتن، احکام اشراط ومناقب**

د,,سیر،، نه مراد دجهاداو مغازی احادیث دی.په ,,ادب،، کښے دمعاشرت سره دمتعلقه احادیثو ذکر کیږی.د ,,تفسیر،،نه مراد د قرآن کریم تفسیری روایات دی.اوپه,,عقائدو،، کښےد ایمانیاتو ذکرکیږی.اوپه فتن کښے هغه احادیث ذکر کیږی .په کومو کښے چه نبی ﷺ امت ته د پیښیدونکوراتلونکو فتنوخودنه او پیشنګوئی کړے وے.د ,,احکامو،،نه مراد احکام فقهیه سره متعلقه احادیث دی.او په اشراط کښے د قیامت دعلاماتو احادیث بیانیږی.او په مناقبو کښے د صحابه کرامو رضی الله عنهم د مناقبو ذکر کولے شی.

صحیح بخاری او سنن ترمذی په اتفاق سره جامع دے.البته په صحیح مسلم کښے اختلاف دے. د بعضے حضراتو په نیز هغه جامع نه دے.ځکه چه تفسیری روایات په کښے ډیر کم دی.ځکه دا د «القلیل کالمعدوم» لاندے جامع نه دے شمارلے شوے.(۲) خو صحیح دا ده.چه صحیح مسلم هم په جامع کښے داخل دے.ځکه چه په صحیح مسلم کښے اګرچه په کتاب التفسیر کښے د تفسیری روایاتو ذخیره ډیره کمه ده.خوکه د کتاب مختلف ځایونه اوکتلے شی.نو د تفسیری روایاتوګذاره حال ذخیره په کښے موجود ده.نودے ته کم نشی وئیلے.

په کتاب التفسیر کښے د تفسیری روایاتو د کمی وجه دا ده.چه د امام مسلم رحمه الله عادت دا دے.چه کله هغوی د څه مناسبت د وجے روایت ذکر کوی.نو دهغے ټول اطراف هم هلته کښے پیش کوی.بیا دوباره هغه نه ذکر کوی.او دغه شان دوی حتی الامکان د تکرار نه احتراز کوی.نوچونکه تفسیری روایات په مختلفو ځایونو کښے موجود وو.ځکه امام مسلم رحمه الله په کتاب التفسیر کښے د هغے اعاده نه ده کړے . دغه شان امام مسلم رحمه الله د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار نه ذکر کوی .او د اهل لغت اقوال نه ذکر کوی.اود امام بخاری رحمه الله

---

(۱) مقدمة لامع الدراری (۱۴۲/۱)

(۲) اوګورئ .عجاله نافعه.. مطبوعه مع فوائد جامعه (ص.۱۵)

عادت دا دے.چه هغوی ذکر شوی روایات د سند یا متن دواړو په تبدیلۍ سره بار بار ذکر کوی.او د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار او د اهل لغت اقوال هم ذکر کوی. نوځکه د بخاری په کتاب التفسیر کښې روایات مکرر راوړلے شوی دی.او د صحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار هم ذکرشوی دی.اودغه شان د اهل لغت اقوال هم پیش کړے شوی دی. نوځکه د هغوی کتاب التفسیر ښه غټ دے.دغه شان امام ترمذی رحمه الله په کتاب التفسیر کښې روایات مکرر ذکر کړی دی.د دے وجې د هغوی کتاب التفسیر هم اوږد شوے دے. په خلاف دامام مسلم رحمه الله چه هغوی داسې نه دی کړے.ځکه چه د هغوی کتاب التفسیر مختصر دے.خوترکومې پورے چه د تفسیری روایاتو تعلق دے.هغه هم په صحیح مسلم کښې کم نه دی.(۱) هم ددے وجې صاحب د,,کشف الظنون،، جامع ګرځولے دے.(۲) اوصاحب دقاموس علامه مجدالدین فیروزآبادی رحمه الله هم مسلم جامع ګرځولے دے.هغوی په یو ځائے کښې لیکی.((ختمت بحمدالله جامع مسلم))(۳)

**سنن** : سنن د حدیثو هغه کتابونو ته وائی.چه په هغې کښې د فقه په ترتیب سره احادیث ذکر کړلے شی.(۴) لکه سنن ابی داود سنن نسائی وغیره.جامع ترمذی د جامع سره سره په سنن کښې هم داخل دے.ځکه چه په دے کښې مصنف رحمه الله د فقهی ابوابو د ترتیب اهتمام کړے دے.

**مسانید** : مسانید دحدیثو هغه کتابونو ته وئیلی شی.چه په هغې کښې دصحابو رضی الله عنهم په ترتیب سره احادیث ذکر کړلے شی.دصحابو رضی الله عنهم ترتیب یا خود حروف تهجی په ترتیب سره وی. یعنی د چا د نوم په اول کښې چه ،،همزه،، وی.چه الف ورته وئیلے شی.د هغوی حدیثونه اول ذکر کړلے شی.اود چا د نوم په اول کښې چه ،،باء،، وی.دهغوی حدیثونه وروستو ذکر کړلے شی. ((وعلی هذا القیاس))یا د صحابو په ترتیب کښې د تقدم في الاسلام اعتبار شوے وی.یعنی څوک چه په اسلام راوړلوکښې مقدم وی.دهغوی روایات وړاندے جمع کړلے شی.((علی هذا القیاس ثم فثم)) خوداسې مسانید مفقوددی.چه په هغې کښې د تقدم في الاسلام رعایت شوے وی. یا د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترتیب د مرتبو او درجو په اعتبار سره شوے وی.چه اول د خلفاء راشدینو رضی الله عنهم روایات راوړلے شی.بیا د عشره مبشره روایات، ددے نه پس د بدریینو روایات، بیا دبیعت رضوان د شرکاؤ روایات، ددے نه پس د فتح مکې نه د وړاندے هجرت کونکو،بیا د فتح مکې نه پس داسلام راوړونکو بیا د ورو صحابو رضی الله عنهم او ددوی نه پس د ښځو روایات ذکرشوی وی.

خوپه ښځو کښې به د ازواج مطهراتو احادیث مقدم کړلے شی.ځکه چه د نبی ﷺ په لونړو کښې د درے لونړو حضرت زینب، حضرت رقیه، حضرت ام کلثوم رضی الله عنهن نه څه روایت منقول

---

(۱) اوګورئ فتح الملهم (۱۰۵/۱)
(۲) کشف الظنون (۱/ ۵۵۵) تحت حرف الجیم
(۳) دا فیروز آباد د ضلع آګره یوپی اندیا نه دے.بلکه په ایران کښې دے.
(۴) اوګورئ فتح المهلم (۱۰۵/۱) وفوائد جامعه برعجاله نافعه (ص،۱۵۶، ۱۵۷)

نه دے خکه چه دوے درے وارو وفات د نبی ﷺ په ژوند کښے شوے وو. اوحضرت فاطمة الزهراء رضي الله عنها نه څه روايات منقول دی. خوهغه هم ډير لږ دی. خکه چه د هغوی وفات هم د نبی ﷺ د وفات نه شپږ مياشتے پس شوے وو. اودا زمانه هم په علالت اوبيمارئ کښے تيره شوے وه.
که مسانيد د قبيلو په ترتيب سره مرتب کولے شی. نواول به د بنی هاشم روايات راوړلے شی. خاص کر د حضرت علی رضي الله عنه اود حضرات حسنين، حضرت عباس، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روايات به مقدم کولے شی. بيا چه کومه قبيله بنو هاشم ته نزدے وی. د هغے روايات به وړاندے راوړلے شی. په دے صورت کښے به د حضرت عثمان رضي الله عنه روايات د حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه په قبيلو باندے وړاندے کولے شی. خکه چه حضرت عثمان رضي الله عنه د بنو اميه قبيلے سره تعلق ساتلو. اودا قبيله د حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه د قبيلو په نسبت بنوهاشم ته زياته نزدے ده.(١) په مسانيدو کښے مسند احمد زيات مشهور دے.
کله دحديثو په کتاب د مسند اطلاق ددے وجے هم کيږی. چه په هغے کښے احاديث مرفوعه مسنده ذکر وی. صحيح بخاری ته المسند الصحيح ددے وجے وئيلے شی. چه په دے کښے احاديث مرفوعه مسنده مذکور دی. دغه شان سنن دارمی ته مسند الدارمی وئيلی شی. خکه چه په هغے کښے احاديث مرفوعه مسنده ذکر دی.(٢) خو دا اصطلاح مشهوره نه ده. چه مسند داسے کتاب ته وائی. چه په هغے کښے د صحابو د ترتيب په اعتبار سره روايات ذکر شوے وی.
**معاجم** : حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله په ،،عجاله نافعه،، کښے فرمائی. چه د محدثينو په اصطلاح کښے معاجم هغه کتابونو ته وائی. چه په هغے کښے دمشائخو ترتيب سره احاديث ذکر شوی وی. دا ترتيب کله د تقدم في الوفات په اعتبار سره وی. يعنی چه د چا وفات وړاندے شوے وی. د هغوی روايات وړاندے ذکرکړے شی. اوچه د چا وفات روستو شوے وی. د هغوی روايات روستو راوړلے شی. اوکله په ترتيب کښے د مشائخو د علم او فضل اعتبار کولے شی. اوکله د مشائخوپه نومونو کښے د حروف تهجی اعتبار کولے شی. يعنی د چا د نوم په شروع کښے چه ،،همزه،، وی. د هغوی روايات اول ذکر کړے شی. اود چا د نوم په اول کښے چه ،،باء،، وی. د هغوی روايات وروسے ذکر کړے شی. هم دا آخری طريقه عام طور رائج ده.(٣)
خوحضرت شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله فرمائی. چه ،،معجم،، هغه دے. چه په هغے کښے د حروف تهجی په ترتيب سره احاديث جمع شوے وی. بيا ددے درے قسمونه دی. ① چه په هغے کښے د صحابۀ کرامو رضي الله عنهم احاديث د حروف تهجی په ترتيب سره د جمع کولو لحاظ ساتلے شوے وی. ② چه د شيوخو رحمهم الله احاديث په کښے دحروف تهجی په ترتيب سره ذکر کړے

(١) مقدمه لامع الدراری (١٤٦/١) وعجاله نافعه (ص،١٥،١٦)
(٢) الرسالة المستطرفة (ص،٦٣) مطبوعه قديمی کتب خانه کراچی
(٣) عجاله نافعه (ص،١٦)

شي.او په هغې کښې د اکابرو روايات په اصاغر باندې مقدم کړې شي.④ چه داحاديثو په حروفو کښې د حروف تهجي لحاظ اوکړې شي.يعني دکومو احاديثو په شروع کښې چه ،،همزه،، (الف) وي.هغه وړاندې راوړلې شي.اود کومو احاديثو په اول کښې چه ،،باء،، وي.هغه وروسته راوړلې شي.او په دې باندې قياس لګه د علامه سيوطي رحمه الله ،،جامع صغير،، شو.( )

د امام طبراني رحمه الله معجم صغير او معجم اوسط د مشائخو د نومونو دحروف تهجي په ترتيب سره ليکلې شوې دې.او دمعجم کبير په باره کښې اختلاف دې.شاه عبدالعزيز محدث دهلوي رحمه الله په بستان المحدثين (٢) کښې حاجي خليفه په ،،کشف الظنون،، (٣)کښې دا د صحابوٓ په ترتيب سره خودلې دې.خو په ،عجاله نافعه،، کښې شاه عبدالعزيز رحمه الله دا د مشائخو په ترتيب سره ګرځولې دې.(٤)

حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله فرمائي.چه په کال ١٣٤٥ھ کښې ما په مدينه منوره کښې د معجم کبير قلمي نسخه ليدلې وه.د هغې ترتيب دمشائخو په ترتيب سره وو.(٥) نو د ،،عجاله نافعه،، قول به صحيح ګرځولې شي.

**مستدركات:** مستدرکات دحديث هغه کتابونو ته وائي.چه په هغې کښې د يو مؤلف د شرط مطابق روايات ذکر کړې شي.کوم چه مؤلف قصداً پريخودې وي.يا ترې سهو شوې وي.لکه «مستدرك حاكم على الشيخين»دا کتاب د ابوعبدالله محمد بن عبدالله نيشاپوري متوفی ٤٠٥ھ دې.چه دحاکم په لقب سره مشهور دې.ددې وجې دې ته «مستدرك حاكم» وائي.دا کتاب په حيدر آباد دکن کښې چهاپ شوې دې.ددې په اول کښې مؤلف رحمه الله ليکي:«وأنا أستعين الله على إخراج أحاديث رواتها ثقات قد احتج بمثلها الشيخان رضي الله عنهما أو أحدهما»(٦) ددې عبارت نه دامعلومه شوه.چه حاکم رحمه الله د شيخينو رحمهما الله په رواياتو باندې اکتفاء نه ده کړې.بلکه د بخاري اومسلم د راويانو پشان دنورو راويانو نه ئې هم روايات نقل کړی دی.

اوس پاتې شو دا سوال چه د بخاري او مسلم د راويانو پشان د نورو راويانو نه روايت نقل کولو سره د يو روايت على شرط الشيخين لزوم راځي اوکه نه؟ ددې جواب دا دې.که په روايت کښې صرف د شيخينو رحمهما الله راويان وي.نو بيا ددې د شيخينو رحمهما الله په شرط باندې کيدل ضروري نه دي.نوکه په يو روايت کښې د شيخنو رحمهما الله د رواة پشان راويان

(١) حاشيه تقرير بخاري شريف اردو (١٤٦/١)
(٢) ص.١٣٧)
(٣) (١٧٣٧/٢)
(٤) مقدمه لامع الدراري (١٤٨/١)
(٥) مقدمة لامع الدراري (١٤٩/١)
(٦) المستدرک مع التلخيص (٣/١) مطبوعه دارالفكر بيروت ١٣٩٨هجري)

موجود شي نودا خو په طريق اولى سره د شيخينورحمهما الله په شرط باندے كيدل نه لازميږي. بيا يو راوى د شيخينورحمهما الله د رواة پشان ګرځول هم يوه اجتهادى مسئله ده. ديوكس په نيز يو راوى د شيخينورحمهما الله د رواة پشان وى او بل دا ګنړى چه دے د شيخينورحمهما الله د روايانو پشان نه دے بهرحال حاكم رحمه الله خو كله روايت ته «على شرط الشيخين» وائى اوكله «على شرط البخارى» وائى او كله «على شرط مسلم» وائى اوكله چه په شيخينو رحمهما الله كښے د يو په شرط هم برابر نه وى خو د حاكم په نيز صحيح وى نو «صحيح الأسناد» ورته وائى.(١) د حاكم رحمه الله تساهل مشهور دے. ځكه چه هغوى په ضعيفو رواياتو باندے هم د صحيح حكم لګوى.

**امام حاكم رحمه الله او دهغوى مستدرک** : په ،،كشف الظنون،، كښے په مستدرك حاكم باندے تفصيلى كلام موجود دے هم په دے كتاب كښے صاحب د ،كشف الظنون،، فرمائى «قال البلقيني :وفيه ضعيف وموضوع أيضاً وقد بين ذلك الحافظ الذهبي رحمه الله وجمع منه جزأ من الموضوعات يقارب مائة حديث»(٢)

حافظ جلال الدين سيوطى رحمه الله په تدريب الراوى كښے نقل كړى دى چه ابوسعد احمد بن محمد مالينى متوفى ٤١٢ھ فرمائى چه ما د مستدرك حاكم داول نه واخله تر آخره پورے مطالعه اوكړله خو ماته په دے كښے يو روايت هم على شرط الشيخين ملاؤ نشو خو په دے قول باندے تبصره كوى چه علامه ذهبى رحمه الله فرمائى «هذا إسراف وغلو من الماليني» انصاف دا دے چه دمستدرك حاكم كافى حصه على شرط الشيخين ده اوډير روايات «على شرط احدهما» دى تقريباً د دے دواړو مجموعه نيم كتاب ته نزدے ده د كتاب څلورمه حصه داسے ده چه په هغے كښے د احاديثو سند اګرچه صحيح دے خوپه هغے كښے څه ضعف يا څه علت موجود دے او دكتاب باقى څلورمه حصه په منكراو غير معتبر رواياتو باندے مشتمله ده چه په هغے كښے څه حصه په موضوعاتو باندے هم مشتمله ده.(٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د حاكم رحمه الله نه په مستدرك كښے تساهل ځكه شوے دے چه دمسودے ليكلو نه پس ورته د نظر ثانى موقع نه وه ملاؤ شوے اوانتقال ئے اوشو ددے ښكاره دليل دا دے چه دمستدرك په جزء ثانى كښے ترنصف حصے پورے كافى حصه د تساهل نه پاكه ده اوهلته دا عبارت هم ليكلے شوے دے «إلى ههنا انتهى إملاء الحاكم»(٤)

---

(١) تدريب الراوى (١٠٥/١)

(٢) كشف الظنون (١٦٧٢/٢)

(٣) تدريب الراوى (١٠٦/١)

(٤) حاشيه تدريب الراوى (١٠٦/١)

علامه سخاوی رحمه الله فرمائی چه دحاکم دتساهل بهترینه توجیه دا ده.چه هغوی داکتاب په آخری عمر کښے لیکلے وو.اوپه دغه وخت کښے د هغوی په حافظه کښے تبدیلی راغلے وه.او ورسره ورته دنظر ثانی موقع هم ملاو نشوه.(١)

د حاکم رحمه الله پشان امام ترمذی رحمه الله هم د تصحیح په باب کښے متساهل دے.خو په دواړو کښے فرق دے.وئیلے شوی دی.«إن تصحیحه دون تصحیح الترمذی والدارقطنی بل تصحیحه كتحسین الترمذی وأحیاناً یكون دونه وأما ابن خزیمة وابن حبان فتصحیحهما أرجح من تصحیح الحاكم»(٢) یعنی که حاکم یو روایت ته صحیح اووائی.نو د هغې درجه به د امام ترمذی او دامام دارقطنی رحمه الله د تصحیح کرده روایت نه کمه وی.بلکه حاکم رحمه الله چه کوم روایت ته صحیح اووائی.هغه د امام ترمذی رحمه الله د حسن روایت په درجه کښے وی.اوکله کله د حسن نه هم د هغې درجه کمه وی.خو چه ابن خزیمه اوابن حبان رحمهما الله کوم روایت ته صحیح اووائی.نو د هغې درجه د حاکم د صحیح کرده روایت نه زیاته وی.البته که حاکم رحمه الله اوترمذی رحمه الله یو روایت ته صحیح وئیلے وی.او د فن په نورو امامانو کښے چه د دے تائید او توثیق کړے وی نو بیا د عدم اعتماد څه وجه نه ده.

علامه شمس الدین ذهبی رحمه الله متوفی ۴۲۸ھ د مستدرک حاکم تلخیص کړے دے.چه په هغې کښے ئے د تحقیق اوتنقید نه پس فیصله کړے ده.چه په دے مقام کښے د حاکم صحیح ټیک دے.اوپه فلانی مقام کښے هغوی دتساهل نه کار اخستے دے.(٣) کشف الظنون دحاکم د دے تساهل دوجے بعضے حافظانو رحمهم الله په مستقل جزء کښے تقریباً سل احادیث ګرخولے دی.(٤) د دے وجے عالمانو رحمهم الله لیکلی دی.چه ترڅو پورے د امام ذهبی رحمه الله یا دبل محقق او محدث تائید د یو روایت په حق کښے موجود نه وی.نو د حاکم د تصحیح به څه اعتبار نه وی.

د مستدرک په باره کښے دومره تفصیل څکه بیان شو.چه بعضے ناپوهه خلق د مستدرک حاکم په روایاتو باندے استدلال کوی.حالانکه دغه روایات معتبر نه دی.بلکه په موضوعاتو کښے شامل وی.

**تنبیه:** مشکاة شریف کوم چه د امام بغوی رحمه الله په مصابیح باندے تخریج دے.د هغې په دریم فصل کښے ،،مستدرک،، دے.(٥)

**مستخرجات:** مستخرجات دحدیث هغه کتابونه دی.چه په هغې کښے مصنف رحمه الله د یو تیر شوی مصنف رحمه الله روایات په خپل سند سره نقل کړی.خوپه دے شرط چه د سابقه مصنف رحمه الله

---

(١) حاشیه تدریب الراوی (١٠۶/١)

(٢) نصب الرایة (٣۵٢/١)

(٣) کشف الظنون(١۶٧٢/٢)

(۴) الرسالة المستطرفة (ص.٢٠)

(۵) تقریر بخاری (اردو) مصنفه شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله (۴٧/١)

واسطه په مينځ كښې راشي.ترڅو چه د سابقه مصنف شيخ يا د هغه د شيخ استاذ يا دهغه نه پورته يو استاذ سره خپل سند ملاؤ كړي.
په مستخرج كښې د كتاب سابق ترتيب اودهغې د سند او متن لحاظ ساتلې شي.او ددې خبرې هم خيال ساتلې شي.چه سند د اقرب سره ملاؤ شي.يعني چه په كوم نزدې ځائې كښې د دوارو سندونو ملاويږي.هلته كښې ئې ملاؤ كړي.ځكه چه اقرب پريږدي.او ابعد سره ئې ملاوه وي.نودا استخراج نه دے.«إلا لعذر أو زيادة مهمة»(١) دمستخرج فائده دا ده.چه په دې سره د اصل كتاب د احاديثو تائيد او توثيق كيږي.
دا خبره دے واضحه وي.چه په استخراج كښې د متن د ټولو الفاظو سره موافقت ضروري نه دے.ځكه چه روايت بالمعنى وي.اوپه دے كښې په الفاظو كښےفرق راځي.(٢) لكه «لا تقبل صلاة بغير طهور» په ځائې «لا تقبل صلاة إلا بطهور» چه راغلې دے.
مستخرجات زيات دي.او په مختلفو كتابونو باندے ليكلې شوي دي.لكه «مستخرج على سنن أبي داود» د محمد بن عبدالملك رحمه الله او «مستخرج على جامع الترمذي» د ابوعلي طوسي رحمه الله دغه شان «مستخرج على صحيح مسلم» د ابوعوانه يعقوب بن اسحاق اسفرائيني رحمه الله (٣)
مستخرج ابوعوانه ته «صحيح ابوعوانه» هم وائي.ځكه چه حافظ ابوعوانه رحمه الله د امام مسلم د طرقو نه علاوه د نورو طرقو او اسانيدو هم ذكر كړے دے.او په متن كښې ئې د څه احاديثو زيادت هم كړے دے.نوځكه ورته د مستقل كتاب حيثيت ملاؤ شوے دے.اوصحيح ابوعوانه ورته وئيلې شي.(٤) لكه چه د يو كتاب دوه نومونه كيخودے شوي دي.كله ورته مستخرج ابوعوانه او كله ورته صحيح ابوعوانه وائي.
**اربعينات**: دا د اربعين جمع ده.دحديث هغه كتابونو ته اربعين وائي.چه په هغې كښے څلويښت احاديث ليكلې شوے وي.د اربعينات متعلق عالمانو رحمهم الله يوحديث بيان كړے دے.چه د نبي پاك صلى الله عليه وسلم ارشاد دے.«من حفظ على أمتي أربعين حديثاً في أمر دينها بعثه الله فقيهاً وكنت له يوم القيامة شافعاً شهيداً»(٥)
دا روايت ضعيف دے.احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي.«هذا متن مشهور فيما بين الناس وليس له إسناد

---

(١) اوګورئ تدريب الراوي (١١٢/١)
(٢) مقدمة لامع الدراري (١/ ١٦٩،١٦٨)
(٣) تدريب الراوي (١١٦/١،١١١)
(٤) مقدمة لامع الدراري (١٦٨/١)
(٥) رواه البيهقي في شعب الإيمان (٢٧١/٢،٢٧٠) باب ي طلب العلم ،فصل في فضل العلم وشرف مقداره رقم (١٧٢٦) و(١٧٢٧)

صحيح»(١) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا حدیث د دیارلس صحابه کرامو رضی الله عنهم نه منقول دے.خو ددے یو سند هم د علت قادحه نه محفوظ نه دے.(٢) د امام نووی رحمه الله قول دے.«واتفق الحفاظ على أنه حديث ضعيف وإن كثرت طرقه»(٣)

صاحب د كشف الظنون ليكى.«أما الحديث فقد ورد من طرق كثيرة بروايات متنوعة ... واتفقوا على أنه حديث ضعيف وإن كثرت طرقه»(٤)

خو حافظ جلال الدين سيوطى رحمه الله په ،،الجامع الصغير،، (٥) كښے د ابن النجار په طريق سره د ابوسعيد خدرى رضی الله عنه روايت نقل كړے دے.او په هغے باندے ئے د صحيح نښه لګولے ده.ددے نه معلوميږى.چه دا حديث اګرچه د خپلو جدا جدا سندو په اعتبار سره ضعيف دے.ليكن دكثرت طرقو دوجے دے د اعتبار درجه حاصله كړے ده.اوهسے هم د فضائلو په باب كښے دضعيف روايت اعتبار كولے شى.هم دا وجه ده.چه متقدمينو او متاخرينو رحمهم الله په كثرت سره اربعينات ليكلى دى.د اربعيناتو په ليكلو كښے د اوليت شرف حاصلونكے د امام نووى رحمه الله د قول مطابق عبدالله بن مبارك رحمه الله دے.(٦)

بيا د اربعينات ليكونو مختلف انداز اختيار كړے دے.مثلاً حافظ ابن حجر رحمه الله يو داسے اربعين ليكلے دے.چه په هغے كښے د سند په لحاظ سره امام مسلم رحمه الله په امام بخارى رحمه الله باندے اوچت دے.(٧) دغه شان كه په يو حديث كښے د امام بخارى رحمه الله او نبى ﷺ په مينځ كښے پنځه واسطے دى.نو هم دغه حديث د امام مسلم رحمه الله د نبى ﷺ نه په څلورو واسطو نقل كړے دے

يو ،،اربعين بلدانية ،، ليكلے شوے دے.چه په هغے كښے څلويښت احاديث د څلويښتو مشائخو رحمهم الله نه په څلويښتو ښارونو كښے اخستے شوى دى.او حافظ ابوالقاسم ابن عساكر الدمشقى رحمه الله يو قدم نور هم وړاندے اخستے دے.داسے اربعين ئے ليكلے دے.چه په هغے كښے «اربعين حديثاً من أربعين شيخاً في أربعين بلداً، من أربعين صحابياً» ذكر دى.(٨)

**اجزاء او رسائل:** دحضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله د تحرير مطابق په اجزاء او رسائلو كښے فرق

---

(١) مشكاة المصابيح (ص،٣٧) وشعب الإيمان (٢٧١/٢)
(٢) تلخيص الخبير كتاب الوصايا رقم (١٣٧٥) (٩٣/٣) مطبوعه دارنشر الكتب الإسلامية لاهور باكستان.
(٣) الأربعين النووية بشرح الإمام أبن دقيق العيد رحمهما الله تعالى (ص،د)
(٤) كشف الظنون (٥٢/١)
(٥) الجامع الصغير مع شرح فيض القدير (١١٩/٦) رقم ٨٦٣٧)
(٦) مقدمة لامع الدرارى (١٥٤/١)
(٧) مقدمة لامع الدرارى (١٥٧/١)
(٨) كشف الظنون (٥٤/١)

دے اجزاء. هغه کتابونوته وائی.چه په هغې کښې د يو شيخ روايات جمع کړے شی.او رسائل هغه دی.چه په هغې کښې د يوے مسئلے روايات راجمع کړے شی(۱) خو تحقيق دا دے.چه دواړه يو څيز دے متقدمينو رحمهم الله چه د کوم څيز نه په اجزاؤ سره تعبير کولو.متاخرين رحمهم الله د هغې نه په رسائلو سره تعبير کوی.دامام بخاری رحمه الله ،،جزء رفع اليدين،، او ،،جزء القراءة خلف الإمام،، ددے باوجود چه د يوے مسئلے سره تعلق دی.خو دے ته رساله نه ده ونيلے شوے.دا د متقدمينو رحمهم الله اصطلاح ده.(۲)

**كتاب العقائد** دا هم د حديثو د کتابونو يو قسم دے.په دے کښې د عقائدو سره متعلقه روايات ذکر کولے شی.لکه د بيهقی رحمه الله ،،كتاب الأسماء والصفات،، او د ابن خزيمه رحمه الله ،،كتاب التوحيد،، او دامام بخاری رحمه الله ،،خلق أفعال العباد،،(۳)

**كتاب الاحكام** : په دے کښې د فقهی مسائلو سره متعلقه روايات ذکر کولے شی.لکه صحاح سته او د حافظ عبدالحق رحمه الله ،،الأحكام الصغرى ،، او ،،الأحكام الكبرى،، او د عبدالغنی مقدسی ،،عمدة الأحكام،،(۴)

**كتاب التاريخ** : دا هغه قسم دے.چه د تاريخی موادو متعلق روايات په کښې درج کولے شی. بيا ددے دوه قسمونه دی.يو هغه چه په هغې کښې د ابتداء د پيدائش نه واخله ترد نبی صلی الله عليه وسلم نه پس پورے واقعات ذکر کولے شی.لکه د امام بخاری رحمه الله كتاب ،، بدء المخلوقات،، او دويم قسم هغه دے.چه په هغې کښې د نبی صلی الله عليه وسلم سره متعلقه تاريخی مواد پيش کولے شی.لکه سيرت ابن هشام رحمه الله او مغازی محمد بن اسحاق رحمه الله (۵)

**كتاب الزهد** :د داسے مضامينو روايات چه په هغې سره په زړه کښې نرم والے پيدا کيږی.اود آخرت د فکر جذبه بيداريږی.که جمع کړے شی.نوداسے کتاب ته ،،كتاب الزهد،، وائی.په دے باب کښې عبدالله بن مبارك،احمد بن حنبل،امام بخاری، ابوداود، امام ترمذی، او بيهقی رحمهم الله وغيره کتابونه ليکلی دی.(۶)

**كتاب الآداب**: د خوراك څکاك اودهٔ کيدو پاسيدو، مزل کولو او خبرو کولو سره متعلق روايات که ذکر کړے شی.نوپه هغې باندے دکتاب الآداب اطلاق کيږی.دامام بخاری رحمه الله ،،الأدب المفرد،، په دے لړ کښې مشهور کتاب دے.(۷)

---

(۱) فوائد جامعه بر عجاله نافعه (ص.۱۶)
(۲) مقدمة لامع الدرارى (۱/۱۵۲)
(۳) مقدمة لامع الدرارى (۱/۱۴۳) كشف الظنون (۱/۷۲۲)
(۴) سير أعلام النبلاء (۲۱/۱۹۹) كشف الظنون (۲/۱۱۶۴)
(۵) اوګورئ عجاله نافعه (ص.۱۴) وفوائد جامعه(ص. ۱۴۷)
(۶) كشف الظنون (۲/۱۴۲۲) تهذيب التهذيب (۹/۳۸۹) الأعلام للزركشى (۳/۱۲۲)
(۷) عجاله نافعه (ص.۱۴)

**كتاب الفتن**: دفتنو متعلق احاديث چه په كومو كتابونو كښې ذكر كړلے شي.هغې ته، كتاب الفتن، ونيلے شي.لكه د نعيم بن حماد رحمه الله «كتاب الفتن والملاحم»[۱]

**كتاب المناقب**: ديو فرد يا قوم يا ډلے وغيره سره متعلقه د فضائلو روايات په كتاب المناقب كښې جمع كړلے شي.لكه چه امام نسائي رحمه الله چه د «خصائص على» په نوم باندے كتاب ليكلے دے.[۲] اومحب الدين طبرى رحمه الله متوفى۶۹۴ھ چه د «الرياض النضرة فى فضائل العشرة» ليكلے دے.[۳]

**مشيخه**: مشيخه هغه كتابونو ته وائى.چه په هغې كښې د يو يا څو شيوخو روايات جمع كړے شى.[۴] برابره خبره چه د كومے مسئلے سره متعلق وى.لكه «مشيخة ابن البخارى» او «مشيخة ابن القارى» وغيره [۵]

**كتاب الافراد والغرائب**: په كوم كتاب كښې چه ديو شيخ تفردات جمع كړے شى.هغې ته «كتاب الأفراد والغرايب» وائى. [۶] لكه د دارقطنى رحمه الله «كتاب الأفراد»[۷]

**كتاب العلل**: كه په يو كتاب كښې دحديث علل خفيه چه په صحت كښې مخل وى.اوليكلے شى. نودغه كتاب ته «كتاب العلل» وائى.په علت خفيه باندے پوهيدل ډير ګران كار دے.دا د هرچا د وس خبره نه ده.ددے دپاره په اسانيدو او متونو باندے ژور نظر كول ضرورى دے.اود حافظے زيات قوت ورله ضرورى دے.[۸] دحديث د راويانو د ولادت او د وفات دتاريخونوعلم، او دهغوى په خپل مينځ كښې ملاقات، اوعدم ملاقات نه واقفيت هم ډيرزيات ضرورى دے.نوهله سړے علت خفيه معلومولے شى. هم داوجه ده.چه د .علل. په باب كښې ډيرو كمو كسانو قلم اوچت كړے دے.[۹]

امام احمد بن حنبل،على بن مدينى ،امام بخارى، ترمذى،مسلم دارقطنى او ابن ابى حاتم رحمهم الله كتاب العلل ليكلى دى.[۱۰] دامام احمد بن حنبل رحمه الله كتاب د هغه د مشرى خوى

---

(۱) كشف الظنون (۱۴۴۵/۲)
(۲) كشف الظنون (۷۰۶/۱)
(۳) كشف الظنون (۹۳۷/۱)
(۴) مقدمة لامع الدرارى (۱۵۱/۱)
(۵) كشف الظنون (۱۶۹۶/۲)
(۶) مقدمة لامع الدرارى (۱۵۸/۱)
(۷) كشف الظنون (۱۳۹۶/۲)
(۸) نزهة النظر فى توضيح نخبة الفكر (ص.۷۵)
(۹) نزهة النظر فى توضيح نخبة الفكر (ص.۷۵)
(۱۰) مقدمة لامع الدرارى (۱۷۱/۱) دغه شان اوګورئ تدريب الراوى (۲۵۸/۱) كشف الظنون (۱۱۵۹/۲ – ۱۴۴۰) مقدمة فتح البارى (ص.۴۹۲) مطبوعه دارالنشر الكتب الإسلامية لاهور پاكستان

عبدالله بن احمد رحمه الله په روایت سره په ،،انقره،، کښې چهاپ شوے دے.او د ابن ابی حاتم د کتاب العلل اول جزء په مصر کښې چهاپ شوے دے.او د دارقطنی رحمه الله کتاب العلل ډیر جامع دے.(۱) په هندوستان کښې د پټنه په کتب خانه کښې موجود دے.او دامام ترمذی رحمه الله کتاب العلل الصغیر د جامع ترمذی په آخر کښې چهاپ شوے دے.(۲)

**اطراف** دا د حدیث هغه کتابونه دی.چه په دے کښې دحدیث یوه حصه ذکر کولے شي.او دا خودلی شي.چه دا حدیث په کوم کوم کتاب کښې په کوم کوم مقام کښې موجود دے.(۳) لکه «إنما الأعمال بالنيات» د یو حدیث اولنۍ جمله ده.دا ذکر کولے شي.او بیا خودلے شي.چه دا حدیث په کوم کوم کتاب کښې موجود دے.او د کتاب په کوم کوم مقام باندے دا ذکر شوے دے.په دے باره کښې مختلفو حضراتو په مختلف نوعیت کتابونه لیکلی دی.مثلاً ابن عساکر رحمه الله د سنن اربعه اطراف لیکلی دی.او حافظ ابومسعود ابراهیم بن محمد الدمشقی رحمه الله په صحیحنو اطراف لیکلی دی.او حافظ جمال الدین مزنی رحمه الله متوفی ۷۴۲ هـ «تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف» په نوم باندے د صحاح سته اطراف لیکلی دی.(۴)

**ترغیب او ترهیب** : کتاب الترغیب والترهیب هغه کتاب ته وائي.چه په هغے کښې آخرت طرف ته رغبت وی.او د اور نه د ویرے په روایاتو مشتمل وی.په دے باب کښې زیات مشهور کتاب د حافظ منذری رحمه الله «الترغيب والترهيب» دے.(۵)

**مسلسلات** : د حدیث هغه کتابونه دی.چه دهغے په اسنادو یا متونو کښې د اول نه واخله تر آخره پورے یوخاص قسم تسلسل جاری وی.ابوبکربن شاذان، ابونعیم او مستغفری رحمه الله مسلسلات لیکلی دی.(۶) حافظ جلال الدین سیوطی رحمه الله دوه مسلسلات لیکلی دی.(۷) زمونږ په کورنو کښې شاه ولی الله رحمه الله مسلسلات «الفضل المبين في المسلسل من حديث النبي الأمين»(۸) معروف او متداول دی.

**ثلاثیات** : دا هغه کتابونو دی.چه په هغے کښې داسے روایات ذکر کړے شي.چه په هغے کښې د مصنف رحمه الله نه واخله تر رسول الله ﷺ پورے صرف درے واسطے وی.امام بخاری رحمه الله په خپل

---

(۱) مقدمة لامع الدراری (۱/۱۷۲،۱۷۱)
(۲) پورتنۍ حواله (۱/۱۷۲)
(۳) نزهة النظرفی توضح نخبة الفکر(ص،۱٤٦)مطبوعه فاروقی کتب خانه بیرون بوهړ گیټ ملتان
(۴) کشف الظنون (۱/۱۰۳، ۱۱۶) دغه شان اوګورئ مقدمة لامع الدراری (۱/۱۷۳) او الرسالة المستطرفة (ص،۱۳۷، ۱۳۸)
(۵) مقدمة لامع الدراری (۱/۱۸۳) کشف الظنون (۱/٤۰۰)
(۶) الرسالة المستطرفة (ص،۶۹)
(۷) مقدمة لامع الدراری (۱/۱۸۶) وکشف الظنون (۱۶۷۷)
(۸) مقدمة لامع الدراری (۱/۱۸۶)

صحیح کښې دوویشت ثلاثیات ذکر کړی دی.په دے کښې یوولس روایات د مکی بن ابراهیم رحمه الله نه منقول دی.کوم چه د امام ابوحنیفه رحمه الله خاص شاګرد وو.اوشپږ روایات د ابو عاصم النبیل ضحاك بن مخلد رحمه الله نه مروی دی.دے هم د امام ابوحنیفه رحمه الله شاګرد دے. درے روایات د محمد بن عبدالله انصاری رحمه الله دی.دے د امام ابویوسف رحمه الله او امام زفر رحمه الله شاګرد دے.نو په دے حساب په دویشتو کښې شل ثلاثی روایات هغه دی.چه د حنفی مشائخو نه نیے اخستے شوے دی.او په باقی دوه روایاتوکښې یو د خلاد بن یحی کوفی رحمه الله دے.اویو د عصام بن خالد حمصی رحمه الله دے.د هغوی متعلق دا معلومه نه ده.چه دوی حنفی دی اوکه نه؟ دا دویشت روایات د سند په لحاظ سره دویشت دی.[1] خود متن په اعتبار سره اوولس دی.

دامام بخاری په ثلاثیاتو باندے ډیر فخر کولے شی.اوپه حقیقت کښې د فخر خبره هم ده.ځکه چه د ثلاثیاتو سند عالی وی.او سند عالی د فخر باعث دے.د یحی بن معین رحمه الله نه د وفات په وخت کښې چا تپوس کړے وو.«ماتشتهی؟» نوهغوی فرمائیلی وو.«بیت خال وإسناد عال»[2] دامام احمد بن حنبل رحمه الله ارشاد دے.د متقدمینو رحمهم الله طریقه د عالی سند طلب اولټون وو.[3] خو امام ابوحنیفه رحمه الله چه د هغوی زیات روایات ثلاثی دی.او زیات ثنائی دی.لکه چه د مسانید امام اعظم او کتاب الآثار نه ښکاره ده.او امام ابوحنیفه رحمه الله د لیدلو په اعتبار سره تابعی هم دے.ځکه چه هغوی د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه زیارت کړے وو بلکه روایة ورته هم تابعی وئیلے شوے دے.اګرچه په دے کښې اختلاف دے.[4] خو ددے باوجود د امام بخاری رحمه الله په مقابله کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله ثنائی او ثلاثی روایاتو ته صحیح اهمیت نشي ورکولے.دا خبره قابله د شکایت ده.

د بخاری رحمه الله نه علاوه په ابن ماجه کښې پنځه ثلاثی روایات دی.[5] او په جامع ترمذی کښې یو ثلاثی روایت دے.[6] په مسلم ابوداود او نسائی کښې ثلاثی روایت نشته.ملا علی قاری رحمه الله ته د ،،مرقات،، په مقدمه کښې وهم شوے دے.او هغوی د ترمذی روایت ته ثنائی وئیلے دے.[7] حالانکه هغه ثلاثی دے.دکتاب الفتن په روایت کښې دی.«یأتی علی الناس زمان الصابر

---

(۱) مقدمة لامع الدراری (۶۳/۱، ۶۴، ۱۰۲، ۱۸۷) دغه شان اوګورئ تذکرة الحفاظ (۲۶۶/۱، ۳۶۵) سیر أعلام النبلاء (۴۸۱/۹) الجواهرالمضیئة (۲۶۳/۱) هدی الساری (ص.۴۷۹) تهذیب الکمال (۵۳۹/۲۵) تاریخ بغداد (۴۱۲/۵، ۴۰۸)

(۲) مقدمة ابن الصلاح(ص.۱۳۰)

(۳) مقدمة ابن الصلاح (۱۳۰)

(۴) مقدمة لامع الدراری (۱۰۳/۱) د رویة تابعیت د ثبوت دپاره او ګورئ سیرأعلام النبلاء (۳۹۱/۶) تهذیب التهذیب (۴۴۹/۱۰) تهذیب الکمال (۴۱۸/۲۹) تذکرة الحفاظ (۱۶۸/۱) تاریخ بغداد (۳۲۳/۱۳)

(۵) سنن ابن ماجه (ص.۲۴۸، ۳۱۷، ۲۴۰، ۲۳۷، ۲۲۴)

(۶) السنن الترمذی (۵۲/۲) رقم الحدیث ۲۲۶)

(۷) مرقاة شرح مشکاة (۲۳/۱)

فيهم على دينه كالقابض على الجمر»(١) خوچه كله ملاعلي قاري رحمه الله د مشكاة شرح ليكله.او دے حديث ته راورسيدلو.نوهغوى د ترمذى دا روايت ثلاثي ليكلے دے.(٢) او هم دا صحيح ده.
دملا علي قاري رحمه الله نه د مرقات په مقدمه كښے په دے مقام كښے يوه بله سهوه شوے ده.هغوى د مسلم او ابوداود په باره كښے اشاره كړے ده.چه په دے دوارو كښے هم ثلاثي روايات موجود دي.(٣) حالانكه په مسلم او ابوداود كښے هيڅ يو ثلاثي روايت نشته.البته په ابوداود كښے يو روايت «رباعي في حكم الثلاثي» موجود دے. يعني د مصنف رحمه الله نه واخله ترنبي ﷺ پورے څلور واسطے دي.خو په دے كښے دوه راويان د يوے طبقے دي.يعني تابعيان دي.نو د طبقے د اتحاد د وجے ورته حكماً ثلاثي ونيلے شي.او په اصطلاح كښے ددے نوم «رباعي في حكم الثلاثي» دے.
دامام مسلم رحمه الله په صحيح كښے هيڅ يو روايت ثلاثي نه دے.البته د امام مسلم رحمه الله په بعضے نورو كتابونو كښے ثلاثي روايت موجود دے.د بخاري او مسلم د ټولو نه ادني سند هغه دے.چه په هغے كښے د مصنف رحمه الله او نبي ﷺ په مينځ كښے نهه واسطے وي.داسے سند ته تساعي وائي.د ترمذى او نسائي ادني سند عشاري دے.(٤) دابوداود نازل سند ثماني دے.
په مسند احمد بن حنبل رحمه الله كښے د «عقود اللآلي» دصاحب په قول اووه ديرش سندونه ثلاثي دي.(٥)
تردخائے پورے د حديث د كتابونو د قسمونو ذكر وو.قسمونه خو نور هم دي.خو د اكثرو ذكر دلته كښے اوشو.

**تدوين حديث:** دويم بحث دلته د تدوين كيږي.يو مؤلف د فن وي.او بل مؤلف د كتاب. د مؤلف الكتاب ذكر خو به په مقدمة الكتاب كښے راشي.او د مؤلف الفن ذكر دلته كيږي.
دا معلومه شوے ده.چه د نبي ﷺ د احاديثو اطلاق د دوى په اقوالو،افعالو،تقاريرو او صفاتو باندے كيږي.دلته په دے باره كښے خبره كيږي.چه د رسول الله ﷺ احاديثو ته د فن حيثيت چا وركړے وو.په دے باره كښے دوه نومونه ياديږي.
يومحمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن الحارث بن زهره بن كلاب.د دوى وفات په كال ١٢٥ هـ كښے شوے وو.دوى د نبي ﷺ د مور بي بي حضرت آمنے د قبيلے زهره سره تعلق ساتي.ددے وجه ورته زهري ونيلے شي.او ابن شهاب ورته هم وائي.چونكه ددوى پلار شهاب ډير مشهور سړے وو.نوځكه اكثر هغوى طرف ته منسوب

(١) جامع الترمذي (٥٢/٢) كتاب الفتن باب ٧٣ حديث ٢٢٦٠)
(٢) مرقاة شرح مشكاة (٩٨/١٠)
(٣) مرقاة شرح مشكاة (٢٣/١٠)
(٤) تدريب الراوي (١٦٦/٢) سنن الترمذي محققه ابراهيم عطوه عوض (١٦٧/٥) سنن نسائي (١٥٥/١)
(٥) عقود اللآلي في الأسانيد العوالي (١٢٧)

کیږي.اوابن شهاب ورته وائی.(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«اتفقوا على إتقانه وإمامته» ددوی په باره کښې دحضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله قول دے.«لم يبق أحد أعلم بسنة ماضية من الزهري» او په تذكرة الحفاظ کښې دحضرت سعد بن لیث رحمه الله قول هم ددوی په باره کښې نقل شوے دے.چه «ما رأيت عالماً قط أجمع من الزهري وإن حدث عن القرآن والسنة فكذلك» یعنی د زهری رحمه الله په شان جامع عالم ما نه دے لیدلے.او د قرآن او حدیث بیانونکو کښې د دوی نه بهتر څوك نشته.(۲) هم دا ابن شهاب د «أول من دون الحديث» مصداق دے.حافظ ابن حجر رحمه الله په «باب كتابة العلم» کښې هم دوی اول مدون دحدیث ګرځولے دے. (۳)دغه شان ابو نعیم په حلیة الاولیاء کښې د امام مالك رحمه الله قول نقل کړے دے.چه اول مدون ابن شهاب زهری رحمه الله دے.(۴)

منکرین حدیث د خپل باطنی خباثت دوجې د امام زهری متعلق د طعن ژبه اوږدوی. او دوی د مشکوك ګرځولو دپاره (والعیاذبالله) دوی د یهودی سازش یو کردار ادا کونکے ښائی.ددے د تردید دپاره د عالمانو رحمهم الله دا اقوال ذکر شوی دی.

د مدون اول په حیثیت دویم نوم د ابوبکر بن حزم رحمه الله راځی.د دوی وفات په کال ۱۲۰هـ کښې شوے دے.دوی د حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله د طرفه د مدینې منورې ګورنر وو.عالم فاضل متقی عابد او تهجد ګذار وو.ددوی د بی بی بیان دے.چه څلویښتو کالو پورے دوی چرته د شپې په بستره نه دی څملاستلے.د امام مالك رحمه الله قول دے.په مدینه منوره کښې د دوی نه زیات چاته د قضا علم نه وو.(۵)

امام بخاری رحمه الله په «باب كيف يقبض العلم» کښې نقل کړی دی.چه «كتب عمر بن عبد العزيز إلى أبي بكر بن حزم: أنظر ما كان من حديث رسول الله ﷺ فاكتبه فإني خفت دروس العلم وذهاب العلماء»(۶) ددے نه معلومیږی.چه عمربن عبدالعزیز رحمه الله (چه ددے امت مجدد اول دے.او دوی تجدیدی کارنامه تدوین حدیث دے .هغوی) دتدوین خدمت ابوبکر بن حزم رحمه الله ته حواله کړے وو.خکه د علامه هروی رحمه الله رائے دا ده.چه مدون اول ابوبکربن حزم رحمه الله دے.(۷)

خوامام مالك رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله ابن شهاب زهری رحمه الله اول مدون ګرځولے دے.او حقیقت هم دا دے.چه اول مدون ابن شهاب زهری رحمه الله دے.

---

(۱) تذكرة الحفاظ (۱۰۸/۱) تهذيب الكمال (۴۱۹/۲۶) فتح الباری (۲۲/۱)

(۲) اوګورئ پورتنئ حواله

(۳) فتح الباری (۲۰۸/۱)

(۴) حلية الأولياء (۳۶۳/۳)

(۵) تهذيب الكمال (۱۳۷/۳۳)

(۶) البخاري كتاب العلم باب كيف يقبض العلم

(۷) مقدمة أوجز المسالك (۱۶/۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله د ابونعیم اصفهانی رحمه الله په حوالے سره ذکر کړی دی. چه ((کتب عمربن عبدالعزیز إلی الآفاق أنظروا أحادیث رسول الله ﷺ فاجمعوه)) (١) حافظ ابوعمربن عبدالبر رحمه الله په ((جامع بیان العلم)) کنبے نقل کړی دی.((یحدث سعدبن ابراهیم أمرنا عمربن عبدالعزیز رحمه الله بجمع السنن)) (٢) دغه شان د تاریخ دکتابونو نه معلومیږی.چه عمربن عبدالعزیز رحمه الله د امراء الاجناد یعنی د لښکرو امیرانو ته حکم کړے وو.چه درسول الله ﷺ د احادیثو د لیکلو اهتمام اوکړئ.خکه به دا ونیلی شی.چه د احادیثو دجمع کولو حکم صرف ابوبکر بن حزم رحمه الله ته نه وو ورکړے شوے لکه چه په بخاری کنبے دی.بلکه نورو حضراتو ته هم دا حکم شوے وو.او په هغوی کنبے ابن شهاب زهری رحمه الله هم شامل وو.بیا داسے اوشو.چه ابن شهاب زهری رحمه الله دعمر بن عبدالعزیز رحمه الله په حکم سره احادیث جمع کړل.اوهغه ئے عمربن عبدالعزیز رحمه الله ته اولیږل. اوهغوی ددے نقلونه تیار کړل.اوپه اطرافو کنبے ئے تقسیم کړل.لکه چه امام مالك رحمه الله ذکر کړی دی.

باقی د ابوبکر بن حزم رحمه الله متعلق حافظ ابن عبدالبر رحمه الله په ،،التمهید،، شرح موطا کنبے نقل کړی دی.چه ((فتوفی عمروقد کتب ابن حزم کتباً قبل أن یبعث بها إلیه)) (٣) نومعلومه شوه.چه د ابن شهاب رحمه الله لیکلی شوی احادیث عمربن عبدالعزیز رحمه الله ته اورسیدل.اوهغه تقسیم کړے شول.او ابن حزم رحمه الله ته دا سعادت نصیب نشو.د هغوی لیکلی شوی احادیث عمربن عبدالعزیز رحمه الله ته اونه رسیدل.او نه هغه تقسیم کړے شو.نوخکه به د اولنی مدون اطلاق په ابن شهاب باندے کیږی.په ابوبکر بن حزم رحمه الله باندے نه کیږی.

**اشکال**: دلته کنبے دا اشکال کیږی.چه امام مسلم رحمه الله د ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت نقل کړے دے.چه ((أن رسول الله قال: لاتکتبوا عنی، ومن کتب عنی غیرالقرآن فلیمحه)) (٤) نواوس سوال دا دے.چه کله نبی ﷺ د غیر قرآن دلیکلو یعنی د احادیثو د لیکلو نه منع کړے وه.نو عمربن عبدالعزیز رحمه الله د احادیثو دلیکلو او سننو جمع کول ولے کړے وو؟اوددے کتابت د وجے هغوی ،،مجدد،، ولے گرخولے شی؟

جواب نمبر ١: دابوسعید خدری رضی الله عنه په دے حدیث کنبے د وقف اورفع اختلاف نقل شوے دے.خوك ورته موقوف وائی.اوخوك ورته مرفوع وائی.او امام بخاری رحمه الله موقوف ته ترجیح ورکړے ده.(٥)نودا حدیث موقوف دے.او د احادیث مرفوعۀ صحیحۀ په مقابله کنبے دا حجت نشی گرخیدے.

(١) فتح الباری (١٩٥/١)
(٢) جامع بیان العلم (٧٦/١)
(٣) التمهید (٨١/١)
(٤) صحیح مسلم (٤١٤/٢)
(٥) فتح الباری (٢٠٨/١)

جواب نمبر: ۲ امام بخاری رحمه الله په كتاب العلم كښے څو روايتونه نقل كړى دى.اولنے روايت د حضرت على رضي الله عنه دے.روافضوا دا مشهوره كړے وه.چه د حضرت على رضي الله عنه سره څه ليكل وو چه په هغے كښے د دولسو امامانو نومونه مذكور وو.اوپه هغے كښے دهغه دولسو امامانو په حق كښے د نبى صلى الله عليه وسلم وصيت موجود وو.نوځكه د حضرت على رضي الله عنه نه تپوس اوشو.چه تاسو سره څه خاص ليكل شته؟نووے فرمائيل.نه دا قرآن مجيد دے.او دا ليكل دى.چه د صدقو، ديت، قصاص، او امان احكام په كښے ذكر دى.دحضرت على رضي الله عنه دا روايت امام بخارى ،مسلم، نسائى، احمد بن حنبل او بيهقى رحمهم الله وغيره نقل كړے دے.(١) ددے نه ثابته شوه.چه د نبى صلى الله عليه وسلم د حديثو ليكل ممنوع نه وو.ګنى د صدقو، ديت او قصاص احكام به وركښے ليكلى شو.دا خو هم د نبى صلى الله عليه وسلم احاديث وو.

امام بخارى رحمه الله دويم روايت نقل كړے دے.چه نبى صلى الله عليه وسلم دمكے د فتح په موقع باندے خطبه وئيله.نو ابوشاه يمنى رضي الله عنه عرض اوكړلو.حضرت دا خطبه ماته اوليكئ.نو نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. ((اكتبوا لأبي فلان))(٢)ښكاره ده.چه د نبى صلى الله عليه وسلم دا خطبه د احاديثو وه.او د نبى صلى الله عليه وسلم د حكم نه ددے د ليكلو جواز معلوميږى.

امام بخارى رحمه الله دريم روايت د ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كړے دے.((ما من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم أكثر حديثاً مني إلا ماكان من عبدالله بن عمرو، فإنه كان يكتب ولا أكتب))(٣) دغه شان په مسند احمد، ابوداود، او مسند دارمى (٤)كښے د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما د حديث د ليكلو ذكر موجود دے.د مسند احمد روايت دے.((قال قلت يارسول الله إنا نسمع منك أحاديث لا نحفظها أفلا نكتبها قال: بلى فاكتبوها))(٥) په يو روايت كښے دحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه دا منقول دى.((قال قلت يا رسول الله إني أسمع منك أشياء أفأكتبها؟قال: نعم،قلت: في الغضب والرضا قال نعم، فإني لا أقول إلا حقاً))(٦) دحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما سره د ليكلوشوو احاديثو يوه مجموعه موجود وه.دهغے نوم هغوى په خپله ((الصحيفة الصادقة)) كيخودے وو.(٧)په مسند دارمى كښے

---

(١) فتح البارى (٢٠٤/١، ٢٠٥) صحيح بخارى (٢١/١)

(٢) صحيح بخارى (٢١/١)

(٣) صحيح بخارى (٢٣/١)

(٤) مسند احمد (١٦٢/٢و ٢١٥، ٢٩٢) وابوداود كتاب العلم باب فى كتابة العلم رقم. (٣٦٤٦) وسنن الدارمى (١٣٦/١) المقدمة باب من رخص فى كتابة العلم)

(٥) مسند احمد (٢١٥/٢)

(٦) مسند احمد (٢١٥/٢)

(٧) ابن سعد (٣٧٣/٢)

دی. «قال عبدالله بن عمرو: أما الصادقة فصحيفة كتبتها من رسول الله ﷺ»[1] دغه شان امام بخاری رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما روايت نقل کړے دے.«قال لما اشتد بالنبي ﷺ وجعه قال ائتوني بكتاب أكتب لكم كتاباً لا تضلوا بعده الخ» [2]دلته کښے د اول کتاب نه ورق مراد دے.او د دويم کتاب نه تحرير مراد دے.او دا ښکاره ده.چه د کوم تحرير د ليکلو چه نبی ﷺ اراده کړے وه.هغه په حديث کښے داخل وو.نو ددے نه هم د کتابت حديث جواز ثابت شو.

حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه سره ليکلی شوی احاديث موجود وو.د دغه ليکلو شوو احاديثو روايت به حسن بصری رحمه الله کولو.او په هغے کښے اکثر احاديث په سنن اربعه کښے راغلی دی.[3]څه وخت چه په ابوداود کښے دا روايات راځی.نوددے په شروع کښے وی.«أما بعد» لکه چه دا نښه ده.چه دا احاديث د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه د ليکلو نه ماخوذ دی.[4]

دغه شان په صحابه کرامو کښے يوه ډله د ،،مکثرين في الحديث،، په نوم پيژندلی شی.،،مکثرين في الحديث،، هغه صحابؤ ته وائی.چه د هغوی د احاديثو شمار يو زر يا د يوزرو نه زيات وی. [5] دے حضراتو نومونه دا دی.حضرت ابوهريره رضي الله عنه حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس ،حضرت جابربن عبدالله ، حضرت انس بن مالك ،او حضرت عائشه رضي الله عنهم.[6]د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د احاديثو شمار پنځه زره څلور سوه څلوراويا دے.[7] حافظ ابن عبدالبر په جامع بيان العلم کښے د هغوی د شاګرد قول نقل کړے دے.«تحدثت عند أبي هريرة رضي الله عنه فأنكره فقلت، فقلت إني قد سمعته منك قال إن كنت سمعته مني فهو مكتوب عندي، فأخذ بيدي إلى بيته فأرانا كتباً كثيرة من حديث رسول الله ﷺ فوجد ذلك الحديث» [8] دا د ابوهريره رضي الله عنه يو شاګرد حسن بن عمرو رحمه الله دے.د دوی بل شاګرد بشير بن نهيك رحمه الله فرمائی.

«كنت أكتب ما أسمع من أبي هريرة رضي الله عنه فلما أردت أن أفارقه أتيته بكتابه فقرأته عليه وقلت له: هذا ما

---

(۱) سنن الدارمی (۱۰۵/۱)
(۲) صحيح بخاری (۲۲/۱) كتاب العلم باب كتابة العلم)
(۳)اوګورئ تهذيب التهذيب (۶۶/۲) الحسن ابن أبي الحسن يسار البصری)
(۴) اوګورئ سنن ابی داود.(۶۶/۱) رقم ٤٥٦، و(۱٤۰/۱) رقم ۹۷۵) و(۲۱۸/۱) رقم ۱۵۶۲) و(۳٤۶/۱) رقم ۲۵۶۰) و(۱۵/۲) رقم ۲۷۱۶) و(۲۹/۲) رقم ۲۷۸۷)
(۵) تدوين حديث ازمولانا مناظراحسن ګيلانی (ص.۳٤۱)
(۶) اوګورئ تقريب نووی مع شرح تدريب (۲۱۶/۲)
(۷) تدريب الراوی (۲۱۶/۲)
(۸) جامع بيان العلم (۸۹/۱)

سمعته منك قال نعم» (۱) د یمن په امراؤ کښې همام بن منبه رحمه الله او وهب بن منبه رحمه الله د حضرت ابوهریره رضي الله عنه شاګردان وو. هغوی د ابوهریره رضي الله عنه احادیث په صحیفو کښې جمع کړی وو. د یوے نوم ،،صحیفه همام بن منبه،، وو او دبل نوم صحیفه وهب بن منبه ،، وو. د همام بن منبه رحمه الله د صحیفے روایات اکثر په مسند احمد کښې موجود دی. (۲) او دغه شان په صحیح مسلم کښې هم شته. (۳)

**اشکال** یو اشکال دلته دا کیږی. چه حضرت ابوهریره رضي الله عنه په مکثرین في الحدیث صحابو کښې شامل دے او د دوی د روایاتو شمار (۵۳۷۴) دے پکار دا وه. چه حضرت عبدالله بن عمرو العاص رضي الله عنهما هم په مکثرین في الحدیث کښې داخل وو. خو دهغوی روایات د ابوهریره رضي الله عنه په نسبت کم دی. حالانکه په خپله د حضرت ابوهریره رضي الله عنه اقرار دے. چه عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما احادیث زما نه زیات دی. نو دا معامله برعکس څنګه شوه. او د عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما احادیث ولے کم شو؟

**جواب** د دے جواب دا دے. چه د عبدالله بن عمرو قیام په مصر کښې وو. هغه په هغه وخت کښې دعلم مرکز نه وو. او دابوهریره رضي الله عنه قیام په مدینه منوره کښې وو. او دے ته دعلم مرکزیت حاصل وو. نوځکه د ابوهریره رضي الله عنه د احادیثو اشاعت زیات اوشو. اود عبدالله بن عمرو داحادیثو اشاعت زیات اونشو.

او یا دا وجه ده. چه ابوهریره رضي الله عنه به هر وخت په درس او تدریس کښې مشغول وو. اود دے په خلاف دبعضے حضراتو په قول عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما زیات تر په نوافلو کښې مشغول وو. او بعضو دا وئیلی دی. چه عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما به د تورات او انجیل مطالعه زیاته کوله. او اسرائیلیات به ئے هم بیانول. نوځکه د حدیث د طالبانو هغوی طرف ته زیات رغبت نه وو. (۴) په خلاف د ابوهریره رضي الله عنه دهغوی دنبی صلی الله علیه وسلم احادیثو سره شغل زیات وو. هغوی به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د احادیثو نه سوا بل څه نه بیانول. نو ځکه د هغوی نه زیاته استفاده اوشوه. والله اعلم

په مکثرین في الحدیث کښې حضرت عائشه رضي الله عنها هم داخله ده. د دوی د احادیثو شمار دوه زره دوه سوه او لس دے. (۵) عروه بن زبیر رحمه الله د حضرت عائشے رضي الله عنها احادیث په کتابی شکل کښې جمع کړی وو. کله چه د مدینے منورے سیاسی حالات د ،،حره،، د واقعے په موقع خراب شو. نو د عروه هغه لیکل ورك شو. حضرت عروه رحمه الله به فرمائیل: «لوددت لی کنت فدیتها بأهلی

---

(۱) سنن دارمی (۱۳۸/۱) مقدمة باب من رخص فی کتابة العلم-

(۲) مسند احمد (ص، ۳۱۲، ۳۱۸)

(۳) او ګورئ تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف (۳۹۷/۱۰، ۴۱۰)

(۴) فتح الباری (۲۰۷/۱) کتاب العلم باب کتابة العلم –

(۵) تدریب الراوی (۲۱۷/۲)

ومالی» (١) چه زما اهل وعیال او مال هلاك شوے وے.خو افسوس چه هغه لیکل محفوظ وو. دحضرت عائشے رضی الله عنها روایات حضرت قاسم بن محمد رحمه الله هم په کتابی شکل کښے جمع کړی وو.د عمره بنت عبدالرحمن سره هم د عائشے رضی الله عنها احادیث لیکلے شوے موجود وو.عمربن عبدالعزیز رحمه الله چه کله د مدینے منورے گورنر ابوبکر بن محمد بن عمروبن حزم ته د احادیثو جمع کولو حکم کړے وو.نو دا هدایت ئے ورته هم کړے وو.چه د عمروبنت عبدالرحمن سره احادیث لیکلی شوی موجود دی.هغه هم ترلاسه کړئ.(٢)حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما هم په مکثرین في الحدیث صحابو رضی الله عنهم کښے شامل دے.د دوی د روایاتو شمار یو زر شپږ سوه دے.(٣) حضرت سعید بن جبیر رحمه الله به د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایات لیکل.اودومره ورسره اهتمام وو.که کاغذ به ختم شو.نوپه څرمن به ئے لیکل کولو.(٤)دا هم نقل شوی دی.چه د عبدالله بن عباس احادیث په کتابی شکل کښے ،،حمل بعیر،، (د اوښ بوج) برابروو.(٥) امام ترمذی په کتاب العلل کښے نقل کړی دی.«أن نفراً قدموا على ابن عباس رضی الله عنهما من أهل الطائف بكتاب من كتبه فجعل يقرأ عليه الخ(٦)حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه هم په مکثرین في الحدیث کښے داخل دے.ددوی د روایاتو شمار یوزر پنځه سوه څلویښت دے.(٧)حافظ ابن حجر رحمه الله ذکر کړی دی.چه وهب بن منبه رحمه الله اوسلیمان بن قیس رحمه الله سره د جابربن عبدالله رضی الله عنه روایات په کتابی شکل کښے موجود وو.او دوی به د هغے نه روایت کولو.(٨) حضرت انس بن مالك رضی الله عنه هم په مکثرین في الحدیث کښے داخل دے.د دوی د روایاتو شمار یوزر دوه سوه شپږ اتیا دے.(٩)حضرت انس بن مالك رضی الله عنه سره لیکلی شوی احادیث موجود وو.حاکم په مستدرك کښے دهغوی د یو شاگرد قول نقل کړے دے.«كنا إذا أكثرنا على أنس بن مالك رضی الله عنه أخرج إلينا مجالاً عنده فقال هذه سمعتها من النبي صلى الله عليه وسلم فكتبتها وعرضتها عليه صلى الله عليه وسلم»(١٠)
د دے روایاتو او واقعاتو نه دا ثابته شوه.چه د نبی صلى الله عليه وسلم د احادیثو په کتابی شکل کښے جمع کولو سلسله په خپله د نبی صلى الله عليه وسلم او صحابو په زمانه کښے شروع شوے وه.نو د ابوسعید

(١) تهذيب الكمال (١٩/٢٠)
(٢) ابن سعد (٤٨٠/٨)
(٣) خلاصة تهذيب تهذيب الكمال (ص-٢٠٢) الأعلام للزرقاني (٩٥/٤) تدريب الراوي (٢١٧/٢-
(٤) اوگورئ سنن دارمی (١٣٨/٥، ١٣٩) المقدمة باب من رخص فی كتابة العلم .رقم (٥٠٠) و(٥٠١)
(٥) ابن سعد (٢٩٣/٥)
(٦) جامع ترمذی كتاب العلل (٢٣٦/٢)
(٧) تدريب الراوي (٢١٧/٢) وخلاصة تذهيب تهذيب الكمال (ص.٥٩) والأعلام للزرقاني (١٠٤/٢)
(٨) اوگورئ تهذيب التهذيب (٢١٥/١)
(٩) خلاصة تهذيب تهذيب الكمال (ص.٤٠)
(١٠) مستدرک حاکم (٥٧٣/٣)

خدري ﷺ روایت کوم چه د کتابت په ممانعت دلالت کوي.په هغې کښې او ددے واقعاتو او روایاتو کښې تعارض لازمیږي.بعضے حضرات ممانعت ته ترجیح ورکوي.څکه چه په اباحت او ممانعت کښے کله تعارض راشي.نوترجیح به ممانعت ته وي.خو دا جماعت ډیر کم دے.بعضو په دواړو کښے د تطبیق صورت اختیار کړے دے.که د هیریدو ویره وي.نو د کتابت اجازت شته.اوکه د هیریدو ویره نه وي.نو اجازت نشته.(۱)حضرت عبدالله بن عمر ﷺ هم په مکثرین في الحدیث کښے دے. هغوی ته تول دوه زره شپږ سوه دیرش احادیث مروي دي.

خواوس صورت حال دا دے.چه په اول کښے اختلاف وو.حضرت عبدالله بن عمر،زید بن ثابت، حضرت ابوسعید خدري، حضرت ابوهریره او ابوموسی اشعري وغیره ﷺ د کتابت د عدم جواز قائل وو.(۲)اونورحضرات صحابه کرام ﷺ حضرت عمر،حضرت علي، حضرت عبدالله بن عمرو، حضرت عبدالله بن عباس وغیره ﷺ د کتابت د جواز قائل وو.(۳)

بیا دا اختلاف ختم شو.او حضرات صحابه کرام ﷺ په جواز کتابت باندے متفق شو.ددے اجماع نه پس او د پورتنو روایاتو او واقعاتو نه پس حدیث د ابوسعید خدري ﷺ قابل استدلال نشي پاتے کیدے.(۴)

دریم جواب دا دے.چه علامه نووي ﷫فرمائیلي دي.د ممانعت صورت په هغه وخت کښے دے.چه کله قرآن او حدیث دواړه په یو ځائے کښے لیکلي شي.(۵) مثلاً چه کله به وحي نازلیدله.نونبي ﷺ به صحابه کرامو ﷺ ته د قرآن نازل شوے آیاتونه اوروړل.او هغه به ئے لیکل.د تلاوت په دوران کښے به ئے کله کله تفسیر اوتشریح هم کوله.د دے تفسیر اوتشریح حیثیت به د حدیث وو.نو نبي ﷺ د قرآن کریم د آیاتونو سره ددے د لیکلو نه منع اوکړله.

څلورم جواب ابن قتیبه ﷫ورکړے دے.چه نبي ﷺ د حدیث دکتابت نه ددے وجے منع کړے وو.چه دځو کسانو نه علاوه نور صحابه ﷺ د کتابت نه ناواقف وو.که دے حضراتو لیکل کولو.نو د هغوی لیکل به صحیح نه وو.اوبه هغے باندے پوهیدل او وئیل به محال اوګران وو.نوځکه نبي ﷺ عمومي طور دحدیثو د لیکلو نه منع اوفرمائیله.(۶)

پنځم جواب دا ورکړے شوے دے.چه د کتابت نه پس په یادداشت کښے سستي واقع کیږي.سړے دا وائي.ما لیکل کړي دي.چه کله ئے اوغواړم.نواوبه ئے ګورم.او یا به ئے یاد

---

(۱) تدریب الراوي (۲/ ۶۷)
(۲) تریب الراوي (۶۵/۲)
(۳) تدریب الراوي (۶۵/۲)
(۴) اوګورئ فتح الباري (۲۰۸/۱) کتاب العلم باب کتابة العلم)
(۵) شرح النووي علی صحیح مسلم (۴۱۵/۲) کتاب الزهد باب التثبیت فی الحدیث وحکم کتابة العلم)
(۶) فتح الملهم (۲۶۰/۱)

کړم.نوځکه به هغه احادیث چه نبی ﷺ فرمائیلی وو.هغه به د نه یادول د وجې ضائع کیدل. او د صحابه کرامو ﷢ د ابتدائی حالاتو په وجه به کتابت کښې غلطی هم واقع کیدله. ددې په وجه په کتابت کښې هم د غلطئ امکان وو.نوعمومی طور صحابه کرام ﷢ د حدیث د کتابت نه منع شول.چه د کتابت د غلطو نه په امن هم شی.اود یادولو سلسله هم جاری پاتې شی. ځکه چه د صحابه کرامو﷢ حافظه ډیره قوی وه.البته خواصو ته د کتابت حدیث اجازت وو.ځکه چه دهغوی په حق کښې د غلطئ ویره نه وه.(۱) لکه څنګه چه د مکثرین في الحدیث د کتابی ذخیرو نه دا ثابته شوه.چه د نبی ﷺ په زمانه کښې هم څه خاص په شمیر کسانو احادیث لیکلی وو.او دوی نه پس هم دا سلسله جاری وه.دا بیله خبره ده.چه په هغه وخت کښې به دې حضراتود نبی ﷺ نه کوم حدیث واوریدلو.هغه به ئې لیکلو.د بابونو د تقسیم طریقه په هغه وخت کښې نه وه.چه د کتاب الطهارة حدیثونه جدا اولیکلی شی.او د کتاب الصلاة حدیثونه جدا.د ترتیب اوتهذیب دا طریقه په روستو راتلونکو مختلفو زمانو کښې په وجود کښې راغلې ده.

شپږم جواب مولانا مناظر احسن ګیلانی ﷫ورکړې دې.هغوی فرمائی.چه عام طور د حدیث د لیکلو اجازت ځکه نه وو ورکړې شوې.چه د حدیث مقام به د قرآن پسې په دویمه درجه کښې دې.که چرته د قرآن کریم پشان د حدیثو لیکلو اهتمام هم د اول نه شوې وو.نو راتلونکو نسلونو به په قرآن اوحدیث کښې فرق نشو کولې.اودواړه به ئې په یوه درجه کښې ګنړل.اود قرآن پاك په اوله درجه کښې او د نبی ﷺ احادیث په دویمه درجه به باقی نه وو پاتې شوې.بلکه ممکنه وه.چه په دواړو کښې اصطلاحی فرق هم ختم شوې وو.هم دا وجه وه.چه خلفاء راشدینو﷢ په خپل دور خلافت کښې په سرکاری سطح د حدیث د لیکلو اهتمام نه وو کړې.(۲) حضرت ابوبکرصدیق ﷛ سره د حدیثونو کتابی مجموعه موجود وه.هغوی د تدوین حدیث اراده هم کړې وه.خو بیا ئې دا اراده پریخودله.(۳) حضرت عمر﷛ هم د تدوین حدیث اراده کړې وه.صحابه کرامو﷢ سره ئې مشوره هم کړې وه.او تریو میاشتې پورې ئې استخاره کړې وه.آخرهغوی دا اراده پریخودله.(۴)او وجه دا وه.که دې حضراتو د تدوین حدیث په سرکاری طور اهتمام کړې وې.نو په قرآن اوحدیث کښې به څه فرق نه وو پاتې شوې.

دې سره دا نکته هم د غور قابله ده.چه د نبی ﷺ په زمانه کښې د ناسخ او منسوخ سلسله جاری وه.نو په دې صورت کښې کتابت مناسب نه وو.دغه شان صحابه کرام﷢ په جهاد، تبلیغ ددین په اشاعت کښې مشغول وو.نو په هغه وخت کښې هم کتابت حدیث مناسب نه وو. خو چه کله سل کاله تیر شو.اود قرآن اوحدیث فرق دعامو خلقو په ذهن کښې مضبوط شو.

---

(۱) تدریب الراوی (۶۷/۲)

(۲) تدوین حدیث (ص۲۳۸،۲۴۵)

(۳) اوګورئ تدوین حدیث (ص۲۷۶،۲۸۷)

(۴) جامع بیان العلم وفضله (۷۷/۱) باب ذکر کراهیة کتاب العلم وتخلیده فی الصحف)

او بل طرف ته معتزله، روافض، خوارج، قدریه، جهمیه باطلې فرقې پیدا شوې.او هغوی د خپلو فاسدو نظریو او باطلو عقائدو دپاره احادیث جوړول شروع کړل.نوعمربن عبدالعزیز رحمه الله په سرکاری اهتمام سره د تدین حدیث کارنامه ترسره کړه
اووم جواب دا دے چه دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه دممانعت حدیث منسوخ دے.اود حضرت علی ،عبدالله بن عمروبن العاص، ابوهریره او ابوشاه یمنی رضی الله عنهم روایات ناسخ دی.(۱)

**دعلم حدیث د تدوین طبقات**: تدوین حدیث په څو طبقاتو باندے تقسیمولے شی.
اولنۍ طبقه دابن شهاب زهری رحمه الله او ابوبکر بن حزم رحمه الله ده.د دوی زمانه د ۱۰۰ه نه واخله تر ۱۲۵ه پورے ده.په دے طبقه کښے ابن شهاب زهری رحمه الله ته اولیت حاصل دے.په دے دور کښے د رسول الله ﷺ د احادیثو جمع کولو اهتمام کړے شوے وو.خو د بابونو اوکتابونو سلسله نه وه قائمه شوے.بلکه «کیف ما اتفق أحادیث منتشره» جمع کړے شوی وو.(۲)
په دویمه طبقه کښے د ربیع بن صبیح رحمه الله متوفی (۱۶۰ه) او سعید بن ابی عروبه رحمه الله متوفی (۱۵۶ه) وغیره نوم اخستے شی.حافظ ابن حجر رحمه الله په مقدمه د فتح الباری کښے ده ته اولنی جامع وئیلے دے.اولیکلی ئے دی.«وکانوا یصنفون کل باب علیحدة»(۳) چلپی رحمه الله په کشف الظنون کښے ربیع بن صبیح رحمه الله «أول من صنف وبوب» گرځولے دے.(۴)
دا دور د ۱۲۵ه نه واخله تر ۱۵۰ه پورے وو.دے حضراتو احادیث جمع کړل.او دصحابه کرامو رضی الله عنهم آثار ئے جمع کړل.او ورسره ورسره ئے بابونه هم قائم کړل.خو هر باب ئے په خانله مجموعه کښے جمع کړل.(۵) مثلاً د مونځ احادیث ئے د «باب الصلاة» په عنوان سره جدا جمع کړل.اود زکاة احادیث ئے د «باب الزکاة» په عنوان سره جدا مجموعه اولیکله.
ددے نه پس دریمه طبقه ده.ددے دور تقریباً د ۱۵۰ه نه واخله تر ۲۰۰ه پورے دے.په دے طبقه کښے ډیر نومونه ذکر شوی دی.اوهریو ته مدون اول وئیلے شوے دے.مثلاً ابن جریج عبدالملك بن عبدالعزیز متوفی ۱۵۰ه په مکه کښے.معمربن راشد متوفی ۱۵۴ه په یمن کښے، عبدالرحمن بن عمرو الاوزاعی رحمه الله متوفی ۱۵۷ه په شام کښے، سفیان بن سعید الثوری رحمه الله متوفی ۱۶۱ه په کوفه کښے،حماد بن سلمه ۱۶۷ه په بصره کښے،مالك بن انس رحمه الله متوفی ۱۷۹ه په مدینه کښے عبدالله بن مبارك رحمه الله په ۱۸۱ه په خراسان کښے، اوجریربن عبدالحمید متوفی ۱۸۸ه په رئ کښے په دے کښے یو ته هم علی الاطلاق مدون

---

(۱) فتح الباری (۲۰۸/۱، ۲۱۰) کتاب العلم باب کتابة العلم)
(۲) تدریب الراوی (۹۰/۱) ومقدمة أوجزالمسالک (۱۵/۱)
(۳) مقدمة فتح الباری (ص،۶) وتقریب التهذیب (۲۰۶)
(۴) کشف الظنون (۶۳۷/۱)
(۵) مقدمة فتح الباری (ص،۶،ومقدمة أوجزالمسالک (۱۶/۱)

اول نشی وئیلے البته په خپله زمانه کښې د خپلو خپلو علاقو په اعتبارسره مدون اول گرځولی شی.(۱) دے حضراتو هم احادیث مرفوعه او د صحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار جمع کړی وو.خو په دویمه طبقه او دوی کښې دا فرق دے چه د دویمے طبقے په نیز به دهرباب د احادیثو مجموعه خانله خانله وه.او د دوی په نیز هم یوه مجموعه کښې به د مختلف بابونو احادیثو ته د مختلفو بابونو عنوان ورکړے شوے وے.اومستقلاً جمع شوی وو.(۲)

ددے نه پس ۲۰۰ھ نه پس څلورمه طبقه شروع کیږی.دوی صرف د مرفوع احادیثو جمع کولو اهتمام کړے وو.اومسانید ئے لیکلی وو.د دوی په کتابونو کښې د صحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله آثار نه وو ذکر شوے.الا ماشاء الله خو د مرفوع روایاتو سره سره په دے کتابونو کښې د صحیح حدیثونو نه علاوه ضعیف او حسن روایات هم موجود وو.ددے طبقے په مصنفینو رحمهم الله کښې عبیدالله بن موسی عبسی رحمه الله متوفی ۲۱۳ھ نعیم بن حماد رحمه الله متوفی ۲۲۸ھ،عثمان بن ابی شیبه رحمه الله متوفی ۲۳۹ھ اوامام احمدبن حنبل رحمه الله وغیره شامل دی.(۳)

پنځمه طبقه د صحیح اوحسان مصنفین دی.ددوی دور د ۲۲۵ھ نه شروع کیږی.په دے دور کښې د صحاح سرفهرست امام بخاری رحمه الله دے.دوی صحیح بخاری اولیکلو.بیا نور حضراتو هم ددوی تقلید اوکړلو.مثلاً امام مسلم رحمه الله وغیره او په حسان باندے مختلف کتابونه تصنیف شول.لکه سنن ابی داود او سنن نسائی وغیره (۴)

حافظ جلال الدین سیوطی رحمه الله په خپله الفیه کښې ارشاد فرمائیلے دے.

أول جامع الحدیث والأثر....ابن شهاب آمرله عمر......وأول الجامع للأبواب........جماعة فی العصر ذواقتراب.کابن جریج وهشیم مالك.....ومعمر و ولد المبارك......وأول الجامع باقتصار........علی الصحیح فقط البخاری(۵)

دلته جلال الدین سیوطی رحمه الله اول د طبقه اولی ذکر کړے دے.اوبیا د طبقه ثانیه ذکر کړے دے.اوبیا ئے ددے نه پس د پنځمے طبقے ذکر کړے دے.

ربیع بن صبیح اوسعید بن ابی عروبه رحمهما الله کوم چه د دریمے طبقے سره تعلق ساتی.د هغوی ذکر ئے نه دے کړے.دغه شان احمد بن حنبل رحمه الله او عثمان بن ابی شیبه رحمه الله چه ددوی تعلق د څلورمے طبقے سره دے.ددوی ذکر ئے هم په دے اشعارو کښې نه دے کړے.دا حدیث د کتابونو د قسمونو او تدوین بیان وو.

---

(۱) مقدمة فتح الباری (ص،۶) ومقدمة أوجزالمسالک(۱۶/۱) او د وفیات دپاره اوګورئ (تقریب التهذیب)
(۲) مقدمة أوجزالمسالک (۱۴/۱)
(۳) مقدة فتح الباری (ص،۶) مقدمة أوجزالمسالک (۱۶/۱) وفیات دپاره اوګورئ .. تقریب التقریب)
(۴) مقدمة أوجزالمسالک (۱۱۷/۱)
(۵) مقدمة أوجزالمسالک (۱۵/۱)

اتم بحث حکم شرعی که په یوه علاقه کښے صرف یو مسلمان وی.نو په هغه باندے د علم حدیث زده کول فرض عین دی.اوکه په یوه علاقه کښے ډیر مسلمانان وی.په هغوی باندے د علم حدیث زده کول فرض کفایه دی.

د رووس ثمانیه ذکر مکمل شو.البته یوبحث که هغے ته د ،،رووس ثمانیه،، تتمه اووئیلی شی.نو بهتر به وی.کوم چه د حجیت حدیث بحث دے.د خواهش خاوندانو دخپل خواهش پوره کولو دپاره د آزادئ حاصلولو په غرض د رسول الله ﷺ د حدیث نه انکار اوکړلو.د هغوی شبهاتواو اعتراضاتواو د هغے نه د جوابونو دپاره دا بحث ذکر کولے شی.

## دمنکرین حدیث اعتراضات او د هغې جوابونه

① دوی وائی.چه نبی ﷺ د حدیث د لیکلو نه منع فرمائیلے وه.لکه چه د حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه په حدیث کښے چه تیر شو.نو بیا حدیث څنګه حجت ګرځولے شی؟

ددے جواب وړاندے تیر شوےدے.مونږ په تفصیل سره خودلی دی.چه د نبی ﷺ په زمانه کښے د کتابت حدیث سلسله قائمه وه.خو په هغے کښے عموم نه وو.او د ممانعت یوه وجه د قرآن کریم سره یوځائے د حدیث لیکل وو.(ورنه في نفسه د حدیث لیکل ممنوع نه وو) یا ممانعت د عامو خلقو دپاره وو.څکه چه هغوی په لیکلو ښه نه پوهیدلو.خواصو ته اجازت وو.او یا د ممانعت حدیث په نسخ باندے محمول دے.او دا هم خودلی شوی دی.چه دحضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه په حدیث کښے د رفع او وقف اختلاف دے.نو د ابوسعید خدری رضی الله عنه دا حدیث چه دومره احتمالات په کښے دی.اوبه رفع او وقف کښے ئے اختلاف دے.د مرفوع احادیثو په مقابله کښے حجت نشی جوړیدے.

② منکرین حدیث دا وائی.چه قرآن کریم په عربئ کښے نازل شوے وو.لکه چه د الله تعالی ارشاد دے.﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا﴾ (۱)اودا پخپله واضح دے.لکه چه په بل مقام کښے ارشاد دے.﴿بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ﴾(۲) نو هرکله چه قرآن کریم په عربئ ژبه کښے نازل شوے دے.او واضح هم دے.نوصرف د عربئ ژبے نه واقفیت کافی دے.داحادیثو نه دمدد اخستلو ضرورت نشته.

ددے اعتراض جواب دا دے.چه دصحابه کرامو رضی الله عنهم مادری ژبه عربی وه.او هغوی په کښے ماهران هم وو.خو ددے باوجود هغوی د قرآن په پوهیدو کښے د نبی کریم ﷺ د تفسیر او بیان محتاج وو.

مثلاً په قرآن پاك کښے چه کله دا آیت نازل شو.﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾(۳) نوصحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړلو.یا رسول الله د سلام طریقه خو تاسو مونږ ته په ،،التحیات،، کښے خودلے ده.خو د ،،صلاة،، څه طریقه ده؟ نو نبی ﷺ

---

(۱) سورة یوسف:۲-
(۲) سورة شعراء:۱۹۵-
(۳) سورة احزاب:۵۶-

ورته د ،،التحيات،، نه پس د درود تعليم ورکړلو.(۱)

دغه شان کله چه ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ﴾ (۲) آيت به نازل شو.نوصحابه کراموﷺ عرض اوکړلو.يا رسول الله ﷺ په مونږ کښې به څوك وى.چه هغه به ظلم نه وى کړے؟ نوددے خو دا مطلب شو.چه زمونږ دپاره امن نشته.نونبى ﷺ اوفرمائيل: دلت د ظلم نه مراد شرك دے.هغه ظلم مراد نه دے.کوم چه عام دے.يعنى گناه.(۳)

دغه شان د قرآن کريم آيت دے.﴿فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا﴾(۴) نازل شو.نو حضرت عائشه ﷺ په دے باندے پوهه نشوه.هغے د نبى ﷺ نه تپوس اوکړلو.حضرت قانون خو ستاسو د وينا مطابق «من حوسب عذب»(۵)يعنى چه چا سره حساب اوشى.هغه ته به عذاب ملاويږى.اودلته په آيت کښے د حساب ذکرخو شته.خو د عذاب ذکر نشته؟ نو نبى ﷺ د هغوى دا اشکال په دے طريقه باندے رفع کړلو.چه هغه حساب په کوم چه به عذاب وى.هغه ،،حساب مناقشه،، دے.او دلته چه د کوم حساب ذکر دے.نودا د عرض او پيشئ په معنى کښے دے.په دے کښے مناقشه شامله نه ده.(۶)

دغه شان د قرآن کريم آيت﴿وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ﴾(۷)کښے حضرت عدى بن حاتم ﷺ ته اشکال پيښ شو.هغوى د خيط ابيض او خيط اسود نه سپين او تور تار مراد اخستلو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل: د خيط ابيض نه مراد ورځ او د خيط اسود نه مراد شپه ده. (۸)نوتر څو چه شپه وى.پيشمنے کولے شى.خوچه څنگه صبا راوخيژى.نود پيشمنى خوراك بندول ضرورى دى.

دا يوڅو مثالونه وو.ددے نه دا خبره خودل مقصود وو.چه د قرآن کريم د پوهيدلو دپاره صرف د عربئ ژبے پيژندل کافى نه دى.د نبى ﷺ حديث پيژندل ددے دپاره ضرورى دى.

منکرين حديث وائى.چه قرآن کريم پخپله جامع هم دے.اوواضح هم دے.نوددے د جامعيت او وضاحت تقاضا دا ده.چه بيا دےته د رسول الله ﷺ د زياتى بيان ضرورت نه وى.که دا د نبى ﷺ د تشريح او تفسير محتاج کړے شى.نوبيا جامع او واضح څنگه شو؟

---

(۱) اوگورئ تفسير درمنثور (۲۱۶/۵)

(۲) سورة انعام:۸۲_

(۳) اوگورئ صحيح بخارى کتاب التفسير ،سورة انعام باب ،،ولم يلبسوا إيمانهم بظلم،، رقم ۴۶۲۹)

(۴) سورة انشقاق:۸-

(۵) السنن الترمذى ،کتاب التفسير، باب ومن سورة إنشقاق إذا السماء انشقت رقم (۳۳۳۸) _

(۶) صحيح بخارى (۲۱/۱) کتاب العلم باب من سمع شيأ فلم يفهمه فراجعه حتى يعرفه_

(۷) سورة بقرة:۱۸۷_

(۸) صحيح بخارى (۲۵۷/۱) کتاب الصوم باب قول الله تعالى ﴿وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ﴾

دے جواب دا دے چه د قران په جامعیت او د حدیث په ضرورت کښے څه تضاد نشته.قرآن کریم د کلیاتو او اصولو په اعتبار سره جامع دے.اود حدیث ضرورت د دے کلیاتو او اصولو د وضاحت دپاره دے.ځکه چه ((كلام الملوك ملوك الكلام)) دے.نوالله تعالى چه د بادشاهانو بادشاه دے.دهغه په کلام باندے پوهيدل د هر کس دپاره څنګه ممکنه ده؟ د فلسفے يو معمولی کتاب راواخلئ،په هغے باندے پوهيدل د هر کس په وس کښے نه دی.نو قرآن کريم چه د احکم الحاکمين کلام دے.هرسړے په دے باندے څنګه پوهيدے شی.اودا دعوی څنګه صحيح کيدے شی.چه قرآن کريم ته د نبی ﷺ د بيان حاجت نشته ؟!

④ منکرين حديث وائی.چه د نبی کريم ﷺ حيثيت د سفير پشان دے.الله تعالى خپل کلام مخلوق ته د رارسولو دپاره دوی واسطه اوګرځوله.اونبی ﷺ دالله تعالى د هغه مخلوق ته اورسولو.اوس دا ضروری نه ده.چه د دوی اطاعت هم اوشی.او د دوی په احاديثو باندے عمل هم لازم اوواجب اوګرځولے شی.

ددے جواب دا دے.چه پخپله قرآن کريم کښے ارشاد دے.﴿هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ (۱) دلته کښے ئے نبی ﷺ د کتاب او حکمت معلم خودلے دے.نو بيا نبی ﷺ صرف سفير څنګه شو.په بل ځائے کښے ارشاد دے.﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾(۲) دلته کښے دوی ته د کتاب بيانونکے وئيلے شوے دے.په دريم ځائے کښے ارشاد دے.﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾(۳) دلته هم دے بيان ته اشاره ده.د کوم ذکر چه په ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾او﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ﴾ کښے شوے دے.په قرآن کريم کښے دا ارشاد هم شته.چه ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ خَصِيمًا﴾(۴) ددے ارشاداتو باوجود په کوم قانون دوی ته صرف سفير وئيلی شی.او د دوی د اطاعت نه اوړيدل څنګه ټيک کيدے شی؟

په قرآن کريم کښے د مونځ، زکاة، روژے، او حج احکام موجود دی.خو ددے تفصيلات په قرآن کريم کښے موجود نه دی.هغه د احاديثو نه معلوميږی.که د دوی د احاديثو نه اعراض اوشی.نو نه په ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ باندے عمل ممکن دے.او نه په ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ باندے هم دا حال د نورو احکامو هم دے.

ددے نه علاوه د عربئ ژبے وسعت د بيان محتاج نه دے.په دے کښے ډير الفاظ مشترک دی.که د نبی ﷺ تعليماتو نه سترګے پټے کړے شی.نود بے دينئ دروازه به پرانستے شی.کوم

(۱) سورة الجمعة:۲_

(۲) النحل:٤٤_

(۳) القيامة:۱۶تا۱۹_

(۴) النساء:۱۰۵_

کس چه څنګه غواړي.د قرآن کریم تفسیر به بیانوي.او ددې په نتیجه کښې چه به کوم اختلاف او فساد پیداکیږي.هغه پټه نه ده.

④ منکرین حدیث په یوه مغالطه کښې اچول کوي.چه قرآن کریم کښې ارشاد دے.﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ (۱) نو بیا د رسول الله ﷺ اطاعت څنګه جائز کیږي؟

ددې جواب دا دے.چه په قرآن کریم کښې نور هم ډیر آیاتونه دي.﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ (۲) او ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾ (۳) او ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا﴾ (۴) او ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ (۵) او ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ (۶) او ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ﴾ (۷) په دے آیاتونو کښې داتباع رسول او طاعت رسول حکم موجود دے.نو ددے نه سترګے نشي پټولے.باقي په.﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ او په پورتنو آیاتونو کښې چه په ظاهره تضاد غونډے معلومیږي.دا په خپله قرآن کریم لرے کړے دے.اود دواړو په مینځ کښې ئے تطبیق بیان کړے دے.چه ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ (۸) یعنی د پیغمبر تابعداری څه جدا څیز نه دے.دا دالله تعالی تابعداری ده.په بل ځائے کښې ارشاد دے.﴿وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَى مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَى وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى﴾ (۹) دنبي ﷺ احکام د وحي مطابق وي.ځکه چه کوم حکم دوی بیانوي.هغه دالله تعالی حکم دے.

⑤ منکرین حدیث ته دا وسوسه هم شوې ده.که اطاعت رسول ﷺ لازم او ضروري اوګرځولے شي.نو په دے باندے عمل ممکن نه دے.ځکه چه د احادیثو مجموعه زمونږ وړاندے موجود ده.دا دعجمي سازشونو لاندے جوړه شوې ده.او په دے کښې ډیرے غلطے خبرے شامل کړے شوې دي.نو د داسے احادیث په ذریعه د اطاعت رسول فریضه څنګه ادا کولے شي؟

(۱) یوسف:۶۷_
(۲) الحشر:۷_
(۳) الأحزاب:۲۱_
(۴) الأحزاب:۳۶_
(۵) النساء:۵۹_
(۶) النساء:۶۵_
(۷) الأنفال:۲٤_
(۸) النساء:۸۰_
(۹) النجم:۳،٤_

ددے نه جواب دا دے چه د قرآن کریم نه پس په مخ دزمکے د احادیثو دمجموعے نه علاوه داسے بله مجموعه نشته.چه هغه د حدیث په مقابله کښے پیش کړے شی.او چه دهغے څه تاریخی حیثیت وی.حضرات محدثینو داسماء الرجال فن ایجاد کړلو.اود جرح او تعدیل قواعد ئے مقرر کړل.او د احادیثو د چنړولو او تحقیق او تفتیش هغه کارنامه ئے اوکړله.چه مثال ئے نشته.وضاعینو چه کوم احادیث وضع کړی وو.هغه ئے د صحیح احادیثو نه جدا کړل.تردے چه د موضوعی احادیثو ئے مستقلے مجموعے تیارے کړے.اودا ئے اوخودله.چه دا غیر معتبر او موضوعی روایات دی.او د صحیح احادیثو مجموعے ئے جدا تیارے کړے.د وضاعینو اومتروکینو فهرستونه ئے تیار کړل.او د صحیح روایاتو راویان ئے جدا جمع کړل.او د یو یو راوی تفصیلی حالات ئے اولیکل.د یو انګریز قول دے.چه داسماء الرجال عظیم الشان علم کوم چه محدثینوایجاد کړے دے.ددے مثال په نورو مذاهبو کښے نه د اسلام نه وړاندے وو اونه پس ترننه ورځے پورے موجود شوے دے.(۱)

مستشرقین یهود او نصاری په لوئے تعداد ددے اقرار کوی.چه مسلمانانو چه دخپل پیغمبرحالات او واقعات په کوم تفصیل، صداقت اودیانت سره جمع کړی دی.دا عظیم الشانه کارنامه ده.او ددے مثال په هیڅ یو مذهب کښے موجود نه دے.د یو یوحدیث سند رسول الله ﷺ ته رسولے شوے دے.

دتاریخ علم چه خلق پرے ناز کوی.په دے کښے بے سنده واقعات ذکر کولی شی.اوبه ناقلینو کښے دروغژن او ربښتینی هر قسم بے شمیره خلق وی.د عقل او خرد نه محروم دا منکرین حدیث خو تاریخی واقعات مستند ګنړی.او حدیث غیر مستند!

ناطقه سر بگریباں ہے اسے کیا کہیئے!

⑥ منکرین حدیث وائی.چه دحدیث په ذخیرو کښے ډیر مواد د عقل نه خلاف موندلے شی.څکه ددے د تابعدارئ حکم نشی ورکولے.

ددے اعتراض.جواب دا دے.چه مونږ ددوی نه تپوس کوو.چه تاسو د ارشادات رسول ﷺ په مقابله کښے د نابالغه عقل پسے ځئ.تاسو ته دا معلومه نه ده.چه عقل د وحی دنور نه بغیر دهدایت موندلو دپاره کافی نه دے.دعقل راهنمائی هلته فائده منده وی.چه د عقل رنړا ورته حاصله وی.او کوم عقل چه ددے وحی نه آزاد وی.هغه به عجیبه عجیبه تیندکونه خوری.په ماضی کښے د داسے قسم عاقلانو فیصله وه.چه د اعراضو دپاره بقا نشته.او ددے تقدیر (اندازه کول) ناممکن دے.خو اوس د یونان د فلسفے دا مذهب لغو او باطل ثابت شوے دے.آواز چه عرض دے.د ټیپ ریکارډ په ذریعه محفوظ کولے شی.د نمر شعاګانے محفوظ کولے شی.اود بدن د دننه حصے ایکسرئے اخستلے شی.او دعقل هغه پخوانئ فیصله پښیمانه او سرټیټه په نظر راځی.

په یوه زمانه کښے به هم دے عقل پرستو وئیل.چه زمکه ساکن ده.او آسمان متحرک دے.روستو دا فیصله بدله کړے شوه.دغه شان به وئیلی شو.چه آسمان څه حقیقت نه لری.دا

(۱) الرسالة المحدية (عربی خطبات مدراس (ص،۲۷_

(چه مونږ ته څه ښکاري) د نظر انتها ده.او اوس ددے حقیقت منلے شی. سپوګمئ ته سفر کول دے عاقلانو ناممکن ګڼړل.او اوس خلق په سپوګمئ باندے چهل قدمی کونکی کتلی شی.آیا په داسے کمزورے عقل باندے اعتماد کولے شی.چه د هغے فیصلے ورخ په ورخ بدلیږی د نبی ﷺ احادیث چه دا خلق ورته خلاف عقل وائی.ددے یوه خبره خو خلاف عقل اوښائے او دا ثابته کړئ.دا د هغوی دپاره ناممکنه ده.

ددے نه علاوه مونږ دا تپوس کوو.چه داحادیثو تللو دپاره به کوم عقل معتبر وی. او د هغے تعریف څه دے؟ ځکه چه په عقلونو کښے تفاوت یومنلے شوے حقیقت دے.که دا اووئیلی شی.چه د هر کس ناکس د عقل اعتبار دے اوکړے شی.نوټول نظام به درے ورے شی.ځکه چه هر کس خپل عقل قابل اعتبار ګڼړی.ددے په نتیجه کښے به داسے سخت اختلاف پیدا شی.چه د هغے دختمیدوبه څه طریقه به نه وی.او که دا اووئیلی شی.چه دهر کس عقل معتبر نه دے.بلکه دخواصو دعقل اعتبار به کولے شی.نو سوال دا دے.چه په خواصو کښے به څوك داخل وی.او څوك به په خواصو کښے شمارلے شي؟ بیا په خواصو کښے هم اختلاف وی.نو اوس سوال دا دے.چه د دے اختلاف فیصله به څه سره کولے شی؟ په عقل او که په نقل؟ که دا فیصله په عقل سره کولے شی.نو بیا اختلاف نه ختمیږی.ځکه چه څوك هم د خپلے فیصلے غلطئ منلو ته تیار نه وی.او که دا فیصله په نقل سره کولے شی.نو هم دا زمونږ مدعی ده.چه په وحی اعتماد ضروری دے.ددے نه بغیر کار نه کیږی.

دغه شان په دے باندے دے هم غوراوکړے شی.چه په حکومتونو کښے د سفار او نمائندګئ دپاره د هغه کسانو انتخاب کولے شی.چه په عقل، خرد، او وقار کښے امتیازی شان لری.نوآیا الله تعالی به د رسالت پشان عظیم منصب باندے فائز کولو دپاره ددے نه د اوچتو صفاتوخاوندانو انتخاب نه کوی.او حقیقت هم دا دے.چه حضرات پیغمبران علیهم السلام کوم چه الله تعالی خپل قاصدان جوړ کړی دی.د هغوی عقل،فهم، وقار او دیانت په اوچته درجه کښے وو.په نورو انسانانو کښے د هغے نظیرموجود نه وی.دالله تعالی ارشاد دے.
﴿اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسٰلَتَهٗ﴾ (۱) داسے څوك نبی یا پیغمبر نشی جوړولے.نو رسول الله ﷺ چه د رسالت عظیم منصب ئے ورته ورکړے دے.اعقل الناس او اعلم الناس وو.

د عقل کامل په اعتبار سره د صلح حدیبیه واقعه ددے بهترین مثال دے.د خانه کعبے د جوړولو په وخت کښے د حجر اسود د لګولو فیصله هم د دوی په کامل عقل دلالت کوی.او د دوی د ټولو فیصلوهم دا حیثیت وو.

ترکومے پورے چه دعلم تعلق دے.نو قرآن مجید کښے ﴿وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا﴾ دی(۲)
دمنکرین حدیث بدقسمتی دا ده.چه هغوی خلاف عادت څیزونه خلاف عقل اوګڼړل.حالانکه د نبی ﷺ په احادیثو کښے یوه خبره هم دعقل خلاف نه ده.ځکه چه خلاف

---

(۱) الأنعام:۱۲۴_
(۲) سورة نساء:۱۱۳_

عقل هغې ته وائي.چه د هغې تسليمولو سره محال لازميږي.او د نبي ﷺ هيڅ يوه خبره محال لره مستلزم نه ده.دوی دا سوچ هم نه دے کړے.چه د نبي ﷺ د احاديثو نه انكار كولو سره د دوی مبارك ژوند په پرده كښے پټيږي.او هغه رسالت چه ترقيامته پورے د راتلونكو انسانانو د هدايت دپاره دے.كه د احاديثو نه انكار اوكړے شي.نو د راروان نسلونو دپاره به ددے ثابتول ناممكن شي.

په قرآن مجيد كښے فرمائيلے شوی دی.﴿فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا مِّن قَبْلِهِ﴾ (۱) دلته كښے د نبي ﷺ مبارك ژوند او دوی شمائل او اخلاق د نبوت د ثبوت دپاره د دليل په طور بيان شوی دی.څلويښت كاله نبي ﷺ د دوی په معاشره كښے تير كړی وو.په دے كښے نه نبي ﷺ څه كتاب پرانستے وو.اونه ئے قلم په لاس كښے راخستے وو.نه ئے د څه درسګاه دروازه ليدلے وه.نه ئے شعر وئيلے وو.اونه ئے په مشاعرو كښے شركت كړے وو.ددے باوجود د نبي ﷺ د ديانت او صداقت په ټول ښار كښے ډنډوره وه.اخلاق ئے اوچت وو.ددوی لمن د عصمت د داغ نه محفوظ وه.د پيغمبرئ په ملاويدو چه كوم كلام دوی پيش كړلو.هغه په بلاغت اوفصاحت كښے بے مثاله وو.د شان شوكت په اعتبار سره بے نظيره وو.ددے تاثير په بے جان روحونو كښے د ايمان او يقين داسے قوت پيدا كړلو.چه دهغې مثالونه نه ملاويدل.د جهالت په تيرو اود ګمراهئ په غارونو كښے پراته انسانان ئے په علومو ښائست كړل.اود اخلاقو اوچتو پوړو ته ئے اورسول.څوك چه د هدايت نه محروم وو.هغوی هاديان جوړ شول.څوك چه د علم نه نااشنا وو.هغوی معلمان شول.څوك چه د كفر په پليتئ ګنده وو.هغوی د معرفت خاوندان شول.

جو نہ تھے خود راہ پر اوروں کے ہادی بن گئے اللہ اللہ! کیا نظر تھی جس نے مردوں کو مسیحا کردیا

ذاتي طور ئے د ژوند يوه بهترينه نمونه پيش كړله.بلكه يو ډير لوئے جماعت ئے په ايمان اويقين اواخلاقو باندے ښائسته كړل.دپاتے دنيا دپاره ئے يوه نمونه پيش كړله.د چا دپاره چه قرآن كريم ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا﴾(۲) تصديق كوی.او﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ﴾(۳) فرمائيلي دی.او دقرآن كريم ډير آياتونه ددوی په مناقبو باندے مشتمل دی.

احاديث هم ددے مقدس جماعت شان بيانوی.د نبي ﷺ ارشاد دے.«أصحابي كالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم»(۴)

الله تعالى دنياوی ژوند په بهترينو طريقو تيرولو دپاره دقرآن اوسنت په شكل كښے دائمي آئين وركړے دے.چه ترڅو پورے دنيا باقي وی.اوددے مطابق عمل اوكړے شي.نودا دنيا د

(۱) يونس:۱۶_

(۲) الانفال:۷۲_

(۳) الأنعام:۸۳_

(۴) مشكاة المصابيح (ص.۵۵٤) باب مناقب الصحابة ﷺ الفصل الثالث_

جنت نظير جوړيدے شي.بهر حال که د احاديثو نه انكار اوكړے شي.نو د نبي ﷺ د ژوند ټول تفصيلات به د سترګو نه پټ شي.او د نبي ﷺ د نبوت اثبات به ممكن نشي.

⑥ د منكرين حديث دطرفه يو اشكال دا كيږي.چه دحافظ ابوزرعه رحمه الله متعلق وئيلي شي.چه هغوى ته اووه لاكه احاديث ياد وو.(١) او امام احمدبن حنبل رحمه الله خپل مسند د اووه نيم لاكه احاديثو نه منتخب كړے دے.(٢) اوامام بخاري رحمه الله صحيح بخاري د شپږ لاكه احاديثونه ليكلے دے.(٣)

او امام مسلم صحيح مسلم د درے لاكه احاديثو نه منتخب كړے دے.(٤) حالانكه وئيلي شي.چه د صحيح احاديثو شمار پنځوس زره دے.(٥) نوبيا دا اووه لاكه او درے لاكه احاديث د كوم ځائے نه راغلل.دغه شان دا خبره هم ناقابل فهم ده.چه يوكس دے درے لاكه يا اووه لاكه احاديث ياد كړي.

ددےجواب دا دے.چه تركومے پورے د احاديثو د پنځوس زره او درے لاكهو په مينځ كښے دتعارض سوال دے.نودا د محدثينو د اصطلاح نه په ناواقفيت باندے مبني دے.د حديث متن يو وي.اود هغے طرق او سندونو ګڼړ وي.عام سړے دے ته يو حديث وائي.خو محدثين هرسند ځانله ځانله شماري.مثلاً «انما الأعمال بالنيات» يو حديث دے.خودا په دوه سوه يا دوه سوه اوپنځوس يا اووه سوو سندونو سره منقول دے.نو دمحدثينو د اصطلاح مطابق دا يو حديث نشي شمارلے.بلكه دوه سوه يا دوو سوو نه زيات د خپل سند په اعتبار سره شمارلے شي.نوحاكم د متون عدد بيان كړے دے.اود امام احمدبن حنبل رحمه الله ابوزرعه رحمه الله يا بخاري رحمه الله او مسلم رحمه الله د اووه لاكه يا درے لاكه تعداد د طرقو او اسانيدو په لحاظ سره كړے دے.

دويمه خبره دا ده.چه د پنځوس زره كوم شمار چه خودلے شوے دے.اود ذكرشوو محدثينو دپاره د اووه لاكه يا شپږ لاكه يا درے لاكه كوم شمار خودلے شوے دے.په دے كښے د صحابو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله آثار هم شامل دي.كله چه د نبي ﷺ احاديث پنځوس زره كيدے شي.نوچه د صحابو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله آثار ورسره شامل شي.ددے نه پس كه ددے شمار اووه لاكه ته اورسي.نو په دے كښے د تعجب څه دي!

**دمحدثينو رحمهم الله حافظه:** تركومے پورے چه د زياتو احاديثو يادولو تعلق دے.نوددے مختلف اسباب وو.يوخود عربو حافظه هسے هم ضرب المثل وه.بيا چه الله تعالى دا حضرات ددے خدمت دپاره منتخب كړل.نوددے مطابق ئے په هغوى كښے ددے صلاحيت هم پيدا كړلو.يوځل د مدينے منورے ګورنر مروان بن الحكم د ابوهريره رضي الله عنه د حافظے شهرت چه واوريدلو.نوهغوى ئے د امتحان په غرض راوغوښتلو.د اخوا ديخوا خبرو كولو نه پس ئے ترے

---

(١) تدريب الراوى (٥٠/١)

(٢) تدريب الراوى (٤٩/١)

(٣) هدى السارى (ص،٤٨٩) ذكرفضائل الجامع الصحيح_

(٤) تدريب الراوى (٥٠/١)

(٥) تدريب الراوى (١٠٠/١)_

د حديثونو تپوسونه شروع كړل.او د پردے نه اخوا ئے يو كاتب كينولے وو چه هغوى به د ابوهريره ﷺ بيان كړى احاديث ليكل.د كاتب بيان دے چه مروان به تپوسونه كول.اوما به ليكل كول.اودغه ډير احاديث شو.يو كال مروان خاموش پاتے شو.اوبيا ئے هغوى راوغوښتلو.اوزه ئے د پردے نه اخوا كينولم.هغوى به ترے تپوسونه كول.او ما د تيرشوى كال حديثونه كتل.نوهغوى نه يوحرف زياتى كړلو.اونه ئے كم كړلو.(۱)

هشام بن عبدالملك امام زهرى رحمه الله ته د خپل خوى دپاره د احاديثو ليكلو درخواست اوكړلو.نوهغوى تقريباً څلورنيمه سوه احاديث اوليكل.بيا څه موده پس دوباره هشام د هغه احاديثو ليكلو درخواست اوكړلو.نوامام زهرى رحمه الله دوباره هغه املاء كړل.كله چه د هغے مقابله د اولنى كتاب سره اوشوه.نود يوحرف فرق په كښے هم راؤ نه وتلو.(۲)

حافظ ابوزرعه رحمه الله فرمائيل. «إن في بيتي ما كتبته منذ خمسين سنة ولم أطالعه منذ كتبته وإني أعلم في أي كتاب هو، في أي صفحة هو، في أي سطر هو»(۳)

دحضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما مشهوره ده.چه هغوى ته عمران بن ابى ربيعه شاعر راغلو.او د اويا اشعارو يوه اوږده قصيده ئے اوونيله.دشاعر د تلو نه پس د يو شعر په باره كښے خبرے شروع شوئے.او اختلاف پيدا شو.نوحضرت ابن عباس رضى الله عنهما اوفرمائيل. هغه دا مصرعه داسے وئيلے وه.چه كوم مخاطب وو.هغه ورته اوونيل. تاته په اول ځل اوريدوسره څه ياده شوه؟نو دوى ورته جواب وركړلو.صرف دا يوه مصرعه نه بلكه ماته د اويا اشعارو پوره قصيده په يو ځل اوريدو سره ياده شوه.(۴)

دا ددے حضراتو د حافظے حال وو.او دهغوى د يادداشت يوه وجه بله هم وه.چه د هغوى د نبى ﷺ سره ډير زيات محبت وو.او چه محبت زيات وى.نو داسے كيږى.چه د محبوب خبرے په يو ځل اوريدو او ليدو سره يادي‍ږى.

او يوه بله معقوله وجه دا هم وه.چه په هغه زمانه كښے په حديثو كښے مهارت د خلقو په نظر كښے ډير دعزت سبب وو.نوځكه د دے حضراتو احاديثو سره ډير شوق وو.او هغوى د دے په حاصلولو كښے د ډير محنت او كوشش نه كار اخستلو.د محدثينو رحمهم الله حضراتو د محنت او كوشش كه اندازه واخستے شى. نو معلومه به شى.چه هغوى د احاديثو حاصلولو دپاره ځومره ځومره سفرونه كړى دى.او د ځومره استاذانو نه ئے استفاده كړے وه.اود حديث اوريدو دپاره ئے ځومره مشقتونه برداشت كړى وو.كه دا ټول حالات وړاندے كيخودے شى.نو په دومره زيات تعداد كښے د احاديثو يادول څه د اشكال خبره نه ده.

منكرين حديث به يو اشكال دا هم كولو.چه د احاديثو روايت بالمعنى دے.ځكه دا حجت

(۱) الإصابة (۲۰۵/٤)_

(۲) تذكرة الحفاظ (۱۱۰/۱)_

(۳) تهذيب التهذيب (۳۳/۷)

(۴) تدوين حديث مولانا مناظر احسن گيلانى (ص۴۱۰)_

نشي جوړېدے.معلومه نه ده.چه راويانو په كوم كوم ځائے كښے څه څه تصرف كړے دے؟
ددے جواب دا دے.چه په احاديثو كښے صرف اقوال نه دى.بلكه د نبى ﷺ افعال ، تقارير او صفات هم په حديث كښے شامل دى.او د روايت بالمعنى تصور په اقوالو كښے خو كيدے شى.خو په افعالو،تقاريرو او صفاتو كښے نشى كيدے.
دويمه خبره دا ده.چه د روايت بالمعنى دپاره چه كوم شرطونه مقرر دى.دهغے په وجود كښے دحديث په صحت كښے څه شبه نه پاتے كيږى.حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائى.«فإن لم يكن عالماً عارفاً بالألفاظ ومقاصدها، خبيراً بما يحيل معانيها، بصيراً بمقادير التفاوت: فلا خلاف أنه لايجوز له ذلك»(١)
اوتاسو به دا هم كتلى وى.څومره كرته د حديث راوى يو لفظ ذكر كړے وى.اوبيا فرمائى.چه «أو قال كذا أو كذا» ددے نه معلومه شوه.چه دے حضراتو د روايت باللفظ ډير اهتمام كړے دے.
⑧ يو اعتراض دا شوے دے.چه اكثر احاديث اخبار احاد دى.او اخبار احاد مفيد د ظن دى.او د ظن په باره كښے په قرآن كريم كښے ارشاد دے.﴿إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا﴾(٢)
نوبيا ددے اتباع څنګه كولے شى؟
ددے جواب دا دے.چه ظن د يقين په معنى كښے هم راځى.﴿الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ﴾(٣) په دے كښے د يقين په معنى راغلے دے.﴿وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ﴾(٤) په دے كښے هم ديقين په معنى كښے دے.اوظن د راجح طرف په معنى كښے هم استعماليږى.كله چه اعتمادى كس څه خبره اوكړى.نوغالب ګمان هم دا وى.چه دے صحيح وائى.اګرچه د هغه په خبر كښے د جانب مخالف احتمال هم وى.خو هغه د التفات قابل نه وى.د دنيا ټول معاملات هم په دے ظن غالب باندے چليږى.كه دےته څه اعتبار ورنكړے شى.نوددنيا ټول نظام به درهم برهم شى.
ظن داټكل په معنى كښے هم استعماليږى.لكه چه مشركانو به د خپلو خدايانو دالوهيت ظن كولو. هغه صرف اټكل وو.د هغے شاه ته څه معقول دليل نه وو.په قرآن كريم كښے ددے ظن مذمت كړے شوے دے.او د رسول الله ﷺ د احاديثو سره ددے څه تعلق نشته.په احاديثو كښے ظن داولنى؛ او دويمے معنى په اعتبار سره موجود دے.
⑨ يو اشكال داسے كيدے شى.چه په احاديثو كښے تعارض وى.نو بيا به دے باندے څنګه عمل كولے شى.
ددے جواب دا دے.چه عقائد ذات وصفات، حشر ونشر، ترغيب وترهيب او اخلاق وغيره احاديثو كښے څه تعارض نشته.داحكامو په بعضے احاديثو كښے تعارض وى.نو ددے د رفع كولو دپاره نسخ. ترجيح. تطبيق. اوتوقف وغيره طريقے موجود دى.نو د تعارض بهانه

(١) مقدمة ابن الصلاح (ص.١٠٥) _
(٢) يونس:٣٦_
(٣) السورة البقرة:٤٦_
(٤) سورة ص.٢٤_

جوړول او داحادیثو رد کولو ګنجائش نشته.بیا داسے تعارض خو د قرآن کریم په آیاتونو کښے هم شته.قرآن مجید کښے په یوځائے کښے دی.چه کافران به دقیامت په ورځ د یوبل نه سوال کوی.(١) او په بل ځائے کښے دی.چه دوی به سوال نشی کولے.(٢) دغه شان په یوځائے کښے دی. ﴿وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾(٣) او په بل ځائے کښے دی. ﴿اِنَّهُمْ مَّسْئُوْلُوْنَ﴾(٤) نوچه څنګه دا تعارض رفع کولےشی.دغه شان به په احادیثو کښے هم کولے شی.اوچه څنګه قرآن حجت دے. دغه شان به احادیث هم حجت ګرځولے شی.او د تعارض دا اشکال د حجت دپاره مانع نه دے.

**فائده په بیان د مصطلحات کښې** : دحدیث دوه قسمونه دی.① خبرمتواتر② خبر واحد

① خبرمتواتر: هغه حدیث ته وائی.چه د هغے راویان په هره زمانه کښے دومره زیات وی.چه عقل سلیم دا محال ګنړی.چه دا ټول دے په دروغه راجمع شوی وی.

② خبرواحد: هغه حدیث دے.چه د هغے راویان دومره زیات نه وی.

**د منتها په اعتبار سره د خبرواحد قسمونه** : خبرواحد د منتها په اعتبار سره په درے قسمه دے.① مرفوع ② موقوف③ اومقطوع

① مرفوع: هغه حدیث دے.چه په هغے کښے د رسول الله ﷺ د قول یا فعل یا تقریر اویاصفت ذکر وی.

② موقوف: هغه حدیث دے.چه په هغے کښے د صحابی د قول یا فعل یا تقریر ذکر وی.

③ مقطوع: هغه حدیث دے.چه په هغے کښے د تابعی د قول یا فعل یا تقریر ذکر وی.

خبرواحد د راویانو په اعتبار سره په درے قسمه دے.①مشهور② عزیز③ او غریب

① مشهور: هغه حدیث دے.چه دهغے راویان په هیڅ یوه زمانه کښے د دریو نه کم نه وی.او دمتواتر حد ته نه وی رسیدلے.

② عزیز: هغه حدیث دے.چه دهغے راویان په هیڅ یوه زمانه کښے د دوؤ نه کم نه وی

③ غریب: هغه حدیث دے.چه دهغے په سند کښے په یوځائے کښے صرف یوراوی پاتے شوےوی.

**د راویانو د صفاتو په اعتبار سره د خبرواحد قسمونه**

خبرواحد دخپلو راویانو په اعتبارسره په شپاړلس قسمه دے.①صحیح لذاته ② حسن لذاته ③ صحیح لغیره④ حسن لغیره ⑤ ضعیف ⑥ موضوع ⑦ متروک ⑧ شاذ ⑨ محفوظ ⑩ منکر⑪ معروف ⑫ معلل ⑬ مضطرب ⑭ مقلوب ⑮ مصحف ⑯ مدرج

① صحیح لذاته هغه حدیث دے.چه دهغے ټول راویان عادلان کامل الضبط وی.سند ئے متصل وی.اوعلت او شذوذ په کښے نه وی.

---

(١) قال الله تعالى: ﴿ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴾سورة صافات:٢٧_

(٢) ﴿قال الله تعالى: فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ ﴾سورة مؤمنون:١٠١_

(٣) سورة بقرة: ١٧٤_

(٤) سورة صافات: ٢٤

۲ حسن لذاته هغه حدیث دے چه په هغے کښے د صحیح لذاته ټول صفات موجود وی. خو حفظ او ضبط کښے څه نقصان وی.
۳ صحیح لغیره هغه حدیث دے. چه هغه په اصل کښے حسن لذاته وو. خو د تعدد طرق د وجے صحیح لغیره اوګرځیدلو.
۴ حسن لغیره هغه حدیث دے. چه هغه ضعیف حدیث وی. خوطرق ئے زیات وی.
۵ ضعیف هغه حدیث دے. چه دهغے په راویانو کښے دصحیح او حسن صفات موجود نه وی.
۶ موضوع هغه حدیث دے. چه د هغے راوی د «کذب علی النبی ﷺ» مرتکب شوے وی.
۷ متروك هغه حدیث دے. چه دهغے راوی متهم بالکذب وی. یعنی د دروغو وئیلو تهمت په هغه باندے لګیدلے وی. یا هغه روایت د دین د معلومو قواعدو نه خلاف وی.
۸ شاذ هغه حدیث دے. چه دهغے راوی ثقه وی. خو د داسے جماعت نه خلاف کوی. کوم چه د ده نه زیات ثقه وی.
۹ محفوظ هغه حدیث دے. چه هغه د شاذ په مقابله کښے وی.
۱۰ منکر هغه حدیث دے. چه دهغے راوی د ضعف باوجود د ثقاتو نه مخالفت کوی.
۱۱ معروف هغه حدیث دے. چه هغه د منکر مقابل وی.
۱۲ معلل هغه حدیث دے. چه په هغے کښے خفی علت وی. چه په هغے سره د حدیث صحت ته نقصان رسی.
۱۳ مضطرب هغه حدیث دے. چه دهغے په سند یا متن کښے داسے اختلاف موجود وی. چه په هغے کښے ترجیح یاتطبیق نشی کیدے.
۱۴ مقلوب هغه حدیث دے. چه د هغے په متن یا سند کښے تقدیم او تاخیر واقع شوے وی. یا د یو راوی په ځائے بل راوی ذکر شوے وی.
۱۵ مصحف هغه حدیث دے. چه دهغے د خط صورت برقرار وی. خو د دے باوجود په نکتو یا حرکت یا سکون کښے د تغیر د وجے په تلفظ کښے غلطی واقع کیږی.
۱۶ مدرج هغه حدیث دے. چه په هغے کښے راوی په څه ځائے کښے خپل کلام داخل کړی.

## دسقوط او عدم سقوط په اعتبار سره د خبر واحدقسمونه

خبرواحد د سقوط او عدم سقوط په اعتبار سره په اووه قسمه دے.
۱ متصل ۲ مسند ۳ منقطع ۴ معلق ۵ معضل ۶ مرسل ۷ مدلس
۱ متصل هغه حدیث دے. چه د هغے په سند کښے ټول راویان مذکور وی.
۲ مسند هغه حدیث دے. چه دهغے سند د نبی ﷺ پورے متصل وی.
۳ منقطع هغه حدیث دے. چه د هغے په سند کښے یو راوی ساقط شوے وی.
۴ معلق هغه حدیث دے. چه دهغے دسند په شروع کښے د یو یا د زیاتو راویانو ذکر نه وی شوے ۵ معضل هغه حدیث دے. چه دهغے په سند کښے مسلسل د یو نه زیات راویان مذکور نه وی ۶ مرسل هغه حدیث ته وائی. چه د هغے د سند په آخر کښے یو راوی ساقط شوے وی.

⑥ مدلس هغه حدیث ته وائی چه دهغے د راوی عادت دا وی چه خپل شیخ یا د خپل شیخ شیخ پټوی.

### د صیغو د ادا په اعتبار سره د خبر واحد قسمونه

د خبرواحد د صیغ ادا په اعتبار سره دوه قسمونه دی. ① معنعن ② مسلسل

① معنعن هغه حدیث ته وائی چه د هغے په لفظ کښے لفظ د عن راغلے وی. ② مسلسل هغه حدیث ته وائی چه د هغے په سند کښے صیغ د ادا یا د راویانو صفات یو شان وی.

..............

# مقدمة الكتاب

سند: په علم حدیث کښے د سند مقام پټ نه دے. د حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله ارشاد دے. «الإسناد من الدين، ولولا الإسناد لقال من شاء ما شاء» (۱)

سفیان ثوری رحمه الله فرمائی. «الإسناد سلاح المؤمن فإذا لم يكن معه سلاح فبأي شيء يقاتل» (۲)

امام شافعی رحمه الله فرمائی. «مثل الذي يطلب الحديث بلا إسناد كمثل حاطب ليل» (۳)

بهرحال په علم حدیث کښے سند یوبینادی څیز دے. ددے نه بغیر حدیث نه قبلیږی. داولنو محدثینو رحمهم الله طریقه دا وه. چه هر محدث په نبی ﷺ پورے خپل سند بیانولو. او بیا به ئے حدیث ذکرکولو. خوچه احادیث په کتابی شکل کښے مدون شول. نو د دے نه پس دا کافی ګڼړلی شی. چه یومحدث خپل سند صاحب د کتاب ته اورسوی. او بیا حدیث روایت کړی.

بیا دا خبره دے هم ستا په ذهن کښے وی. چه په هندوستان کښے د علم حدیث انتهاء حضرت شاه ولی الله رحمه الله ته رسی. د هرے دلے سند هم دوی ته رسی. زمونږ اکابر حضرت شاه صاحب پورے سند بیانوی. دحضرت شاه صاحب نه واخله تر د کتابونو مصنفینو رحمهم الله پورے د دوی اسانید په کتاب کښے «الإرشاد إلى مهمات الإسناد» کښے ذکر دی.

لکه چه زمونږ د سند درے حصے دی. یوه حصه حضرت شاه ولی الله رحمه الله پورے. دویمه حصه د دوی نه حضرت امام بخاری رحمه الله پورے او دریمه حصه د امام بخاری رحمه الله نه تر نبی ﷺ پورے. چونکه آخری حصه په کتاب کښے د هر حدیث سره لیکلے شوے وی. نوځکه مونږ دلته صرف د دوو اولنو حصو نه بحث کوو. او ددے تولو واسطو په اختصار سره ذکر کوو.

---

(۱) مقدمة صحیح مسلم (ص۱۲) باب بیان أن الإسناد من الدین-

(۲) الأجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الكاملة (ص۴۴)

(۳) الأجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الكاملة (ص۴۴)

**زما د بخاری د سند سلسله** ما بخاری شریف درساً د شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مدنی قدس سره نه ونیلے دے.هغوی دشیخ الهند مولانا محمود الحسن رحمه الله نه،هغوی د مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله او حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله نه،دے دواړو حضراتو د حضرت شاه عبدالغنی مجددی رحمه الله نه هغوی د حضرت شاه محمد اسحاق رحمه الله نه. هغوی د حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله نه اوهغوی د اسانیدو د مرکز حضرت شاه ولی الله رحمه الله نه بخاری لوستے دے.

## دحضرت شاه ولی الله رحمه الله د صحیح بخاری سند

قال الشاه ولی الله احمد بن عبدالرحیم الدهلوی رحمهما الله تعالیٰ:

((أخبرنا الشیخ ابوطاهرمحمد بن ابراهیم الکردی المدنی، قال: أخبرنا والدی الشیخ ابراهیم الکردی ،قال قرأت علی الشیخ احمد القشاشی قال: أخبرنا احمد بن عبدالقدوس ابوالمواهب الشناوی ، قال أخبرنا الشیخ شمس الدین محمد بن احمد بن محمد الرملی عن الشیخ شیخ الإسلام زین الدین زکریا بن محمد الأنصاری، قال: قرأت علی الشیخ الحافظ أبی الفضل شهاب الدین احمد بن علی بن حجر العسقلانی عن الشیخ زین الدین ابراهیم بن احمد التنوخی عن الشیخ أبی العباس احمدبن أبی طالب الحجار عن الشیخ سراج الدین الحسین بن المبارك الزبیدی عن الشیخ أبی الوقت عبدالأول بن عیسیٰ بن شعیب السجزی الهروی عن الشیخ أبی الحسن عبدالرحمن بن یوسف بن مظفرالداؤدی عن الشیخ أبی محمد عبدالله بن احمد السرخسی عن الشیخ عبدالله محمد بن یوسف بن مطربن صالح بن بشر الفربری عن مؤلفه فی الحدیث محمد بن اسماعیل بن ابراهیم البخاری رضی الله عنه وعنهم أجمعین))

**څه د خپل ځان باره کښې:** دیوبند سره نزدے اوتهانه بهون سره تقریباً متصل حسن پور لوهاری کلے ضلع مظفرنگر یوپی اندیا کښے د احقر مولد او مسکن قدیم دے.دلته کښے زه په ۲۵دسمبر ۱۹۲۶عیسوی کښے پیدا شوم.دا کلے د آفریدی پختونو دے.دے کلی ته دا فضیلت حاصل دے. چه حاجی امدادالله مهاجرمکی رحمه الله حافظ ضامن شهید رحمه الله اود مولانا شیخ محمد تهانوی رحمه الله پیراومرشد اود حضرت سید احمد شهید رحمه الله خاص معتمد میانجی نورمحمد جهنجهانوی رحمه الله قیام هم په دے کلی کښے وو.اود تهانه بهون پورته ذکر شوے درے واړه عارفین حسن پور لوهاری ته حاضر شوی وو.اود میانجی موصوف رحمه الله نه ئے استفاده کړے وه. او په مستفیدینو کښے د حاجی صاحب مهاجر مکی فیض په څلور قنجه دنیا کښے هم جاری او ساری دے.او انشاء الله ترقیامته پورے به جاری وی.داحقر تعلق هم ددے آفریدیانوخانانو یو متوسطه کورنۍ سره دے.د دوی پیشه طبابت دے.زما پلار صاحب جناب عبدالعلیم خان صاحب لا ماشوم وو.چه د نیکه په وفات یتیم شو.نوځکه د هغوی دتعلیم څه معقول انتظام اونشو. اوهغوی د طب علم حاصل نکړے شو.د هغوی د یونانی دویانو دوکان وو.او هغوی عطار وو.

**د تعلیم شروع او زما استاذان:** زما اولنے استاذ منشی بنده حسن رحمه الله وو.د هغوی نه ما داردواو فارسئ تعلیم حاصل کړے وو.پرهیزګار اومتقی انسان وو.ما په خپل ژوند کښے د هغوی پشان ذاکر اوزیات نفل کونکے نه دے لیدلے.
زما بل استاذ منشی الله بنده رحمه الله وو.دهغوی نه د اردواو فارسئ د تعلیم په دوران کښے ما قرآن کریم په ناظره ونیلے وو.هغوی به د ماښام نه پس کور ته د درس دپاره تشریف اوړلو.هغوی په قناعت او د دنیا نه په بے رغبتئ کښے بے مثاله وو.د هغوی معمول وو.چه روزانه به ئے یو قرآن کریم ختمولو.حالانکه هغوی حافظ نه وو.
**مدرسه مفتاح العلوم جلال آباد او دارالعلوم دیوبند** د قران کریم او اردو او فارسئ د تعلیم نه پس زه مدرسه مفتاح العلوم جلال آباد ضلع مظفر نګر کښے د مولانا مسیح الله خان صاحب رحمه الله په خدمت کښے حاضر کړے شوم.دلته کښے مے د دوو کالو او شپږ میاشتو په موده کښے د څلورمے درجے پورے کتابونه اوونیل.بیا احقر دیوبند ته اولیږلے شو.هلته کښے مے پنځه کاله تیر کړل.د دارالعلوم رائج نصاب مے پوره کړل.ټول فنون منطق، فلسفه، ادب، اصول، ریاضی،فقه،کلام، اود حدیث په نصاب کښے شامل ټول کتابونه مےختم کړل.د دارالعلوم نه د فراغت په وخت کښے زما عمر شل کاله وو.او پاکستان نه وو جوړ شوے.(۱) زما د بچپن او طالب علمئ زمانه په لوبو کښے تیره شوے وه.خو معلومه راته نه ده.چه څه وجه وه.چه د هغه زمانے د اول نه واخله تر آخره پورے د ټولواستاذانوراباندے همیشه دپاره شفقت او ښه ګمان وو.په دوی کښے څو حضراتو د محبت د غلبے او شفقت د وجے کله کله په دے شاګرد باندے ډیرزیات فخر اواعتماد هم کړے دے.چه په هغے سره ما په هغه وخت کښے هم شرم محسوس کړے وو.په ابتداء کښے اګرچه نه راسره څه ویره وه.اونه د شوق کیفیت وو.په یوه درجه کښے راکښے د طالب علمئ په استعداد کښے څه قدرے استحکام پیدا شو.نوځکه راته ماشوموالی خیالاتو څه نقصان اونه رسولو.دا بیله خبره ده.که چرته سبقونه، مطالعه، اوتکرار په پوره توجه سره وو.نویقینی ده.چه ډیر بهتر صورت حال به وو.بهرحال هغه نقصان خو اوشو.خوبیا مے د تدریس په دوران کښے ډیر محنت اوکړلو.اوپه هرقسم حالاتو کښے دتدریس دا زمانه تیره شوه.
**تدریس اود جامعه فاروقیه سنګ بنیاد:** د پاکستان د هجرت نه وړاندے د جلال آباد په مدرسه مفتاح العلوم کښے مے پوره درس نظامی (بشمول جمله فنون او دوره حدیث) اته کاله درس ورکړلو. پاکستان ته د راتلو نه پس مے درے کاله په دارالعلوم الاسلامیه اشرف آباد ټنډواله

(۱) د طالب علمئ په زمانه کښے د دارالعلوم په چهټیانو دوی کور ته راغلل.په دے کښے ورته د قرآن کریم د حفظ خیال ورغلو.ارادے ئے اوکړله.چه روزانه ربع پاره یادوی.خوچه کله د یادولو دپاره کیناستلو. نو د ربع پارے په ځائے کله نیمه نیمه کله یوه یوه پاره اوکله چه یوه نیمه پاره به ئے حفظ کوله.اوپه ورځ کښے خو د دوه نیمو پارو یادولو نوبت هم راغلو.دا د فرق د نشاط طبع دفرق سره کیږی.دغه شان ئے په اووه ویشت ورځو کښے پوره قرآن حفظ کړلو.او ورسره ورسره ئے په تراویحو کښے هم واورول.((وذلک فضل الله یؤتیه من یشاء))

يا ړکښې مدرس پاتې شوم.بيا لس کاله په دارالعلوم کراچۍ کښې او دارالعلوم سره يو کال مې په جامعة العلوم الاسلاميه کښې هم تدريسي خدمات ورکړل.په هره مدرسه کښې د حديث دمرکزي سبقونو سره سره د نورو فنونو کتابونه هم په درس کښې شامل وو.په کال ۱۹۶۷ عيسوي کښې مې د جامعه فاروقيه بنياد کېخودلو.او د اته ويشتو کالو راسې دلته کار کوم (۱)

## سواد اعظم د اهل سنت تاسيس او د وفاق المدارس ذمه داريانې

هم په دې دوران کښې د وفاق المدارس العربيه چه بنياد ئې په کال ۱۳۷۸ھ مطابق ۱۹۵۹عيسوي کښې کېخودې شوې وو.ددې د نظامت اعلى ذمه واري په احقر باندې په کال ۱۴۰۱ھ مطابق ۱۹۸۰عيسوي کښې راغله.په دې دوران کښې الله تعالى د وفاق المدارس کار په وسيع پيمانه باندې کړلو.د ملحقه مدارسو په شمار کښې قابل قدر زيادت اوشو.دنصاب پابندي اوشوه.په مدارسو کښې درجه بندي لازمي شوه.اول به صرف د ,,مرحله عاليه،،(دوره حديث) امتحاق دوفاق المدارس زيرانتظام کيدلو.اوس دټولودرجو امتحانونه کيږي.ددې نه علاوه د وفاق په انتظامي امور کښې مثبت تبديلۍ راغلې.ددې کارکردګۍ ډيره بهتره شوه.او ددې سندونه د يونيورستۍ د اوچتو ډګرو سره برابر شول.
بيا د مولانا محمد ادريس ميرټهي رحمه الله د وفات نه پس ۱۹۸۹عيسوي کښې د وفاق المدارس د صدارت ذمه واري په ما باندې واچولې شوه.چه تراوسه پورې جاري ده.
بيا په کال ۱۹۸۳عيسوي کښې د سواد اعظم بنياد کېخودې شو.په دې سره الحمد لله عالمان په يو فليټ فارم باندې جمع شول.(يعنى متحد شول) او د رافضيانو سرګرمۍ کمزورې شوې.

**زما محسن استاذان:** هسې خو ټول استاذان مشفق وو.خو زما په ژوند کښېد ټولو نه زيات بدلون، د ديني جذباتو پرورش، د اخلاقو د حسن او قبح احساس، ددې اصلاح طرف ته توجه، او هميشه دپاره خپل خان د دين په کسانو کښې د شاملولوشوق، اوجذبه، د حضرت مولانا مسيح الله خان رحمه الله په خدمت کښې پاتې کيدو سره پيدا شوې وو.دا بله خبره ده.چه زما نه د نفس او شيطان د دهوکه کولو د وجې څه جوړ نشو.خو په دې باندې شکرګزار يم.چه داهل حق عالمانو او اهل اصلاح لمن مې رانيولې ده.او اميدوار يم.چه په دې تعلق به راسره الله تعالى د عفو اوبخښنه معامله اوکړي. او مغفرت به مې اوکړي.((وما ذلك على الله بعزيز))
زما بل محسن استاذ د هغوى د شاګردۍ په وجه مې د حديثو سره مناسبت پيدا شوې دې. اوددې سره تعلق پيدا شوې دې.هغه شيخ الاسلام حضرت مولانا حسين احمد

(۱) د دوى شاګردان په دې وخت کښې تقريباً د دنيا په اکثرو ملکونو کښې خواره شوي دي.او په قابل ذکر ديني خدمتونو کښې مصروف دي.په هندوستان کښې په ډيرو مدرسو کښې د دوى شاګردان د حديث شيوخ دي.په پاکستان کښې خو دا دائره نوره هم خوره ده.مولانا مفتي محمد رفيع عثماني ،مولانا مفتي محمد تقي عثماني، مولانا شمس الحق صاحب، مولانا مفتي نظام الدين شامزئ ، مولانا حبيب الله مختار. او مولانا عنايت الله صاحب دامت برکاتهم د دوى ممتاز شاګردان دي.

مدنى رحمه الله نورالله مرقده دے.

دحضرت د ترمذی درس به روزانه دوه دوه گهنټے دوه نيمے گهنټے په داسے کيفيت سره کيدلو. چه دلته نظرونو ته هغه ښکلے منظرته کتل چرته نصيب کيدے شی.هغه شيخ د زمانے چه دهغوی د دينی، ملی، سياسی، سماجی، اصلاحی، انتظامی، او درسی خدماتو څه حد نه وو.هغوی د استقامت او ثبات لوئے غر وو.کله چه به درس ته کيناستلو.په مخ به ئےدخوشحالئ آثار ښکاره وو.شخصيت ئےدومره زړه راښکونکے او دلربا وو.چه زړه به هم هغوی طرف ته متوجه وو.کوم طالبان چه به ټول کال درس ته حاضريدل.دهغوی دپاره به دحضرت په ذات گرامی کښے د اولے ورځے پشان نوے جذبه اوجاذبيت وو.خيال راته راځی.چه درسول الله ﷺ د عاشقانو کله دا حال وی.نود نبی ﷺ به په خپله کوم حال وو. الله اکبر

دحضرت په درس ترمذی کښے به په فنی مباحثوباندے ښه بحث کيدلو.اسناد. جرح وتعديل، او د تطبيق او ترجيح مباحث، فقهی،کلامی، تاريخی مسائل، او اخلاقی او اصلاحی خبرے به ئے ډيرے په بسط اوتفصيل سره بيانولے.صحاح سته او نور کتابونه به ئے خان سره ايخودی وو.دحوالے هرے خبرے دپاره به ئے کتاب پرانستلو. اود هغے عبارت به ئے وئيل.اوبيانول به ئے.اوپه دے تفصيلی سبق کښے به دومره اطميان وو.چه چرته دا به نه محسوس کيدله.چه د هغوی ددے کار نه سوا څه بل کار هم شته؟ د طالبانو دهر قسم سوالونو تفصيلی جوابونه به ئے ډير په خوشحالئ سره ورکول.کله به ئے هم د مخ نه انقباض نه ښکاره کيدلو.بلکه د انبساط او خوشحالئ کيفيت به ښکاره وو.هم دا درس ترمذی د احقر ددے علم سره د مناسبت پيدا کيدو بنياد دے.او ددے سره د مولانا اعزاز علی رحمه الله شيخ الادب والفقه د هغوی درس ابوداود هم معاون وو.دهغوی د درس نه هم احقر ډير څه زده کړی دی.ترمذی شريف کتاب السير نه تر آخره پورے مع شمائل احقر د شيخ الادب صاحب نه وئيلی دی.د تدريس په زمانه کښے د حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا صاحب نورالله مرقده د تصنيفاتو او حواشی نه مے ډيره استفاده کړے ده . د حضرت شيخ الاسلام قدس سره نه پس که د علم حديث په سلسله کښے په ما باندے د ټولو نه زيات احسان دے.

نوهغه دشيخ الاسلام صاحب دے.بذل المجهود أوجز المسالك، الكوكب الدرى، لامع الدرارى، تقرير بخاری دهر يو نه مے ښه پوره استفاده کړے ده.اوآخری دوه کتابونو خو اوس هم برابر زما په مطالعه کښے دی.

دے ظلوم او جهول کله دا سوچ هم نشو کولے.چه ددے مبارك او عظيم الشان منصب دپاره به زما نه هم کار اخستلے شی.بس د درس او تدريس ډير زيات شوق هم وو.اوهميشه دپاره هم په دے کښے مشغوليت هم وو.خوچه کله ما پنځه ويشت خله د بخاری درس ورکړلو.نوالله تعالی د بخاری شريف د درس ټيپ کولو انتظام ته برابرے ورکړلو.حالانکه زما ددے نه ويره هم کيدله.اوما دخپل سبق دومره اهميت هم نه گنړلو.خو د طالبانو اصرار زيات شو.او دالله تعالی په نوم باندے دا کار شروع شو.بيا دالله تعالی په توفيق سره محنت مے هميشه دپاره زيات کولو.او ټول کار صحت اوتازگی برقراره وه.او دغه شان دوه نيمے گهنټے درس د

روزانه معمول مطابق په یوویشتم شوال مطابق ۱۹۸۶عیسوی باندے شروع شو.اوپه لسم رجب ۱۴۰۷ھ مطابق ۱۹۸۷عیسوی پورے کتاب ختم شو.دکال په آخر کښے څو ورځے د شپے هم تدریس اوشو

د درس په دوران کښے د بخاری موجوده اردومطبوعے، د عربئ د شروحاتو نه د ضرورت مطابق استفاده حاصلولے شوه.دحضرت مولانا خیرمحمد جالندهری رحمه الله د غیر مطبوعه شرح بخاری نه هم استفاده واخستے شوه.په فقهی مسائلو کښے د فقهاؤ او علماؤ د مذاهبو تنقیح. د قدیم اوجدید شارحینواو محدثینو په کلام باندے نقد ونظراو د مکرر روایاتو خودنه وغیره امورو کښے مے عام طور د شیخ الحدیث علامه محمد یونس صاحب دامت برکاتهم اتباع کړے ده.څومره بنه به وه.که د حضرت مولانا صاحب د بخاری شریف پوره تقریر راته ملاؤ شوے وے.په تفسیری مباحثو کښے مے اکثردعلامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله د فوائدو نه استفاده کړے ده.

دا ټول اسباق په څلور سوه کیسټو کښے محفوظ دی.یوځل مے د خپلے بیمارئ په زمانه کښے دجلد اول سبق هم ددے کیسټو نه خودلے وو.اویوځل د خپلے سابقه تجربے مطابق پوره جلد ثانی په کیسټو باندے لوستلے شوے وو.هم دے طریقه دا کیسټے ما واوریدل.(چه طالبانو ته مے ددے په ذریعه درس ورکولو(ګنی ددے نه بغیر ددے اوریدل زما دپاره ممکن نه وو.ددے دوو کرتو نه علاوه د سبق معمول د کیسټو نه بغیرجاری دے.

اوس چه په دے تقریرباندےدطباعت کارشروع شوے دے.نوجناب مولانا نورالبشر صاحب زید مجدهم په اول جلد باندے د تعلیق او مراجعت کار کوی.او جناب مولانا ابن الحسن عباسی زید مجدهم په جلد ثانی باندے هم دا خدمت کوی .دے حضراتو دتعلیق اومراجعت کارد احقر په راهنمائے کښے اصل تقریر په کتابی شکل کښے مرتب کړلو.په بعضے مضامینو کښے اضافه او په بعضو کښے کمے هم شوے دے.لکه چه دنظرثانی په وخت کښے دارباب تصنیف همیشه دپاره دا طریقه پاتے شوے ده.مذکور الصدر دواړو معززو رونړو چه په کوم سلیقے. شوق. اوکامیابئ سره دا سلسله جاری ساتلے ده.امید دے چه په دے سره به پوره تقریرپه حسین اوجمیل اندازکښے د بیشمیره فوائدو اوعظیم الشان تحقیقاتو سره د طباعت په زیور باندے بنائسته شی.اود طالبانو او استاذانو دپاره به د فائدے نه خالی نه وی.

د مذکور الصدر دواړو معززینو سره مولانا اسدالله صاحب او مولانا محمد عظیم صاحب د معاونینو په حیثیت په دے کار کښے مشغول دی.دالله تعالی نه سوال دے.چه ددے ټولو حضراتو په علم اوعمل. ایمان اویقین، رزق او مال،عزت او جاه، او عمر کښے برکت واچوی.اوپه دواړوجهانونو کښے ورته خپله رضا او قرب نصیب کړی.آمین ثم آمین

انسان د خطاء اونسیان نه جوړ دے.څکه د غلطئ امکان په هرحال موجود دے.که اهل علم چرته په څه غلطئ باندے خبر شی.نوخبردارے دے راکړی.او د شکریه موقع دے راته راکړی.

## شيخ الاسلام والمسلمين آية من آيات رب العالمين .سيدنا وسندنا حضرت مولانا سيد حسين احمد مدنى نورالله مرقده وبرد مضجعه

**پيدائش اوحليه** ددوى پيدائش په ۱۹شوال ۱۲۹۶ هـ مطابق ۱۸۷۹عيسوى د نهے (سه شنبه) په ورځ د شپے په بانگر مؤ ضلع اناؤ يوپى انډيا كښے شوے وو.ددوى پلار هلته په اردو مډل سكول كښے هيډ ماسټر وو.ددوى تاريخى نوم ،چراغ محمد،، مقرر شوے وو . د دوى رنګ تورواليٰ ته مائل، قددرميانه، پلن بدن، بارعب كتابى مخ. گوره ږيره. پلن نورانى تندے، په تندى د سجدے نښے، روښانه سترگے. پراعتماد لب اولهجه. په تګ كښے د زمرو پشان بے خوفى، اوزړه د عاجزئ نه ډك وو.

**نسب** حسين احمدبن سيد حبيب الله بن سيد پيرعلى بن سيد جهاگيربخش بن شاه انور اشرف- شاه نور اشرف هغه مورث اعلى دے.چا چه آله دادپور قصبه ټانډه ته تشريف راوړے وو. اودلته ئے ستوګنه اختيار كړے وه.

ددوى څلور رونړه او يوه خور وه.مولانا سيد صديق احمد او مولانا سيد احمد مشران وو.او د دارالعلوم فاضلان وو.مولانا سيد جميل احمد او مولانا سيد محمود احمد كشران وو.د دے دوارو تعليم په مدينه منوره كښے شوے وو.حضرت شيخ مينځنے وو.اود دوى تعليم په ديوبند كښے شوے وو.مولانا صديق احمد د ۴۱ كالو په عمر ۱۹۱۱ء كښے په مدنيه منوره كښے وفات شو.مولانا سيد احمد بانى د مدرسه علوم شرعيه مدينه منوره هم په ۱۹۴۰عيسوى كښے په مدينه كښے وفات شو.اود آخرت باقى كور ته منتقل شو.مولانا جميل احمد بيبنى په ځوانئ كښے د ،،دق سل،، په بيمارئ كښے اخته شو.اوپه كال ۱۹۰۹كښے او مولانا محمد احمد د ۸۲كالو په عمر كښے د ډير كامياب ژوند تيرولو نه پس په كال ۱۹۷۳عيسوى كښے په مدينه منوره كښے خپل مالك حقيقى سره ملاؤ شو.

دا خاندان كم و زيات په دريمه صدئ هجرئ كښے د مدينے منورے نه تلے وو.اوپنځه سوه كاله پس ترمذ، چه لاهور سره دے.په ضلع فيض آباد يوپى قصبه ټانډه كښے ئے قيام كړے وو.بيا په آخره د شعبان كال ۱۳۱۶هـ مطابق ۱۸۹۹عيسوى كښے د نن نه تقريباً يوسل پنځه ويشت كاله وړاندے ذيقعده كال ۱۳۹۶هـ كښے مكے مكرمے ته لاړل.او دحج د فراغت نه پس په ۲۵ ذى الحجة كال ۱۳۱۶هـ مطابق مئ ۱۸۹۹عيسوى كښے مدينے منورے ته داخل شو.

**دعزتمند پلار صاحب مختصره يادګيرنه** دحضرت شيخ الاسلام قدرمند پلار جناب سيد حبيب الله صاحب ۱۲۵۳هـ كښے په آله داد پور كښے پيدا شوے وو.دا قصبه ټانډه ضلع فيض آباد سره يو كلے وو.كومه چه نن صبا د قصبه ټانډه يوه محله ده.د دوى وفات د ايډريا نويل نظربندئ په زمانه كښے دشيخ الاسلام د اسارت مالټا ۱۹۱۷عيسوى نه څه ورځے پس د اويا كالو په عمر كښے په تركى كښے شوے وو.

دوى قرآن كريم، اود اردو، فارسئ اوهندى بهاشا تعليم حاصل كړے وو.په اردو مډل سكول كښے ئے ملازمت كړے وو.او د هيډماسټر په عهده باندے فائز شو.

دوى ته د مولانا فضل رحمن گنج مراد آبادى نه شرف بيعت حاصل شوے وو. د دوى زړه به

همیشه دپاره د دیارحبیب په یاد کښې بیتابه وو.د ۱۰۵ کالو په عمر کښې چه کله د شیخ انتقال اوشو.نود هجرت د سفر نیت ئے اوکړلو.ددے عزم او ارادے خبر چه کله خپلو خپلوانو اوتعلق دارو ته اوشو.نود حالاتو د خرابئ. او د لرې والی اوفراق او مهجورئ حواله ئے ورته ورکړله.اوبعضے خپلوانو ورته درخواست اوکړلو.چه په دے اراده باندے عمل مه کوئ.نو دوی اوفرمائیل.که ماته دا یقین اوشی.چه ما د توپے خولے ته مخامخ کوی.او توپه راباندے چلوی.نوهله به زه مدینے ته رسم.نوزه دے ته هم تیار یم.

دوی ته په اردو، فارسئ او هندئ کښے د شعر وئیلو ملکه راسخه حاصله وه.زیات تراشعار ئے نعتیه وو.د دوی ارشاد دے.

اے بہار باغ رضوان کوئے تو بلبل سدرہ اسیر موئے تو

سجدہ ریزان آمدہ سویت حبیب اے ہزاران کعبہ در ابروئے تو

اس حبیب دل خستہ پہ نظر ہو جائے درمندوں کی دوا آپ کیے جاتے ہیں

سر رہے یا نہ رہے پر رہے سودا سر میں عشق احمد کا خدایا یہی ہم چاہتے ہیں

**د شیخ الاسلام په دارالعلوم دیوبند کښې داخله:** د مډل دتعلیم لا یو کال باقی وو.چه د صفر په اولنو ورځو کښې دوی د دینی تعلیم دپاره دیوبند ته اولیږلے شو.دلته کښے ددوی دوه مشران رونړه مولانا محمد صدیق او مولانا سید احمد د وړاندے نه زیر تعلیم وو.

د حضرت شیخ الهند په ارشاد باندے ورته د ابوداود شارح حضرت مولانا خلیل احمد سهانپوری خصوصی طور دګلستان او میزان الصرف سبقونه شروع کړل . په علم کښے د غیر معمولی امتیاز په وجه دوی همیشه دپاره د استاذانو دنظرونو مرکز او دهغوی د سترګو ستورے وو.د شیخ الهند رحمہ اللہ د قدرمند پلار مولانا ذوالفقار علی رحمہ اللہ نه دوی فصول اکبری اووئیله.په نورو استاذانو کښے ئے شیخ الهند، مفتی عزیزالرحمن، مولانا خلیل احمد شارح ابوداود وغیره رحمہم اللہ شامل وو.

په دارالعلوم دیوبند کښے دوی اته کاله علم حاصل کړے وو.او دوره حدیث ئے مکمل کړلو.حضرت شیخ الهند رحمہ اللہ دخصوصی توجه او شفقت د وجے واړه او لوئے درېویشت کتابونه دوی ته په خپله وئیلی وو.

**د حجاز مقدس سفر:** د شعبان ۱۳۱۶ھ په آخری ورځو کښے د حجاز مقدس په اراده چه ئے کله د دیوبند نه روانګی اوشوه.نو شیخ الهند د نورو حضراتو رحمہم اللہ سره دوی سره استیشن پورے پیدل تشریف یوړل.چه مدینے منورے ته اورسیدلو.نو د استاذانو او مشائخو د تاکید اوهدایاتو مطابق ئے درس او تدریس شروع کړلو.او ورسره ئے د ذکر، مراقبے، احسان او سلوک منازلو سر کولو کښے مشغول شو.

**په مدینه منوره کښې د دوی د درس حالات:** مولانا عاشق الهی میرتهی ددوی د درس په خپلو سترګو لیدلے حال دا بیانوی. دمولانا حسین احمد صاحب درس په حرم نبوی کښے الحمد لله ډیر په ترقئ دے. او عزت اومرتبه ورته هم الله تعالی هغه ورکړے ده.چه دهندوستان عالمانو ته خو لاڅه چه یمنی شامی بلکه مدنی عالمانو ته هم هغه خبره نه ده

حاصل ((ذلک فضل الله یؤتیه من یشاء))

**د دستاربندئ جلسه** په کال ۱۳۲۸هـ کښې دوی د مدينې منورې نه ديوبند ته تشريف راوړلو اوپه جلسه د دستاربندئ کښې ئې شرکت اوکړلو اول د علامه انورشاه کشميرى رحمه الله دستار بندى اوشوه.بيا د حضرت شيخ الاسلام دستاربندى اوشوه.دوى ته يوخصوصى دستار قطب العالم دحضرت گنگوهى رحمه الله خوئى حضرت مولانا حکيم مسعود احمد چه د مدرسې سرپرست وو.هغوى ورکړلو.او دريم دستار ورته مولانا حکيم محمد احمد رامپورى چه د مجلس شورى رکن وو.هغوى ورکړلو.

**په مدينه منوره کښې قيام** اولنې قيام ئې دوه کاله ۱۳۱۷هـ نه تر ۱۳۱۸هـ پورې او دويم قيام ئې د ۱۳۲۰هـ نه تر ۱۳۲۶هـ پورې اووه کاله وو.دريم قيام ئې ۱۳۳۰هـ نه تر ۱۳۳۱هـ پورې وو څلورم قيام ئې د ۱۳۳۴هـ نه تر ۱۳۳۵هـ پورې وو.په دې پنځلس کاله کښې دوى د سلوك اواحسان تکميل اوکړلو.اوحضرت گنگوهى په خرقهٔ خلافت باندې سرفرازکړلو.د تدريس اوترغيب او جهاد سلسله ئې جارى اوساتله.او د حق مسلك دفاع ئې اوکړله.

**د مالټا قيد او خلاصيدل** ۱۹۱۴عيسوى کښې د جنگ عظيم نه پس چه کله انگريزانو په هندوستانيانو باندې او بيا خاص کرد مسلمانانو خلاف ظلمونه د حد نه زيات شو.نوحضرت شيخ الهند رحمه الله دحاجى ترنگزئ په ذريعه د انگريزى فوځ خلاف د جنگ شروع اوکړله.ددې تيارى د وړاندې نه شروع وه.په دې جنگ کښې برطانيې ته ډيره پسې جانى او مالى نقصان اوشو.اوماتې ئې اوخوړلو.بل خوا شيخ الهند رحمه الله د خپل دې مقصد دپاره خپل سفير مولانا عبيدالله سندهى،مولانا ميان منصور. مولانا سيف الرحمن وغيره افغانستان. ترکى. جرمى وغيره ته ليګلى وو.او دا حضرات خپلوخپلو مرکزونو ته رسيدلى وو.اوپه کاميابئ سره په خپل کار کښې مشغول وو.په دې کښې معلومه شوه چه دحضرت شيخ الهند رحمه الله توله منصوبه اوتحريك دبرطانيه حکومت په علم کښې راغلو.(دا تحريك د ريښمى رومال په نوم باندې مشهور دې) په دې حالاتو کښې شيخ الهند رحمه الله حجاز مقدس ته اورسيدلو.اوخلافت عثمانيه سره ئې رابطه اوکړله .اودهندوستان د آزادئ دپاره ئې ترې د مدد اخستلومنصوبه جوړه کړه.اوپه څه چل ول حجازته اورسيدلو.اوسلطنت عثمانيې د مشرانو سره ئې کامياب مذاکرات جارى وو.چه شريف حسين چه دمکې گورنر وو هغه د خلافت عثمانى نه بغاوت اوکړلو . اوانگريزانو سره ملاؤ شو.او د انگريزانو په وينا باندې ئې حضرت شيخ الهند رحمه الله او دهغوى څلور ملګرى چه حضرت شيخ الاسلام په کښې هم وو.بنديان کړل.او دا حضرات مصر اومالټه ته روان کړے شول.

بابدان يار شد شريف حسين خاندان شرافتش گم شد (شيخ الهند رحمه الله)

د مالټې نه د درې کاله او اووه مياشتو نه پس په ۸جون ۱۹۲۰عيسوى مطابق ۲۰ رمضان ۱۳۳۸هـ کښې آزاد شو.او دا حضرات بمبئ ته راورسيدل.

**په سلهټ کښې تدريس** ۱۹۲۳ء نه تر ۱۹۲۸ء پورې شپږ کاله په سلهټ کښې ئې قيام اوکړلو.په دې دوران کښې ئې نه يواځې سلهټ بلکه پوره بنګال د دينى علوم اوعلوم معرفت نه ډك کړل.

**دارالعلوم ديوبند ته راتګ.** په دارالعلوم کښے يو انقلاب راغلو.لوئے استاذان سره د حضرت علامه محمد انورشاه کشميری، مفتی عزيزالرحمن، اوعلامه شبيراحمدعثمانی رحمهم الله وغيره دارالعلوم پريخودل.او ډابهيل ته لاړل.نو مولانا حبيب الرحمن (مهتمم) او مولانا محمد طيب (نائب مهتمم)دحضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله (سرپرست) په مشوره سره د دارالعلوم مقام، اوددے وقاراومرجعيتاومحبوبيت برقرار ساتلو دپاره د شيخ الاسلام رحمه الله نه دارالعلوم ته د تشريف راوړلو درخواست اوکړلو.په داسے وخت کښے دارالعلوم ته هم د داسے صاحب عزيمت، حامل شريعت وسنت، مجاهد آزادی وسياست ضرورت وو.چه هغه د شيخ الهند رحمه الله د ګده نشنئ په ټولو وجوهو سره حقدار وو.

دحضرت شيخ الاسلام نه د مزاج تپوس کولو نه پس حضرت تهانوی رحمه الله يو خط اوليکل اوهغه ئے د شيخ الاسلام رحمه الله په خدمت کښے پيش کړلو.

..حضرت مولانا مولوی حسين احمد تقرری په حيثيت د صدر مدرس په ۱۵۰ روپئ ماهوار باندے دکارشروع کولود تاريخ نه مجلس شوری ته منظور ده.د حضرت ممدوح اعلی شخصيت او علمی تبحر په لحاظ سره ذکر شوے مشاهره بالکل کافی نه وه.خو د حضرت ممدوح د نيت اخلاص او د دارالعلوم د خدمت د جذباتو نه مونږ اميد کوو.چه حضرت ممدوح به دا منظور کړی.او مجلس شوری ته به د شکرګزارئ موقع ورکړی.او د دارالعلوم په حالت باندے به خپل توجهاتو اوبزرګانه اخلاقو سره د رحم نظر اوکړی.اودا به په کامله توجه سره به دا (ذمه واری) قبوله کړی.لکه څنګه چه د حضرت ممدوح د استاذ حضرت شيخ الهند رحمه الله طريقه وه. (فقط اشرف علی ۲۰رجب ۱۳۴۸ھ)

شيخ الاسلام په ډيره مشکله اهل سلټ راضی کړل.او د څو شرائطو سره ئے خپله امادګی ظاهره کړه.(چه په سياسی نظرياتو کښے به پوره آزادی وی.د آزادئ په تحريک کښے به شرکت باندے اعتراض نشی کولے.وغيره) د دارالعلوم د منتظمينو نه زيات د حضرت د مزاج نه زيات څوك واقف کيدے شو؟(بلکه دوی د شيخ الاسلام په مزاج ښه پوهيدل) او دشيخ الهند رحمه الله د ګده نشينئ دپاره دهغوی په نزد بل بزرګ ددے حقدار څنګه کيدے شو.(بلکه حضرت شيخ الاسلام ددے حقدار وو) بيا چه په حالاتو باندے پوره قابو راولی.د دے دپاره د حضرت شيخ الاسلام نه سوا بل څوك نه وو.نوځکه پوره په انشراح اوخوشحالئ سره ټول شرطونه اومنلی شول.او په کال ۱۹۲۸ء کښے د صدارت مسند سنبهالولودپاره دوی ديوبند ته تشريف راوړلو.او د دوی په وجه ټول خطرات، انتشار، اواضطراب کوم چه وختی طور پيدا شوے وو.ختم شو.او موافقينو اومخالفينو ټولو ته دزړه تسلی او سکون نصيب شو.بيا چه د ديوبند اسلامی، علمی، اخلاقی، روحانی، اوسياسی مرکزيت وو.په دے ټولو لحاظونو سره حضرت شيخ الاسلام د دے خدمات اوکړل.اوچه په کومه طريقه ئے د ملك اوملت قيادت اوکړلو.نودلته د هغے د بيان ګنجائش نشته.

**دشيخ الاسلام سياسی ژوند** دوی د تحريك خلافت، اوجمعيت علماء هند د پليټ فارم نه په سياسی ميدان کښے قائدانه کردار ادا کړے دے.او د خپلوخان قربانونکو اوقائدانه سرګرمو په ذريعه ئے ددے لارے ټول تکليفونه او مصيبتونه چه د خپلو او اغيارو د طرفه لکه د باران

پښتانه وریدل اوزغمل او هندوستان ئے آزاد کړلو.اوددے په آزادئ ئے د اسلامی ملکونو دآزادئ دپاره یوه لاره پیدا کړه.

یوخوا چه د آزادئ تحریک خپل مقصد ته نزدے کیدلو.نو تقسیم هند هم زور شروع کړے وو.چه مسلم لیګ دتقسیم جنډا اوچته کړه.نوحضرت مولانا شبیر احمد عثمانی حضرت مولانا ظفراحمد عثمانی حضرت قاری طیب مهتمم دارالعلوم دیوبند او د دوی په زرګونو عالمانو رحمهم الله د ملك د تقسیم په خبره کښے د مسلم لیګ د جنډے لاندے شول.دوی ته د حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله حمایت اوتائید حاصل وو.بل طرف ته جمعیت علماء هند د ملك تقسیم د مسلمانانودپاره په مستقبل کښے نقصانی ګڼړلو.خکه هغوی د تقسیم مخالفت اوکړلو .ددے عالمانوقیادت شیخ الاسلام مولانا سید حسین احمد مدنی رحمه الله کولو .دلته سوال دپاکستان د مخالفت یا حمایت نه وو.لکه چه د پروپیګنډے او شور او واویلا په ذریعه دا خبره خورولے شوه.بلکه سوال په حقیقت کښے دا وو.چه د آزادئ کوم صورت به د مسلمانانو د مستقبل دپاره سودمند، غوره اود کامیابئ ضامن وی.اوپه دے کښے خو په چا باندے وحی نه نازلیدله.فیصله په انسانی سوچ او رائے باندے کول وو.او په انسانی رائے کښے د خطا او صواب دواړو احتمال وی.

دتقسیم حمایتیانو دا ګڼړل.چه دمغربی تهذیب نه دخلاصی دپاره،اود مسلمانانو په خپل اسلام دعمل کولو دپاره، او خپل ژوند قرآن او سنت په قالب کښے اچولو دپاره صرف دا یو صورت دے.چه ملك تقسیم شی.او مسلمانانو ته یوه جدا د زمکے حصه ورکړے شی.په کوم خائے کښے چه دوی خپل دین نافذ کړی.اوپه دے باندے په عمل کولو کښے آزاد وی.دتقسیم د مخالفینو دا وینا وه.چه د انګریزانو نه صرف آزادی حاصله کړئ.نور څه مه کوئ.که د دے نه جداوالے اوشی.نوهغوی به یقیناً په مسلمانانو باندے ډنډے اوچلوی.اوبیا په ټول عمر پښمانه وی.د تقسیم حامیانو ته په دے باندے دا اعتراض وو.که دانګریزانو نه اجتماعیت سره آزادی حاصله کړے شی.نو روستو به بیا هندوان په مونږ باندے غالب شی.او هغوی به مونږ ته څه هم رانکړی.د تقسیم مخالفینووئیل.چه ددے خطرے بندون د وړاندے نه شوے دے.متحده بنګال، آسام، متحده پنجاب، کشمیر، سرحد، سندھ او بلوچستان دا علاقے به دمسلمانانو وی.د دوی به خپل قانون او دستور وی.او دا به هم د دوی په مرضئ باندے وی.چه دوی د مرکز سره اوسیږی.اوکه جدا کیږی. باقی پاتےشوه د هندوانو خطره نوهغوی اګرچه په اکثریت کښے دی.خوهغوی دومره زړه ور نه وی.چه د مسلمانانو دومره عظیم او متحد طاقت مغلوبه کړی.حالانکه یو ډیر طاقتور او تربیتیافته فوځ هم د دوی په قبضه کښے دے.

تقدیر د هندوستان د تقسیم په باره کښے فیصله اوکړله.او د بل موقف نفی ئے اوکړله. انګریز اول متحده بنګال او آسام تقسیم کړلو.متحده پنجاب ئے تقسیم کړلو . کشمیر ئے د پاکستان نه جدا کړلو.او د مسلمانانو مجتمع قوت ئے منتشر کړلو.بیا کافرانو پاکستان په دوو حصو تقسیم کړلو.او په نتیجه کښے اسلامی قوت په پاکستان او بنګله دیش، هندوستان او کشمیر څلورو حصو کښے تقسیم شولو.او د هندوانو اکثریت یو پاتے شو.

دتقسیم په ذریعه چه پاکستان په وجود کښې راغلو نو ددے نه پس شیخ الاسلام په خپل موقف کښې ناکامئ نه د ..انا.. مسئله جوړه نکړله.بلکه په پاکستان کښې ئے خپلو متعلقینو ته هدایت اوکړلو چه د پاکستان نه د اسلام قلعه جوړه کړئ.او ددے د محافظینو لاسونه مضبوط کړئ.دپاکستان مثال د یو جمات پشان دے.چه ددے په نقشه کښې اختلاف کیدے شی.خوچه کله جمات جوړ شی.نو چه هغه په کومه نقشه باندے هم وی.هغه جمات وی او د ټولو دپاره قابل احترام وی.

خوافسوس چه مونږ دالله تعالی دا راکړے ملك د نیمے صدئ تیریدو نه پس د تباهئ په غاړه باندے اودرولو.دکوم بدشکله صورت نه چه شیخ الاسلام رحمه الله د آزادئ نه وړاندے ویریدل کولو د مسلمانانو متحده طاقت دړے وړے شو.د برصغیر د مسلمانانو مستقبل لکه چه په تیارۀ کښې پریوتے دے.د بنگله دیش مسلمان د تحفظ نه محروم دی.د بهارت مسلمان په تخته دار دے.کشمیر د مسلمانانو قتل گاه جوړه شوے ده.د حیدرآباد دکن مسلمانان د ذلت اومسکنت شپے ورځے تیروی.جوناگړه د دنیا د نقشے نه ختم کړے شوے دے.د پاکستان مسلمانان د ظلم او استحصال ښکار دی.

د تقسیم دمخالفت دویمه وجه دا وه.چه د پاکستان قیادت د کومو کسانو په لاس کښې وو.شیخ الاسلام د هغوی نه مطمئن نه وو.د هغوی دا خیال وو.چه د اسلامی اقدارو نه ناخبره دا قیادت به د اسلامی نظام په باره کښې خپل خوب ته عملی جامه وانه غوستلے شی.اوانگریز به د خپلو پلیتو مقاصدو دپاره یے د څه مشکل نه دوی استعمالوی.نوهغه د دوو قومونو نظریه چه د پاکستان په قیام کښې ئے بنیادی کردار ادا کړے وو.اوکومه چه کفر داسلام نه د جدا کولو دلیل وو.دهغے د خورولو دپاره ضروری وه.چه په پاکستان کښے د اسلام، اهل اسلام. داصلاح او تقوی حقوقو ته هر قسم تحفظ حاصل وو.او دکفراو ارتداد اوفسق او فجور د حقوقو دپاره څه ضمانت نه وو.داوس نه نۀ بلکه داولے ورځے نه ډیر په اهتمام سره ددے خلاف چلیږو.دلته کښے اسلام او مسلمانان پردی اومظلوم ښکاری.او کفراوارتداد او فسق او فجور ته د ترقئ کولو آزادی حاصله ده.

د تقسیم نه پس چه کله د پاکستان په حامیانو بهارتی مسلمانانو باندے د مصیبتونو غرونه راپریوتل.د هغوی ژوندونه د غم اووير په دلدل کښې انختی وو.نو بیا هم هغه شیخ الاسلام او دهغه ملگرو میدان ته راؤدانگل.کلی په کلی اوگرځیدل .اووعظ نصیحت، او تقریرونه ئے اوکړل.د دردیدلو مسلمانانو حوصله ئے اوچته کړله.هغوی ته ئے د ایمان او یقین سبق ورکړلو.دبهروسے تلقین ئے ورته اوکړلو.نو ددے دا اثر اوشو.چه ریکدیدونکی زړونه او خونیدونکی قدمونه مضبوط شول.او ژوند خپل معمول ته راغلو.

دحق پرسته عالمانو هغه ډله چه دتحریك پاکستان په هره دسته کښې ئے په اول کښې کار کولو.او دهغوی د کوششونو په نتیجه کښې دا معرکه د کامیابئ طرف ته روانه وه.مونږ نۀ د هغوی په اخلاص باندے شك کوو.اونه د هغوی دخپل ملك سره محبت ته چا په شکی سترگو باندے کتلی دی.اوترکومے پورے چه د اسلام د ترقئ او د قرآن اوسنت د نفاذ سره د هغوی تعلق دے.د هغے به څه بیان اوکړے.. عیان را چه بیان..

خودا هم يو تريخ او افسوسناك حقيقت دے چه د دے حضراتو د پاكستان نه كوم اميدونه وو هغه پوره نشو.اونن د هغے د پوره كيدو په ظاهره څه اميد شته.بلكه په ۱۹۷۱ء كښے چه پاكستان په دوو حصو كښے تقسيم شو نو دپاكستان دا معمولي غوندے وجود هم په خطره كښے دے.كاش چه دا د نظر دهوكه وي.اوپاكستان محفوظ وي.مستحكم وي.او په حقيقت كښے د اسلام قلعه وي.آمين ثم آمين (۱)

**سلوك او تصوف** دوی ته چه د شيخ الهند رحمه الله په دربار كښے كوم خصوصيت حاصل وو.د دے وجے نے په بل خائے كښے د بيعت كولو خيال هم چرته نه وو راغلے.نو دحضرت شيخ الهند رحمه الله نه نے د بيعت كولو درخواست اوكړلو.اوډير كوشش نے هم اوكړلو.خو هغوی ورته حكم اوكړلو.چه دحضرت گنگوهي رحمه الله نه بيعت اوكړه.سره ددے نه چه زړه نے نه غوښتل.خودحكم منلو دپاره مدينے منورے ته د روانيدو نه وړاندے گنگوه ته حاضر شو.اومولانا حبيب الرحمن عثماني رحمه الله دا اوونيل.چه مولوي صديق احمد خپل دواړه رونړه مولوي سيد احمد او مولوي حسين احمد د بيعت كولو دپاره راليږلي دي.او حاضر دي.دوی ورته د بيعت كولو درخواست اوكړلو.حضرت گنگوهي رحمه الله سمدستي بيعت اوكړلو.او وے فرمائيل ورته چه ما خو درسره بيعت اوكړلو.خو اوس تاسو مكے معظمے ته ځئ.هلته قطب العالم حاجي امدادالله صاحب قدس سره موجود دے.هغوی ته عرض اوكړئ.هغوی به درته دذكر تلقين اوكړي.

شيخ الاسلام فرمائي.اگرچه دا بيعت په نه زړه باندے شوے وو.خوددے مبارك آثار دهغه ورځ نه ما په خپل خان كښے محسوس كړی وو.

دحضرت حاجي صاحب په خدمت كښے په مكه معظمه كښے حاضري اوشوه.او عرض نےورته اوكړلو.چه حضرت گنگوهي رحمه الله مونږ دواړو سره بيعت خو اوكړلو .خودا نے اوفرمائيل.چه د ذكر تلقين به دحضرت نه حاصل كړئ.نو هغوی ورته د ،،پاس انفاس،، تلقين اوكړلو.او ورته نے اوفرمائيل.چه روزانه د صبا په وخت كښے راځئ . او دلته كينئ.او دا ذكر كوئ.ددے نه پس مدينے منورے ته لاړلو.څه وخت پس حاجي صاحب وفات شو.خو تقريباً يو يونيم كال يا ددےنه هم څه زياته موده دوی د حضرت حاجي صاحب رحمه الله د تلقين مطابق د ذكرسلسله جاري اوساتله.په دغه دوران كښے د ربښتيني خوبونو او مبشراتو څه عجيبه سلسله شروع شوه.او دحضرت گنگوهي رحمه الله سره په تعلق كښے ورځ په ورځ زيادت كيدلو.دحضرت سره خط كتابت هم جاري وو.په دے دوران كښے حضرت گنگوهي رحمه الله دوی هندوستان ته راغوښتلو.دوی په ډير نامناسبه حالاتو كښے د سفر هغه تكليفونه اوزغمل.چه د هغوی په وهم اوگمان كښے هم نه وو.او گنگوه ته راورسيدلو.تقريباً درے مياشتے نے په گنگوه كښے قيام اوكړلو.حضرت گنگوهي ورته مراقبه د ذات بحث اوخودله.د مازيگر نه پس به مجلس ته حاضريدلو .اوپه دے مراقبه به نے عمل كولو.نور تول وختونه نے هم په عبادت، رياضت

---

(۱) مترجم وائي.الله تعالى د شيخ الحديث مدظلهم العالي دعا چه د پاكستان د حفاظت دپاره كړے ده. دا قبول كړے ده.خكه چه الحمد لله نن په اسلامي دنيا كښے پاكستان يو ايتمي طاقت دے.چه د اسلام قلعه ورته هم ونيلي شي.اودشمن ورته په خيرنه سترگه د كتلو جرات هم نشي كولے .

اومراقبه کښې تیریدل چه یوه نیمه میاشت ئې تیره کړه.نوحضرت ګنګوهي رحمه الله ورته دستار خلافت ورکړلو.په دغه وخت کښې دحضرت شیخ الاسلام رحمه الله عمر ۳۳ کاله وو.بیا په دے لار کښې چه الله تعالی په دوی باندے بیحده احسانات اومهربانئ اوکړے.هغه الله او د هغه بنده (شیخ الاسلام) ښه پیژنی.

د حضرت شیخ الاسلام نه بغیر دڅه مبالغے نه په لکهونو خلق بیعت شول.او دهغوی عقائدو او اعمالو او اخلاقو اصلاح اوشوه.د رجوع ئې دا حالت وو.چه په یووخت به څو څو سوه کسانو بیعت کولو.د بانسکنډي آسام په آخری سفر کښې تقریباً شپږ زره کسان په وخت کښې په سلسله کښې داخل شول.او په لاوډسپیکر باندے د بیعت کلمات اووئیلی شول.هغه خوش نصیبه چه د معرفت او سلوك د لارے مراحل ئې پوره کړل.او الله تعالی ته اورسیدل.اومرتبه داحسان باندے فائزشول.د هغوی شمار ۱۶۷ دے.بهارت. بنګله دیش.برما. آسام. پاکستان. او جنوبی افریقه پورے ټولو مقاماتو کښې دا فیض جاری اوساری دے.

**دحضرت شیخ الاسلام عزیمت اوحمیت:** دوی د عالمانو اواهل درس د حلقے نه بهرته قدم راواخستلو.او د وخت د اهمے مسئلے دانګریزی حکومت د عروج په وخت کښې ئې دحق اعلان اوکړلو.او د ((كلمة حق عند سلطان جائر)) دافضل جهاد شرافت ئې حاصل کړلو.دمالټے او هندوستان په جیلونو کښې ئې کلونه تیرکړل.اوسنت یوسفی ئې ادا کړلو.او د دنیا د عظیم ترین سلطنت وړاندے ئې په کلونو خپله سینه نیولے وه.تردے چه د دوی مقصد پوره شو.بیا د فرائضو ادا کول، د نوافلو او مستحباتوپابندی، په مخالف ماحول کښې د معمولات محافظت، د وعدو پوره کول، او په لرے لرے جلسو او اجتماعاتو کښې شرکت،او ددے دپاره هر قسم تکلیفونه زغمل مستقل عزیمت دے.د اسباقو تکمیل، د میلمنوخدمت، د مریدانو تربیت، د بیشمیره خطونو جوابونه ورکول ددے ضعف او بوډاتوب په زمانه کښې دا ټول کارونه د دوی د عزیمت اوهمت دلیل دے.حقیقت دا دے چه دوی په خپل ژوند کښې په ((ان الله يحب معالي الأمور ويكره سفاسفها)) باندے عمل کړے وو.

حمیت د دوی د ژوند د کتاب ډیر روښانه عنوان دے.هم دے حمیت په کښې د انګریزانو د مخالفت جذبه پیدا کړے وه.اوهغه ترهغه وخته پورے سره نشوه. تر څو چه انګریزان ددے ملك نه تلی نه وو.په تحریك خلافت او جمیعت علماء هند کښےهم دے روح کار کولو.او هم دے حمیت دوی همیشه دپاره ځوان،مستعد اوسرګرم ګرځولے وو.هم دا حمیت وو.چه په دوی باندے ئې د اسلام د دشمنانو خلاف په کلونو قنوت نازله وئیلے وو.او داسے به معلومیدله.چه (د دوی د دعائیه کلماتو د وجے) په محراب کښے سوری کیږی.

دغه شان د دوی په صفاتو کښې ددوی انسانی عظمت ممتاز او منلے شوے وو . پاکیزه شخصیت. بے داغه ژوند، او اوچتو اخلاقو ددوی د ذات نه پاسه سره زر جوړ او ریښتینے ملغلره جوړه کړے وه.او د اخلاقو او طبعی هغه اوچتوالی ته ئې رسولے وو چه دهغے متعلق د اولے زمانے عربی شاعر وائی.

هجان الحی كالذهب المصفى　　صبيحة ديمة يجنيه جان

ترجمه : د قبیلے سرې داسے د پاسه سرو زرو پشان دي.چه د باران صبا د زمکے نه اوچت کړی دي.او صفا کړی ئے دي.

د اخلاقي کمال باوجود په خپل خان بدګماني کول.ددے د کمی استحضار او اعلان د انسانیت د عظمت دلیل او ددے خبرے ښکاره ثبوت دے چه انسان د نفس اماره د ګرفت، او دخودفریبئ او خودپرستئ نه خلاص شوے دے.دا صفت د شیخ الاسلام په ژوند کښے ډیرښکاره وو.او دا د هغوی حال وو.قال نه وو.

**مهمان نوازي** دحضرت شیخ الاسلام په ټول ژوند کښے په «الیدالعلیا خیر من الیدالسفلی» باندے عمل وو.هغوی ډیر کم د نورو احسان قبول کړے دے.بلکه هغوی په ډیرو خلقو احسان کړے دے.دهغوی مهمان خانه د هندوستان په وسیع مهمان خانو کښے وه.اود هغوی دسترخوان د هندوستان په لویو دسترخوانونو کښے وو.اوحقیقت دا دے چه د هغوی زړه ددے نه هم وسیع وو.د بعضے واقفینو اندازه ده.چه اوسطاً به روزانه پنځوس میلمانه وو.بیا په دے کښے به دهرے طبقے او هرحیثیت خلق وو.د شیخ بشاشت،انتظام، مستعدی، او اهتمام به خودله.چه هغوی ته څومره د زړه خوشحالي اوروحاني خوند حاصلیږی.

ضیافت، مهمانوازي، او اطعام طعام د هغوی روحاني غذا او طبیعت ثانیه جوړ شوے وو. بیا میلمنو سره چه به هغوی په کومه عاجزئ اوانکسارئ او اعزاز او اکرام سره ملاویدلو. چه هغه به دے اولیدلو.نو بے اختیاره به درته دا شعر یادیدلو.

وإنی لعبد الضیف ما دام نازلاً     وما شیمة لی غیرها تشبه العبدا

ترجمه : زه د میلمه غلام یم.ترڅو چه هغه زما په کور کښے وي.اوپه ما کښے هم دا یو صفت دے.په دے باندے زه غلام معلومیږم.

**په دارالعلوم کښې تدریس او درسي خصوصیات** : تقریباً دیرشت کاله دوی په دارالعلوم دیوبند کښے د بخاری شریف اوجامع ترمذی درس ورکړے دے.

① کله چه به حضرت قرات کولو.نوپه اول کښے به ئے د مسنون خطبے نه پس به ئے «فإن أصدق الحدیث کتاب الله وأحسن الهدی هدی محمد، وشرالأمور محدثاتها، کل محدثة بدعة، وکل بدعة ضلالة،وکل ضلالة فی النار،وبالسند المتصل منا إلی الإمام الحافظ الحجة أمیر المؤمنین فی الحدیث أبی عبدالله محمد بن اسماعیل بن ابراهیم بن المغیرة بن بردزبة الجعفی البخاری رحمه الله تعالی ونفعنا بعلومه آمین» اولوستل.او د باب شروع به ئے د «قال»نه کوله.مثلاً «قال باب کیف کان بدء الوحی الخ» به ئے اووئیل.او بیا به ئے دهرحدیث سره په شروع کښے «وبه قال حدثنا» لوستلو.

② د سند په اختتام به ئے د صحابی د نوم سره «رضی الله تعالی عنه وعنهم» وئیل. او په دے طریقه به ئے په دعا کښے د صحابی سره ټول راویان شریك کړل.

③ دحضرت تقریر ډیر روان، خوندور، او رفتار به ئے ډیر په مزه وو.یو یو لفظ به ئے ډیر په مزه په اوچت آواز د خولے نه راویستلو.مشکل مقامات به ئے ډیر په ساده انداز کښے د مثالونو په رنړا کښے حل کول.

④ كله چه به ئې په يوه مسئله كښې په حديث كښې توجيه بيانوله.اوتوجيهات به ګڼ وو نوهره يوه توجيه به ئې جدا جدا شمارله.
⑤ د حديث د كتابونو پوره سيټ به دوى سره پروت وو.د ټولو فقهاؤ دليل به ئې كتاب پرانستلواو بيانول به ئې.د يو امام دليل به د كتاب د حوالے نه بغير نه پريخودلو.
⑥ په سندبه ئې د ضرورت مطابق بحث كولو.او د جرح اوتعديل د عالمانو اقوال به ئې نقل كول.
⑦ په حضرت شيخ الاسلام كښې وقار او تواضع دواړه جمع وو.د هغوى په درس كښې به طالب په ادب اواحترام سره متوجه وو.اوددے باوجود ئې د شفقت داحال وو.كه د طالبانو په دوه دوه نيم سوه ډله كښې به چا تپوس كول غوښتلو.نود دوى هيبت به هغه د تپوس كولو نه نۀ منع كولو.⑧ دحديث مفهوم به ئې داسے واضحه خودلو.چه د طالبانو په ذهن كښې به كيناستلو.⑨ كه په حديث به څه اعتراض واريدلو.نود اعتراض تشريح به ئې اوكړله.او مستند جوابونه به ئې بيان كړل.
⑩ په مشكلو مقاماتو كښې كه به ضرورت وو.نونحوى تركيب به ئې بيانولو.او د مشكلو الفاظو د حل په ضمن كښې به ئې د شاعرانو په كلام سره دهغے تائيد پيش كولو.
⑪ د احكامو د فرضيت تاريخ به ئې بيانولو.
⑫ د درس په دوران كښې به ئې په خوندورو قصو او تاريخى واقعاتو باندے خوند پيدا كولو.
⑬ د حق او باطلو فرقو دعقائدو به ئې زړه ته پريتونكے تشريح كوله.او بيا به ئې په احقاق حق او په ابطال باطل كښې څه كوتاهى نه كوله.
⑭ په اختلافى مسائلو كښې به ئې دهرامام دلائل بيانول.اوپه آخر كښې به ئې د حنفى مذهب دحديث سره داسےمطابقت بيانولو.چه دا به معلوميدله.چه حنفى مذهب د نبوى احاديثو عين مطابق دے.او دا چه امام ابوحنيفهؒ ته په تفقه في الدين كښې هغه اوچت مقام حاصل دے.چه بل امام ته نه دے حاصل.⑮ دايمان او عقائدو بحث به ئې په بخارى كښې ډير په تفصيل سره بيانولو.⑯ په اخلاقى او معاشرتى مسائلو باندے به ئې هم ښه بحث كولو.
⑰ د هندوستان او عالم اسلام په سياسى مسائلو باندے به ئې هم عام طور دطالبانو د سوالونو په جوابونويا د زيربحث حديث په مناسبت سره بيانول.
⑱ دمغازى د درس يو خاص خوند دا وو.چه حضرت د عربو د جغرافيه نه واقف وو.نوځكه به ئې د جهاد د مقاماتو جعرافيه ډير په وضاحت سره بيانوله.
⑲ په متعارض احاديثو كښې به ئې د تطبيق پوره پوره كوشش كولو.برابره ده كه تعارض به د راويانو د وجے راغلے وو.اوكه د نبى ﷺ د قول او فعل اختلاف به وو . او به ئې تطبيق كولو.اوكه تطبيق به ممكن نه وو.نوپه دلائلو سره به ئې د ترجيح طريقه اختياروله.
⑳ په كتاب التفسير كښې به ئې مختصر آيت پوره لوستلو.
㉑ دبخارى اول جلد درس به په اول كښې تفصيلى وو.په دويم جلد كښې به د مغازى او تفسير درس تفصيلي وو.بيا به «على سبيل السرد» كتاب ختميدلو.دلته كښې به سند يا لغت يا فقهى مسائلو ته څه تعرض نشو كولے.

⑫ كه د يو حديث نه به د تصوف او احسان مسئله معلوميدله.نودهغې په اثبات كښې به د حضرت د تقرير رواني او د طبعيت مستي د ليدلو قابله وه.داسې به معلوميدله.چه لكه عنبر(كب) ته د لامبو وهلو دپاره درياب ملاؤ شو.يا باز ته فراخه فضا.دحديث جبرئيل د تشريح په وخت كښې به طالبانو ته داسې معلوميدله.چه په چمن كښې بلبل چغيږي.د مذكوره حديث حزء ((فإن لم تكن تراه))توجيهات به ئې بيانول.او فرمائيل به ئې ٠٠.دريمه توجيه دا ده.كه په ((لم تكن)) كښې كان تامه مراد واخستلې شي اومطلب دا شي.چه تاسو ته د فنا مقام حاصل شي.نوتاسو به الله وينئ . دا د غلبه حال يو كيفيت وي.په كثرت ذكر سره چه دقوت متخيله نه د تولو څيزونو شعور لاړ شي.ترديے چه نه د ذكر شعورپاتے شي.اونه د ذاكر.بلكه صرف مذكوره شعور پاتے شي.(دے ته فناء الفناء وائي) نود ذكر او ذاكر د شعور نفي كومه چه په كثرت ذكرسره حاصل شوے ده.((فإن لم تكن)) دے.او صرف د مذكور (الله تعالى) شعور ((تراه)) وي. خو دا د غلبه حال كيفيت دے.حقيقت نه دے.منصور ته هم دا مرتبه حاصله شوے وه.چه هغه د ((أنا الحق)) نعره لګولې وه. خو ددے باوجود منصور عبادت نه وو پريخودے.هغه په عبادت كښې مشغول وو . د دے نه معلومه شوه.چه دا كيفيت د غلبه حال كيفيت دے.د حقيقت سره ددے څه تعلق نشته.په حديث كښې راځي.چه بنده دنوافلو په ذريعه داسې ترقي كوي.اوالله تعالى ته دومره نزدے شي.چه الله تعالى فرمائي.دده لاس دالله تعالى لاس شي.چه په هغې سره نيول كوي.دده نظر دالله تعالى نظر شي.چه په هغې سره كتل كوي.دده اوريدل دالله تعالى اوريدل شي.چه په هغې سره دے اوريدل كوي.دلته كښې هم دغه كيفيت ته اشاره ده.حضرت اوفرمائيل.چه په داسې كيفيت راتلو باندے الله تعالى د خپل بنده سره داسې محبت كوي.لكه څنګه چه پلار بچي سره كوي.

⑬ دترمذي درس به داول نه ترآخره پورے پوره تحقيق اوتفصيل سره وو.

⑭ دحضرت په درس كښې د سماع من الشيخ او قرات على الشيخ، د دواړو رواج وو.په اول كښې به عام طور قرات على الشيخ وو.طالب علم به لوستل كول. او د كال په آخر كښې به د مازيګر او ماسخوتن نه پس سماع من الشيخ وه.حضرت به په خپله قرات كولو.بالكل د كال په آخره كښې د سالانه امتحان نه پس چه به كله د بخاري ختم وو.نو د سرد طريقه به ئې اختياروله.څو طالبان به مقرر وو.هغوى په قرات كولو.په كوم كال د تقسيم هند نه وړاندے چه احقر په درس كښې شريك وو.نو د سالانه امتحان نه پس ئې تقريباً څلورويشت پنځويشت پارے په اته ورځے كښې اووئيلې.اوپه ٢٨شعبان باندے ختم شوے وو.

**تصنيفات:** ① نقش حيات : دا په دوو جلدونو كښې دے.دا د دوى دخپل لاس ليكلي سوانح حيات دي.په دے كښې ددوى خانداني حالات،د تعليم ورځې، د مدينے منورے هجرت وغيره او دخپل شيخ سره د مالټے د قيد حالات ذكر دي.ددے څخبرو سره سره د هندوستان سياسي حالات خاص كر د انګريزانو چالبازي او دهغوى سياسي دهوكه بازو باندے تفصيلي تبصرے دي.② الشهاب الثاقب على المسترق الكاذب.دا كتاب د مولانا احمد رضا خان بريلوى په رد كښے دے.چاچه د اكابرينو عالمانوتكفير كړے وو.③ د دوى مكاتيب چه د

مکتوبات شیخ الاسلام په نوم په څلورو جلدونو کښے چهاپ شوی دی.④ معارف مدینه دا ددوی د درس ترمذی شریف تقریر دے.چه په دوو جلدونو کښے شائع شوے دے.
⑤ اسیر مالٹا⑥ مودودی دستور کی حقیقت ⑦ متحده قومیت وغیره
**بیبیانې او اولاد** د دوی اوله نکاح په کال ۱۳۱۲ کښے دطالب علمئ په زمانه کښے د ۱۶ کالو په عمر کښے شوے وه.بی بی محترمه په مدینه منوره کښے ۱۳۲۶ھ کښے وفات شوه. د هغوی نه یوه جینئ زهره بی بی پیدا شوه.هغه په دمشق کښے په کال ۱۳۳۷ھ کښے وفات شوه.دویمه نکاح ئے د حافظ زاهد حسن مرحوم د لور سره اوشوه.چه دهغے نه دوه خامن الطاف احمد او اشفاق احمد پیدا شول.د محترمے بی بی او دواړو خامنو وفات ئے د مالټے د قید په زمانه کښے په مدینه منوره کښے اوشو.دریمه نکاح ئے د دویمے بی بی د کشرے خور سره اوشوه.چه دهغے نه مولانا محمد اسعد او یوه لور پیدا شوه.د لوروفات ئے په ماشوموالی کښے په سلټ کښے او د محترمے بی بی وفات ئے په کال ۱۳۵۵ھ کښے په دیوبند کښے اوشو. څلورمه نکاح ئے د مشر تره دمحمد بشیر صاحب دکونډے لورسره اوشوه.چه دهغے نه ئے اووه اولاد پیدا شول.د کشری بچی د پیدائش په وخت کښے د حضرت عمر تقریباً اتیا کاله وو. د وصال په وخت کښے ددوی درے خامن او څلور لونړه وئ.مولانامحمد اسعد، مولانا محمد ارشد، مولانا محمد اسجد، ریحانه، عمرانه،صفوانه، فرحانه سلهم الله تعالی وحفظهم. مولانامحمداسعد مدنی د جمیعت علماء هند صدر،مولانا محمد ارشد مدنی په دارالعلوم دیوبندکښے دحدیثواستاذ، اومولانا محمد اسجدمدنی د جمعیت علماء هند ناظم دے. ماشاء الله خلف الصدق اوصاحب اولاددی.﴿یَاَیَّتُهَا النَّفۡسُ الۡمُطۡمَئِنَّةُ ارۡجِعِیۡۤ اِلٰی رَبِّکِ رَاضِیَةً مَّرۡضِیَّةً﴾
دجولائی په نیمه میاشت کال ۱۹۵۷ء کښے ورته د سفرپه دوران کښے د ساه تکلیف شروع شو.سفر ئے پریخودلو.اوواپس دیوبند ته راغلو.د مرض سلسله ئے جاری وه.اود ساه تکلیف ئے د زړه په مرض کښے بدل شو.د دوائی، علاج او پرهیز سلسله ئے هم جاری وه.د ملاقاتونو عباداتواو سبق معمول ئے هم برقرار وو.په ۲۸ محرم کال ۱۳۷۷ھ کښے د بخاری آخری درس ورکړلو.ددے نه پس ئے مرض زیات شو.طبیبان او ډاکټران جمع شول.دوایانے علاج او خوراک ئے ورته هم اوخودل.کله به په هوش کښے هم راغلو.خو﴿کل نفس ذائقة الموت﴾ آخر په جمادی الاولی ۱۳۷۷ھ مطابق ۵دسمبر ۱۹۵۷ء کښے د ماسپخین نه وراندے شیخ الاسلام والمسلمین آیة من آیات رب العالمین، گده نشین د شیخ الهند رحمه الله خلیفه مجاز د قطب عالم مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله یادګار دحجة الاسلام مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله نقیب حاجی امدادالله صاحب مهاجر مکی شیخنا وسندنا مولانا سید حسین احمد مدنی رحمه الله دالله تعالی د ډیرمخلوق نه په مخه بنه واخستلو.او د رفیق اعلی سره ملاؤ شو.
﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّاۤ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ﴾ آسمان راحق بود گر خون ببارد بر زمین(۱)

---

(۱) دا ټول حالات د نزهة الخواطر (ج،۸) پرانے چراغ، مشاهیرعلماء دیوبند، چراغ محمد او شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مدنی نه ماخوذ دی.

## شيخ الهند حضرت مولانا محمود الحسن صاحب رحمه الله

دحضرت شيخ الهند پيدائش په کال ۱۲۶۸ھ مطابق ۱۸۵۱ء کښې د جنگ آزادئ نه شپږ کاله وړاندې شوې وو.ددوی پلار حضرت مولانا ذوالفقار علی رحمه الله ډير متبحر عالم،دحضرت گنگوهی رحمه الله په ملگرو کښې او د ديوبند په استاذانو کښې وو.علم ادب سره ئې خصوصي مناسبت وو.په عربي ديوانونو د دوی حواشي معروف او مشهورې دی.

ددوی تصانيفو کښې ① التعليقات على السبع المعلقات ② تسهيل البيان فى شرح الديوان للمتنبى ③ تسهيل الدراسة شرح ديوان الحماسة ④ الإرشاد إلى قصد بانت سعاد ⑤ عطر الوردة شرح قصيدة البردة او ⑥ تذكرة البلاغة.په دې آخري کتاب کښې دوی علم معاني اوبيان په ډيرښه طريقه په اردو ژبه کښې بيان کړی دی.اود ،،معاني،، قواعد او مثالونه ئې په اردو کښې داستاذانو د کلام نه پيش کړی دی.اوکمال ئې کړې دې.

حضرت شيخ الهند ابتدائي تعليم په مکتب کښې حاصل کړې وو.قرآن کريم د مياں جي منگلوری صاحب نه، دفارسئ ابتدائي کتابونه د مولوی عبداللطيف صاحب نه او د عربئ ابتدائي کتابونه د تره مولوی مهتاب علی صاحب نه لوستی وو.

۱۲۸۳ھ کښې چه کله ددوی عمر پنځلس کاله وو.د مدرسه عربيه ديوبند بنياد کيخودې شو.ددې د ټولو نه اولنې استاذ ملا محمود وو.اود ټولونه اولنې شاگرد ،،محمود الحسن،، وو.لکه چه د ديوبند ابتداء د محمودين نه شوې وه.په ديوبند کښې د دوی نور استاذان مولانا سيد احمد دهلوی رحمه الله او مولانا محمد يعقوب نانوتوی رحمه الله وو.

۱۲۸۶ھ کښې ئې کتب سته اوبعضې نور کتابونه د حجة الاسلام حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله نه شروع کړل.په سفر او حضر کښې به ورسره وو.او په مزه مزه ئې په کال ۱۲۸۹ھ يا ۱۲۹۰ھ کښې ټول کتابونه ختم کړل.په راروان کال کښې دوی دمعين مدرس په طور اولگيدلو.په اول کښې دا تقرری اعزازی طور بغير د تنخواه نه وه.خو په بل کال کښې دويم ځلورم مدرس اوگرځولې شو.بيا څه وخت چه کله د حضرت مولانا محمد يعقوب نانوتوی وفات شو وو.اودهغوی نه پس مولانا سيد احمد دهلوی صدر مدرس جوړ شو.نوهغوی د دارالعلوم نه مستعفي شو. او بهوپال ته لاړلو.نودوی په کال ۱۳۰۸ھ کښې دتدريس صدارت اوسپارلې شو.ترآخر عمر پورې هم د تدريس د صدارت په منصب باندې باقي وو.

حکيم الاسلام قاری محمد طيب رحمه الله فرمائي.چه حضرت شيخ الهند مسلسل څلويښت کاله د حديثو درس ورکړې وو.او په دې دوران کښې ئې اته سوه اته د اوچت استعداد خاوندان عالمان اود علومو اوفنونو فاضلان اوماهران پيدا کړل.ددوی د حديثو درس په هغه زمانه کښې يو امتيازی شان لرلو.او د عالمانو مرجع وو.د هغه زمانې عالمانو دوی ،محدث عصر،، منلې وو.

**د دوی شاگردان:** ددوی په ممتاز ترينو شاگردانو کښې حضرت حکيم الامت مولانا اشرف علی تهانوی شيخ الاسلام حضرت حسين احمد مدنی امام العصر حضرت مولانا انورشاه

كشميرى مولانا عبيدالله سندهى مولانا مفتى محمد كفايت الله علامه شبيراحمد عثمانى شيخ الادب مولانا محمد اعزازعلى،مولانا سيد فخرالدين مراد آبادى،مولانا عزيرگل رحمهم الله وغيره حضرات اكابرين رحمهم الله تعالى دى.

**حضرت شيخ الهند او تحريک آزادى او وفات** ۱۸۵۷ء كښې دحضرت شيخ الهند رحمه الله عمر شپږ كاله وو.دا د هندوستان د مسلمانانو دپاره د آزادى هند كال وو.كوم ته چه انګريزانو د ..غدر.. نوم وركړے وو.دا جنګ آزادى ناكامه شو.ددے نه پس انګريزانو په مسلمانانو ظلمونه شروع كړل.د ظلم اوبربريت دغه ټول واقعات د حضرت شيخ الهند رحمه الله دسترګو د وړاندے وو.دوى د هغې عينى شاهد وو.دغه شان د انګريزانو سره دشمنى په ميراث كښې د پاتے كيدو نه علاوه د عينى شهادت په بنياد باندے على وجه البصيرة وو.نو چه يو طرف ته دوى په ظاهره په درس او تدريس كښې مشغول وو.نوبل طرف دوى د اكابرينو دمشن پوره كولو اود جهاد په تيارئ كښې مصروف وو.دوى د انګريزانو د ظالمے پنجې نه د آزادولو دپاره يوه جامع منصوبه تياره كړے وه.او ددے دپاره ئے د ډير وړاندے نه تيارے كړے وو.د خپلوشاګردانو جال ئے خور كړلو.يو طرف ته ئے شمالى حدودو او افغانستان سره رابطه وه.اوبل طرف ته ئے خلافت عثمانيه سره خبره اتره برابر كړے وه.دوى په دے سلسله كښې د حجاز مقدس سفر اوكړلو.۱۳۳۳ھ كښې دوى حجاز ته تشريف يوړلو.اوهلته ئے د تركى والى غالب پاشا سره ملاقات اوكړلو.په مدينه منوره كښې وزير حرب انورپاشا او دعثمانى فوځونو د سربراه جمال پاشا سره ملاقات اوكړلو.هغوى سره ئے انګريزان د هندوستان نه د ويستلو اود هندوستان د مسلمانانو سره د مدد په باره كښې پوره خبره اوشوه.د هغوى نه ئے يو پټ تحرير هم واخستلو.د دوى اراده وه.چه د ايران په لاره دهندوستان په شمالى حدودو په آزادو علاقو كښې پاتے شى.او دهغه ځائے نه پوره تحريك شروع كړى.خوانګريزان ددے كاروان په ګنګوسى پوهه شوى وو.په هغه وخت كښې د مكے ګورنر شريف حسين وو.هغه د خلافت عثمانى نه بغاوت اوكړلو.او د انګريزانو سره ئے ساز باز اوكړلو.نو دهغه په ذريعه انګريزانو شيخ الهند او د دوى ملګرى بنديوان كړل.او بيا د مصر په لاره مالټے ته اورسولى شول.هلته دوى ۱۳۳۸ھ پورے د قيد مشقت په صبر او استقلال سره برداشت كړل.او په ۱۳۳۸ھ كښې دوى ته د هغه ځائے نه خلاصے ملاؤ شو.

چه هندوستان ته راورسيدل.نو اهل هند د دوى يو زبردست استقبال اوكړلو.دوى د هندوستان د خلقود زړونو مالك ګرځيدلے وو.خلق د پتنګانو په شان ددوى د زيارت دپاره راتلل.په هندوستان كښې ددوى د مقبوليت اندازه ددے نه كيږى.چه د ،،شيخ الهند،، لقب د دوى په نوم باندے غالب راغلو.په عوامو او خواصو كښې دوى په دے لقب باندے مشهور شو.د جيل مشقتونو او پرله پسے بيماريانو دوى ډير كمزورى كړى وو.ددوى اندامونو كار پريخودل.خودوى د دے تكليفونه پرواه اونكړله.او د هندوستان د ټول ښارونو دوره ئے اوكړله.تقريرونه ئے اوكړل.د انګريز د حكومت نه ئے د بيائكاټ حكم وركړلو.هم په دے دوران كښې ئے دهلى ته تشريف راوړے وو.او هم دلته په ۸ربيع الاول كال ۱۳۳۹ھ كښې مالك حقيقى سره ملاؤ شو.دوى دويوبند ته راوړلے شو.اود خپل استاذ حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوى رحمه الله سره په خوا كښې دفن كړے شو.

دهند مؤرخ علامه عبدالحی حسنی رحمه الله په کتاب ..نزهة الخوطر..کښې چه د دوی کومه صوری او معنوی نقشه رانقل کړې ده.هغه ډیره جامع ده.فرمائی.

«كان مولانا محمود الحسن آية باهرة في علو الهمة وبعد النظر والأخذ بالعزيمة، وحب الجهاد في سبيل الله،قد انتهت إليه الإمامة في العصر الأخير في البغض لأعداء الإسلام والشدة عليهم، مع ورع و زهادة واتصال إلى الله بالقلب والقالب والتواضع والإيثار على النفس، وترك التكلف، وشدة التقشف والإنتصار للدين والحق، وقيام في حق الله وكان دائم الإبتهال، قوى التوكل ثابت الجأش ،سليم الصدر، جيد التفقه، جيد المشاركة في جميع العلوم العقلية والنقلية مطلعاً على التاريخ، كثير المحفوظ في الشعر والأدب ،صاحب قريحة في النظم، واضح الصوت، موجز الكلام في إفصاح وبيان،تمتاز دروسه بالوجازة والدقة والإقتصار على اللب، كثير الأدب مع المحدثين والأئمة المجتهدين ،لطيفاً في الرد والمناقشة كان قصيرا لقامة نحيف الجثة أحمر اللون، كث اللحية في توسط غير متكلف في اللباس عامته من الكرباس الثخين وقور في المشي والكلام، تلوح على محياه أمارات التواضع والهم، وتشرق أنوار العبادة والمجاهدة في وقار وهيبة مع بشر وانبساط مع التلاميذ والإخوان»

**تصنيفات**: دحضرت شیخ الهند رحمه الله تصانیف زیات نه دی.ځکه چه اولنی پنځه ویشت کاله خوئې په درس او تدریس کښې تیر شوی وو.اوددې نه پس ژوند ئې په مجاهدانو سرګرمو کښې تیر شوې وو.خو بیا هم چه څومره ددوی یادګار تصانیف دی.هغه دا دی.

① **ادله کامله**: دا دحضرت شیخ الهند رحمه الله د ټولو نه اولنئ تصنیف دے.ددې دویم نوم ..اظهار الحق.. دے.ددے کتاب دتالیف وجه دا وه.چه مولانا محمد حسین بټالوی په حنفی مذهب باندې اعتراض کولو.اویو اشتهار ئې شائع کړے وو.او د ټول هندوستان حنفیانو ته ئې چیلنج ورکړے وو.چه رفع الیدین، قرات خلف الامام ،آمین بالجهر، وغیره لس مسئلې که حنفی عالم په قرآن اوحدیث سره ثابتې کړی.نو دهرې مسئلې په بدله کښې به لس روپۍ انعام حاصل کړی.حضرت شیخ الهند رحمه الله د خپل استاذ په اشاره او حکم قلم راواخستلو.او د اختصار باوجود ئې ډیر مدلل جواب اولیکلو.او ورسره ئې د غیر مقلدینو په مسلك یوولس اعتراضات اوکړل.

② **ایضاح الادله** : دا د ..مصباح الادله.. مصنفه محمد احسن امروهی جواب دے.

③ **احسن القرى في توضيح اوثق العرى**: په دے رساله کښې ئې ثابته کړے ده.چه په کلی کښې د جمعې مونځ کول جائز نه دی.

④ **جهد المقل في تنزيه المعز والمذل** مولانا احمد حسن پنجابی د ..امکان کذب.. په مسئله کښې په حضرت شاه اسماعیل شهید اود هغه په معتقدینو باندې سخت ترین اعتراضات کړی وو.حضرت شیخ الهند رحمه الله دهغه اعتراضاتو ډیر محکم او مسکت جواب اولیکلو.

⑤ **افادات محمود**:دا کتاب ددوی د دوو مضمونونو مجموعه ده. ⑥ **الابواب والتراجم**

دا رساله د بخاری شریف د خو بابونو ترجمه ده.چه مختصره خو جامع ده.دا د اسلرت مالتا یادگار دے. ⑦حاشیه مختصر المعانی ⑧ تصحیح وتعلیقات سنن ابی داود ⑨فتاوی ⑩کلیات شیخ الهند رحمه الله ⑪ مکتوبات شیخ الهند رحمه الله

⑫ ترجمه د قرآن کریم او تفسیری حواشی تر سورة نساء

دا ترجمه د حضرت ډیره لویه کارنامه ده.ددے افادیت او عمومیت د هندوپاك نه بهر هم شته.د سورة نساء پورے حواشی هم ددوی د قلم دی.باقی د دوی قابل فخر شاگرد شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله مکمل کړی دی.(١)

**قاسم العلوم والخیرات حجه الاسلام حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله**

عالم اجل، شیخ کبیر، حجة الاسلام، حضرت مولانا محمد قاسم بن اسدعلی بن غلام شاه بن محمد بخش صدیقی نانوتوی رحمه الله په قصه ،،نانوته،، کښے په کال ۱۲۴۸ھ مطابق ۱۸۳۳ء کښے پیدا شوے وو.د دوی تاریخی نوم ،،خورشیدحسین،، دے.

**تعلیم**: ابتدائی تعلیم ئے په خپل وطن کښے حاصل کړلو.او د مکتب د تعلیم نه پس دارالعلوم دیوبند ته اولیږلے شو.هلته ئے څه ورځے د مولوی مهتاب علی (د شیخ الهند تره) نه عربی شروع کړه.بیا څه زمانه پس نیکه شیخ وجیه الدین ته سهارنپور ته منتقل شو . نیکه ئے په خپله هم عالم او په فارسئ پوهیدونکے وو.او د اردو شاعر هم وو.دهغوی د صحبت نه علاوه دوی هلته د مولوی محمد نوازسهارنپور نه د فارسئ اوعربئ څه کتابونه اووئیل.د نیکه د وفات نه پس دوی د سهارنپور نه ،،نانوته،، ته واپس راغلو.۱۲۵۹ھ په آخرکښے مولانا مملوك علی نانوتوی دوی د خان سره دهلی ته بوتلو.هلته کښے ئے کافیه او نور کتابونه اووئیل.ددے نه پس دوی په دهلی کالج کښے داخل کړے شو.په دهلی کالج کښے د داخلیدو نه وړاندے دوی د مولانا مملوك علی نه د منطق،فلسفه، اوکلام کتابونه میرزاهد، قاضی مبارك، صدرا، شمس بازغه، وغیره هم دهغوی په کور کښے اووئیل.... په آخرکښے هغه حلقه درس ته حاضر شو.کومه چه دقرآن اوحدیث علوم په علومو کښے په پوره هندوستان کښے مرکزی حیثیت لرلو.دحضرت شاه ولی الله دهلوی رحمه الله په مسند علم باندے حضرت شاه عبدالغنی مجددی رحمه الله جلوه گروو.دهغوی نه ئے علم حدیث زده کړلو.د طالب علمئ په زمانه کښے ددوی د ذهانت، علم وفضل، اوفهم وفراست شهرت عام شوے وو.

**دعلم حاصلولو نه پس ذریعه معاش او د تدریس مشغله**

دتحصیل علم نه پس مولانا نانوتوی رحمه الله دخپل ذریعه معاش دپاره د حضرت مولانا احمدعلی سهانپوری رحمه الله په مطبع احمدی کښے د کتابونو د تصحیح کار اوکتلو . هم په دغه زمانه کښے د حضرت مولانا احمدعلی سهارنپوری رحمه الله په فرمائش ئے د صحیح بخاری

---

(١) دا ټول حالات د ،،نزهة الخواطر،، (۴۶۵/۸.۴۶۹) العناقیدالغالیه (ص.۹۸.۹۴) اومشاهیر علمائے دیوبند (١ ۵۶۵.۵۷۶) نه ماخوذ دے.د تفصیلی حالاتو او کمالاتو دپاره اوگورئ ،،حیات شیخ الهند،، از حضرت میان سید اصغرحسین صاحب رحمه الله

په آخري څو پارو باندے د حاشیه لیکلو کار هم اوکړلو.
د دوی یو غټ خصوصیت دا وو.چه دوی درس وتدریس کله هم ذریعه دمعاش نه ده ګرځولے.چه مالدارنه وو.نود مجبورئ دوجے ئے نوکری غوره کړه.او په تدریس باندے ئے د اجرت اخستلو په ځائے په مطبع کښے د تصحیح کار کولو.او بیا په تنخواه کښے هم د عام عادت خلاف د زیادت په ځائے د کمی درخواست کولو.او په دومره کمه تنخواه به ئے ګزاره کوله چه په هغے کښے به ډیر په مشکله وخت تیریدلو.دوخت د لویو نه لویه عهده کومه چه یو هندوستانی ته ملاویدے شوه.هغه دوی ته په قول د مولانا محمد یعقوب صاحب رحمه الله دوی ته د سترګو او وریزو په معمولی اشاره ملاویدے شوه.خو دوی په تعلیم باندے نوکری کول خوښ نکړلو.
د کتابونو د تصحیح دا کار ترآخره پورے وو.او دے سره سره د درس اوتدریس سلسله هم همیشه دپاره جاري وه.دصحاح سته نه علاوه ،مثنوی مولانا روم او نور کتابونه به ئے هم لوستلو.خودرس به د مدرسے په ځائے د مطابع د چاردیوراؤ دننه یا په جمات یاکور کښے کیدلو.هلته به خاص خاص شاګردانو د ادب زنګنونه کیخودل .ددوی د تعلیم فیض حضرت شیخ الهند محمودالحسن،مولانا احمد حسن امروهی او مولانا فخرالحسن ګنګوهی رحمهم الله تعالی وغیره غوندے د باکماله نامتوعالمانو داسے ډله پیدا کړه.چه د هغے نظیر د حضرت مولانا شاه عبدالغنی رحمه الله نه پس نه ملاویږی.
**جنګ آزادی او حضرت نانوتوی رحمه الله** : په ۱۸۵۷ء کښے چه کله جنګ آزادی شروع شو. نو حضرت حاجی صاحب رحمه الله دوی د شاملی په محاذباندے سپه سالار مقرر کړلو.دوی په هغے کښے ډیر په مړانه باندے اوجنګیدل.اود شاملی ضلع مظفرنګر تحصیل ئے فتح کړلو.خو دهغه وخت نازك سیاسی حالاتو ورته د شاملی نه د وړاندے تلو موقع ورنکړله.ددے نه پس د ګرفتاریانو سلسله شروع شوه.د دوستانو په ډیر منت زاریٔ باندے په یو کور کښے پټ شو.خو درے ورځے پس رابهر شو.او ښکاره ګرځیدلو.او وے فرمائیل.د درے ورځو نه زیات پټیدل د سنت نه ثابت نه دی.نبی کریم ﷺ د هجرت په موقع صرف درے ورځے پټ شوے وو.یو ځل دوی د دارالعلوم د چهته په جمات کښے وو.چه د پولیس سپاهیان راغلل.دوی په جمات کښے ګرځیدل.چه کپتان ترے تپوس اوکړلو.مولانا قاسم کوم ځائے کښے دے؟ دوی سمدستی یو قدم دهغه ځائے نه اخوا شو.او وے فرمائیل.اوس دلته کښے وو.وے ګورئ.
کپتان غریب په کتلو کښے لګیا شو.او دوی ډیر په اطمینان د جمات نه رابهر شو.او د پولیس د ګیرے نه ئے ځان بچ کړلو.او ورسره بل نزدے جمات ،مسجد شاه رمزالدین،، طرف ته روان شو . کپتان د جمات نه رابهر شو.اوچه دوی ئے په تلو باندے اولیدلو.نو وے وئیل.چه مولانا هم دا معلومیږی.کوم چه روان دے.پولیس هلته لاړلو.او د مسجد شاه رمزالدین محاصره ئے اوکړله.حضرت دهغه ځائے اوتلو.اوبل جمات ته اورسیدلو . غرض دا چه د پولیس دا چکرے او د حضرت دا کردار څه مودے پورے جاری وو.خو دالله په حفاظت پولیس په دوی باندے قادر نشو.

**دارالعلوم دیوبند او دتحفظ اسلام خدمات** دجنګ آزادئ د ناکامیابئ نه پس د دیوبند د اکابرینو په مشوره د دین د حفاظت دپاره په کال ۱۲۸۳ھ مطابق ۱۸۶۶ء کښې د دارالعلوم دیوبند افتتاح اوشوه . حضرت نانوتوی ددے اولنے مدرس حضرت مولانا محمود دیوبندی مقرر کړلو.اوبیا ئے د هغے دپاره راهنما اصول مقرر کړل.

دحضرت نانوتوی رحمه الله د تولو نه لویه او عظیمه کارنامه په هندوستان کښے د دینی علومو دوباره ترقئ دپاره د تعلیمی تحریك احیاء او د مدارس دینیه دپاره راهنما اصول وضع کول دی.چه په هغے باندے د دینی مدارسو د بقا دارومدار دے.ددوی په توجه او ترغیب باندے په مختلفو خایونو کښے دینی مدرسے پرانستے شوے.او بیا دا سلسله تر ننه پورے جاری ده.دینی مدارسو چه د اسلام په حفاظت کښے کوم شاندار کردار ادا کړے دے.هغه د چا نه پټ نه دے.

**داسلام د کلمې اوچتوالې او مولانا نانوتوی** رحمه الله : په هندوستان کښے د انګریزانو داقتدار په دور کښے عیسائیت هم ډیره ترقی حاصله کړے وه.او په هرممکن کوشش سره د هندوستانیانو نه بیا خاص کر مسلمانانانو نه عیسایان جوړولو کوشش کولے شو.د ۱۸۵۷ء د جنګ آزادئ نه پس دے سلسلے ته ډیره ترقی ملاؤ شوه.پادریانو به په بازارونو، میلو او عامو اجتماعاتو کښے په اسلام او نبی ﷺ باندے اعتراضونه کول.حضرت نانوتوی رحمه الله چه د دهلی دقیام په زمانه کښے دا صورتحال اوکتلو.نوخپلو شاګردانو ته ئے اووئیل.چه تاسو هم دغه شان په بازارونو کښے وعظ شروع کړئ.او د پادریانو رد کوئ.دوی یوه ورځ په خپله هم بغیر د تعارف نه او د نوم خودلو نه یوے مجمعے ته اورسیدلو.اود پادری تارا چند سره ئے مناظره اوکړله.اوهغه ته ئے د عامو خلقو په مخ کښے ماتے ورکړلو.دا د ربیع الاول ۱۲۹۲ھ نه تر د جمادی الثانیه ۱۲۹۲ھ په مینځ کښے پیښه شوے واقعه ده.

**میله خدا شناسی**: انګریز حکومت دا یو خطرناك سازش کړے وو.چه هندوان ئے د مسلمانانو خلاف اودرولی وو.په هندوستان کښے مسلمانانو ته سیاسی اهمیت حاصل وو.انګریزانو دخپلے پالیسئ لاندے هندوان اوچت کړل.او مسلمانان ښکته کړل.کله چه په سیاسی او معاشی میدان کښے هندوان وړاندے شول.نوهغوی ته ئے د مذهبی برترئ لاره اوخودله. او هندوان ئے د مسلمانانو په مقابله کښے مناظرے ته تیار کړل.اوددے مواقع ئے ورته پیدا کولے. چه هندوان د مسلمانانو سره برسرعام مناظرے اوکړی.

شاه جهان پور (یوپی) ته نزدے چاندا پورکلی کښے د هغه ځائے زمیندار پیارے لال کبیر پنتهی.د پادری نولس په مشرئ کښے اود رابرټ جارج ککټر شاهجهان په پوره تائید او اجازت سره په مئ ۱۸۷۶ء کښے یوه میله خدا شناسی مقرر کړله.په دے کښے عیسایانو، هندوانو او مسلمانانو د درے واړه مذاهبو نمائندګانو ته د اشتهاراتو په ذریعه دعوت ورکړے شو.چه دوی د خپل خپل مذهب حقانیت ثابت کړی.د مولانا محمد منیر نانوتوی،او مولوی الهی بخش رنګین بریلوی په تحریك باندے حضرت نانوتوی رحمه الله ،مولانا محمود حسن. مولانا رحیم الله بجنوری رحمه الله او مولانا فخرالحسن رحمه الله په یوځائے دے میلے ته اورسیدل. ددوی نه علاوه نور نامور عالمان هم شریك شول.اوهغوی تقریرونه اوکړل.چه

دهغې د ډير اثر اوشو. حضرت نانوتوی د ابطال تثليث وشرك او اثبات توحيد داسې بيان كړل چه حاضرين جلسه كه موافق وو او كه مخالف ټولو اومنله.
په دويم كال په مارچ ١٨٧٧ء كښې دا ميله بيا منعقده شوه. دے خل منشى اندرمن مراد آبادى اود آريه سماج بانى پنډت ديانند هم شريك شو. پادرى نولس يو بل پادرى اسكاټ هم راغوښتے وو. دحضرت نانوتوى رحمه الله تقارير د وجود، توحيد، او تحريف په موضوعاتو باندے اوشو اوډير كامياب وو.
**د رړكى مناظره** په شوال ١٢٩٤ھ مطابق ١٨٧٧ء كښې حضرت نانوتوى رحمه الله د عالمانو د يوے ډلے سره حج ته لاړل. په ربيع الاول ١٢٩٥ھ كښې راواپس شول. په واپسى كښې د جده نه د حضرت نانوتوى رحمه الله طبيعت خراب شو. چه وطن ته راورسيدلو نو طبيعت ئے څه ښه شو خو مرض ختم نه شو. هم په دغه كال په شعبان ١٢٩٥ھ كښې ورته د رړكى نه خبر راغلو چه پنډت ديانندجى دلته رارسيدلے دے. او په مذهب اسلام باندے اعتراض كوى. حضرت مولانا نانوتوى رحمه الله د كمزورئ اوبيمارئ باوجود رړكى ته اورسيدلو. ډير ئے اوغوښتل چه په عامه مجمع كښې پنډت جى سره خبرے اوشى. خو هغه دے ته تيار نشو. او د رړكى نه لاړلو. دحضرت نانوتوى رحمه الله په اشاره باندے حضرت مولانا فخر الحسن صاحب گنگوهى او حضرت مولانا محمود حسن صاحب رحمهما الله په عامو جلسو كښې تقريرونه شروع كړل. او پنډت جى ته ئے د مناظرو چيلنج وركړلو. حضرت نانوتوى رحمه الله په جلسه عام كښې د هغه د اعتراضاتو جوابونه وركړل.
ددے نه پس پنډت جى ميرټ ته اورسيدلو. هغه هلته هم هغه انداز اختيار كړلو. د ميرټھ د مسلمانانو په درخواست باندے مولانا نانوتوى رحمه الله هلته هم تشريف يوړلو. پنډت جى هلته هم خبرے كول قبولے نكړلے. مجبوراً حضرت نانوتوى رحمه الله په ميرټھ كښې په عامه مجمع كښے د پرزور تقرير په ذريعه د اعتراضاتو جوابونه وركړل.
**د كونډو د نكاح اصلاح:** دحضرت نانوتوى رحمه الله په عظيم الشان معاشرتى او اصلاحى كارنامو كښې يوه كارنامه دا هم وه. چه د كونډو د نكاح رواج ئے عام كړلو. د ديارلسمے صدئ آخره پورے د كونډو سره نكاح كول ډيره دعيب خبره گڼړلے شوه. خلقو به دا نظريه بده گڼړله. خو ددے رسم ختمولو په چا كښې همت نه وو. دحضرت سيد احمد شهيد، حضرت مولانا محمد اسماعيل شهيد، حضرت مولانا مملوك على حضرت مولانا مظفرحسين كاندهلوى، حضرت مولانا محمد احسن نانوتوى، او حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوى رحمهم الله تعالى په كوششونو د كونډو د نكاح رواج عام شو. حضرت نانوتوى خپله كونډه خور چه په عمر كښې ددوى نه زياته وه. اوبوډئ شوے وه. په نكاح باندے آماده كړله. او دا قبيح رسم ئے په دے طريقه باندے ختم كړلو. چه اوس دلته څوك دا هم نه پيژنى. چه دلته دا رسم موجود وو.
**عاجزى او استغناء:** په مزاج كښې ئے تواضع عجز او انكسارى دومره وه. چه د عالمانو مخصوص وضع جبه، پټكے وغيره ددے استعمال ئے چرته نه وو كړے. د تعظيم نه به ډيرويريدلو. فرمائيل به ئے دے. د علم دے نوم خراب كړم. گنى د خپله وضع به مے داسے په خاورو كښې ملاو كړے كړے وه. چه چا به دا هم نه سېژندل. چه قاسم نومے كس پيدا شوے هم

دے په کومو کارونو کښے چه د شهرت پیدا کیدو موقعه وه.دهغے نه به اکثر لرے اوسیدلو. بیا داستغناء او پرهیزګارئ نے دا شان وو چه تولو ته معلومه ده.چه دارالعلوم دیوبند هم د دوی د لاس جوړ شوے وو.خوهیڅ کله ئے د څه څیز نه فائده نه ده اخستے.په شروع شروع کښے اهل شوری درخواست کړے وو چه تاسو هم ددے مدرسے استاذی قبول کړئ.اودهغے په عوض کښے څه وظیفه هم.خو قبول ئے نکړلو.اوکله ئے هم په هیڅ صورت کښے د یوے جبے هومره هم د مدرسے نه اخستل روا نه دی کنړلے.حالانکه شپه اورځ به د مدرسے په خیګړه کښے مشغول وو اوپه تعلیم کښے به مصروف وو.اوکه کله به ئے د مدرسے په قلم او دوات خپل ذاتی خط نیکلو.نو سمدستی به ئے یوه آنه د مدرسے په خزانه کښے داخله کړه.

## حضرت نانوتوی رحمه الله د خپل شیخ سیدالطائفه حضرت حاجی د امدادالله صاحب مهاجر مکی په نظرکښے

حضرت نانوتوی رحمه الله د سلوك منازل د سیدالطائفه حضرت حاجی امدادالله صاحب مهاجر مکی په لاس باندے بیعت کړے وو.اوحاصل کړی وو.د سلوك د تکمیل نه پس په څلورو واړو سلسلو کښے دهغوی خلیفه مجاز شو.

دحضرت حاجی رحمه الله صاحب په نظر کښے د دوی څه مقام وو.ددے اندازه ددے لاندینو جملو نه لګولے شی.دوی به فرمائیل.

..خوك چه ددے فقیر سره محبت اوعقیدت ساتی.مولوی رشید احمد صاحب سلمه اومولوی محمد قاسم صاحب سلمه دے چه د ظاهری اوباطنی علومو د ټولو کمالاتوجامع دی.زما په ځائے دے بلکه زما نه زیات دے هغوی لوئے اوګنړی.اګرچه معامله برعکس ده.پکار دا وه.چه زه دهغوی په ځائے اوهغوی زما په ځائے وو.دهغوی صحبت غنیمت اوګنړئ.دهغوی پشان کسان په دے زمانه کښے نشته.،،

دغه شان فرمائی.،،که الله تعالی زما نه تپوس اوکړی.چه امدادالله څه دے راته راوړی دی؟ نو مولوی رشید احمد او مولوی محمد قاسم به ورته پیش کوم.چه دا مے راوړی دی.

یو ځل د حضرت حاجی صاحب رحمه الله په مجلس کښے د حضرت شاه اسماعیل شهید ذکر اوشو.او دهغوی مناقب بیانولے شو.نوحضرت مولانا نانوتوی رحمه الله ته اشاره اوکړه.او وے فرمائیل.مولانا اسماعیل خو وو اسماعیل.خوك خو زمونږ اسماعیل ته هم اوګورئ.،

## حضرت نانوتوی رحمه الله د خپل معاصر سرسید احمد خان په نظرکښے

سرسید احمد خان د مولانا نانوتوی رحمه الله صرف یواځے همعصر نه وو.بلکه استاذ الاساتذه مولانا مملوك علی صاحب نانوتوی رحمه الله نه په شاګردئ کښے هم شریك وو.بیا ددے دواړو حضراتو د عقائدو په سلسله کښے باقاعده خط وکتابت هم وو . د مولانا نانوتوی رحمه الله په باره کښے د هغوی شهادت یو وقیع او ممتاز حیثیت لری . هغوی لیکی.

..دخلقو دا خیال وو.چه د مولانا محمد اسحاق پشان کس به دهغه په ټولو صفاتو کښے پیدا نشی.خو مولوی قاسم صاحب د خپل کاملے نیکئ،دینداریٔ اوتقوی اوورع او مسکینئ نه ثابته کړه.چه ددے دهلی د تعلیم او تربیت دپاره د مولوی اسحاق صاحب پشان یوبل شخصیت هم الله تعالی پیدا کړے دے.بلکه به څوخبرو کښے نو زیات هم دے.

داول نه د تقوى او ورع آثار اونيك بختى اوخدا پرستى دهغه د كړو اوړو نه ښكاره وو.د طالب علمئ په زمانه كښے چه لكه څنګه هغوى په ذهانت، اوچتو دماغو او فهم اوفراست كښے مشهور وو.دغه شان په نيكئ او خدا پرستئ كښے هم داهل اوكمال د ژبو ورد وو.دوى د جناب مولوى مظفرحسين صحبت د سنت تابعدارئ ته ډير زيات راغب كړے وو.او دحاجى امداد الله صاحب رحمه الله فيض صحبت د دوى زړه د ډيرے اوچتے مرتبے جوړ كړے وو.پخپله هم د شريعت اوسنت پابند وو

.اوخلق د شريعت اوسنت تابعدرا جوړولو كښے ئے هم ډير زيات كوشش كولو د دے باوجود دعامو مسلمانانو د خيګړے ورسره هم فكر وو.هغوى پخپله د پيرئ اومرشدئ خواهش نه لرلو.خو په هندوستان او خواه شاه كښے په زرګونو كسان دهغوى معتقد وو.اودوى به ئے خپل پيشوا اومقتدا ګڼړلو.

په اختلافى مسائلو كښے بعضے خلق ددوى نه خفه وو.او د بعضو نه دوى خفه وو.خوترڅومره چه زمونږ پوهه ده.نومونږ د مولوى محمد قاسم رحمه الله يو فعل كه د چا نه د خفګان وى اوكه د چا نه د خوشحالئ وى.د نفسانى خواهشاتو.يا په ضد او دشمنئ باندے نشو حمل كولے.دهغوى چه څومره افعال اوكارونه وو.بيشكه د الله تعالى او دآخرت دثواب په غرض وو.اوكومه خبره چه به هغوى حق اوربښتينے ګڼړله .د هغے تابعدارى به ئے كوله.اودهغوى دچا نه خفګان صرف دالله تعالى دپاره وو.او د چا نه خوشحاله كيدل هم صرف دالله تعالى دپاره وو.مولوى محمد قاسم به هيڅ څوك د خپل ذاتى تعلقاتو په وجه ښه يا بد نه ګڼړلو.بلكه صرف په دے خيال چه هغه غلط كار كوى.يا غلطه خبره كوى.هغه به ئے دالله تعالى دپاره بدګڼړلو.د هغوى په كردار كښے به د حب في الله او بغض في الله مسئله وه.دهغوى ټول خويونه د فرشتو پشان وو.مونږ ټول د زړه نه دهغه سره محبت ساتو.اوداسے شخصيت چه د نيكو نه ئے خپل ژوند ډك كړے وى.بيشكه د ډير محبت لائق دے.

په هغه زمانه كښے ټولو خلقو منله.اوكيدے شى هغه خلق هم منله.چه په بعضے مسائلو كښے ئے دوى سره اختلاف كولو.دا منله.چه مولوى محمد قاسم رحمه الله په دے دنيا كښے يے مثاله دے.د دوى مرتبه په هغه زمانه كښے كيدے شى.علمى معلوماتو كښے دحضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله نه څه كمه وه.خوپه باقى ټولو كښے د هغوى نه اوچت وو.مسكينى اونيكى اوساده مزاجى كه ددے تله ئے د مولوى محمد اسحاق رحمه الله نه درنه نه وه.نو كمه هم نه وه.په حقيقت كښے فرشته سيرت، اودملكوتى خصلت خاوندوو.او د داسے شخصيت د وجود نه د زمانے خالى كيدل دهغه خلقو دپاره كوم چه د هغوى نه پس ژوندى دى.ډيره د غم او افسوس باعث دے، ،

**تصانيف:** دحضرت نانوتوى رحمه الله د دوو درجنونه زيات تصانيف يادګار دے.هغوى په هغه مسائلو قلم پورته كړے وو.كومے چه په هغه وخت كښے زياتے زيربحث وے.د هغوى ټول كتابونه د چا نه چا د استفسار په جواب كښے ليكلى شوى دى.ددوى تصانيف دا دى.

① تقرير دلپذير ② آب حيات ③ انتصار الاسلام ④ تصفية العقائد ⑤ حجة الاسلام ⑥ قبله نما ⑦ مباحث شاه جهانپور ⑧ توثيق الكلام ⑨ اجوبه اربعين ⑩ مناظره عجيبه ⑪ مكاتيب حضرت نانوتوى

⑬ اسرار قرآنى ⑭ تحفه لحميه ⑮ انتباه المؤمنين ⑯ ميله خدا شناسى ⑰ الدليل المحكم ⑱ لطائف قاسمى ⑲ جمال قاسمى ⑳ فيوض قاسمية ㉑ مصابيح التراويح ㉒ الحق الصريح ㉓ اسرار الطهارة ㉔ قصائد قاسمى ㉕ حاشيه بخارى صرف آخرى پاره ㉖ فتوى متعلقه اجرت تعليم ㉗ جواب ترکی به ترکی ㉘ هدية الشيعة ㉙ الأجوبة الكاملة ㉚ الخط المقسوم من قاسم العلوم.(١)

**وفات** حضرت نانوتوى رحمه الله د يوكم پنځوس كالو په عمر كښې په ۴جمادى الثانى ۱۲۹۷ھ مطابق ۱۸۸۰ء كښې د زيارت په ورځ وفات شو. د دارالعلوم ديوبند شمالى طرف ته ددوى مزار دے.قبر د سنت طريقے مطابق كچه دے.دا ځائے د قبرستان قاسمى په نوم باندے مشهور دے.دلته بيشميره عالمان طالبان. نيكان او نور ډير خلق په خوب اوده دى.(٢)

**حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهى رحمه الله** الشيخ الامام قطب العالم عالم ربانى حضرت مولانا رشيد احمد بن هدايت احمد بن پيربخش بن غلام حسن بن غلام على بن على اكبر حنفى رامپورى ثم گنگوهى رحمه الله دوى د سهارنپور په مشهوره قصبه گنگوه كښې په ۶ذيقعده ۱۲۴۴ھ كښې پيدا شوے وو.قرآن كريم ئے په خپل وطن كښې اووئيل.اودخپل ماما سره كرنال ته لاړلو. او د هغوى نه ئے د فارسئ كتابونه اولوستل.بيا ئے د مولوى محمد بخش رامپورى نه د صرف اونحو تعليم حاصل كړلو.بيا په كال ۱۲۶۱ھ كښې ئے د دهلى سفر اوكړلو. هلته كښې ئے څه سبقونه د قاضى احمدالدين جهلمى نه اووئيل.او بيا شيخ الكل حضرت مولانا مملوك نانوتوى رحمه الله ته اورسيدلو.اوزيات درسى كتابونه ئے د هغوى نه لوستے دى.ددے ځائے نه ئے د حضرت نانوتوى رحمه الله سره تعلق جوړ شو.كوم چه ټول عمر باقى وو.په دهلى كښې ئے د بعضے معقولات كتابونه د مفتى صدرالدين آزرده رحمه الله نه اولوستل.په آخر كښې د شاه عبدالغنى مجددى رحمه الله په خدمت كښې پاتے شو.او علم حديث ئے زده كړلو.

د تعليم د فراغت نه پس د شيخ المشائخ حضرت حاجى امدادالله صاحب رحمه الله په خدمت كښې حاضر شو.او د بيعت شرف ئے حاصل كړلو.په يوه هفته كښې حضرت حاجى رحمه الله اوفرمائيل..مياں مولوى رشيد احمد! كوم نعمت چه الله تعالى ماته راكړے دے.هغه ئے تا ته دركړلو. روستو ددے زياتول ستا كار دے.بيا څلوېښت دوه څلوېښت ورځے پس چه دوى د حضرت حاجى رحمه الله نه رخصت شو اوكور ته تلو.نوپه هغه وخت كښې ئے دوى دبيعت اوخلافت په اجازت مشرف كړلو.اوچه گنگوه ته واپس راغلو.نودحضرت شيخ عبدالقدوس حجره ئے خپل د ستوگنے ځائے اوگرځولو.اوپه هغه دور كښې ئے طب ذريعه د معاش اوگرځوله.

په كال ۱۸۵۷ء كښې د خانقاه قدوسى نه په مړانه اووتلو.اود انگريزانو خلاف په صف كښې اودريدلو.او د خپل مرشد حضرت حاجى صاحب او نورو ملگرو سره د شاملى د جهاد په

---

(١) د تصانيف دتعارف دپاره اوگورئ مقدمة اجوبه اربعين (ص.۲۰-۴۵) از حضرت مولانا صوفى عبدالحميد سواتى مدظلهم ـ

(٢) دا ټول حالات د ..تاريخ دارالعلوم ديوبند.. (۱/۱۰۲-۱۲۲) مشاهير ديوبند (۱/۵۵۱-۵۶۰)او ارواح ثلاثه (ص.۲۱۳) نزهة الخواطر(۷/۳۹۱-۳۹۳) او سوانح قاسمى نه ملخوذ دى.

معرکه کښے شامل شو او بنه مړانه ئے ښکاره کړه کله چه په میدان جنګ کښے حافظ ضامن رحمه الله شهید شو او راپریوتلو نو دوی دهغه لاش اوچت کړلو او نزدے جمات ته ئے یوړلو او ورسره کیناستلو د قرآن شریف تلاوت ئے ورته شروع کړلو.

دشاملي د جنګ نه پس ئے د ګرفتارئ ورنټ جاری شو او دوی ګرفتار کړے شو او د سهارنپور جیل ته اولیږلے شو بیا دوی دهغه ځائے نه مظفرآباد نګر ته منتقل کړے شو. شپږ میاشتے ئے په جیل کښے تیرے شوے هلته ډیر قیدیان د دوی معتقد شول او په جیل خانه کښے په جماعت سره مونځ کول شروع شو.

: خلاصیدو نه پس دوی د درس اوتدریس سلسله شروع کړه دوی دریے حجونه کړی وو د آخری حج نه وړاندے دوی د مختلفو فنونو او علومو کتابونو درس ورکولو د آخری حج نه په واپسئ باندے دوی صرف د صحاح سته درس شروع کړلو د صحاح سته دا موجوده صورت د دوی ایجاد دے چه د صحاح سته درس به ئے په یو کال کښے ورکولو او په رمضان کښے به دعبادت او ریاضت دپاره دوی خپل خان فارغه کولو.

د کال ۱۳۱۴ھ پورے د دوی درس جاری وو د دریے سوو نه زیاتو حضراتو د دوی نه د دوره حدیث تکمیل کړے دے د حدیث په درس کښے د دوی آخری شاګرد حضرت شیخ الحدیث مولانامحمدزکریاصاحب رحمه الله قدرمند پلارحضرت مولانا محمد یحی صاحب کاندهلوی وو. اګرچه د تدریس باقاعده سلسله په ۱۳۱۴ھ کښے ختمه شوے وه خو د باطنی فیض سلسله ئے ترآخره پورے جاری وه.

د دوی ژوند پوره په پوره د سنت د تابعدارئ نه عبارت وو تقوی، دسنتو او شریعت تابعداری، په دین باندے استقامت، د بدعاتو ختمول، دسنت اشاعت او د شعائر اسلام اوچتولو اود دین په معامله کښے دوی دالله تعالی د نښو نه یوه نښه وه.

د دوی په مشرانو خلیفګانو کښے حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپوری، مولانا محمود حسن دیوبندی، مولانا عبدالرحیم رائے پوری، شیخ الاسلام حضرت مولانا حسین احمد مدنی. رحهم الله دی. دغه شان ددوی مشهور شاګردانو کښے حضرت مولانا محمد یحی کاندهلوی. شیخ ماجد علی او مولانا حسین علی رحمهم الله دی.

په کال ۱۲۲۷ھ کښےدحضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله دوفات نه پس دوی د دارالعلوم سرپرست شو. په مشکلو حالاتو کښے د نزاع ختمول ددوی خصوصیت وو. ۱۳۱۴ھ کښے د مدرسه سهارنپور سرپرستی ئے هم قبوله کړه.

په فقه او فتاوی کښے د دوی قول حجت دے حضرت مولانا نانوتوی رحمه الله به دوی ته ابوحنیفه عصر ونیل. حضرت علامه کشمیری رحمه الله چه د علامه ابن عابدین رحمه الله پیشان محقق او وسیع النظرعالم هم فقیه النفس نه ګنړلو. خو حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله قدس سره ئے فقیه النفس ګنړلے وو. (۱)

---

(۱) اوګورئ: البلاغ: مفتی اعظم نمر جمادی الثانیه تا شعبان ۱۳۹۹هګ (ص۴۱۱)_

په ۱۲ یا ۱۳ جمادی الاولی د شپې د نوافلو دپاره راپاسیدلو څه زهریله څیز ورته ټك ورکړلو دهغه د اثر نه په ۸ یا ۹ جمادی الثانیه باندې دجمعې په ورځ د جمعې د اذان نه پس وفات شو ددوی د وفات سن ﴿وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ﴾ او د «مولانا عاش حمیداً مات شهیداً» نه ماخوذ دے

**تصانیف** دوی د سوونو شاګردانو نه علاوه درج ذیل تصنیفات پریخودے دی.

**① فتاوی رشیدیه ② سبیل الرشاد ③ زبدة المناسك ④ هدایة الشیعه ⑤ فیصلة اللاعلام فی دار الحرب ودار الاسلام ⑥ لطائف رشیدیه ⑦ هدایة المعتدی فی قراءة المقتدی ⑧ القطوف الدانیة فی تحقیق الجماعة الثانیة ⑨ الحق الصریح فی اثبات التراویح.**

دغه شان ددوی دجامع ترمذی او صحیح بخاری د درسی افاداتو او تقاریرو مجموعه ددوی شاګرد مولانا محمد یحی صاحب کاندهلوی راجمع کړې دی.تقریر ترمذی د..الکوکب الدری.. په نوم او تقریر بخاری د ..لامع الدراری.. په نوم د حضرت شیخ الحدیث صاحب د قیمتی حاشیواو تعلیقاتو سره چهاپ شوی دی.(۱)

**حضرت شاه عبدالغنی مجددی دهلوی** رحمه الله حضرت مولانا شاه عبدالغنی مجددی رحمه الله د حضرت مولانا ابوسعید مجددی خوئے وو.ددوی نسب نامه د حضرت مجدد الف ثانی په واسطه حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ته رسی.

(دوی قدرمند پلار حضرت شاه ابوسعید صاحب یو متبحرعالم او د سلسله نقشبندیه لوئے بزرګ وو.دوی پیدائش په ذیقعده ۱۱۹۶ھ کښې شوے وو.درسی کتابونه ئے د مولوی شرف الدین رامپوری او شاه رفیع الدین دهلوی رحمهما الله نه وئیلی وو.اجازت نامه ئے دحضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله نه حاصله کړې وه. ۱۲۵۰ھ کښې د حجاز نه واپس راغلو.او په ..ټونك.. کښې وفات شو.دهغه ځائے نه لاش دهلی ته راوړلے شو.او دلته دفن کړے شو.)

شاه عبدالغنی رحمه الله په شعبان ۱۲۳۵ھ کښې په دهلی کښې پیدا شو.قرآن کریم ئے حفظ کړلو.نحو او علوم عربیت ئے د مولانا حبیب الله دهلوی نه حاصل کړی وو.بیا ئے ټوله توجه فقه اوحدیث ته ورکړله.

حدیث ئے دحضرت شاه محمد اسحاق رحمه الله نه وئیلی وو.دخپل پلار نه ئے د مؤطا درس لوستے وو.اومشکاة شریف ئے د مولانا مخصوص الله بن شاه رفیع الدین دهلوی رحمه الله نه وئیلی وو.

۱۲۴۹ھ کښے د خپل پلار سره دحجاز په سفر لاړلو.اوهلته ئے د مولانا عابد سندهی رحمه الله نه استفاده اوکړه.بیا هندوستان ته راغلو.ټول همه تن دعلم حدیث په خدمت کښے مشغول شو.

ددوی درسګاه په هندوستان کښے دټولو نه لویه مرکزی درسګاه وه.د دوی د علم د فیض نه حضرت مولانامحمد قاسم نانوتوی رحمه الله حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله اوحضرت

---

(۱) دا ټول حالات د نزهة الخواطر(۱۴۸/۸-۱۵۲) نه ماخوذ دی.دغه اوګورئ مشاهیر علمائے دیوبند، (۱۸۶_۱۸۹) تاریخ دارالعلوم دیوبند (۱۲۵/۱_۱۲۹) او تذکرة الرشید مصنفه حضرت مولانا محمد عاشق الهی میرټهی رحمه الله

مولانا محمد يعقوب نانوتوی رحمه الله پشان مايه ناز عالمان پيدا شوی دی
د ١٨٥٧ء په هنګامه کښې دعلم حديث دا د تولو نه لويه درسګاه د زمانې د حادثاتو ښکار
شوه اوهميشه دپاره ختمه شوه شاه عبدالغنی مدينې منورې ته هجرت اوکړلو او هلته په
محرم ١٢٩٦ھ کښې وفات شو.-
صاحب د نزهة الخواطر د دوی په باره کښې ليکلی دی.
..علم اوعمل.زهد اوپرهيزګاری،حلم او صبر.صداقت.امانت .عفت اوصيانت.حسن نيت
اواخلاص.رجوع الی الله.دالله تعالی ويره.د سنت تابعداری.حسن اخلاق.د مخلوق سره
احسان کول.اود دنيا او ددې د اسبابو نه بې رغبتی د دوی په ذات باندې ختم وو د دوی د
مجلس نه او ددوی د ساهګانو نه ډير عالمان مستفيد شول.د دوی په ولايت اوجلالت شان
باندې د عربو او هندوستان ټول خلق متفق وو..

په سنن ابن ماجه باندې ښکلې حاشيه ،،انجاح الحاجة،، ددوی علمی يادګار دې رحمه الله
رحمة واسعة (١)

صرف اونحو ئې ترکافيه پورې د مولانا عبدالحی بډهانوی رحمه الله نه وئيلی وو اوباقی درسی
کتابونه ئې د شاه عبدالقادر رحمه الله سره وئيلی وو.دحديث شريف تحصيل ئې د شاه
عبدالعزيز رحمه الله نه کړې وو.د خپل نيکهٔ د وفاته پورې د هغوی په خدمت کښې وو.او دهغوی د
وفات نه پس هم هلته دهغوی ګده نشين شو.
١٢٢٠ھ کښې ئې د حرمينو سفر اوکړلو.هلته ئې د شيخ عبدالکريم مکی (متوفی ١٢٤٧ھ) نه
استفاده اوکړه.بيا هندوستان ته راواپس شو.اومسلسل ترشپاړس کالو پورې ئې د حديثو
درس ورکولو.
په کال ١٢٥٨ھ کښې دوی دخپل اهل وعيال سره مکې ته هجرت اوکړلو.ددوی په لويو
شاګردانو کښې شاه عبدالغنی مجددی ،شيخ عبدالرحمن پانی پتی،سيدعالم علی مراد
آبادی.شيخ عبدالکريم بډهانوی،نواب قطب الدين دهلوی،مولانا احمد علی سهارنپوری،
مفتی عنايت احمد کاکوروی،ميان سيد نذيرحسين دهلوی،مولانا احمدالله بن دليل الله
رحمهم الله تعالی شمار دې.ددوی اکثرشاګردان په حديثو کښې قابل فخر وو.په هندوستان کښې
دحديث سند هم ددوی نه وراندې خی.((وذلك فضل الله يؤتيه من يشاء))
دوی د مشکاة المصابيح په اردو کښې ترجمه کړې ده.کومه چه د دوی په اشاره ددوی
شاګرد مولانا قطب الدين خان صاحب دشرح صورت ته منتقل کړه.کومه چه د مظاهرحق په
نوم باندې نامداره ده.,,مائة مسائل،،او,,رسائل اربعين،، هم ددی قابل قدر تصنيفات دی.
په رجب ١٢٦٢ھ کښې په مکه مکرمه کښې دوی وفات شو.اود مکه په قبرستان ،،معلاة،،
کښې دفن کړې شو.رحمة الله عليه.

(١) داحالات دنزهة الخواطر(٢٩٦،٢٩٧/٧) اوتاريخ دارالعلوم ديوبند (٩٥،٦٩/١) نه ماخوذ دی. دغه شان
اوګورئ مقدمة أوجزالمسالک (٦٥/١،٦٦) او ماتمس إليه الحاجة (ص،٥٤)_

سراج الهند مولانا شاه عبدالعزيز صاحب رحمه الله د نزهة الخواطر د دوی د حالاتو ابتداء داسې کړې ده «الشيخ الإمام العالم الكبير العلامة المحدث عبدالعزيز بن ولي الله بن عبدالرحيم العمري الدهلوي سيد علمائنا في زمانه وابن سيدهم لقبه بعضهم ،،سراج الهند،، وبعضهم ،،حجة الله،،»

ددوی پیدائش په ۲۵ رمضان ۱۱۵۹ھ کښې شوې وو.تاریخی نوم ئې ،،غلام حلیم،، دې. حافظه اوذهانت ئې خدا داد وو.دقرآن کریم سره ئې فارسي هم اوونیله.د یوولس کالو په عمر کښې ئې دعربئ دتعلیم انتظام اوشو.د پنځلس کالو په عمر کښې دټولورائجو علومونه فارغ شو. دوی د حدیث اوفقه تحصیل دپلار نه کړې وو.د قدرمند پلار د وفات نه پس د هغوی بعضې شاګردانو خاص کردهغوی خاص شاګرد مولانا محمد عاشق پهلتي رحمه الله نه ئې تکمیل اوکړلو. چونکه دوی دخپل پلار د ټولو نه مشرې خوئې وو.او په علم او فضل کښې هم د ټولو نه ممتاز وو.نو مسند درس وخلافت هم دوی ته حواله شو.او دوی همه تن په درس وتدریس،هدایت وارشاد، تصنیف وتالیف کښې مصروف شو.

علامه عبدالحي حسني رحمه الله لیکي.

..دوی دخپل علم وفضل،آداب، ذکاوت وذهانت،فهم وفراست،او سرعت حفظ په وجه په دنیا کښې لاثاني وو.د ډیرو خایونو نه به طالبان صرف ددوی نه د سبق وئیلو دپاره راتلل.اودوی ته به داسې لیواله وو.لکه څنګه چه ترږې اوبو ته لیواله وی.

دوی ته په ټولوعلومو متداوله اوفنون عقلیه ونقلیه کښې پوره مهارت حاصل وو . حافظه ئې هم ډیره ښه وه.تقریرئې معنی خیز، مرتب او زړه راښکونکې وو.او دې صفاتو ددوی ذات د عواموخواصو مرجع جوړه کړه. د علواسناد دپاره به خلقو د لرې لرې نه سفرونه کول.اوپه حلقه درس کښې به ئې شرکت کولو.اوسند فراغت حاصلولو دپاره به راتلل.په درس وتدریس،افتاء وتصنیف،فصل خصومات، پندو و موعظت،او دشاګردانو په تربیت کښې به هر وخت مشغول وو. د دوی د وجې په هندوستان کښې د اسلامي علومو خاص کر د حدیث اوتفسیر شهرت اوشو.د مسلمانانو اصلاح اوشوه.اود فتنو سد باب اوشو.د دوی د ښکلې کوششونوني شپئ او عاجزئ اوتوجه په شاګردانو او مریدانو کښې هغه روح پوك وهلو.چه هغه په مسلمانانو کښې انقلاب پیدا کړلو.او دمسلمانانو دیني ،تعلیمي،ثقافتي حالت ئې ښه کړلو.شاه صاحب ته صرف په حدیث فقه،تفسیر،او کلام کښې مهارت نه وو حاصل.بلکه په منطق، فلسفه، او په شعر اوادب کښې ئې هم مهارت لرلو.احادیث ورته ډیر یاد وو.حضرت تهانوی رحمه الله د حضرت مولانا شیخ محمد رحمه الله نه د شاه عبدالعزیز رحمه الله په باره کښې نقل کړې دی.چه هغوی ته شپږ زره احادیث د متن سره یاد وو.

د شاه عبدالعزیز رحمه الله عمر اوس پنځویشت کاله وو.چه سخت مرضونه پرې راغلل .تردې چه په یو وخت کښې پرې څوارلس بیمارئ شمارلې شوې دی .کیناستل پاسیدل،اوګرځیدل ورته ګران شو.خو ددې باوجود به دوی په خپله درس ورکولو . په تالیف وتصنیف اوپندو موعظت کښې مصروف وو.چه په لاره به روان وو.نو هم به د وعظ نصیحت نه اوزګار نه وو. بیادتعجب خبره داده.چه ددې دومره سختو مرضونوباوجود ،دوی خوش طبع، حاضرجواب، شیرین ګفتار،خوش کلام،متواضع،هشاش بشاش،اوباوقار وو.د دوی مجلسونه به د

عقلونو او ذهنونو دپاره د تفریح سامان وو. ددوی قصو به غوږ نه او د دوی ښکلی شعرونو به طبیعتونه رابیدارول. د لرے لرے خایونو اود هغه خائے دخلقو قصے به ئے ښه بیانولے. د حیرانتیا خبره دا ده. چه اوریدونکو به دا ګمان کولو. چه موصوف دا خبرے لیدلے دی. اوددے علم ئے حاصل کړے دے. حالانکه هغوی به د کلکته نه سوا بل ځه نه وو لیدلے دارالخلافه دهلی ته به خلق راتلل. او دهغوی نه به ئے اوریدل. اود حقائقو بحث به ئے کول. اودهغوی نه به ئے معلومات حاصلول.

حضرت شاه ولی الله رحمه الله چه د دینی علومو د دوباره احیاء کوم بنیاد ایخودے وو شاه عبدالعزیز رحمه الله د هغے تکمیل اوکړلو. اودعلم ئے داسے خاص معیار مقرر کړلو چه په هغے سره د دینی علومو یو خاص عزت او وقار قائم شو. حضرت شاه صاحب رحمه الله د خپل پلار د وفات نه پس د شپیتو کالو په اوږده زمانه کښے په دهلی کښے د دینی علومو خدمت کول د دوی په شاګردانو کښے د دوی درے واړه رونړه شاه اسماعیل شهید. شاه محمد اسحاق، شاه محمد یعقوب، شاه مخصوص الله بن رفیع الدین. مولانا عبدالحی بډهانوی. مفتی الهی بخش کاندهلوی، شیخ غلام علی دهلوی. شاه ابوسعید مجددی. شاه احمد سعید مجددی، شیخ رشیدالدین صاحب. مفتی صدرالدین صاحب او مولانا فضل الرحمن ګنج مراد آبادی رحمهم الله تعالی پشان د امت ستنے اوعلماء فاضلان شامل دی.

د درس او تدریس نه علاوه شاه صاحب رحمه الله ګنړ کتابونه لیکلی دی.

① تفسیرفتح العزیز. المعروف به ،،تفسیرعزیزی،، دا کتاب دوی په سخته بیمارئ اوکمزورئ کښے املاء کړے وو. په غټو جلدونو باندے مشتمل وو. خو د هندوستان په انقلاباتو کښے ئے اکثره حصه ضائع شوه. صرف اولنے او آخرنے جلد ملاویږی.

② ،،فتاوی عزیزیه،، ددے هم دوه جلدونه ملاویږی. ګنی هسے خودا هم ضخیم کتاب دے

③ ،،تحفه اثناء عشریه،، دا کتاب د تشیع د حقیقت په باره کښے دے. او یو عظیم شاهکار دے. ددے مثال په دے موضوع باندے په اسلامی کتابونو کښے نشته.

④ ،،بستان الصالحین،، دا د محدثینو رحمهم الله طبقات او دهغوی د مصنفاتو په باره کښے دے. اصل کتاب په فارسئ کښے دے. ددے اردو ترجمه حضرت مولانا عبد السمیع صاحب دیوبندی رحمه الله کړے ده.

⑤ ،،عجاله نافعه،، دا رساله په اصول حدیث کښے ده. دا په ثبت او حدیثو کښے د هغوی د علومو آئینه ده. مولانا عبدلحلیم صاحب چشتی ددے اردو کښے ترجمه کړے ده. او د تراجم رجال اضافه ئے ورسره کړے ده. اوددے افادیت ئے ډیر زیات کړے دے.

⑥ رساله ،،مایجب حفظه لطالب الحدیث،، ⑦ میزان البلاغة ،، په علم بلاغت کښے.

⑧ ،،میزان الکلام،، په علم کلام کښے. ⑨ ،،السر الجلیل فی مسألة التفضیل،،

⑩ ،،سرالشهادتین،، دحضرات حسنین رضی الله عنهما د شهادت په موضوع باندے.

⑪ ،،رساله في الانساب،، ⑫ ،،رساله في تعبیرالرؤیا،،

⑬ حاشیه ،،میرزاهد رساله،، ⑭ حاشیه میرزاهد ملاجلال،،

⑮ حاشیه ..میرزاهد شرح المواقف.. ⑯ حاشیه ملا کوسج..
⑰ حاشیه ..شرح هدایة الحکمة.. للصدرالشیرازی.
ددے نه علاوه هم ددوی څه رسائل دی.
دوی د اتیا کالویه عمرکښے ۱۲۳۹ه کښے دخپل خالق حقیقی سره ملاؤ شو.حکیم مومن خان مومن تاریخ د وفات ښه بیان کړے دے

دست بیداد اجل سے بے سروپا ہو گئے　　فقر و دین، فضل و ہنر، لطف و کرم، علم و عمل

ق. ی. ض. ن. ط. ر. ل. م.
۱۰۰، ۱۰، ۸۰۰، ۵۰، ۹، ۲۰۰، ۲۰، ۴۰.
۱۲۳۹ه
رحمه الله رحمة واسعة (۱)

## امام الهند منبع الکمالات مرکز الاسانید

### حضرت الامام الشاه ولی الله احمد بن عبدالرحیم رحمهما الله تعالی

صاحب د نزهة الخواطر.. ددوی په حالاتو داسے شروع کوی.

«الشیخ الإمام حجة الله بین الأنام، إمام الأئمة قدوة العلماء، وارث الأنبیاء آخر المجتهدین، أوحد علماء الدین، زعیم المتضلعین، بحمل أعباء الشرع المتین، محی السنة ومن عظمت به لله علینا المنة، شیخ الإسلام قطب الدین، احمد ولی الله بن عبدالرحیم بن وجیه العمری الدهلوی»

ددوی والد صاحب حضرت عبدالرحیم رحمه الله د سلسله نقشبندیه په لویو بزرګانو کښے وو.دهغوی بچی نه وو.بل خوا د هغوی بی بی د بوډئ توب عمر ته رسیدلے وه . دوی په بوډاتوب کښے دویمه نکاح اوکړله.او د چارشنبه په ورځ د نمر راختو په وخت کښے ۴شوال ۱۱۱۴ه کښے شاه ولی الله رحمه الله پیدا شو.

د ولادت نه وړاندے شاه عبدالرحیم رحمه الله خواجه قطب الدین بختار کعکی رحمه الله په خوب کښے اولیدلو.هغوی ورته د خوی زیرے ورکړلو.اوورته ئے اوفرمائیل.دهغه نوم زما په نوم باندے کیږدئ.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه کله زه پیدا شوم.نود قدرمند پلار په ذهن کښے مے هغه خبره پاتے نه وه.اوهغوی زما نوم ..ولی الله.. کیخودلو.څه موده پس ورته ورپاد شو.نو زما بل نوم ئے ..قطب الدین احمد.. کیخودلو.

دوی د پنځو کالو په عمر کښے په مکتب کښے تعلیم شروع کړلو.د اووه کالو په عمر کښے ئے د قرآن کریم حفظ مکمل کړلو.اود فارسئ اوعربئ ابتدائی کتابونه ئے شروع کړل.د لسو کالو په عمر کښے ئے شرح ملاجامی ختمه کړه.بیا ئے د خپل قدر مند پلار نه فقه ،حدیث،تصوف،عقائدو او اصولو کتابونه اووئیل.په دغه دوران کښے د شیخ محمد افضل

(۱) شاه عبدالعزیز رحمه الله دا ټول حالات د ..نزهة الخواطر.. (۲۷۵/۷) فوائد جامع برعجاله نافعه (ص،۲۶۹، ۲۷۶) او تاریخ دارالعلوم دیوبند (۹۴/۱) نه ماخوذ دی.

سیالکوټی رحمه الله په درس کښې شریك شو.اود حدیثو سند ئې واخستلو د پنځلسو کالو په عمر کښې ورسره والدصاحب بیعت ورکړلو اوپه سلسله نقشبندیه کښې ې د سلوك منازل طے کړل.
دڅوارلس کالو په عمر کښې ئې واده اوشو.اوس دوی د اوولسو کالو وو چه پلار صاحب ئې وفات شو د قدرمند پلار د وفات نه پس حضرت شاه ولی الله رحمه الله د خپل پلار مسند درس ته بنانست ورکړلو اوکم وزیات تقریبا دولس کاله ئې د علوم نقلیه او عقلیه تعلیم ورکړلو په ۱۱۴۳ھ کښې د حرمینو شریفینو او دحج شوق پیدا شو او د حجاز سفر ئې اوکړلو.هلته کښې ئې دوه کاله تیر کړل.او دحجاز د شیوخو نه ئې ښه استفاده اوکړه خاص کرد شیخ ابوطاهر کردی مدنی رحمه الله نه ئې ښه ډیره استفاده اوکړه.شیخ ابوطاهرد علوم ظاهره سره سره په علوم باطنیه کښې هم ښه اوچت بزرګ وو.دهغوی نه دوی خرقه خلافت هم حاصله کړه ۱۱۴۵ھ کښې خضرت شاه صاحب د حجاز نه هندوستان ته واپس تشریف راوړلو او د وړاندې پشان ئې دخپل والد صاحب په مدرسه کښې درس شروع کړلو د درس اوتدریس نه چه به کوم وخت بچت شو.هغه به ئې په تالیف وتصنیف اود اعمالو او اشغالوپه تعلیم او تلقین کښې تیرولو.
هم په دې عملی مشاغلو اودالله تعالی مخلوق ته فائده رسولو کښې دوی مصروف وو.تردې چه په ۱۱۷۶ھ دعلم او عمل دا نمر پټ شو.
حضرت شاه ولی الله رحمه الله ته په ټولو عقلی او نقلی علومو کښې مهارت حاصل وو . اود ورع اوتقوی،او ذهانت او ذکاوت په صفاتو باندې هم موصوف وو.ډیر اوچت مفکر او مصلح وو.په اسرارو اوحکم،د تصوف په مسائلو،اود کلام په مباحثو،اوپه حکمت او اخلاقو ئې ښه زور نظرلرلو.هغوی چه د قرآن اوحدیث حقائق څنګه پیژندلی وو.اوخودلی وو هغې د متقدمینویاد تازه کړلو.په توجیه او دحدیث په تشریح کښې د شاه صاحب مقام ډیر زیات اوچت دې.اوپه دې باب کښې هغوی د هندوستان په زمکه ئې مثاله دی.د دوی د علم او فضل اعتراف دهغه وخت ټولو خلقو کولو.د حرم شیوخ هم د دوی د فهم او فراست.د حدیث د معانیود شرح او د مطالبو د وضاحت قائل وو.
ددوی شیخ ابوطاهر کردی مدنی رحمه الله ددوی په باره کښې فرمائی.((إنه یسند عنی اللفظ وکنت أصحح منه المعنی))
حضرت مرزا مظهرجان جانان رحمه الله فرمائی.((إن الشیخ ولی الله قدبین طریقة جدیدة ،وله أسلوب خاص فی تحقیق أسرار المعارف وغوامض العلوم،وإنه رجل من العلماء،لعله لم یوجد مثله فی الصوفیة المتحققین الذین جمعوا بین علمی الظاهروالباطن،وتکلموا بعلوم جدیدة،إلا رجال معدودون))
شیخ فضل حق امام خیر آبادی چه کله د ..ازالة الخفاء.. مطالعه اوکړله.نووې فرمائیل.
((إن الذی صنف هذا الکتاب لبحر زخار لایری له ساحل))
مفتی عنایت احمد کاکوری رحمه الله فرمائی.((إن الشیخ ولی الله مثله کمثل شجرة طوبی، أصلها فی بیته، وفرعها فی کل بیت من بیوت المسلمین، فما من بیت ولامکان من بیوت المسلمین وأمکنتهم إلا وفیه فرع من فرع تلك الشجرة، لایعرف غالب الناس أین أصلها))

نواب صديق حسن خان قنوجي ليکي. ,,انصاف اين است که اگروجود او در صدر اول وزمانه ماضي مي بود، امام الائمه وتاج المجتهدين شمرده مي شد..

**دحضرت شاه رحمه الله سياسی بصيرت** په ملکی سياست باندے هم د شاه صاحب رحمه الله زورنظر وو د دوی په زمانه کښے هندوستان کښے سياسی کشالے ډيرے په ترقئ وے.مسلمانان په بدنظمی او جګړو کښے اخته وو.د شيعګانو غلبه وه.ددے نه علاوه د هندوستان د قسمت فيصله کونکی درے جګړه مار قومونه وو.مرهټ سکهه اوجاټ.په دے حالاتو کښے شاه صاحب رحمه الله ډيرد سياسی بصيرت نه کار واخستلو.اول ئے د نواب نجيب الدوله سره خط وکتابت اوکړلو.اودهغوی په واسطه ئے احمدشاه ابدالی سره غوږ اوجنګولو .بيا ئے براه راست احمد شاه ابدالی ته خط اوليکلو.ددے په نتيجه کښے احمد شاه ابدالی خپل فوځونه راواخستل.اوپه هندوستان باندے ئے حمله اوکړله.اوداسلام د دشمنانو طاقت ئے ذرے ذرے کړلو.

**دحضرت شاه رحمه الله تصنيفات:** حضرت شاه صاحب رحمه الله د ډيرو تصنيفاتو عالم دے.ددوی هرتصنيف ډير اوچت دے.داسے معلوميږی.چه د دے ټولو علومو دوی ته الهمام کيږی.اګرچه دوی په ټولوعلومو کښے امام وو.خوزياته غلبه پرے د تفسير، حديث، عقائدو، اسرار شريعت. او تصوف پاتے شوے وه.ددوی مشهور کتابونه دادی.

(١) فتح الرحمن فی ترجمة القرآن (٢) الزهراوان فی تفسير سورة البقرة وآل عمران (٣) الفوز الكبير فی اصول التفسير (٤) تأويل الأحاديث (٥) فتح الخبير بما لا بد من حفظه فی علم التفسير (٦) المصفی شرح الموطا (٧) المسوی شرح الموطا (٨) شرح تراجم أبواب البخاری (٩) النوادر من أحاديث سيد الأوائل والأواخر (١٠) الأربعين (١١) الدر الثمين فی مبشرات النبی الأمين (١٢) الإرشاد فی مهمات الإسناد (١٣) إنسان العين فی مشائخ الحرمين (١٤) حجة الله البالغة (١٥) إزالة الخفاء عن خلافة الخلفاء (١٦) قرة العينين فی تفضيل الشيخين (١٧) حسن العقيدة (١٨) الإنصاف فی سبب الإختلاف (١٩) عقد الجيد فی أحكام الإجتهاد والتقليد (٢٠) البدور البازغة (٢١) المقدمة السنة فی إنتصار الفرقة السنية (٢٢) الطاف القدس فی لطائف النفس (٢٣) القول الجميل فی بيان السوال (٢٤) الإنتباه فی سلاسل أولياء الله (٢٥) الهمعات (٢٦) اللمحات (٢٧) السطعات (٢٨) الهوامع (٢٩) شفاء القلوب (٣٠) الخير الكثير (٣١) التفهيمات الإلهية (٣٢) فيوض الحرمين..وغيره

هسے خو د دوی ټول تصنيفات ډير قابل قدر او قيمتی دی.خو په دے کښے بالخصوص حجة الله البالغة او,,ازالة الخفاء،، امتيازی مقام لری.(رحمه الله رحمة واسعة وجزاه عن العلم وأهله خير الجزاء(١)

---

(١) دا ټول حالات د نزهة الخواطر.. (٦/٤١٥) او فوائد جامعه برعجاله نافعه (ص.٢٧٦. ٢٨٧) نه ماخوذ دی.د دوی د حالاتو .کمالاتو.خدماتو او تاليفاتو د پوره تعارف دپاره اوګورئ ..تاريخ دعوت وعزيمت جلد پنځم ازمولانا سيد ابوالحسن علی ندوی رحمه الله

**شيخ ابوطاهر کردی** رحمه الله د دوی نوم محمد عبدالسميع بن ابراهيم بن حسن بن شهاب الدين الكردي اومدني الشافعي رحهم الله تعالى
دوی په ۲۱ رجب ۱۰۸۱ھ مطابق ۱۶۷۰ء په مدینه منوره کښې پیدا شوی وو.علوم عربیت ئې دخپلې زمانې سیبویه شیخ احمد ادریس مغربی نه حاصل کړی وو.فقه شافعی ئې د شیخ علی طوبونی مصری نه حاصل کړله.د معقولاتو کتابونه ئې د منجم باشی نه کوم چه د روم متبحر عالمانو نه وو.علم حدیث ئې د خپل پلار نه حاصل کړے وو.ددے نه پس ئې دا علم د شیخ حسن عجمی نه اوونیل.هم د دوی نه ئې استفاده کړې وه.ددے نه پس ئې د شیخ احمد نخلی او شیخ عبدالله سالم بصری نه فائده واخستله.دشیخ سالم بصری نه ئې شمائل نبوی اوونیل.او ددو میاشتو نه په کمه موده کښې ئې د مسند احمد سماع هم اوکړله.د حرمینو نه راتلونکی عالمانو نه ئې ښه استفاده اوکړله.چه په هغې کښې شیخ عبدالله لاهوری هم وو.هم د دوی په واسطه به دوی د ملا عبدالحکیم سیالکوتی رحمه الله کتابونه روایت کول.دغه شان د شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله کتابونه به ئې هم روایت کول.ځکه چه ملا عبدالحکیم ته د شیخ عبدالحق دهلوی رحمه الله نه اجازت حاصل وو.
دوی په ورع اوتقوی،طاعت خداوندی،اشتغال علمی اوانصاف پسندئ کښې د سلفو نمونه وه.دیوسوال جواب چه به ئې ترڅو پورے کتابونه ښه نه وو کتلے.نه ورکولو .
نرم دل دومره وو.چه د رقاق احادیث به وئیل.نوپه سترګو کښې به ئې اوښکې راغلې.په لباس وغیره کښې به ئې څه تکلف نه کولو.خپلو خادمانو او شاګردانو سره به ئې ډیره عاجزی کوله.
حضرت شاه صاحب رحمه الله په ،،الانتباه،، کښې لیکی.
دا فقیر څه وخته پورے د شیخ ابوطاهرپه صحبت کښې پاتے شوے وو.صحیح بخاری مے د دوی نه حرفاً حرفاً وئیلے ده.د دوی په صحبت کښې چه پاتے شوم.نو ددے فن مشکلات مے د بحث اونظر نه پس حل کړل.په تتبع تلاش اولټون سره مے رجال او د حدیث د شرحے نه واقفیت حاصل کړلو.ددے طبقے نه واخله تر مصنفینو پورے او بیا د مصنفینو رحمهم الله نه واخله تر نبی ﷺ پورے په رجالو کښې مے مهارت حاصل کړلو.صحیح مے دسقیم نه جدا کړلو.د روایت قوانین او د حدیث اصول مے یاد کړل.د حدیث د متابعاتو او شواهدو معرفت مے حاصل کړلو.مسند دارمی مے ټوله د دوی نه واوریدله.د کتب صحاح سته اطراف مے هم دوی نه واورول.هغوی صرف ددےکتابونو د روایت کولو اجازت رانکړلو.بلکه د ټولو روایاتو او اسنادو تفصیلاتو نه ئې خبر کړم.او خرقه خلافت ئې راته واچولو.جزاه الله سبحانه عنی خیراً..
په رمضان ۱۱۴۵ھ مطابق ۱۷۳۳کښې دوی په مدنیه منوره کښې وفات شو.او په جنة البقیع کښې دفن کړے شو.(۱)

(۱) دا ټول حالات د ..فوائد جامعه برعجاله نافعه.. (ص،۲۹۸، ۳۰۴) او الأعلام للزركشی (۳۰٤/۵) نه اخستے شوی دی.د نورو تفصیلاتو دپاره اوګورئ سلک الدرر(۲۷/۲) إنسان العين فی مشائخ الحرمين (۱۳، ۱٤) الإنتباه فی سلاسل أولياء الله و وارثی أسانيد رسول الله،وحصر الشارد فی أسانيد الشيخ محمد عابد،واليانع الجنی ،فهرس الفهارس)_

**شیخ ابراهیم بن حسن بن شهاب الدین الکورانی الکردی** رحمه الله ددوی نوم ابراهیم کنیت ابوعرفان او لقب برهان الدین دے د دوی سلسله نسب دا ده.ابراهیم بن حسن بن شهاب الدین الشهرزوری الکردی الکورانی الشافعی رحمه الله

په کال ۱۰۲۵ھ مطابق ۱۶۱۶ء کښے د کرد د غرونو په علاقه ..شهران.، کښے پیدا شوے وو د دینی علومو تحصیل ئے دهغه خائے د نامتو عالمانو نه اوکړلو.اوبیا ئے سفر اوکړلو.دوه کاله ئے په بغداد کښے تیر کړل.اود لویو لویو عالمانو نه ئے فیض حاصل کړلو.څلور کاله ئے په شام کښے تیر کړل اود مصر په لاړ حرمینو ته اورسیدلو.دلته کښے ئے د شیخ احمد قشاشی رحمه الله سره ملاقات اوشو.اود دوی سره ئے خصوصی تعلق جوړ شو.هم ددوی نه ئے د حدیثو په روایت کښے اجازت واخستلو .اوخرقه خلافت ئے هم ددوی نه حاصله کړه.ددوی په صحبت کښے پټے شو .لوئے مرتبے او اوچت کمالات ئے حاصل کړل.

دوی ته د کردئ او فارسئ نه علاوه عربی اوترکی ژبے هم یادے وے.تبحرعلمی، روشن دماغی. زهد او تقوی .اود صبر اوحلم په صفاتو موصوف وو.دوی دخپلے زمانے دنوم نهاد فقهاؤ او صوفیاؤ د لباس نه خان ساتلو.ساده ژوند به ئے تیرولو.اوسادګی به ئے خوښوله.دوی به په مجلس کښے د صدر په حیثیت کیناستل.په خبرو کښے وړاندے والے کول.یا داسے قسم په نورو خبرو د خپل حقیقت ښکاره کولو نه ئے پرهیز کولو.

د تبحرعلمی ئے دا حالت وو.چه علامه محمد عابد سندهی رحمه الله فرمائی.

..موصوف امام محقق.جامع معقول ومنقول.او حاوی فروع واصول وو.د حکمت نظریه وعملیه متقن او ددے په اسرارو حاوی وو.دغه شان د ابن عربی،جیلی،قاشانی .قونوی.او قیصری د کتابونو دحقائقو ماهر وو.هم دوی په دے علومو کښے حرف آخر ګڼړلے کیدل.چه علم حدیث طرف ته متوجه شو.نو ددے لعلونه او جواهرات ئے راوویستل.،

ددوی د اتیاؤ نه زیات تصانیف دی.علامه محمد زاهد سندهی رحمه الله فرمائی. «کانت مصنفاته جدیرة،بأن تکتب بماء العیون،وأن یبذل فی تحصیلها المال والأهل والبنون» چه ددوی تصانیف ددے لائق دی.چه د چینو په اوبو باندے اولیکلے شی. او د دے په حاصلولو کښے د مال او اهل وعیال. په خرچ کولوهم هیله نه ده بکار.

**ددوی مشهور تصانیف دا دی:**

① الأمم لإیقاظ الهمم دا د دوی ثبت.دیرتفصیلی اوجامع فوائد دی. ② إتحاف الخلف بتحقیق مذهب السلف ③ تنبیه العقول علی تنزیه الصوفیة من إعتقاد التجسیم والعینیة والإتحاد والحلول ④ مد الفیئ فی تقریر لیس کمثله شیئ ⑤ مشرع الورود إلی مطلع الجود بتحقیق التنزیه فی وحدة الوجود_

دوی په جمادی الاولی کال ۱۱۰۱ھ مطابق ۱۶۹۰ء کښے په مدینه منوره کښے وفات شو او په جنة البقیع کښے دفن کړے شو رحمه الله (۱)

---

(۱) دا ټول حالات د ..فوائد جامعه برعجاله نافعه.. (ص.۳۰۵. ۳۱۴) او الأعلام (۳۵/۱) نه ماخوذ دی.د تفصیل دپاره اوګورئ نسان العین فی مشائخ الحرمین. الإنتباه فی سلاسل الأولیاء الله.البدرالطالع(۱۱/۱. ۱۲)وسلک الدرر (۵/۱، ۶)

**صفی الدین احمد القشاشی** رحمہ اللہ احمد بن محمد بن یونس بن احمدبن علی بن یوسف بن حسن البدری القشاشی المدنی رحمہ اللہ د پلار د طرفه ددوی سلسله نسب حضرت علی رضی اللہ عنہ او د مور د طرفه حضرت تمیم داری رضی اللہ عنہ ته رسی

د دوی لقب ،،صفی الدین،، دے صاحب د ((الرحلة العیاشیة)) لیکی د اهل مشرق عادت دے چه د کوم سړی نوم احمد وی دهغه لقب ،،شهاب الدین،، ایږدی شیخ احمد قشاشی خپلو شاګردانو ته اوفرمائیل زما نوم ،،احمد،، دے چه په نومونو کښے معزز دے نو ما په ،،شهاب الدین،، باندے مه ملقب کوئ کوم چه د عذاب او رجم نوم دے نو د دوی لقب ،،صفی الدین)) مشهور شو.

د دوی نیکهٔ د عبدالغنی په نوم ملقب وو په نسبت لرونکو بزرګانو کښے ورته اوچت مقام حاصل وو دوی به د خپل نسبت پټولو دپاره ،،قشاشه،، خرخول قشاشه کبړ ته وائی لکه زوړ سامان جامے وغیره

دوی په کال ۹۹۱ھ مطابق ۱۵۸۳ء کښے پیدا شوے وو تعلیم او تربیت ئے د قدرمند پلار شیخ محمد مدنی رحمہ اللہ نه حاصل کړے وو هغوی د خپل شیخ محمد بن عیسی تلمسانی رحمہ اللہ په تابعداریٔ کښے مالکی مذهب اختیار کړے وو نو دوی په شروع کښے دوی ته د فقه مالکی تعلیم ورکړلو په کال ۱۰۱۱ھ کښے ئے د خپل پلار سره د یمن سفر اوکړلو اودهغه ځائے د مشائخو نه ئے استفاده اوکړه بیا په ګرځیدو ګرځیدو کښے مکے معظمے ته راغلو دلته څه زمانے پورے پاتے شو بیا مدینے منورے ته لاړلو اودهغه ځائے د مشائخو نه ئے استفاده اوکړله ددے نه پس د شیخ احمد شناوی رحمہ اللہ سره د صحبت په وجه ئے د هغوی مسلک او طریقه اختیار کړله .د هغوی نه ئے دحدیث تکمیل اوکړلو اودهغوی د لور سره ئے نکاح اوکړله د هغوی نه پس د هغوی په ګدیٔ کیناستلو او ټول عمر ئے په حرم نبوی کښے د حدیثو درس ورکولو.

احمد قشاشی دطریقت اوشریعت امام وو چه د حقائقو خبرے به ئے بیانولے نو د آیتونو او احادیثو نه به ئے دلائل او براهین پیش کول د ډیرو مشائخو سره ئے صحبت کړے وو خرقه خلافت ورته د خپل پلار نه ملاؤ شوے وه اوکامیابی او قبولیت ورته د شیخ احمد شناوی په لاس باندے ملاؤ شو.

دوی خونهٔ د هغه زمانے د فقهاؤ په جامه کښے وو او نهٔ د خشك زاهدانو په طریقه وو بلکه ددوی طریقه ساده او دسنت مطابق وه دوی به د مالدارانو کور ته چرته نه تلو خو که په هغوی کښے به څوك د دوی ځائے ته راغلو نو ډیر په خوشحالیٔ او زوړ تندی به ورسره ملاویدلو دهرکس سره به ئے د هغه د مرتبے مطابق رویه ساتله ډیر په نرمه لهجه کښے به ئے امر بالمعروف اونهی عن المنکر کولو ملاقاتیان به ئے د نصیحت نه بغیر نه رخصتول.

د دوی نه ډیرو لویو لویو عالمانو اوصوفیانو استفاده کړے ده چه په هغوی کښے عارف بالله عبدالرحمن مغربی ادریسی ،شیخ عیسی مغربی جعفری ،سید عبدالله بافقیه او ابراهیم حسن کورانی رحمہم اللہ وغیره مشهور دی.

د دوی په تصنیفاتو کښې لاندینی کتابونه مشهور دی.
① السمط المجید فی تلقین الذکر والبیعة وإلباس الخرقة وسلاسل أهل التوحید ② بستان العابدین وروض العارفین ③ حاشیة علی الإنسان الکامل ④ حاشیة علی المواهب اللدنیة ⑤ الدرة الثمینة فیما لزائر النبی ﷺ إلی المدینة ⑥ شرح عقیدة ابن عفیف ⑦ کتاب النصوص ⑧ کلمة الجود فی القول بوحدة الوجود ⑨ الکملة الوسطی فی شرح حِکَم ابن العطا ⑩ الکمالات الإلهیة ⑪ الکنز الأسنی فی الصلاة والسلام علی الذات المکملة الحسنی

دوی د ذوالحجې په ورځ ۱۰۷۱ھ مطابق ۱۶۶۱ء کښې په مدینه منوره کښې وفات شو .او په بقیع کښې دفن کړے شو رحمه الله (۱)
**شیخ احمد بن علی بن عبدالقدوس الشناوی** رحمه الله ددوی نوم احمد او کنیت ابوالمواهب او ابوالعباس دے.پوره سلسله نسب ئے دا ده.
احمد بن علی بن عبدالقدوس بن محمد الشناوی المصری ثم المدنی.
په شوال ۹۷۵ھ مطابق ۱۵۶۷ء کښې په مصر کښې په محله ،،روح ،، کښې پیدا شو.دعلومو تکمیل ئے په مصر کښې اوکړلو.د نامور محدث شمس الدین رملی،
قطب الدین محمد بن ابی الحسن بکری رحمه الله او شیخ نورالدین زیدی رحمه الله نه ئے حدیث او فقه اوونیله.بیا ئے په مدینه منوره کښې د سید صبغة الله بن روح الله سندهی نه په تصوف کښې داعمالو اواشغالو تعلیم حاصل کړلو.او دعلم طریقت تکمیل ئے اوکړلو.موصوف ورته خرقه خلافت ورکړه.
د شیخ احمد شناوی رحمه الله مشران په لویو بزرګانو کښې وو.پخپله جامع د شریعت او طریقت وو.محبی رحمه الله په خلاصة الاثر کښې لیکلی دی.«الأستاذ الکامل المکمل، باهر الطریقة،ترجمان لسان القوم،کان آیة الله الباهرة فی جمیع المعارف ،وقد أعلی الله تعالی مقداره، ونشر ذکره، وله بالحرمین الشهرة الطنانة...وله خلفاء فی کل أرض، ورتبهم عالیة معلومة»
د دوی نه چه کومو عالمانو حدیث حاصل کړے دے.او اکتساب فیض ئے ترے کړے وو.په هغوی کښې سید سالم بن احمد بن شیخان محمد بن عمر حبشی غرابی او شیخ صفی الدین احمد قشاشی مشهور دی.
د دوی مشهور تصنیفات دا دی: ① الإرشاد إلی سبیل الرشاد ② إفاضة الجود فی وحدة الوجود ③ الإقلید الفرید فی تجرید التوحید ④ التأصیل والتفصیل ⑤ تجلیة البصائر حاشیة علی کتاب الجواهر ⑥ خلاصة الإختصاص و ما للکل من الخواص ⑦ السطعات الأحمدیة فی روائح الذات المحمدیة ⑧ سعة الأخلاق

---

(۱) دا ټول حالات د فوائد جامعه برعجاله نافعه (ص،۳۱۴، ۳۱۹) نه ماخوذ دی.د زیات تفصیل دپاره اوګورئ إنسان العین فی مشائخ الحرمین .الإنتباه فی سلاسل أولیاء الله .الرحلة العیاشیة .خلاصة الأثر. فهرس الفهارس . هدیة العارفین.

⑨ شفاء الغرام فی أخبار الکرام ⑩ صارحة الأزل و سانحة النزل ⑪ الصحف الناموسية والسحف النادوسية ⑫ ضمائر السرائر الإلهية فی بواهر آيات جواهر الغوثية ⑬ فتح الإله فيما يقال دبر کل صلاة ⑭ فواتح الصلوات الأحدية فی لوائح مدائح الذات الأحدية ⑮ مناهج التأصيل ⑯ موجبات الرحمة ومواثقات العصمة ⑰ بيعة الإطلاق.

**تنبيه** شناوی، شنو (بکسر شين معجمه ونون مشدده مضمومه) طرف ته منسوب دے دا د مصر مغربی طرف ته يو کلے دے.

په ۸ ذالحجة ۱۰۲۸ کښے په مدينه منوره کښے وفات شو او په بيع غرقد کښے د خپل شيخ صبغة الله سره په اړخ کښے خاورو ته اوسپارلے شو.رحمه الله رحمة واسعة (۱)

**شمس الدين محمد بن احمد الرملی** رحمه الله شيخ مجدد شمس الدين محمد بن احمد بن حمزة الرملی المنوفی الانصاری الشافعی المصری دے.

په جمادی الاولی ۹۱۹ھ کښے په منوفه (مصر) کښے پيدا شوے وو.اول ئے قرآن پاک حفظ کړلو .او بيا ئے ټول علوم د خپل قدرمند پلار شيخ احمد رملی رحمه الله نه حاصل کړل.دوی ته د حديث سند د شيخ الاسلام زکريا انصاری رحمه الله اوشيخ برهان الدين بن ابی شريف رحمه الله نه حاصل کړلو. دغه شان شيخ الاسلام احمد بن النجار حنبلی رحمه الله . شيخ الاسلام يحی دميری مالکی. شيخ الاسلام طرابلسی حنفی رحمه الله او شيخ سعد الدين ذهبی شافعی رحمه الله نه ئے هم په حديثو کښے اجازت اخستے دے.الله تعالی ورته د حافظے . فهم. علم او عمل د نعمتونو نه پوره برخه ورکړے وه.

محبی په ،،خلاصة الاثر،، کښے د شيخ عبدالوهاب شعرانی رحمه الله کلام د هغوی د ،،الطبقات الکبری،، نه نقل کړے دے.فرمائی.زه هغه د هغه وخت نه پيژنم.د کوم وخت نه چه به هغه ما په خپلو اوږو باندے اوچتولو.او تراوسه پورے مے ورسره تعلق دے.ما په هغوی کښے تراوسه پورے داسے څه خبره نه ده ليدلے.چه په هغے د هغه دين ته نقصان رسيدلو.دوی به په ماشومتوب کښے هم ماشومانو سره لوبے نه کولے.بلکه ددوی نشونما او تربيت د ديندارئ .تقوی د اندامونو او جوارحو په پاکوالی او د عزت په حفاظت سره شوے ده.د دوی تربيت ددوی پلار ډير په ښه طريقه کړے وو.ماچه په کوم وخت کښے دهغوی د پلارنه په مدرسه ناصريه کښے سبق وئيلو.نو دے به ئے په غيږ کښے کينولو.دهغه وخت نه به ما په دوی کښے صلاح . تقوی او دخير آثار کتل.د دوی نه چه زما څه اميد وو.الله تعالی هغه پوره کړلو.او ددوی په وجه الله تعالی د محبينو سترګے يخے کړے.دوی په مصر کښے په فتوو ليکلو کښے دخلقو مرجع اوګرځودلو.او د اهل مصر د دوی په ديندارئ باندے اتفاق دے .او دالله په فضل هغوی په دے کښے ترقی کوی.

---

(۱) دا تفصيلات د فوائد جامعه (ص.۳۱۹. ۳۲۲) نه ماخوذ دی.دتفصيلی حالاتو دپاره اوګورئ ..إنسان العين فی مشائخ الحرمين.. الإنتباه.. خلاصة الأثر.. هدية العارفين..

د قدرمند پلار د وفات نه پس په مسند درس باندے کیناستلو.او په داسے عجیبه شان ئے درس شروع کړلو چه د دوی د پلار نامور شاګردان لکه ناصرالدین طبلاوی رحمه الله او شهاب الدین احمد چه شمار ئے دهغه وخت په اوچتو عالمانو کښے کیدلو .هغوی هم د استفادے په غرض ددوی په درس کښے شریك شول.د دوی د جلیل القدر علمی اوعملی خدماتو په وجه بعضے خلقو د دوی شمار په مجددینو کښے کړے دے.

د دوی په نسبت کښے ..رملی.. رمله طرف ته منسوب دے.دا د مصر یو کلے دے. د شام ..رمله.. نه دہ.

**د دوی مشهور تالیفات دا دی.**

**① نهاية المحتاج إلى شرح المنهاج ② الفتاوی ③ غاية البيان في شرح زبدة الكلام ④ شرح العقود في النحو**

**⑤ شرح منظومة ابن العماد—**

په ۱۳جمادی الاولی ۱۰۰۴ھ کښے د اتوار په ورځ په مصر کښے دوی وفات شو.رحمه الله تعالی رحمة واسعة (۱)

## شیخ الاسلام زین الدین زکریا الانصاری رحمه الله

شیخ الاسلام زین الدین زکریا بن محمد بن زکریا انصاری الخزرجی الشافعی رحمه الله ۸۲۳ھ کښے د مصر په وړوکی ښار ،،سنیکه،، کښے پیدا شوے وو.هلته ئے ابتدائی تعلیم حاصل کړلو.په کال ۸۴۱ھ کښے قاهرهٔ ته راغلو.خولږ وخت پس بیا وطن ته واپس شو.بیا دوباره قاهرهٔ ته راغلو.په جامع ازهر کښے ئے قیام اوکړلو.او د اسلامی علومو په تحصیل کښے همه تن مشغول شو.

شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمه الله د خپلے طالبعلمئ واقعه ذکر کړے ده.فرمائی.چه زه د خپل کلی نه جامع ازهر ته راغلم.نو خوان ووم.اکثر به اوږے ووم.د مجبورئ نه به د شپے راوتلم.اودس خانے ته به لاړم.هلته به د خربوزے پوستکی پراته وو.هغه به مے اووینځل.او خوړل به مے.او په دے طریقه به مے لوږه ختموله.په دے حالت باندے څو کاله تیرشول.بیا الله تعالی ماته یو سړے راولیږلو.چه هغه به په جرنده کار کولو.هغه زما نه زما حالات معلوم کړل.ددے نه پس هغه زما د خوراك څکاك ذمه وارشو.یوه شپه زه اودهٔ ووم.هغه ماته راغلو.اوزما لاس ئے اونیولو.او وے وئیل.پاسه.اوسره راروان شه.زه هغه سره روان شوم.هغه زه د جامع ازهر پوړو ته بوتلم.او ماته ئے اووئیل.په دے پوړئ باندے اوخیژه.زه اوختم.هغه بزرګ صفت شخص راته اووئیل.نور هم اوخیژه.زه اوختم.زه آخر ته اورسیدم.ددے نه پس زه راکوز شوم.په هغه وخت کښے راته دغه قدرمند شخصیت اووئیل.زکریا ته به د خپلو ملګرو نه پس مرے.او دټولو نه به ښه ژوند تیروے.د یوے زمانے پورے به د شیخ الاسلام په عهده

---

(۱) ذکرشوی حالات د ..فوائد جامعه (۲۲۶، ۳۲۹) نه ماخوذ دی.د زیات تفصیل دپاره اوګورئ (خلاصة الأثر.. او په المجددون في الإسلام )—

باندے پاتے کیږے ستا شاګردانو نه به هم شیوخ جوړیږی.بیا هغه زما نه لاړلو.ددے نه پس مے د هغه سره ملاقات اونشو.

دوی چه د کومو استاذانو نه فیض حاصل کړے دے په هغوی کښے حافظ ابن حجر عسقلانی شافعی.تقی الدین ابوالعباس شمنیؒ حنفی.زین الدین ابوالحسن طاهر بن محمد النویری المالکی ، زین الدین ابوذرعبدالرحمن زرکشی حنبلی. محی الدین محمد بن سلیمان حنفی کافیجی. محقق ابن الهمام حنفی او شرف الدین مناوی رحمهم الله تعالی پشان د علم او فضل ستنے دی.دوی په تفسیر.حدیث.فقه.اصول فقه .او داصول فقه تکمیل د هغه دور د نامورو عالمانو نه کړے وو.اود هغه وخت د کم نه کم د یونیم سل مشائخو او محدثینو ﷺ نه ئے په حدیث کښے اجازت اخستے وو.دغه شان دوی ته د افتاء او تدریس اجازت هم په سوونو عالمانوورکړے وو.

دوی چه کله د دینی علومو تحصیل اوکړلو.نود درس وتدریس شغل ئے اختیار کړلو.او ډیرد خوشحالیٔ ژوند ئے تیرولو.د قضاء په عهده باندے مقرر شو.نو درے څلور روپیٔ ورځ ئے تنخواه وه. ددے نه پس په عظیم الشان منصبونوباندے فائز شو .په مقام امام شافعی رحمه الله کښے ورته د تدریس عهده ملاؤ شوه.دا په هغه زمانه کښے د ټولو نه لویه عهده وه.په مدرسه رفیعه مدرسه خانقاه صوفیه کښے په مسند درس باندے پاتے شوے وو.

علامه شعرانی رحمه الله فرمائی.چه شیخ الاسلام د فقه اوتصوف دواړو طریقو په ارکان علم کښے وو.دمصر د لویو نه لوئے عالم به د دوی په مقابله کښے طفل مکتب ښکاریدلو.هم دا حال دهر امیر اوغریب وو.

حافظ علائی رحمه الله فرمائی.اګرچه مونږ دهغه په ډیرو استاذانو کښے شریك وو.خو هغه زمونږ په استاذانو کښے وو.هغوی د مختلفو علومو او معارفو جامع اود مقبول تصنیفاتو مالك وو.حسن اخلاق، حسن سلوك،وقار، او د استاذانو نه استفاده داسے صفات هغوی جمع کړی وو.چه د هغے نه نور خلق محروم وو.

شیخ عبدالله بن عمربامخرمه رحمه الله دوی د لسمے صدیٔ مجدد ګرځولے دے.هغوی فرمائی.
،،زما په نیز قاضی زکریا انصاری د لسمے صدیٔ مجدد دے.ځکه چه د هغوی د ذات او دهغوی د تصنیفاتو نه عامه فائده ملاویږی.زیات خلق د هغے محتاج دی.خاص کر په فقه اود مذاهبو په سلسله کښے هغوی مرجع پاتے ده.

دوی صرف د علم دمیدان شهسوار نه وو.بلکه د میدان عمل بادشاه هم وو.علامه شعرانی رحمه الله فرمائی.زه شل کاله هغوی سره پاتے شوے یم.ما هغوی چرته په غفلت کښے نه دی لیدلے.اونه په لایعنی کار کښے مشغول لیدلی دی.کله چه به هغوی سره کیناستم.نو داسے به مے محسوسوله.چه زه عارف بالله او صالح بادشاه سره ناست یم.

دغه شان هغوی فرمائی...ما د موصوف نه زیات څوك صدقه کونکے اوخیرات کونکے نه وو لیدلے.دوی به دا کار دومره په ښه شان سره کولو.چه ورسره ناست پاست خلقو ته به هم دا پته نه لګیدله.د بعضے غریبانانود ورځے او د میاشتے صدقه ئے مقرر کړے وه.

د شیخ رحمه الله عمر د سلوکالو نه زیات وو.خو په معمولاتو کښے ئے چرته فرق نه وو راغلے.د بیمارئ په حالت کښے به ئے هم نفلونه په ولاړه کول.

د دوی نه په زرګونود حدیث طالبانو استفاده کړې ده.په ذیقعده۹۳۴ھ یا ۹۲۶ھ کښې د یوسل درې کالو په عمر کښې وفات شو. په مختلفوعلومو او فنونو کښې ئې د څلویښتو نه زیات تصانیف یادګار پریخودی دی.په هغې کښې د څو نومونه دا دی.

① آداب القاضی علی مذهب الشافعی ② تحفة الطلاب شرح تحریر تنقیح اللباب ③ تحفة نجباء العصر فی أحکام النون الساکنة والتنوین والقصر ④ الدقائق المحکمة فی شرح المقدمة للجزری ⑤ شرح الجامع الصحیح للبخاری ⑥ شرح صحیح مسلم ⑦ فتح الباقی بشرح ألفیة العراقی وغیرها (۱)

## قاضی القضاة ابوالفضل شهاب الدین احمد بن علی العسقلانی المعروف بالحافظ ابن حجر رحمه الله

سلسله نسب ئې دا ده.احمد بن علي بن محمد بن علي بن محمودبن بن احمد الکناني العسقلاني المصری الشافعي... ددوی کنیت ابوالفضل ،لقب شهاب الدین او عرف ..ابن حجر..دې.

دحافظ سخاوی رحمه الله د تصریح مطابق ،حجر.، د دوی په پلار نیکهٔ کښې د چا لقب دې.دوی د بنوکنانه سره تعلق ساتی.کومه چه د عربو مشهوره قبیله ده. د دوی مشران په اصل کښې عسقلان اوسیدونکی وو.دا د فلسطین اطرافو ته د سمند ساحل سره د شام یو مشهور ښار دې.د دې نسبت د وجې دوی په عسقلاني باندې مشهور دی.ګنی ددوی ولادت او تربیت په مصر کښې شوې وو.او هم دلته خاورو ته سپارلې شوی وو.

**ولادت او تعلیم وتربیت**: د دوی پیدائش شعبان ۷۷۳ھ کښې شوې وو.په لږه موده کښې ئې اول مور وفات شوه.اود څلورو کالو په عمر کښې ئې د قدرمند پلار د شفقت سیورې د سر نه اوچت شو.د دوی پلار د دوی د تربیت دپاره دوه وصیان مقرر کړی وو.یو شیخ زکی الدین خروبی کوم چه د مصر لوئې سوداګر وو.او بل شیخ شمس الدین محمد بن قطان کوم چه د متبحرو عالمانو څنې وو.

زکی الدین خروبی د یتیمئ په حالت کښې دوی د خپل تربیت په جولئ کښې واخستلو.او تر بلوغه پورې هم د دوی په تربیت کښې وو.کله چه پوره د پنځو کالو شو.نو په مکتب کښې داخل کړې شو.د نهه کالو په عمر کښې ئې د صدرالدین سفطی نه قرآن پاك حفظ کړلو.د قرآن پاك نه علاوه ئې ..عمدة الاحکام.. الحاوی الصغیر، مختصر ابن الحاجب، ألفیة العراقي، ملحة الاعراب وغیره کتابونه زباني یاد کړل.

په ۷۸۴ھ کښې چه د دوی عمر یوولس کاله وو.د خپل وصی سره حج د بیت الله ته لاړلو.یو کاله پورې د حرم په ګاونډ یتوب کښې اوسیدلو.اود هغه ځائې په قیام کښې ئې د شیخ عفیف الدین عبدالله بن محمد النشاوری نه دصحیح بخاری سماع اوکړله.په فن حدیث کښې دا د

(۱) دا تفصیل د فوائد جامعه (ص.۳۴۲، ۳۴۹) نه ماخوذ دی.د زیات تفصیل دپاره اوګورئ الکواکب السائرة ،النورالسافر. البدرالطالع. المجددون فی الإسلام ،الضوء اللامع ،شذرات الذهب او فهرس الفهارس _

دوى د ټولو نه اولنے استاذ دے.هم په دے کال ۷۸۵ھ ئے په مسجد حرام کښے په تراويح کښے قرآن پاك واورولو.په كال ۷۸۶ھ کښے مصر ته واپس راغلو.او ددے ځائے د مشائخو نه مستفيد شو.

په كال ۷۹۷ھ کښے ئے د حافظ العصر شيخ زين الدين عراقی رحمه الله صحبت اختيار كړلو.لس كاله دهغوى په خدمت کښے پاتے شو.اوعلم حديث ئے حاصل كړلو.او حديثو سره ئے داسے شغف پيدا شو.چه ترژونده پورے وو.د مسند قاهره شيخ ابواسحاق تنوخی رحمه الله نه ئے استفاده اوكړله.بيا ئے د اسكندريه سفر اوكړلو.د هغه ځائے نه په مكه مكرمه . مدينه منوره. زبيد. عدن. وغيره مختلفو مقاماتو او ملكونو کښے د مشائخو نه د حديثو سماع اوكړله.په يمن کښے ئے د لغت د امام صاحب ،،قاموس،، او علامه مجدالدين فيروزآبادی نه استفاده اوكړله.

دحافظ رحمه الله د استاذانو په باره کښے حافظ سخاوی رحمه الله ليكی.په دوی کښے هر يو په خپل علم کښے متبحر وو.او په كوم فن کښے چه دچا شهرت وو.نو دومره وو.چه بل چا دهغه مقابله نشوه كولے،،

**حافظه او ذكاوت:** الله تعالى په دوی باندے د زبردستے حافظے اوذكاوت احسان كړے وو.ابن فهد ليكلی دی.چه دوی پوره سورت مريم په يوه ورځ کښے ياد كړے وو.د حاوی صغير پوره صفحه به ورته په دوه خله وئيلو سره حفظ كيدله.په اول ځل به ئے د استاذ نه صحيح كوله او لوستله.او دوباره به ئے پخپله وئيله.او په دريم ځل به ئے ورته زبانی تيروله.

**علم او فضل:** حافظ رحمه الله ته په مختلفو علومو او فنونو کښے كمال حاصل وو.د ټولو نه وړاندے ئے ادب اوتاريخ ته توجه وركړے وه.په دے دواړو کښے ورته اوچت مقام حاصل وو.په فقه اوعربيت کښے ممتاز وو.د شعراو سخن ذوق ئے فطری وو.

په دے کښے شك نشته.چه علم حديث د حافظ رحمه الله خاص فن وو.اوهغوى د خپل ژوند زياته حصه دے کښے تيره كړے وه.د هغے په وجه نن هم د حافظ الحديث په لقب سره يادولے شی.خو دا يو حقيقت دے.چه دوی اول شاعر، بيا محدث،او په دريمه مرتبه کښے فقيه وو.علامه ابن العماد رحمه الله د دوی په باره کښے بالكل صحيح نقل كړی دی.((كان شاعراً طبعاً، محدثاً صناعة، فقيهاً تكلفاً)) يعنی دوی طبعی طور شاعر وو.د فن په اعتبار سره محدث وو.او په تكلف فقيه وو.وجه ښكاره ده.چه د شعر سليقه ئے فطری وه.حديث ئے دفن په حيثيت حاصل كړے وو.او په فقه کښے به ورته د كوشش ضرورت وو.

**داكابرينو او معاصرينو خراج تحسين** حافظ ابن حجر رحمه الله په خپله زمانه کښے ہے د اختلافه ،،اميرالمؤمنين في الحديث،، وو.په اسماء الرجال کښے ورته هم د امامت مرتبه حاصله وه.منقول دی.چه حافظ ابن حجر رحمه الله چه د زمزم اوبه څكلے.نو دعا ئے كړے وه.چه زما حافظه دے د امام ذهبی رحمه الله د حافظے پشان وی.د دوی دا دعا قبوله شوه.په علم حديث کښے د مهارت او د حفظ حديث د ياد وجے علی الاطلاق د ،،حافظ،، په نوم باندے مشهور شو.

حافظ عراقی رحمه الله به د دوی په باره کښے فرمائيل ((انما أعلم أصحابي بالحديث))

دغه شان د هغوی چه کله چا تپوس اوکړلو چه ستاسو ګده نشین به څوک وی؟ نوجواب ئے ورته ورکړلو «ابن حجرثم ابنی ابوزرعه ثم الهیثمی»

محقق ابن الهمام رحمه الله د دوی همعصر وو.اودتحقیق او اجتهاد مرتبے ته رسیدلی وو.ددے باوجود هغوی د حافظ رحمه الله ذکر کوی.اولیکی.

«وقال غیره ممن یوثق بسعة علمه، وهو قاضی القضاة شهاب الدین العسقلانی» په یو بل مقام کښے لیکی.

«قال شیخنا قاضی القضاة»

حافظ ابن فهد په لحظ الالحاظ کښے د دوی تذکره ددے الفاظو نه شروع کړے ده.«ابن الحجر العسقلانی المصری الشافعی الإمام العلامة الحافظ فرید الوقت مفخر الزمان بقیة الحفاظ علم الأئمة الأعلام عمدة المحققین خاتمة الحفاظ المبرزین والقضاة المشهورین أبوالفضل شهاب الدین...»

حافظ سیوطی په ، ،ذیل تذکرة الحفاظ ، ، کښے د دوی تذکره په دے الفاظو شروع کړے ده.

«ابن حجرشیخ الإسلام وإمام الحفاظ فی زمانه، وحافظ الدیار المصریة، بل حافظ الدنیا مطلقاً قاضی القضاة»

**درس وافتاء** : دحافظ ابن حجر رحمه الله زیات ژوند د علم دین په خدمت کښے خصوصاً دحدیث په خدمت،نشرواشاعت، درس وتدریس،اوتصنیف وافتاء کښے تیر شوے دے.د قاهرے په لویو لویو مدرسو کښے دوی د تفسیر ،حدیث،اودفقه تعلیم ورکړے دے .په حسینیه او منصوریه کښے ئےدتفسیر درس ورکړے دے.بیبرسیه،جمالیه،حسینیه ، زینبیه . شیخونیه. جامع طولون او قبه منصوریه کښے ئے دحدیثو درس ورکړے دے .اوپه حروبیه، بدریه. شریفیه. فخریه. صالحیه. نجمیه. صلاحیه. مویدیه. کښے ئے د فقه درس ورکړے دے په دارالعدل کښے د افتاء کار دوی ته سپارلے شوے وو.جامع ازهر او ددے نه پس جامع عمروبن العاص کښے خطیب پاتے شوے وو.په محمودیه کښے خازن کتب وو.ددے ټولو مصروفیتونو باوجود د یو زر مجلسونو نه په زیاتو کښےئے دخپل یاد داشت نه امالی هم لیکلی دی.

**د قضاء عهده** په اول کښے الملك المؤید د شام د مملکت د قضاء عهده دوی ته پیش کړے وه. اوخو څو ځله ئے ددے د قبولو خواهش کړےوو.خو دوی د اصرار باوجود دا پیش کش رد کړےوو.خو په محرم ۸۲۷ھ کښے چه الملك الاشرف د قاهره او د هغے د مضافاتو د قضاء منصب دوی ته حواله کړلو.نو دوی پوره په ذمه دارئ او دیانتدارئ دا منصب قبول کړلو.په قاهره کښے د دوی د قضاء منصب د حافظ سخاوی رحمه الله د تصریح مطابق یوویشت کاله وو.خو په دے دوران کښے دومره په کثرت سره د دوی معزوله کول او په منصب باندے فائز کول په لیدلو کښے راغلی دی چه د حیرانتیا خبره ده.روستو پخپله حافظ رحمه الله ته د قضاء ددے عهدے په قبلولو ډیره پښیمانتیا وه. لکه چه حافظ سخاوی رحمه الله لیکلی دی.

**زرلوستل او زر لیکل** د حافظ رحمه الله د تیزلوستلو دومره مشق شوےوو.چه دحیرانتیا خبره وه.یوځل ئے صحیح بخاری په لس نشستو (کوم چه بعد ماسپخین نه ترمازیګره پورےوو) ختم کړلو.دغه شان صحیح مسلم ئے په دوه نیمو ورځو کښے په پنځو نشستو کښے ختم کړے وو د امام نسائی سنن کبری ئے هم په لسو نشتو کښے ختم کړےوو. هر نشست څلور ګهنټے

وو د ټولو نه لویه د حیرانتیا خبره دا ده.چه یو ځل ئے د خپل شام په سفر کښې د امام طبرانی رحمه الله ..المعجم الاوسط.. (چه په هغې کښې دوه نیم زره احادیثو ته نزدې. سره د سندونو احادیث موجود دی) صرف په یو مجلس کښې د ماسپخین او ماښیګر په مینځ کښې اوروليے وو.په دمشق کښې د دوی دوه میاشتې لس ورځې قیام وو.په دے دوران کښې د خپلو ضروری مشاغلو او علمی فوائد نقل کولو نه علاوه سلو جلدونو ته نزدے د حدیثو کتابونه ئے اهل شام ته لوستلی وو.

حافظ رحمه الله چه لکه څنګه زر لوستونکے وو.دغه شان زر لیکونکے هم وو.خو خط ئے ډیر خراب وو.بیا د تعجب خبره دا ده.چه د خط انداز ئے هم یو شان نه وو.ددے د وجے دهغوی د خط پیژندل او دهغے لوستل ډیر ګران وو.او په مبیضه کښې به هم دومره رودبدل کیدلو.چه مسوده به پاتې شوه.

**زهد عبادت او اخلاق**: دوی به په خوراك څكاك او اغوستلو كښې پوره احتیاط كولو.زیاتے روژے به ئے نیولے.اوښه عبادت به ئے كولو.د تهجدو اهتمام ئے هم كولو.د پاكیزه اخلاقو ،خوږو خبرو مالك او عاجز طوره او صبرناك وو.د دوستانو به ئے خیال ساتلو.اوښه سلوك به ئے ورسره كولو.

**د حافظ رحمه الله په تذكره كښې یوه اهمه نكته**: دا خبره عجیبه ده.چه دحافظ رحمه الله په خبرو كښے ځومره ګوږوالے وو.نو دومره د دوی قلم زهریله وو.ملا كاتب چلپی رحمه الله په ..كشف الظنون.. كښے «الجواهر والدرر فی ترجمة شیخ الإسلام ابن حجر» باندے تبصره كوی.اولیكی:«كان قلم ابن حجر سیئا فی مثالب الناس، ولسانه حسناً، ولیته عكس ،لیهالی الحسن» دحافظ رحمه الله شاګرد محدث برهان الدین بقاعی رحمه الله د خپل استاذ دطرز عمل ګیله كوی. اولیكی «ان فیه من سیئ الخصال أنه لا یعامل أحداً بما یستحقه من الإكرام فی نفس الأمر»

بیا خاص كر د حنفی عالمانو رحمهم الله په تراجمو كښے خود هغوی د قلم سفاكی د حجاج د توره نه څه كمه نه ده.د احنافو رحمهم الله په مشهورو امامانو كښے (د امام ابوحنیفه رحمه الله نه بغیر) كیدے شی چه څوك داسے نه وی.چه ددوی د قلم نوك د زخمی شوے نه وی.حضرت شاه انورشاه كشمیری رحمه الله ددوی په باره كښے بالكل صحیح فرمائیلی دی.«یهالی الحافظ ابن حجر رحمه الله وهوضر الحنفیة بما استطاعه، حتی إنه جمع مثالب الطحاوی والطعون فیه، مع أن أبا جعفر إمام عظیم،لم یهلغ إلی أحد من أئمة الحدیث خبره، إلاحضر عنده بمصر، وجلس فی حلقة أصحابه وتلمذ علیه»

حافظ سخاوی رحمه الله د حافظ رحمه الله مایه ناز شاګرد دے.هغوی د خپل استاذ په تذكره كښے یوضخیم كتاب «الجواهر والدرر فی ترجمة شیخ الإسلام ابن حجر» هم لیكلے دے.خوبیا هغه ته د خپل استاذ په دے طرز عمل باندے ځائے په ځائے د تنبیه وركولو ضرورت پیښ شوے دے.د شیخ حسین بن علی حنفی رحمه الله په تذكره كښے لیكی.«أهمله شیخنا علی عادته فی الحنفیة مع تقدمه فی العلم» دغه شان د علامه جمال الدین عبدالله بن محمد حسینی نیشاپوری حنفی په تذكره

كنبے ليكى ((ثم نكت عليه على عادته في تغليب التنكيت على الحنفية))

**تصنيفات** حافظ رحمه الله په حديث ، رجال ، اوتاريخ وغيره باندے قلم اوچت كړے دے او د حافظ سخاوى رحمه الله د قول مطابق دا تصانيف د يونيم سلو نه زيات دى بلكه بعضے جديد محققينو د حافظ رحمه الله كتابونه دوه دوه اتيا حساب كړى دى په دے كنبے د څو مشهورو ذكر دا دے

① إتحاف المهرة بأطراف العشرة ② الإصابة في تميز الصحابة ③ إنباء الغمر بأبناء العمر ④ بلوغ المرام ⑤ تبصير المنتبه بتحرير المشتبه ⑥ المجمع المؤسس (۷) تعجيل المنفعة بزوائد رجال الأئمة الأربعة ⑧ تغليق التعليق ⑨ تقريب التهذيب ⑩ تهذيب التهذيب ⑪ لسان الميزان ⑫ التلخيص الحبير ⑬ الدراية في تخريج أحاديث الهداية ⑭ الكافي الشاف في تخريج أحاديث الكشاف ⑮ فتح البارى بشرح صحيح البخارى ⑯ المطالب العالية ⑰ نخبة الفكر وشرحها نزهة النظر ⑱ نزهة الألباب في الألقاب.

حافظ سخاوى رحمه الله دحافظ رحمه الله د تصانيفو په باره كنبے په خپله د هغوى بيان نقل كوى ((سمعته يقول لست راضياً عن شئ من تصانيفي، لأني عملتها في ابتداء الأمر ثم لم يتهيأ لي من تحريرها سوى شرح البخارى ومقدمته والمشتبه والتهذيب ولسان الميزان، بل رأيته في مواضع أثنى على شرح البخارى والتغليق والنخبة، ثم قال: وأما سائر المجموعات فهي كثيرة العدد واهية العدد ضعيفة القوى ظامية الروى))

دحافظ رحمه الله په تصانيفو كنبے چه فتح البارى ته كوم مقام حاصل دے هغه بل تصنيف ته نه دے حاصل

حافظ رحمه الله به د خپلو دروسو املاء كوله بالخصوص په درس بخارى كنبے به ددے اهتمام وو بيا به هره هفته اجتماع كيدله اوپه هغے كنبے به د املاء كاپيانے پيش كيدلے او په هغے به بحث كيدلو دغه شان په ۸۱۷هـ كنبے دا شرح شروع شوه ۸۴۲هـ كنبے مكمل شوه اوددے لويه مقدمه په يو جلد كنبے ده چه دهغے نوم ،،هدى السارى،، دے د دے مقدمه نه دوى په ۸۱۳هـ كنبے فارغ شوى وو

په فتح البارى باندے زمونږ په زمانه كنبے د بخارى د معانيو دارمدار دے او په دے سلسله كنبے هيڅ يو كتاب ددے مقابله نشى كولے دا شرح د حسن نظم فن حديث اوجامعيت په لحاظ سره په ټولو شروحو اوچته ده

حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى حافظ رحمه الله صرف ناقل دے دوى د حديث د ډيرو كتابونو مطالعه كړے وه خاص كرد بخارى د شروحو نے شل كاله ژوره مطالعه كړے وه بيا نے ددے شروحو خلاصه په يو مفصله شرح كنبے اوليكله

په دے كنبے هډ شك نشته چه حافظ ابن حجر رحمه الله ته په حديث اواسماء الرجال كنبے كمال حاصل وو خو په فقهى مباحثو اوحديث په توجيه كنبے دوى ته هغه مقام نه دے حاصل كوم چه علامه خطابى رحمه الله اوامام نووى رحمه الله ته حاصل وو هم دا وجه ده چه په فتح البارى كنبے فقهى مباحث دهغه معيار نه دى څنګه چه حديثى مباحث دى

حاجي خليفه حاجي رحمه الله په كشف الظنون كښې ليكي. كله چه فتح الباري پوره شوه.نو حافظ رحمه الله د يو عظيم الشان دعوت اهتمام اوكړلو.چه په دے كښې د ښار ټولو عالمانو او مشائخو تشريف راوړلو.اوپه دے دعوت كښې حافظ رحمه الله پنځه سوه دينار خرچ كړل.

**وفات** په ذيقعده ۸۵۲ھ كښې ورته د اسهال مرض لاحق شو.په لعابو كښې به ئې وينه هم راتله.د بيمارئ سلسله ئې د يوے مياشتے نه زياته وه.آخر د ذوالحجه په اته ويشتم تاريخ د خالي په شپه د ماسخوتن د مانځه نه پس وفات شو.او د دے فاني كور نه باقي كور ته رخصت شو.د خالي په ورځ د ماسپخين نه لږ غوندے وړاندے د قاهره نه بهر په ميله كښې په ،،مصلي المؤمنين،، كښې د جنازے مونځ ادا شو.په جنازه كښې ډير رش وو. د وخت خليفه،د سلطنت عمائدين او مشران حاضر وو.د اميرانو او اكابرينو دا حال وو چه جنازے ته د اوږے وركولو دپاره به ئې كوشش كولو.د جنازے نه پس د دوی لاش اوچت كړے شو.او،،قرافه صغرى،، ته يوړے شو.او جامع ديلمي ته مقابل د بنوالخروبي په قبرستان كښې د علم دا شهاب ثاقب خاورو ته اوسپارلے شو.(۱)

**شيخ زين الدين ابراهيم بن احمد تنوخي رحمه الله** ددوی نوم ابراهيم لقب برهان الدين اوكنيت ابواسحاق او ابوالفداء دے.پوره سلسله نسب ئې دا ده.

ابراهيم بن احمد بن عبدالواحدبن عبدالمؤمن بن سعيد بن علوان التنوخي البغلي الاصل الدمشقي المنشأ نزيل القاهره ،شيخ الاقراء ومسند القاهره

دوی په ۷۰۹ھ يا ۷۱۰ھ كښې پيدا شوی وو.علم قرات ئې د برهان جعبري،ابن نصحان. رقي، مرادي،ابوحيان،وادي ،آشي،حكري،او ابن السراج نه حاصل كړے وو.اوبنه پوره مهارت ئې په كښې حاصل كړے وو.مذكوره حضراتو دوی ته اجازت هم وركړے وو.علم فقه ئې د بازري،ابن النقيب او ابن القماح نه ونيلے وه.د دے حضراتو ورته د تدريس او افتاء اجازت وركړے وو.د حديث شريف درس ئې د ابوالعباس حجار، عبدالله بن الحسين بن ابي التائب ،حافظ برزالي،حافظ مزي،بنيجي او نورو محدثينو نه اخستے وو.چه د هغوی تعداد د دوو سوو نه زيات دے.

په حديث كښې ورته داسے كمال حاصل شو.چه ددوی بعضے شيوخو به هم ددوی نه روايت كولو.چه په هغوی كښې حافظ ذهبي رحمه الله هم دے.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه ماته په دے خبره باندے ډير تعجب وو.خو روستو راته دد ے ثبوت ملاؤ شو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.زمونږ شيخ په ډيرو مسموعاتو كښې منفرد وو.په علم قرات او اسناد كښې د ديارمصر شيخ وو.ما دهغوی سره ډير څه ونيلي وو.ډيره موده مے دهغوی په صحبت كښې تيره كړے وه.هغوی دتحديث په معامله كښې ډير سخت وو.خو په ما باندے ډيره مهربان وو.څكه چه ما دهغوی د ،،مائة عشاريه،، او ،،اربعين،، تخريج كړے وو.نو دد ے نه پس د حديث د ډير لويو او وړو كتابونو سماع هم د هغوی راته اوشوه.هغوی زما په

---

(۱) دا ټول حالات د الجواهروالدرر في ترجمة شيخ الإسلام ابن حجر، مقدمة لامع الدراري (ص،۱۲۶، ۱۲۸) فوائد جامعه (۴۳۷، ۴۴۳) او مقدمه بلوغ المرام اردو از مولانا عبدالرشيد صاحب مد ظلهم العالي نه ماخوذ دی.

حق کښے دعا هم کړے وه.چه د هغے آثار زه محسوسوم.په جمادی الاولی ۸۰۰ﻫ کښے وفات شو کله چه زه په حجاز کښے ووم.د دوی په تالیفاتو کښے ..اربعین.. دے.

**تنبیه** دا خبره دے واضحه وی.چه تنوخ د تائے فوقانیه په فتح او د نون خفیفه په پیښ سره ونیلی شی.(۱)

## شیخ ابوالعباس احمدبن ابی طالب الحجار رحمه الله

شیخ شهاب الدین احمد بن ابی طالب بن نعمة بن حسن الصالحی الحجار رحمه الله د ابن الشحنه په نوم سره هم پیژندلی شی.

دوی د ۶۴۴ﻫ نه وړاندے پیدا شوی وو.د دمشق د مشهور محدث علامه زبیدی رحمه الله نه ئے د حدیث سماع کړے وه.اودهغه زمانے دنورو نامتو محدثینو ابن اللتی .قطیعی .ابن روزبه اوجعفربن علی رحمهم الله نه ئے احادیث اوریدلی وو.بیا ئے دحدیث ورکول شروع کړل.الله تعالی دوی ته اوږد عمر ورکړے وو.ددے وجے د دوی په سند کښے نمسی د نیکونو سره ملاؤ کړی وو.په مختلف اسلامی ملکونو د دمشق، قاهره، حماة.بعلبك .او حمص وغیره کښے ئے کم وبیش شپته اویا ځله بخاری شریف اورولے وو.اوپه ژوند کښے ئے ډیر عزت حاصل کړے وو.

دحافظ ذهبی رحمه الله بیان دے.چه دوی باهمته اوصاحب د فهم او فراست وو.په توجه سره به ئے اوریدل کول.زما په علم کښے نشته.چه ما دے پرکاله لیدلے دے.په آخری عمر کښے به ئے اوچته خبره اوریدله.بعضے ورځ خو به ئے ټوله ورځ په اورولو کښے تیره شوه.دوی ته مال او دولت او قدر او عزلت هم حاصل وو.په دوی کښے دیره دینداری وه.دجماعت د مونځ ډیر پابند وو.نفلی روژے به ئے هم نیولے. سلو کالو ته رسیدلے وو.اوددے باوجودبه ئے د رمضان په روژو پسے د شوال شپږ روژے هم نیولے.اوپه یخو اوبو به ئے غسل کولو.

حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی.مونږ د دوی نه دارالحدیث اشرفیه کښے د یخنئ په موسم کښے تقریباً د پنځه سوو اجزاؤ سماع کړے وه.اواجازت موتړے اخستے وو.هغوی د ابن الزبیدی اوابن اللتی نه سماع کړے وه.د بغداد په شیوخوکښے ورته د یو سل اته دیرش شیوخو نه د حدیث د روایت اجازت حاصل شوے وو.دچا سند چه ډیر اوچت وو.سلطان الملك الناصر هم د دوی نه سماع کړے وه.اوهغوی ته ئے خلعت ورکړے وو.دوی د مصر اوشام د دومره شیوخو نه سماع کړے ده.چه د هغوی شمار نشی کیدے.دوی خوبصورته، خوب منظره، سلیم الصدر.اوپه خپلو حواسو اوقوتونو نه فائده اخستونکے وو.څه دپاسه سل کاله ډیر بنه تیر کړی وو.څکه چه دوی د علامه زبیدی رحمه الله نه د حدیث سماع په ۶۳۰ﻫ کښے کړے وه.اوپه ۹صفر ۷۳۰ﻫ دوی په جامع دمشق کښے اورول کړی وو.اومونږ هم په دغه زمانه کښے د هغوی نه سماع کړے وه.

(۱) دا حالات د ..بلغة الأریب فی مصطلح آثارالحبیب.. د حاشیه (ص.۱۹۸. ۲۰۰) او فوائد جامعه (ص.۴۴۳، ۴۴۵) نه ماخوذ دی.د زیات تفصیل دپاره اوګورئ .الدررالکاملة (۹/۱) إنباء الغمر بأبناء العمر (۳۹۸/۳) او فهرس الفهارس (۱۵۷/۱)_ رحمه الله تعالی رحمه واسعه

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه کله دهغوی انتقال اوشو نوخلق په سند کښې یودرجه کم شو. دوی د دوشنبه په ورځ ۲۵ صفر د ماښګرپه وخت کښې خپل خالق حقیقی سره ملاو شو.(۱)

**شیخ سراج الدین الحسین بن المبارک الزبیدی رحمه الله**

علامه ابوعبدالله سراج الدین حسین بن مبارک بن محمد بن یحی بن علی بن مسلم بن موسی بن عمران الربعی الزبیدی الاصل البغدادی الحنفی المعروف بابن الزبیدی رحمه الله دوی د مشهور زاهد شیخ محمد بن یحی بن علی زبیدی نمسے وو.۵۴۵ھ یا ۵۴۶ھ کښې پیدا شوے وو اول ئے قرآن کریم په مختلفو قراءتونو سره اولوستلو اوبیا ئے نور

علوم او فنون حاصل کړل.د خپل نیکۀ شیخ ابوالوقت ابوزرعه او ابوزید حموی رحمه الله نه ئے حدیث اوفقه لوستلی وو.او په دے کښې بصیرت پیدا کړے وو.او بیا ئے د وزیر ابوالمظفر هبیره په مدرسه کښې د حدیث درس شروع کړلو.دوی د فقهی مذاهبو وسیع النظر عالم وو.اود روایت حدیث په مستندو شیوخو کښې وو.

حافظ ابن رجب حنبلی رحمه الله د طبقات حنابله په ضمن کښې لیکی.. دوی ته په ادب کښې ډیر مهارت حاصل وو. د دوی مشیخه (معجم الشیوخ) هم لیکلے شوے دے. په لغت او قرات کښې د دوی نظم هم شته.فقیه او فاضل، متدین او نیک سیرت وو . متواضع او بااخلاق وو.دوی په بغداد ،دمشق ، حلب وغیره ښارونو کښې دحدیث درس ورکړے دے.ډیرو خلقو ددوی نه سماع کړے ده.او ډیروحافظانو ددوی نه روایت کړے دے.چه په هغې کښې حافظ دبیثی او ضیاء الدین هم دی.د دوی نه روایت کونکے آخری کس ابوالعباس حجارصالحی دے.چا چه د دوی نه د حدیث سماع کړے ده.

تنبیه : حافظ ابن رجب حنبلی رحمه الله دوی په ذیل طبقات الحنابله کښې ذکر کړی دی.او دے ئے حنبلی ګرځولے دے.دغه شان عبدالعزیز رحمه الله هم دوی په ،،عجاله نافعه،، (۲)کښې حنبلی لیکلے دے.حالانکه صحیح خبره دا ده.چه دے حنفی دے.حافظ ابن کثیر. حافظ ذهبی. حافظ سخاوی رحمه الله د دوی د حنفیت تصریح کړے ده.(۳) علامه کوثری رحمه الله هم دابن فهد په . ذیل تذکرة الحفاظ،. کښې د ده حنبلی ګرځولو پرزور تردید کړے دے.(۴) د دوی په تالیفاتو کښې ،،**البلغة فی الفقه**،، ډیر مشهور دے.

۲۳ صفر ۶۳۱ھ کښې دوی وفات شو.او په جامع مسجد منصوره بغداد کښې دفن کړے شو.(۵) **رحمه الله رحمة واسعة،،**

---

(۱) دا حالات د فوائد نافعه (۴۴۵، ۴۴۹) نه ماخوذ دی.د تفصیل دپاره اوګورئ البدایة والنهایة (۱۵۰/۱۴) الدررالکامنة (۱۴۳/۱) شذرات الذهب (۹۳/۶) فهرس الفهارس (۲۵۲/۱)_ رحمه الله رحمة واسعة .

(۲) (ص. ۲۰) مطبوعه مع فوائد جامعه )_

(۳) اوګورئ البدایة والنهایة (۱۳۳/۱۳) وتذکرة الحفاظ (۱۴۱۳) _

(۴) اوګورئ تعلیقات علامه زاهد کوثری بر ..ذیل تذکرة الحفاظ لابن فهد المکی .. (۲۵۸، ۲۵۹)

(۵) دتفصیلات د فوائد جامعه (۴۴۹، ۴۵۰) او العناقید الغالیة (ص.۲۰۶، ۲۰۷) نه ماخوذ دی.نور اوګورئ ..الجواهر المضیة فی طبقات الحنفیة (۲۱۶/۱) الدارس فی تاریخ المدارس .شذرات الذهب (۱۴۴/۵) او ذیل طبقات الحنابلة (۱۴۴/۲)_

**شیخ ابوالوقت السجزی** رحمه الله شیخ ابوالوقت عبدالاول بن عیسی بن ابراهیم بن اسحاق السنجزی رحمه الله.
دوی په کال ۴۵۸ھ کښې په هرات کښې پیدا شوی وو.هلته ئې تعلیم حاصل کړے وو.د دوی پلار محدث ابوعبدالله عیسی د سلوکالو نه د زیات عمر خاوند وو . هغوی د محدث علی بن بشری نه د حدیث په سماع کښې منفرد د زمانې وو.دوی خپل خوئې ابوالوقت په خپلو اوږو باندے کېنولو اود هراث نه ئې بوشنج ته راوستلو.او دلته هغوی په کال ۴۶۵ھ کښې چه په دغه وخت کښې د دوی عمر صرف اووه کاله وو.د محدث جمال الاسلام داودی وغیره نه صحیح بخاری، مسند دارمی، او منتخب عبدالله بن حمید وغیره سماع اوکړله.د دوی د حدیث په استاذانو کښې محدث ابوعاصم الفضل ،محمد بن ابی مسعود او د شیخ الاسلام عبدالله انصاری رحمه الله نوم سرفهرست راځی.دوی د شیخ الاسلام انصاری د صحبت نه ډیره فائده واخستله.
ابن الجوزی رحمه الله د دوی په باره کښې لیکی.
((كان صبوراً على القراءة، وكان شيخاً صالحاً على سمت السلف، كثير الذكر والتهجد والبكاء))
حافظ ابن نقطه رحمه الله فرمائی: دوی کشران په سند کښې مشرانو سره یوځائې کړلو.د روایت حدیث سیادت ئې د خپل خان دپاره داسې بیا موندے وو.چه په هم عصرو کښې هیڅ چاته دا نصیب نشو.صائب الرائې اوحاضر دماغ وو.
ابن العماد حنبلی رحمه الله لیکی.((قدم بغداد، فازدحم الخلق عليه، وكان خيراً متواضعاً حسن السمت، متين الديانة محباً للرواية وعمر حتى ألحق الأصاغر بالأكابر))
۵۵۳ھ کښې ئې د حج دپاره سامان ترل.چه په ۶ ذیقعده ۵۵۳ھ د پنځه نوی کالو په عمر کښې وفات شو.دوفات په وخت ئې په ژبه مبارکه دآیت کریمه جاری وو.﴿يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ۙ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ﴾[1]

**شیخ جمال الدین ابوالحسن عبدالرحمن الداودی البوشنجی** رحمه الله
جمال الاسلام ابوالحسن عبدالرحمن بن محمد بن المظفر بن محمد بن داود بن احمد بن معاذ بن سهل بن الحکم الداودی البوشنجی رحمه الله.
دوی په ربیع الثانی کال ۳۷۴ھ کښې پیدا شوی وو.ابوعلی فجروی ،ابوبکر،القفال المروزی. ابوالطیب سهل صعلوکی، ابوحامد اسفرائینی ،فقیه ابوسعید بحربن منصور ته ئې د شاګردئ زنګونه خواره کړی وو.ابوعلی دقاق او ابوعبدالرحمن سلمی نه ئې تصوف حاصل کړے وو.اود هغوی د صحبت نه ئې ښه استفاده کړے وه.د محدث ابوالحسن بن الصلت نه ئې په بغداد کښې د ابوعبدالله الحافظ نه ئې په نیشاپور کښې او ابومحمد بن ابی

(۱) اوګورئ فوائدجامعه (۴۵۱، ۴۵۲) دغه شان المنتظم لابن الجوزی (۱۸۲/۱۰) وفیات الأعیان (۳۳۱/۱) شذرات الذهب (۱۶۶/٤) النجوم الزاهرة (۳۲۸/۵، ۳۲۹)_

شریح وغیره نه ئے په بوشنج کښے د حدیثو سماع کړے وه او بیا په درس وتدریس، تصنیف وتالیف، او ارشاد وتبلیغ کښے مشغول شو.
حافظ عبدالکریم سمعانی رحمه الله فرمائی دوی د خراسان د مشائخو د سرتاج وو د نواح بوشنج به څه وائے په اهل خراسان کښے خو د دوی فضل اوکمال او سیرت او تقوی مشهوره وه په تصوف کښے هم د دوی تله درنه وه.
حافظ ابوبکرمحمد بن عبدالغنی رحمه الله لیکی.. ابوالحسن عبدالرحمن بن محمد داوُدی د ابومحمد عبدالله بن احمد بن حمویه سرخسی رحمه الله نه د صحیح بخاری روایت کوی د دوی ولادت په ربیع الاول ۳۷۴ھ کښے شوے وو. اودوی په بوشنج کښے د اووه کالو په عمر کښے په صفر ۳۸۱ھ کښے د صحیح بخاری سماع کړے وه..
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی. دوی په علم او فضل، جلالت شان او سند کښے د خراسان شیخ وو. ابومحمد بن حمویه سرسی نه ئے ډیر روایتونه کړی دی. دا آخری محدث وو چه ددوی نه به ئے بلاواسطه روایت کولو.

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکی. «کتب الکثیر، وأفتی، ووعظ الناس، وکانت له ید طولی فی النظم والنثر وکان مع ذلك کثیر الذکر، لایفتر لسانه عن ذکر الله تعالی»
دغه شان حافظ ابن کثیر رحمه الله دا واقعه لیکلے ده. چه یوه ورځ وزیر نظام الملك دوی ته راغلو. او دوی ته مخامخ کیناستلو. شیخ رحمه الله دوی ته اوفرمائیل. الله تعالی ته په خپلو بندګانو باندے مقرر کړے ئے. نو خیال کوه. چه الله تعالی ته به څنګه جواب ورکوے. کله چه الله تعالی ستا نه ددوی په باره کښے تپوس کوی.
د دوی په ښه اشعارو کښے دوه دا دی.

| | |
|---|---|
| کان فی الإجتماع بالناس نور | ذهب النور وأدلهم الظلام |
| فسد الناس والزمان جمیعاً | فعلی الناس والزمان السلام |

ترجمه: ① دخلقو په اجتماعاتو کښے به اول نور وو. خواوس نور ختم شوے دے. اوتیاره خوره شوے ده. ② خلق هم خراب شو. اوزمانه هم خرابه شوه. نوخلقو او زمانے دواړو ته سلام.
پرهیزګاری اوتقوی ئے دومره وه. چه د کوم وخت نه ترکمانو خراسان لوټ کړلو. نو دوی څلویښت کالو پورے غوښه نه خوړله. په دے خیال چه هسے نه څاروی د لوټ مار وی. صرف کب به ئے خوړلو. اوکله چه دوی ته اوونیلی شو. چه د دریاب د کوم اړخ نه د کبانو ښکار کولے شی. په هغه اړخ باندے د دوی سردارانو خوراك څکاك کړے دے. اوچه څه بچ شو. نوهغه ئے هلته په دریاب کښے اوغورځول. نو هغوی کبان خوړل هم بند کړل.
شوال ۴۶۷ھ کښے د څلورنوی کالو په عمر کښے وفات شو.(۱)

(۱) دا ټول تفصیلات د فوائد جامعه (۴۵۳، ۴۵۶) نه ماخوذ دی.

## شيخ ابو محمد عبدالله بن احمد بن حمويه سرخسي رحمه الله

شیخ ابومحمد عبدالله بن احمد حمویه بن یوسف بن اعین السرخسی رحمه الله په ۲۹۳ھ کښې پیدا شوی وو دهغه وخت د اکابرو محدثینو نه ئې د حدیث سماع کړے وه.د فربری د ممتاز شاګردانو ځنې وو اود ..راوی صحیح بخاری.. په نوم باندے مشهور وو.حافظ ذهبی رحمه الله په ..تذکرة الحفاظ..کښې دحافظ ابن المقری په تذکره کښې دوی ته ..مسند خراسان.. وئیلی دی اودوی ئې د ..راوی صحیح بخاری.. په الفاظو سره یاد کړی دی.

حافظ ذهبی رحمه الله په کتاب العبرکښې فرمائی: ..محدث ثقه عبدالله بن احمد سرخسی رحمه الله د فربری نه صحیح بخاری د عیسی بن عمر سمرقندی رحمه الله نه کتاب دارمی، او دابراهیم بن خریم نه مسند عبدالله بن حمید او دعبدبن حمید نه د تفسیر روایت کړے دے. د اتیا کالو په عمر کښې د ذی الحجه په میاشت کښې وفات شو.(۱) رحمه الله رحمة واسعة.

**تنبیه** حافظ ذهبی رحمه اللهد دوی عمر اتیا کاله لیکلے دے.نو په دے حساب سره به د وفات کال ۳۷۳ھ جوړیږی.خو په دے باندے اشکال دا دے.چه د دوی نه صحیح بخاری روایت کونکو کښې شیخ جمال الدین داودی هم دے.چه د هغوی سن ولادت ۳۷۴ھ دے.نو سماع خو څه چه ولادت ئې هم دهغه د وفات نه یوکال پس شوے دے؟

علامه کرمانی رحمه الله د شرح بخاری په مقدمه کښې لیکلی دی.((ومات سنة أحدى وثمانين وثلاث مائة))(۲)چه د دوی وفات په ۳۸۱ھ کښې شوے دے.په دے صورت کښې اشکال نشته.ځکه چه د داؤدی عمر په دغه وخت کښې اووه کاله وو .او هم دا ټیك ده.ځکه چه په خپل حافظ ذهبی رحمه الله په سیر اعلام النبلاء کښې تاریخ وفات ۲۸ ذی الحجه ۳۸۱ھ لیکلے دے.(۳)

## شیخ ابوعبدالله محمدبن یوسف الفربری رحمه الله

شیخ ابوعبدالله محمد بن یوسف بن مطربن صالح بن بشر الفربری رحمه الله ۲۳۱ھ کښې پیدا شوے وو.د ارباب کمال نه ئې دینی علوم حاصل کړل.او د احادیثو سماع ئې اوکړله.دعلی بن خشرم نه ئې حدیثونه واوریدل.د امام بخاری رحمه الله نه ئې دوه ځله د بخاری سماع کړے وه.یوځل په خپل وطن فربر کښې اوبل ځل ۲۵۲ھ یا ۲۵۵ھ کښې په درے کالو کښې په بخارا کښې.بلکه د صاحب د ..مجمع بحار الانوار ..د بیان مطابق ئې درے ځله د صحیح بخاری سماع کړے ده.

دا خبره دے یاده وی.چه دامام بخاری رحمه الله وفات په ۲۵۶کښې شوے وو.لکه چه د فربری رحمه الله سماع دامام بخاری رحمه الله نه بالکل په آخری عمر کښې شوے وه.د دے وجې به خلق د لرے لرے نه دوی ته د صحیح بخاری دسماع دپاره راتلل.

---

(۱) دا تفصیلات د فوائد جامعه (ص.۴۵۶) نه ماخوذ دی. او نور اوګورئ کتاب العبر(۱۷/۳) النجوم الزاهرة (۱۶۰/٤) وشذرات الذهب (۱۰۰/۳) _

(۲) اوګورئ شرح کرمانی (۸/۱)

(۳) اوګورئ سیرأعلام النبلاء (۴۹۳/۱۶)_

علامه فربری رحمه الله فرمائی: ((سمع صحیح البخاری ممن مؤلفه تسعون الف رجل، فما بقی أحد یرویه غیری)) چه د صحیح بخاری سماع د دے د مؤلف نه تقریباً نوی زره خلقو کړے وه. خو اوس زما نه سوا په هغوی کښے څوک هم پاتے نه دی.

خو حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه دا هغوی دخپل علم مطابق فرمائیلی وو ګنی حقیقت دا دے چه امام بخاری رحمه الله نه د صحیح بخاری آخری راوی ابوطلحه منصور بن محمد بن علی قرینه بزدوی رحمه الله دے. د دوی وفات د فربری رحمه الله د وفات نه نهه کاله روستو یعنی په ۳۲۹ھ کښے شوے وو. غالباً د فربری رحمه الله د دے قول په بناء باندے مؤرخ ابن خلکان وغیره دا لیکلی دی چه ((وهو آخر من روی الصحیح عن البخاری)) او ابونصر بن ماکولا رحمه الله په یقین سره دا ذکر کړی دی چه آخری راوی ابوطلحه منصور بن محمد بزدوی دے.

د فربری رحمه الله روایت کونکو کښے ابواسحاق ابراهیم بن احمد مستملی، ابومحمد عبدالله بن احمدبن حمویه سرخسی، ابوالهیثم محمد بن مکی کشمیهنی او شیخ معمرابولقمان یحی بن عمار بن مقبل بن شاهان ختلانی رحمهم الله دی.

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ((کان ورعاً ثقة)) دوی صاحب ورع او ثقه وو.

د یو کم سل کالو په عمر کښے ۳ شوال ۳۲۰ھ کښے وفات شو. رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

**فائده:** فربر، د فاء په کسره او راء په فتحه او باء موحده په سکون سره دے. دا د دریاب جیحون په غاړه بخارا سره متصل د یو کلی نوم دے.(۱)

.........................

# د امام بخاری رحمة الله علیه نوم اونسب

محمد بن اسماعیل بن ابراهیم بن المغیره بن بردزبه (۲) بن بذذبه الجعفی البخاری ... عام طور په کتابونو کښے د امام بخاری نسب د ،،بردزبه،، پورے موجود دے. خو علامه تاج الدین سبکی رحمه الله په ((الطبقات الکبری)) کښے د ،،بذذبه،، (۳) زیادت کړے دے.

د بذذبه اوبردذبه دحالاتونه تاریخ خاموش دے. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ،،بردزبه،، دفارسیٔ تکے دے. اود بخارا خلق دا لفظ د زمیندار دپاره استعمالوی. بردزبه فارسی وو او دخپل قوم په دین وو. هغوی داور عبادت کونکی وو.(۴)

---

(۱) اوګورئ فوائد جامعه (ص۴۵۷، ۴۵۹) وفتح الباری (۵/۱) ومجمع بحار الأنوار(۳۲۹/۵) ووفیات الأعیان (۲۹۰/۴) ومعجم البلدان (۲۴۵/۴)_

(۲) قوله بردزبه. بفتح الباء الموحدة. وسکون الراء المهملة. وکسر الدال المهملة. وسکون الزای المعجمة.وفتح الباء الموحدة بعدها هاء هدی الساری(ص۴۷۷_

(۳) قوله ..بذذبه.. بباء وحدة.ثم ذال معجمة مکسورة.ثم ذال ثانیة معجمة ساکنة ثم باء موحدة مکسورة ثم هاء اوګورئ الطبقات الشافعیة الکبری (۲/۲_

(۴) هدی الساری (ص. ۴۷۷_

دامام بخاري رحمه الله قرنيكۀ مغيره د بخارا د حاكم يمان بن اخنس جعفي په لاس باندې په اسلام مشرف شو.(۱) يمان عربي النسل وو.د جعفي قبيلې سره د هغه تعلق وو.اوجعفي بن سعد العشيرة د قبيله مذحج شاخ دے.(۲) يمان بن اخنس. عبدالله بن محمد مسندي دبخاري د استاذ د نيكه نيكۀ وو.(۳) د دستور مطابق د ولاء اسلام په وجه مغيره فارسي نه جعفي ونيل شروع شو.ځكه چه هغه د يمان جعفي په لاس اسلام قبول كړے وو.امام بخاري رحمه الله ته هم په دے وجه جعفي وائي.

**استطراد** احناف رحمهم الله د ولاء اسلام قائلين دي.د دوي دليل دابوداود روايت دے.«عن تميم الداري،أنه قال: يارسول الله ﷺ ـ وقال إن تميماً قال يزيد:يا رسول الله ﷺ ما السنة في الرجل يُسلم على يدي الرجل من المسلمين؟قال هو أولى الناس بمحياه ومماته»(۴)

د امام بخاري رحمه الله دنيكۀ د حالاتو نه هم تاريخ خاموش دے.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي «وأما والده ابراهيم بن المغيرة،فلم نقف على شيء من أخباره»(۵)

دامام بخاري رحمه الله پلار ابوالحسن اسماعيل بن ابراهيم په محدثينو عالمانوكښې وو.ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښې دهغوي ذكر كړے دے.(۶) دوي به د حماد بن زيد رحمه الله اوامام مالك رحمه الله نه روايت كولو.(۷) اوددوي نه د عراق محدثينو روايت كړے دے.(۸) هغوي د عبدالله بن مبارك زيارت كړے وو.امام بخاري رحمه الله ليكي .«رأى حماد بن صافح ابن المبارك بكلتا يديه»(۹)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.«كان أبوالبخاري من العلماء الورعين»(۱۰)د پرهيزگارئ ئے دا حالت وو. چه د وفات په وخت كښې ئے ډير مال په ميراث كښې پريخودے وو .خو فرمائيل به ئے چه په

---

(۱) پورتنئ حواله

(۲) اوگورئ عمدة القاري (۱۲٤/۱) كتاب الإيمان باب أمورالإيمان_

(۳) نو ددوي نسب نامه دا ده.عبدالله بن محمد بن عبدالله بن جعفر بن اخنس بن خنيس الجعفي البخاري.اوگورئ عمدة القاري (۱۲۳/۱) كتاب الإيمان باب أمورالإيمان_

(۴) اوگورئ سنن أبي داود كتاب الفرائض .باب الرجل يسلم على يدالرجل رقم. ۲۹۱۸)_

(۵) هدى الساري (ص.٤۷۷)_

(۶) الثقات لابن حبان(۹۸/۸)_

(۷) هدى الساري (ص.٤۷۷)_

(۸) پورتنئ حواله_

(۹) تاريخ كبير بخاري (۳٤۳/۱) رقم ۱۰۸٤_

(۱۰) مقدمة شرح قسطلاني (۳۱/۱) _

دے کښې يوه روپۍ هم د حرام يا مشتبه مال نه ده.(۱) هم دا حلال او پاک مال د امام بخاري رحمه الله په تربيت کښې خرچ شو.

**پيدائش او وفات** د بعضې عالمانو رحمهم الله خيال دے چه د امام بخاري رحمه الله پيدائش په دولسم شوال ۱۹۴ھ کښې شوے دے.خو د راجح قول مطابق د دوی پيدائش په ديارلس شوال ۱۹۴ھ کښې د جمعې په ورځ شوے دے.(۲) الله تعالی ورته د شوال مياشت ورکړه.کومه چه د حج په مياشتو کښې اولنۍ مياشت ده.اود رمضان المبارك او ذوالقعدے په مينځ کښې واقع شوے ده.او بيا ئے د جمعې ورځ د ولادت دپاره مقرر کړه.چه د ورځ سرداره ده.

وفات ئے په ۲۵۶ھ کښې د خالي په شپه شوے وو.دا د وړوکي اختر شپه وه.دغه شان ټول عمر ۱۳ ورځې کم ۶۲ کاله شول.د وړوکي اختر په ورځ په اولنی شوال په کال ۲۵۶ھ د مازيګرد مانځه نه پس په ، ،مقام خرتنګ، ، کښې دفن کړے شو.

چا په اختصار سره د پيدائش، وفات او عمر ذکر داسې کړے دے.

کان البخاری حافظاً ومحدثاً　　جمع الصحیح مکمل التحریر

میلاده صدق(۱۹۴) ومدة عمره　　فیها حمید(۶۲) وانقضی فی نور(۲۵۶)(۳)

**مختصر حالات او تعليم**: امام بخاري اوس لا ماشوم وو.چه د دوی پلار اسماعيل بن ابراهيم وفات شو.او د تربيت ټوله ذمه واري د دوی په مور بی بی باندے راغله.بل طرف ته هم په دے ماشوموالی کښې د امام بخاري رحمه الله د سترګو نظر ختم شو.په دے باندے ئے مور بی بی ډيره پريشانه شوه.هغه ډيره عبادتګذاره او د الله تعالی نزدے ميرمن وه.په عاجزۍ او زارۍ سره ئے دعاګانے کولے.يوه شپه ورته په خوب کښې دحضرت ابراهيم عليه السلام زيارت اوشو.نو هغوی ورته زيرے ورکړلو.چه ستا د دعا ګانو په برکت الله تعالی ستا د بچی بصارت واپس کړلو.(۴)

علامه تاج الدين سبکی رحمه الله ليکی.چه په ګرمۍ اونمر کښې د علم په طلب کښې د سفرونو په وجه ئے دوباره د سترګو نظر ختم شو.خراسان ته اورسيدلو.چا ورته د سر ويخته خرئيلو اود ګل ختمی پورے کولو مشوره ورکړله.په دے ئے بصارت دوباره راغلو.(۵)

**په ماشوموالی کښې علمی کمال** په ماشوموالی کښې د مکتب د زمانے نه ورسره د حديث د حفظ شوق پيدا شو. حالانکه په دغه وخت کښې ئے عمر د لسو کالونه زيات نه وو.دمکتب نه

---

(۱) هدی الساری (ص. ٤٧٧) ومقدمة شرح قسطلانی (٣١/١)

(۲) قال الحافظ رحمه الله فی ..هدی الساری.. (ص.٤٧٧) قال المستنیربن عتیق أخرج لی لک محمد بن اسماعیل بخط أبیه. وجاء ذلک عنه من طرق .. او د شوال قول ابویعلی خلیلی په ..الارشاد.. کښې نقل کړے دے . اوګورئ مقدمة لامع الدراری (ص.٢٨)_

(۳) مقدمة صحيح بخاري ازحضرت احمدعلی صاحب سهارنپوری رحمه الله (ص.٣٠)

(۴) هدی الساری (٤٧٨) _

(۵) طبقات الشافعیة الکبری (٤/٢)_

د وتلو نه پس ئے د محدث داخلی رحمه الله او دهغه نه علاوه د نورو محدثینو په درسونو کښے شریکیدل شروع کړل.(۱)

یوه ورځ امام داخلی رحمه الله یو سند بیان کړلو.((سفیان عن أبی الزبیر عن ابراهیم)) امام بخاری رحمه الله چه په یو ګوټ کښے ناست وو.عرض اوکړلو.((أبوالزبیر لم یرو عن ابراهیم)) استاذ ناتجربه کاره ماشوم اوګڼړلو.بلکه وے زټلو.نوامام بخاری ورته په وقار سره عرض اوکړلو.که تاسو سره اصل وی نوبه هغے کښے ئے اوګورئ. چونکه خبره معقوله وه.نومحدث داخلی رحمه الله کور ته دننه لاړلو اوچه اصل ئے اوکتلو.نود امام بخاری رحمه الله خبره ټیك وه.واپس راغلو.او تپوس ئے اوکړلو.هلکه! اصل سند کوم یو دے؟ امام بخاری رحمه الله ورته اوفرمائیل.((هوالزبیر_ وهو ابن عدی_ عن ابراهیم)) محدث داخلی قلم راواخستلو.اوهغه ئے ټیك کړلو.اوورته ئے اوفرمائیل.((صدقت)) تا رښتیا اووئیل.چا د امام بخاری رحمه الله نه تپوس اوکړلو.په دغه وخت کښے ستاسو عمر څومره وو؟ نو دوی اوفرمائیل.یوولس کاله.(۲)

علامه بیکندی رحمه الله فرمائی.چه محمد بن اسماعیل به کله درس ته راشی.نوبه ما باندے تحیر کیفیت شروع شی.او زه د حدیث په بیانولو کښے ویریږم.(۳) یوه خل سلیم بن مجاهد علامه بیکندی ته راغلو.نوهغوی ورته اوفرمائیل: که لږ غوندے وړاندے راغلے وے.نو ما به ته داسے هلك سره ملاؤ کړے وے.چه هغه ته اویا زره احادیث یاد دی.(۴)

یوځل سلیم بن مجاهد علامه بیکندی رحمه الله امام بخاری رحمه الله ته اوفرمائیل.ته زما په تصنیف باندے نظر اوکړله.اواوګوره.که چرته غلطی وی.نوهغے اصلاح اوکړه.چا ډیرپه تعجب سره اووئیل: دا هلك څوك دے؟! یعنی چه امام بیکندی رحمه الله د دے باوجود د خپلے زمانے امام دے.ده ته د خپل کتاب داصلاح دپاره وائی.نو بیکندی رحمه الله ورته اوفرمائیل.دده ثانی نشته.(۵)

علامه قسطلانی رحمه الله نقل کړی دی.چه امام بخاری رحمه الله ته په ماشوموالی کښے اویا زره احادیث یاد وو.(۶)

**بې مثاله حافظه** حافظ رحمه الله په مقدمه د فتح الباری کښے لیکلی دی.چه دحاشد بن اسماعیل بیان دے.چه مونږ د امام بخاری رحمه الله سره د بصرے مشائخو ته تلو.مونږ به لیکل کول.او امام بخاری رحمه الله به لیکل نه کول.د پیغور په شکل به ملګرو امام بخاری رحمه الله ته وئیل.ته خامخا خپل وخت ضائع کوے.او احادیث نه لیکے.کله چه خبرے زیاتے شوے.نوامام

(۱) هدی الساری (ص.٤۷۸)_
(۲) پورتنئ حواله_
(۳) هدی الساری (٤۸۳)_
(۴) پورتنئ حواله_
(۵) هدی الساری (ص.٤۸۳)_
(۶) مقدمة شرح قسطلانی(ص.۳۳)

بخارى رحمه الله په غصه شو. او وے فرمائيل. ليکلے شوے احاديث راوړئ تر هغه وخته پورے پنځلس زره احاديث ليکلى شوى وو چه امام بخارى رحمه الله دغه احاديث اوړول شروع کړل. نو تول حيران شول. بيا به د احاديثو ليکونو د خپلو ليکلو تصحيح د امام بخارى رحمه الله د حافظے نه کوله. او په امام بخارى رحمه الله به ئے اعتماد کولو (١)

دغه شان يوځل امام بخارى رحمه الله بغداد ته تشريف يوړلو. دهغه ځائے محدثينو رحمهم الله د امام بخارى رحمه الله نه د امتحان اخستلو اراده اوکړله. اولس کسان ئے مقرر کړل. او هريو ته ئے لس لس احاديث حواله کړل. چه دهغے په متونو او اسانيدو کښے ردوبدل شوے وو. کله چه امام بخارى رحمه الله تشريف راوړلو. نو يوکس پاسيدلو. او

هغه احاديث ئے وړاندے کړل. کومو کښے چه تبديلى شوے وه. امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل.

«لاأعرفه» دغه شان لسو کسانو خپل خپل متغير الاسانيد والمتون احاديث بيان کړل. او امام بخارى رحمه الله به دهر يو په جواب کښے فرمائيل «لاأعرفه» عوامو خو دا اوګڼړله. چه دے کس ته څه هم نه ورځى. خوچه په هغوى کښے کوم عالمان وو. هغوى پوهه شول. چه امام بخارى رحمه الله ددوى په چال باندے پوهه شوے دے. ددے نه پس امام بخارى رحمه الله يو يو ته متوجه کيدل. اوهغه ته به ئے خودل. چه تا اولنے روايت داسے ونيلے وو. هغه غلط وو. اوصحيح داسے دے. اوپه دے ترتيب سره ئے د لسوواړو د احاديثو اصلاح اوکړله. نوټولو ته معلومه شوه. چه دے څومره د فن ماهر دے.

حافظ ابن حجرعسقلانى رحمه الله فرمائى. چه تعجب په دے باندے نه دے. چه د هغوى په غلطئ پوهه شو. او دهغے اصلاح ئے اوکړله. ځکه چه هغوى حافظ حديث وو. د خو کار هم دا وو. بلکه تعجب په حقيقت کښے په دے خبره دے. چه غلط احاديث ئے يوځل واوريدل. اوترتيب وار ئے محفوظ کړل. او بيا ئے په ترتيب سره هغه بيان کړل. (٢)

**رحلات يا علمى سفرونه:** دمحدثينو رحمهم الله په اصطلاح کښے ..رحلة.. هغه سفر ته ونيلى شى. چه هغه د طلب حديث دپاره اوشى. په صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله کښے ددے خاص ذوق وو. امام بخارى رحمه الله هم ددے خاص اهتمام کړے وو. چونکه د اسلامى فتوحاتو د وجے محدثين لرے لرے خواره شوى وو. نودوى به دهغوى په خدمت کښے حاضرى کوله. اود احاديثو سماع به ئے کوله. حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم د يو يو حديث دپاره د يوے يوے مياشتے مزلونه کړى دى. په بخارى شريف کښے دى. چه

«رحل جابربن عبدالله بن أنيس مسيرة شهرفى حديث واحد» (٣)

په قرآن کريم کښے فرمائيلى شوى دى ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ (٤)

---

(١) هدى السارى (ص.٤٧٨)_
(٢) هدى السارى (ص.٤٨٦)_
(٣) اوګورئ صحيح بخارى (١٧/١) کتاب العلم باب الخروج فى طلب العلم)_
(٤) سورة توبه: ١٢٢)_

په دے آيت كريمه كښے دطلب علم اوتفقه في الدين دپاره د وتلو او بيا ددے د تعليم او تبليغ تاكيد شوے دے.
د مشهور بزرك ابراهيم بن ادهم رحمه الله ارشاد دے.. محدثين رحمهم الله د حديث د طلب دپاره په سفر كولو ددے امت نه داالله تعالى مصيبتونه لرے كوى.(١)
**دامام بخارى رحمه الله رحلات** امام بخارى رحمه الله اول ټول كتب متداوله او بخارا د مشائخوكتابونو ياد كړل بيا ئے د شپاړس كالو په عمر كښے د حجاز مقدس قصد اوكړلو.(٢) مور او رور احمد بن اسماعيل ورسره وو.مور او رور د حج د فراغت نه پس وطن نه واپس راغلل.او امام بخارى رحمه الله د علم حاصلولو دپاره په مكه معظمه كښے ايسار شو.په مكه مكرمه كښے د دوى استاذان .ابوالوليد احمد بن محمد ازرقى. امام حميدى. حسان بن حسان البصرى. خلاد بن يحى او عبدالرحمن مقرى رحمهم الله وو.(٣)
بيا ئے داتلس كالوپه عمر كښے د مدينے منورے سفر اوكړلو.او دهغه خائے د مشهورو محدثينو عبدالعزيز اويسى. ايوب بن سليمان بن بلال او اسماعيل بن ابى اويس رحمهم الله وغيره نه ئے استفاده اوكړله.١٨كالو په عمر كښے ئے ((قضايا الصحابة والتابعين)) اوليكلو.هم په دے سفر كښے ئے په مدينه منوره كښے د سپوږمئ په شپو كښے د ((التاريخ الكبير)) مسوده اوليكله.دا دامام بخارى رحمه الله دويم تصنيف دے.(٤)
بيا امام بخارى بصره ته تشريف يوړلو.هلته ئے د ابوعاصم النبيل، محمدبن عبدالله انصارى،بدل بن المحبرعبدالرحمن بن حماد الشعيثى،محمدبن عرعره،حجاج بن منهال ، عبدالله بن رجاء غدانى او عمربن عاصم كلابى رحمهم الله وغيره نه احاديث واوريدل . (٥)
امام بخارى رحمه الله په حجاز كښے شپږ كاله پاتے شو.بصره ته ئے څلور ځله سفر اوكړلو.اودكوفے اوبغداد په باره كښے پخپله فرمائى.((ولا أحصى كم دخلت إلى الكوفة وبغداد مع المحدثين))(٦)
دكوفے مشائخ رحمهم الله په چا باندے چه امام بخارى اعتماد كړے دے.دا دى . عبيدالله بن موسى. ابونعيم احمد بن يعقوب، اسماعيل بن ابان، حسن بن الربيع ،خالد بن مخلد،

---

(١) فتح المغيث(٨٦/٢)كذا فى ..الإمام البخارى إمام الحفاظ والمحدثين..للدكتورتقى الدين الندوى حفظه الله).
(٢) خكه چه امام صاحب په خپله فرمائى ((فلما طعنت فى ست عشرة سنة حفظت كتب ابن المبارك، ووكيع. وعرفت كلام هولاء يعنى أصحاب الرأى قال: ثم خرجت مع أمى وأخى إلى الحج _ قلت (القائل هوالحافظ ابن حجررحمه الله) فكان أول رحلته على هذا سنة عشر ومائتين ... هدى السارى (ص.٤٧٨)_
(٣) اوګورئ سيرأعلام النبلاء (٣٩٥/١٢) مقدمة شرح قسطلانى (ص.٣٢)_
(٤) اوګورئ سيرأعلام النبلاء (٣٩٥/١٢) وهدى السارى (ص.٤٧٨)_
(٥) سيرأعلام النبلاء (٣٩٤/١٢) ومقدمة قسطلانى (ص.٣٢) _
(٦) هدى السارى (ص.٤٧٨)

سعيد بن حفص، طلق بن غنام، عمروبن حفص، عروه، قبيصه بن عقبه، ابوغسان اوخالد بن يزيد مقرى رحمهم الله تعالى وغيره (١)

د بغداد په مشائخو رحمهم الله كښې امام احمد بن حنبل، محمدبن سابق، محمد بن عيسى بن الطباع او سريج بن نعمان رحمهم الله وغيره قابل ذكر دى. (٢)

د شام په مشائخو رحمهم الله كښې محمد بن يوسف فريابى، ابونصراسحاق بن ابراهيم، آدم بن ابى اياس، ابواليمان الحكم بن نافع، حيوة بن شريح، على بن عباس او بشربن شعيب رحمهم الله وغيره دى. (٣)

د مصر په مشائخو كښې عثمان بن صالح، سعيد بن ابى مريم، عبدالله بن صالح، احمد بن صالح، احمد بن شعيب، اصبغ بن الفرج، سعيدبن عيسى، سعيد بن كثير، يحى بن عبدالله بن بكير، احمد بن اشكاب اوعبدالله بن يوسف رحمهم الله تعالى وغيره دى. (٤)

او د جزيرے په مشائخو رحمهم الله كښې احمد بن عبدالملك حرانى، احمد بن يزيد الحرانى، عمروبن خلف، او اسماعيل بن عبدالله الرقى قابل ذكر دى. (٥)

په مرو كښے ئے د على بن الحسن بن شقيق، عبدان او محمد بن مقاتل رحمهم الله وغيره نه ئے سماع كړے ده. (٦)

په بلخ كښے ئے د مكى بن ابراهيم، يحى بن بشر، محمد بن ابان، يحى بن موسى، او قتيبه رحمهم الله وغيره نه د احاديثو سماع كړے ده.

په هرات كښے ئے د احمدبن ابى الوليد حنفى نه د احاديثو سماع كړے ده. (٧)

په نيشاپور كښے ئے د يحى بن يحى، بشربن الحكم، اسحاق بن راهويه، محمد بن نافع، محمد بن يحى ذهلى رحمهم الله وغيره نه احاديث اوريدلى دى. (٨)

غرض دا چه امام بخارى رحمه الله تقريباً د ټولو اسلامى ملكونو سفر كړے دے او د يو زر اتيا مشائخو نه ئے احاديث اوريدلى دى. (٩)

تنبيه: علامه سبكى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله د الجزيره د سفر نه انكار كړے دے او وئيلے ئے دى چه امام بخارى رحمه الله جزيرے ته نه دے داخل شوے. (١٠)

---

(١) اوګورئ: سير أعلام النبلاء (٣٩/١٢) وتهذيب الأسماء (٧٢/١)_
(٢) تهذيب الأسماء (٧٢/١) سيرأعلام النبلاء (٣٩٤/١٢)_
(٣) سير (٣٩٥/١٢) وتهذيب الأسماء (٧١/١)_
(٤) پورتنى حواله جات _
(٥) تهذيب الأسماء (٧٢/١)_
(٦) پورتنئ حواله_
(٧) پورتنئ حواله
(٨) پورتنئ حواله_
(٩) اوګورئ: سير أعلام النبلاء (٣٩٥/١٢) ومقدمة فتح البارى (ص٤٧٩) _
(١٠) اوګورئ: طبقات الشافعية الكبرى (٣/٢)_

خوامام نووي رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله د دے سفر قائل دی.(۱)

**په دې رحلاتو کښې د امام بخاري رحمه الله تنګدستي** امام بخاري رحمه الله د علم د طلب په زمانه کښې لوږے هم تیرے کړی دی. اوپه پاڼړو او وابښو ئے هم ګذاره کړے ده. بعضے وخت ورته د خپلو جامو خرڅولو هم نوبت راغلے دے. د ژوند په ډیره لویه حصه کښې ئے ترکاری نه د خوړلے یوځل بیمار شو. طبیبانو د دوی قاروره (هغه شیشه چه متیازے په کښې بندے کړی او طبیبان ئے ګوری) اوکتله .نووے وئیل. دا قاروره د داسے پادری ښکاری. چه هغه ترکاری نه استعمالوی. طبیبانو دهغے علاج ترکاری اوخودله. نو امام بخاري رحمه الله انکار اوکړلو اوچه کله ورته عالمانو او مشائخو رحمهم الله ډیر منت اوکړلو. نودا ئے منظور کړه. چه د روټۍ سره ګوړه استعمالوم.(۲)

حقیقت دے چه ((لایستطاع العلم براحة الجسم))(۳)

هم دا وجه ده. چه امام بخاري رحمه الله دے لوئے مرتبے ته اورسیدلو. چه لوئے واړه ټول د دوی په تعریف کښې رطب اللسان په نظر راځی. (یعنی د ټولو ژبے بغیر د څه خجالت نه د هغوی تعریف کوی)

لکه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی. ((ماأخرجت خراسان مثل محمد بن اسماعیل))(۴)

امام مسلم رحمه الله فرمائی. ((أشهد أنه لیس فی الدنیا مثلك))(۵)

امام حاکم رحمه الله نه امام بیهقي رحمه الله نقل کړی دی. چه امام مسلم رحمه الله یوځل امام بخاري رحمه الله ته راغلو. اودوی تندے ئے ښکل کړلو. او ورته ئے اوفرمائل. ((دعنی أقبل رجلیك یا استاذ الأستاذین وسید المحدثین وطبیب الحدیث فی علله))(۶)

**دامام بخاري رحمه الله فضل او شرف:** امام بخاري رحمه الله په اهل فارس کښې دے. او نبي کریم ﷺ

---

(۱) حافظ رحمه الله فرمائی. ((وقال سهل ابن السري قال البخاري:دخلت إلی الشام ومصر والجزیرة مرتین.)) (هدی الساري. ص.۱۷۸) اوامام نووي رحمه الله د الجزیره سره دنورو ډیرو ملکونواو دهغے د مشائخو ذکر کولو نه پس فرمائی.((قد رحل البخاري رحمه الله إلی هذه البلاد المذکورة فی طلب العلم وأقام فی کل مدینة منها علی مشائخها .. (تهذیب الأسماء (۷۲/۱)_

(۲) هدی الساري (ص.٤۸۱ وتهذیب الأسماء (۶۸/۱)_

(۳) قاله الإمام یحی بن أبی کثیر.کما رواه مسلم فی صحیحه(۲۲۳/۱)کتاب الصلاة باب أوقات الصلوات الخمس)

(۴) هدی الساري (ص.٤۸۲.٤۸۳) وسیرأعلام النبلاء (٤۲۱/۱۲) وتاریخ بغداد (۲۱/۲) وتهذیب الأسماء واللغات (۶۸/۱) _

(۵) هدی الساري (ص.٤۸۵) وتایخ بغداد (۲۹/۲)_

(۶) هدی الساري (ص.٤۸۸) وسیر أعلام النبلاء (٤۳۲/۱۲) وتهذیب الأسماء (۷۰/۱) وطبقات الشافعیة للسبکی (۲ ۲۱۲)_

حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه ته مخاطب شوے وو.اوفرمائیلی ئے وو.((لوكان الدين عند الثريا لذهب به رجل من فارس أو قال من أبناء فارس))(۱)

دحضرات محدثینو رحمهم الله ارشاد دے چه ددے اولین مصداق امام ابوحنیفه رحمه الله دے. اوبیا امام بخاری رحمه الله دے.

دغه شان په قرآن کریم کښے ارشاد دے.﴿وَآخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ (۲)

کله چه صحابه کرامو رضی الله عنهم ددے آیت متعلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړلو.نوپه حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه باندے ئے لاس کیخودلو.او وے فرمائیل.((لوكان الإيمان عند الثريا لناله رجال من هولاء))(۳)ددے مصداق هم امام ابوحنیفه رحمه الله او امام بخاری رحمه الله دی.

د امام بخاری رحمه الله وراق محمد بن ابی حاتم رحمه الله بیان دے چه ما خوب اولیدلو . چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم روان دے.اوامام بخاری رحمه الله په هغوی پسے روستو روان دے.په کوم ځائے چه به د نبی صلی الله علیه وسلم قدم مبارك راتلو.نوپه هغه ځائے به د امام بخاری رحمه الله قدم هم راتلو.(۴) ددے نه دامام بخاری رحمه الله دا ښکاره کیږی.چه امام بخاری رحمه الله د سنتو متبع دے.

فربری رحمه الله فرمائی.چه ما په خوب کښے اولیدل.چه نبی صلی الله علیه وسلم ماته فرمائی.((أين تريد؟))ما ورته عرض اوکړلو.((أريد محمد بن اسماعيل))نونبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.((اقرأه مني السلام))(۵)

**احتياط او تقوی** : دامام بخاری رحمه الله قول دے.((ما اغتبت أحدا قط منذ علمت أن الغيبة حرام))(۶)

دغه شان فرمائی.چه((إني لأرجو أن ألقى الله ولايحاسبني أني اغتبت أحدا))(۷)

امام بخاری رحمه الله د ګناهونو او منکرانونه د بچ کیدو ډیر اهتمام کړے وو.ځکه چه ګناهونو سره حافظه خرابیږی.امام بخاری رحمه الله د ګناهونو نه ډیرزیات احتیاط کړے وو.ځکه دهغوی حافظه متاثره نشوه.او په حفظ کښے ورته زبردست کمال حاصل وو .

---

(۱)صحيح مسلم (۳۱۲/۲) كتاب الفضائل باب فضل فارس)_

(۲) سورة جمعة:۳)_

(۳) صحيح بخاري،كتاب التفسير، سورة الجمعة باب قوله ﴿ وَآخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ رقم ٤٨٩٧) وصحيح مسلم (۳۱۲/۲) كتاب الفضائل باب فضل فارس)_

(۴) هدى السارى (ص،٤٨٩) وتاريخ بغداد (۱۰/۲)_

(۵) هدى السارى (٤٨٩/۲) وتاريخ بغداد (۱۰/۲) وسيرأعلام النبلاء (٤٤٣/۱۲) وتهذيب الأسماء (٦٨/۱) وطبقات السبكى (۲۲۳/۲)_

(۶) هدى السارى (ص.۸۸۰)_

(۷) هدى السارى (ص.٤٨٠) وتاريخ بغداد (۱۰/۲) وسير أعلام النبلاء (٤٤٣/۱۲) وتهذيب الأسماء (٦٨/۱) وطبقات السبكى (۲۲۳/۲)_

حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي

شكوت إلى وكيع سوء حفظي فأوصاني إلى ترك المعاصي

فإن العلم نور من إله ونور الله لا يعطى لعاص

**دعلمي وقار حفاظت** وئيلې شي.چه يوځل امام بخاري رحمه الله دريابي سفر کولو.اويو زر اشرفئ دوني سره وې . يوكس ډيره د نياز مندئ طريقه اختيار كړه.او امام بخاري رحمه الله ته په هغه اعتماد پيدا شو.دخپلو حالاتو نه ئې هغه خبر كړلو.دا ئې ورته هم اوخودل.چه ما سره يوزر اشرفئ دي.يوورځ صبا چه هغه كس راپاسيدو.نوهغه چغې شروع كړې.اودا ئې ووئيل.چه زما د يو زر اشرفو تهيلئ غائبه شوه.دجهاز خلقو لټون شروع كړلو.امام بخاري رحمه الله ته موقع ملاؤ شوه.او پټه ئې هغه تهيلئ درياب ته اوغورځوله.د لټون باوجود تهيلئ پيدا نشوه.نوخلقو هغه ملامته كړلو.دسفر په ختميدو هغه كس د امام بخاري رحمه الله نه تپوس كوي.چه ستا هغه اشرفئ څه شوې؟امام بخاري رحمه الله ورته اوفرمائيل.هغه ما درياب ته اوغورځولې.هغه ورته اووئيل.دومره ډير رقم تا ضائع كړلو.دوی ورته اوفرمائيل.زما د ژوند اصلي ګټه خو د ثقاهت دولت دې. د څو اشرفو په عوض ما هغه څنګه ضائع كولې شو.(١)(٢)

دامام بخاري رحمه الله پلار په ميراث كښې ډير مال پريخودې وو.امام رحمه الله هغه مال په مضاربت باندې وركړلو.يوځل مضارب پنځويشت زره درهم يوړل.اوپه بل ښار كښې آباد شو.اودغه شان د امام بخاري رحمه الله رقم ضائع شو.خلقو ورته اووئيل.چه د مقامي حاكم نه خط واخله.او دهغه ځائې حاكم ته ئې اوليګه.نو دا رقم به درته په آسانئ سره ملاؤ شي.امام بخاري رحمه الله اوفرمائيل.كه نن زه د حاكمانو په ذريعه خپل رقم واپس كړم.نو صبا به هم دا حاكمان زما په دين كښې دخل اندازي شروع كړي.اوزه خپل دين د دنيا دپاره ضائع كول نه غواړم.بيا دا فيصله اوشوه.چه مقروض به لس درهم په مياشت كښې ادا كوي.خوپه دې كښې يوه درهم هم

---

(١) دا واقعه د امدادالباري (٤٦١/١) او فضل الباري (٥٥/١) كښې دحافظ رحمه الله د فتح الباري په حواله سره منقول ده.خود لټون باوجود راته ملاؤ نشوه.دغه شان په تاريخ بغداد.تهذيب الكمال. سيرأعلام النبلاء.تهذيب التهذيب.تهذيب الأسماء واللغات.مقدمة فتح.مقدمة قسطلاني.او مقدمة لامع كښې د امام بخاري دترجمې لاندې ددې واقعه ذكر نشته.

(٢) احقرمترجم په دې واقعه پسې د كمپيوټر په ذريعه فتح الباري اوددې نه علاوه څه نهه سوه جلدونه اوكتل.ليكن په يوكتاب كښې هم دا واقعه نه وه.بيا مې په خپله علاقه كښې ..مكتبة الإمام البخاري.. كښې د علامه عبدالسلام مباركپوري رحمه الله كتاب ..سيرة الإمام البخاري.. اوكتل.په دې كښې هغوی دا واقعه دامام بخاري رحمه الله په علمي اسفارو كښې (ص.٦٩) ذكر كړې ده.خوبيا لاندې په تحقيق كښې ئې فرمائيلي دي. ((تفرد بذكرة العجلوني رحمه الله في ..فوائدالدراري.. علامه مبارك پوري رحمه الله د دولسمې او علامه عجلوني د يوولسمې صدئ شخصيت دې.چونكه د امدادالباري اوفضل الباري ماخذ فتح الباري دې.اوزه په يقين او وثوق سره وايم چه دا واقعه په فتح الباري كښې نشته.نواصل حواله په دې مقام كښې هم د مباركپوري رحمه الله شوه احقرمترجم شاه فيصل).

امام بخاري رحمه الله ته ملاؤ نشوه.(۱)
د وراق بخاري محمدبن ابی حاتم رحمه الله بیان دے چه امام بخاري رحمه الله اوفرمائیل .چه زه دحدیث د طلب دپاره آدم بن ابی ایاس ته ورغلم.اوخرچه راسره ختمه شوے وه .نوما وابنه او پانړے خوړل شروع کړل.اوڅوك مے خبر نکړلو.په دریمه ورځ یو ناشنا سړے راغلو.او د اشرفو یوه تهیلئ ئے راته په لاس کښے په زور راکړه.(۲)
د عمربن حفص الاشقربیان دےچه مونږ څو کسان د سبق ملګرو په بصره کښے احادیث لیلکل.مونږ سره امام بخاري رحمه الله هم وو.یوځل امام بخاري رحمه الله څو ورځو پورے رانغلو.په لټون سره معلومه شوه.چه هغوی سره خرچه ختمه شوے ده.اوخبره دے ته رسیدلے وه.چه امام بخاري رحمه الله خپلے جامے هم خرڅے کړے وے. مونږ ورله چنده اوکړه.اود جامو انتظام مو ورله اوکړلو.(۳)
داسے مشقتونه زغمل دامام بخاري رحمه الله په فطرت کښے داخل شوی وو.د بخارا نه بهر هغوی مهمان خانه جوړه کړے وه.نو ډیر خلق ددوی د مدد دپاره جمع شول. دوی په خپله هم خښتے اوچتولے.او اوړلے.یوشاګرد ورته عرض اوکړو.تاسو ولے تکلیف برداشت کوئ.نو ورته ئے اوفرمائیل.په اصل کښے په کارراتلونکے محنت خو هم دا دے.
د وراق بخاري محمد بن ابی حاتم رحمه الله بیان دے.چه بعضے وخت به مے په امام بخاري رحمه الله سره په سفر کښے په یوه کمره کښے شپه تیروله.مابه دشپے کتل.چه د شپے به امام بخاري رحمه الله پنځلس اوشل کرته راپاسیدلو.اوهر ځل به ئے ډیوه لګوله . او بیا به ئے په احادیثو نښے لګولے.بیا به ئے د پیشمنی په وخت کښے تهجد کولو.اوزه ئے چرته نه وم پاسولے.ما ورته یوځل عرض اوکړلو.چه تاسو دا دومره مشقت کوئ.ما راپاسوئ؟ نو هغوی راته اوفرمائیل.«أنت شاب فلا أحب أن أفسد عليك نومك» چه ته ځوان ئے.زه ستا خوب خرابول نه غواړم.(۴)
**ښه سلوك او ایثار**: په خپله خو به ئے څو څو ورځے بغیر دخوراك څکاك نه تیرولے.اوکله به صرف درے بادام خوړل د دوی دپاره کافي وو.خو د نورو سره د ښه سلوك په باره کښے د هرچانه وړاندے وو.ملا علی قاري رحمه الله فرمائي.چه امام بخاري رحمه الله ته به په هره میاشت کښے د پنځو سوو روپو ګټه کیدله.او دا ټول رقم به هغوی په فقیرانو. مسکینانو،طالبانو او محدثینو باندے خرچ کولو.(۵)

(۱) اوګورئ هدى الساري (ص.٤٧٩) وطبقات السبكي (۲۲۷/۲) وسيرأعلام النبلاء (٤٤٦/١٢)_
(۲) هدى الساري (ص.٤٨٠) وسيرأعلام النبلاء (٤٤٨/١٢) وطبقات السبكي (۲۲۷/۲)_
(۳) سيرأعلام النبلاء (٤٤٨/١٢) وتاريخ بغداد (۱۳/۲) وطبقات السبكي (۲۱۷/۲)_
(۴) هدى الساري (ص.٤٨١) وسيرأعلام النبلاء (٤٠٤/١٢) وتاريخ بغداد (۱۳/۲_۱٤) وتهذيب الأسماء واللغات (۷۵/۱) وطبقات السبكي (۲۲۰/۲) _
(۵) مرقاة شرح مشكاة المصابيح (۱۵/۱)_

**بې نفسي** د بې نفسۍ ئې دا حالت وو.چه دعبدالله بن محمد صيارفي رحمه الله بيان دے.چه يو ځل د امام بخاري رحمه الله وينزه دده په خواه كښې تيريدله.نو دوات ئې په لته اووهلو.او سياهي توئې شوله.امام بخاري رحمه الله وينزے ته اووئيل.څنګه ګرځې؟ نو وينزے ورته اووئيل.چه لاره نه وي.(څكه چه هرطرف ته كتابونه پراته وو) نوځه مے كړے وے.چه دا ئې واوريدلو.نو امام بخاري رحمه الله ورته اوفرمائيل.((اذهبي فقد أعتقتك)) ځا ورته اووئيل.اے ابوعبدالله هغې ستا په شان كښې ګستاخي اوكړه.اوته ئې خفه كړے. خو تاسو هغه آزاده كړه.امام صاحب ورته اوفرمائيل.ما په دے كار باندے خپل ځان راضي كړلو.(۱)

**په حديث دعمل اهتمام**: عام طور د محدثينو په نيز ددے ډير زيات اهتمام وي.چه كوم حديث واوري.په هغې عمل كوي.امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي.چه ((ماكتبت حديثاً إلا وقد عملت به،حتى مربي النبي ﷺ احتجم وأعطى أباطيبة الحجام ديناراً فأعطيت حجاماً ديناراً حين احتجمت))(۲)

امام بخاري رحمه الله هم په دے باب كښې ډيرمستعد وو.دوی د نبي ﷺ په تابعدارۍ كښې خښتے اوكانړي اوچت كړي دي.وابنه او پاڼړے ئې خوړلي دي.اود ننبې ويشتلو مشق ئې كړے دے.

د وراق بخاري رحمه الله بيان دے.چه امام بخاري رحمه الله به د تيراندازۍ او نشانه بازۍ دپاره ډير زيات وتل.ما په خپل ژوند كښې صرف دوه ځله ليدلي وو.چه دهغه ننبه خطا شوے وه.ګني تيك به ئې خپله ننبه ويشتله.يوځل د فربر نه بهرد تيراندازۍ دپاره اووتلو.چه تيراندازي شروع شوه.نو امام رحمه الله تير په پل كښې په يو ميخ باندے اولګيدلو.او پل ته نقصان اورسيدلو.امام بخاري رحمه الله د سورلۍ نه راكوز شو .اوميخ نه ئې تير راوويستلو.او واپس راغلو.اوماته ئې اووئيل.زما يو كار اوكړه.د پل مالك ته ورشه.چه مونږ ته يا دنقصان تيك كولو اجازت اوكړي.يا د نقصان تاوان واخلي.اومعافي راته اوكړي.وائي چه د پل مالك حميد بن الاخضر ته چه كله دا خبره اورسيدله.نو هغوی اووئيل.چه ابوعبدالله ته زما د طرفه سلام اووايه.او ورته اووايه.چه څه شوی دي.هغه معاف دي.اودا چه زما ټول مال دولت اوجائيداد په تا باندے د قرباني كولو دپاره تيار دي.چه امام بخاري رحمه الله دا واوريدلو.نو ډير خوشحاله شو.اود شكر دپاره ئې په دغه ورځ پنځه سوه احاديث واورول.او درے سوه درهمه ئې صدقه كړل.(۳)

---

(۱) هدي الساري (۴۸۰) وسيرأعلام النبلاء (۱۲/۴۵۳)_

(۲) سيرأعلام النبلاء (۱۱/۲۱۳) ترجمه امام احمد بن حنبل رحمه الله مشهور محقق شعيب الأرنووط حديث ((النبي ﷺ إحتجم وأعطى أباطيبة ديناراً ) تخريج كړے دے اوليكي.دا حديث امام مالك رحمه الله په موطا كښې امام بخاري رحمه الله او امام مسلم په خپل خپل صحيح كښې امام ابوداود رحمه الله او امام ترمذي رحمه الله اوامام دارمي په خپلو سننو كښې او امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسند كښې ذكر كړے دے.خو په دے كښې په بعضو كښې(فأمر بصاع من طعام)دي.اوپه بعضو كښې ((بصاع من شعير)) دي.او په بعضو كښې ((بصاعين من طعام)) دي په هيڅ يوروايت كښې دا نشته.چه دوی ورته يو دينار وركړلو.اوګورئ حاشيه إعلام النبلاء (۱۱/۲۱۳)_

(۳) هدي الساري (۴۸۰)_

**دعبادت شوق** د هميشه نے دا معمول وو چه د شپے په آخری حصه کښے به نے ديارلس رکعته کول (۱) او په رمضان کښے به نے زيادت کولو

حافظ ابوعبدالله حاكم رحمه الله په خپل سند سره نقل کوی چه کله به رمضان شروع شو نو امام بخاری رحمه الله به د قرآن يو ختم په تراويح کښے په هر رکعت کښے شل شل آياتونو ونيلو سره ختمولو بيا به نے خانله د شپے په آخری حصه کښے نصف يا ثلث قرآن لوستلو او په دے طريقه به نے په هره دريمه ورځ قرآن ختمولو بيا به نے تول ورځ هم تلاوت کولو او روزانه به نے د افطار په وخت کښے قرآن ختمولو . اوفرمانيل په نے د قرآن په هر ختم دعا قبليږی (۲)

يوځل امام بخاری رحمه الله په باغ کښے نفلونه کول د مانځه نه پس نے ځانته اووئيل دا قميص مے لږ اوچت کړه اوګوره چه څه ضرری څيز خو نه دے؟چه اوکتلی شو نو يوے ډنبرے شپاړس اوولس ځايه ټکونه ورکړی وو په بدن کښے هغه حصه پړسيدلے وه کومه چه چيچلے شوے وه چا ورته اووئيل تانيت ولے نه ماتولو؟ وے فرمانيل ما د يو سورت تلاوت کولو هغه مے په مينځ کښے پريخودل مناسب نه ګنړلو (۳)

**د دعا قبوليت** : امام بخاری رحمه الله فرمائی ما دوه ځله د خپل رب نه دعا کړے ده او سمدستی قبوله شوے ده ددے نه پس ما سره دا ويره شوه چه هسے نه زما د اعمالو بدله ما ته په دنيا کښے رانکړے شی خکه مے ددے نه پس د دنيا دپاره د څه غوښتل نه دی خوښ کړے (۴)

**د علل حديث په معرفت کښې انفراديت**: په اصطلاح کښے ،،علت،، د جرح يو پټ سبب ته وانی په دے علم کښے د مهارت دپاره د ډير زيات مهارت، سيال ذهن. او فی الفور پوره مهارت ضروری دے د حديث د راويانو پيژندګلو، د ولادت او وفات د وختونو علم، اسماء، القاب، کنيتونه. او دهغوی د ملاقات د تفصيل علم ضروری دے د حديث په الفاظو باندے پوره نظر کول ضروری دی (۵)

امام ابن مهدی رحمه الله فرمائی چه شل نامعلومه احاديث راته معلوم شی نو ددے نه دا خبره ماته زياته خوښه ده چه د يو حديث علت قادحه راته معلوم شی (۶) امام ترمذی رحمه الله په کتاب العلل کښے فرمائيلی دی چه په جامع ترمذی کښے چه ما داحاديثو څومره علتونه بيان کړی دی يا د رجالو او تاريخ په باره کښے چه مے څه وئيلی دی ددے زياته حصه مے د امام بخاری رحمه الله يا د هغوی د تاريخ نه اخستے ده. خو په څو مقاماتو کښے مے د امام دارمی او

(۱) هدی الساری (ص،۴۸۱) وتاريخ بغداد (۱۳/۲) وسير أعلام النبلاء (۴۴۱/۱۲)۔

(۲) هدی الساری (ص،۴۸۱)۔

(۳) سير أعلام النبلاء (۴۴۲/۱۲) وتاريخ بغداد (۱۲/۲، ۱۳) وطبقات السبکی (۲۲۳/۲) وهدی الساری (۴۸۰، ۴۸۱)۔

(۴) سير أعلام النبلاء (۴۴۸/۱۲) وهدی الساری (۴۸۰)۔

(۵) اوګورئ مقدمة ابن الصلاح (ص،۴۲) النوع الثامن عشر،معرفة الحديث المعلل ـ

(۶) تدريب الراوی (۲۵۲/۱) النوع الثامن عشر،المعلل۔

امام ابوزرعه رحمهما الله نه هم استفاده کړے ده.(۱)
د احمدبن حمدون رحمه الله بیان دے چه ما امام بخاری رحمه الله د سعید بن مروان په جنازه کښے اولیدلو.او دهغه شیخ محمد بن یحی ذهلی رحمه الله د هغوی نه د اسماء او کنیتونو او دحدیث دعللو په باره کښے تپوسونه کول.اوامام بخاری رحمه الله به داسے جوابونه ورکول.لکه چه ﴿قل هو الله أحد﴾ وائی.(۲)
ابوحامد اعمش رحمه الله بیان کوی.چه امام مسلم رحمه الله د امام بخاری رحمه الله مجلس ته راغلو. او یو حدیث «عبیدالله بن عمر عن أبی الزبیر،عن جابر قال بعثنا رسول الله ﷺ فی سریة ومعنا أبوعبیدة» واورول.او عرض ئے اوکړلو.که تاسو سره دا حدیث وی .نو دا متصل کړئ.مطلب ئے دا وو.چه عبیدالله تابعی دے.نودا حدیث امام بخاری رحمه الله سره شته اوکه نه؟ او که وی نو متصل السند دے اوکه نه؟ او که سند وی. نومعلل دے که صحیح؟ اوکه معلل وی.نو علت ئے معلوم دے اوکه نه؟ امام بخاری رحمه الله هم په هغه وخت کښے د حدیث سند متصل بیان کړلو.«حدثنا ابن أبی أویس حدثنی أخی عن سلیمان بن بلال عن عبیدالله».(۳)
هم ددے مجلس دویمه واقعه ده.چه یو سړی سند اووئیل.اوحدیث ئے واورولو . «حجاج بن محمد عن ابن جریج،عن موسی بن عقبة عن سهیل بن أبی صالح ، عن أبیه عن أبی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال: کفارة المجلس إذا قام العبد أن یقول: سبحانك اللهم وبحمدك أشهد أن لا إله إلا أنت أستغفرك وأتوب إلیك» چه دا حدیث ئے واوریدلو.نو امام مسلم رحمه الله اوفرمائیل.ددے حدیث د دے نه اوچت سند په ټوله دنیا کښے نشته.او ددے ئے دوه سندونه ذکر کړل.یو «محمد بن سلام حدثنا مخلد بن یزید أخبرنا ابن جریج حدثنی موسی بن عقبة عن سهیل بن أبی صالح عن أبیه عن أبی هریرة رضی الله عنه» او بل سند «احمد بن حنبل ویحیی بن معین قالا حدثنا حجاج بن محمد»
امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل.«إلا أنه معلول» امام مسلم چه دا واوریدلو.نو اوریږدیدو .او ددے دعلت تپوس ئے اوکړلو.امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل.الله تعالی چه په چا باندے پرده اچولے وی.هغه هم دغه شان پریږده.خو امام مسلم رحمه الله اصرار اوکړلو.نو ددے د معلولیت وجه ئے دا اوخودله.چه «لا یذکر لموسی بن عقبة سماع من سهیل» یعنی د موسی بن عقبه د سهیل بن ابی صالح نه سماع ثابته نه ده.او بیا هغوی غیر معلول سند بیان کړلو. چه «حدثنا موسی بن

---

(۱) فاتحة کتاب العلل المطبوع بجامع الترمذی (۲۳۳/۲)_
(۲) سیرأعلام النبلاء (۴۳۲/۱۲، ۴۵۵) وتهذیب الأسماء واللغات (۶۹/۱) وتاریخ بغداد (۳۱/۲) وطبقات السبکی (۲۲۹/۲) وهدی الساری (ص.۴۸۸)_
(۳) هدی الساری (ص.۴۸۸) ومقدمة قسطلانی (ص.۳۶) وتاریخ بغداد (۲۹/۲)_

اسمعيل حدثنا وهيب حدثنا سهيل عن عون بن عبدالله»(١)
د اسماء او كنيتونو د معرفت په باره كښے واقعه مشهوره ده.چه امام فريابى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله په موجودګئ كښے يوحديث بيان كړلو.«حدثنا سفيان عن أبى عروة عن أبى الخطاب عن أبى حمزة» په حاضرينوكښے چا د سفيان نه پس چه كوم راويان وو.هغوى كښے څوك نه پيژندل.امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل.ابوعروه معمربن راشد دے.ابوالخطاب قتاده بن دعامه سدوسى دے.او د ابوحمزه نه مراد حضرت انس بن مالك رضى الله عنه دے.دغه شان وے فرمائيل.د سفيان دا عادت دے.چه هغه د مشهورو شيوخو كنيت ذكر كوى.(٢)

**په علم حديث كښې دنقد وجرح حيثيت:** د حديث د راويان په بيان كښے د هغوى دصداقت اوثقاهت،حفظ اوضبط ضرورت دبيان محتاج نه دے.د قرآن كريم ارشاد دے.﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا﴾(٣) اګرچه په جرح اونقد كښے يوقسم غيبت هم وى.خود دينى ضرورت د وجے جرح صرف جائزنه بلكه ضرورى ده.دحديث د حفاظت دپاره دا اهتمام كړے شوے دے.ګنى اهل باطل نه بلكه بعضے نيكانو خلقو د ثواب په خيال د وضع حديث ارتكاب كړے دے.او د فضائلودپاره هغوى د شنيع او قبيح كار ارتكاب كړے دے.لكه ابوعصمه نوح بن ابى مريم نه چه كله تپوس اوشو.چه تاسو د قرآن كريم د هرسورت په باره كښے د حضرت.ابن عباس رضى الله عنهما نه فضائل نقل كوئ.دا مو د كوم ځائے نه حاصل كړى دى؟
نوهغه اووئيل.«إنى رأيت الناس أعرضوا عن القرآن،واشتغلوا بفقه أبى حنيفة ومغازى ابن إسحاق،فوضعت هذا الحديث حسبة»(٤)
دغه شان عبدالكريم بن ابى العوجاء په خپله اقرار كوى.چه ده څلور زره داسے احاديث وضع كړى دى.چه په هغے كښے ئے حلال حرام او حرام حلال ګرځولى دى.(٥)
كه د چهان بين اونقدوجرح نه كار نه وو اخستلے شوے.نود صحيح احاديثو حفاظت به ناممكن وو.(٦)

---

(١) هدى السارى (ص،٤٨٨)سير أعلام النبلاء (٤٣٦/١٢) وتاريخ بغداد (٢٩/٢)_
(٢) هدى السارى (ص،٤٧٨)_
(٣) سورة حجرات:٦)_
(٤) تدريب الراوى (٢٨٢/١) النوع الحادى والعشرون الموضوع_
(٥) اوګورئ ميزان الإعتدال (٦٤٤/٢) رقم ٥١٦٧)_
(٦) ددے وجے امام ترمذى رحمه الله په خپل كتاب العلل.. (مطبوعه مع جامع ترمذى (٢٣٣/٢) كښے ليكى.((وقد وجدنا غير واحد من الأئمة من التابعين قد تكلموا فى الرجال منهم... من أهل العلم.تكلموا فى الرجال وضعفوا وإنما حملهم على ذلك عندنا – النصيحة للمسلمين.لا يظن بهم أنهم أرادوا الطعن على الناس والغيبة. إنما أرادوا عندنا أن بينوا ضعف هولاء لكى يعرفوا لأن بعض الناس الذين وضعفوا (بقيه حاشيه په راروانه صفحه........

دصحابو ﷺ په زمانه كښے ددے نقد سلسله شروع شوے وه.د خوارجو اوروافضو د خروج نه پس به د تحقيق نه بغير روايت نشو قبلولے كله چه په رجالو د سند كښے زيادت اوشو.نود نقد او انتقاد سلسله هم وسيع شوه.(١)

**دامام بخارى رحمه الله طريقه** د جرح اوتعديل په باب كښے محدثينو رحمهم الله د دوى مراتب مقرر كړى دى.اوبيا د هر يو دپاره مخصوص اصطلاحات مقرر شوى دى.نو دجرح په مراتبو كښے ((فلان كذاب)) دا الفاظ شائع اوخواره دى.

خو امام بخارى رحمه الله د عامو محدثينو رحمهم الله په شان د ،،وضاع،، او ،،كذاب،، لفظ ډير كم استعمالوى.(٢) دوى د ،،منكرالحديث،، او ،،فيه نظر،، او ،،سكتوا عنه،، الفاظ استعمالوى. (٣) دغه شان فرمائى.((إذا قلت:فلان فى حديثه نظر فهو متهم واه)) (٤)دغه شان فرمائى.((كل من قلت فيه: منكر الحديث،فلا تحل الرواية عنه)) (٥)لكه چه امام بخارى رحمه الله د جرح په باب كښے هم د احتياط لمن نه د پريخودے.

دامام بخارى رحمه الله وراق دوى ته اووئيل.چه خلق ستا په تاريخ باندے اعتراض كوى.چه په دے كښے غيبت شوے دے.نو دوى ورته اوفرمائيل.چه مونږ په تاريخ كښے د متقدمينو اقوال

---

(.....بقيه حاشيه) كان صاحب بدعة،وبعضهم كان منهم متهماً في الحديث، وبعضهم كانوا أصحاب غفلة وكثرة خطأ. فأراد هولاء الأئمة أن يبينوا أحوالهم شفقة على الدين وثبتاً لأن الشهادة في الدين أحق أن يتثبت فيها من الشهادة في الحقوق والأموال))

(١) اوګورئ مقدمة صحيح مسلم (ص،١٠، ١١)_

(٢) حافظ ذهبى رحمه الله په ،سيرأعلام النبلاء،، (٤٣٩/١٢، ٤٤٠) كښے فرمائى.((وقل أن يقول:فلان كذاب، أو كان يضع الحديث)) شيخ عبدالفتاح ابوغده رحمه الله دامام بخارى رحمه الله نه د يو څو راويانو په باره كښے د ،،كذاب يذكر بوضع الحديث،، وغيره الفاظ نقل كولو نه پس فرمائى.((ويلاحظ مم هذه الأمثلة القليلة أن البخارى رحمه الله يحرص على أن يكون لفظ الجرح الذى ترتضيه من قول غيره إذا وجده،فينقله عنه. وإلا قاله من قبل نفسه،وذلک من دقيق ورعه رحمة الله تعالى عليه)) اوګورئ تعليقات،، الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل،، (ص،٤٠١، ٤٠٢)_

(٣) اوګورئ سيرأعلام النبلاء (٤٣٩/١٢) وطبقات الشافعية (٩/٢) وهدى السارى (ص،٤٨٠)_

(٤) اوګورئ سيرأعلام النبلاء (٤٤١/١٢) وميزان الإعتدال (٤١٦/٢) ترجمه عبدالله بن داود واسطى .

(٥) اوګورئ ميزان الإعتدلال ٦/١) ترجمة أبان بن جبلة الكوفى حافظ ذهبى رحمه الله په ميزان الاعتدال (٤١٦/٢) ترجمه عبدالله بن داود واسطى ) كښے فرمائى.((وقد قال البخارى ،وفيه نظر،، ولا يقول هذا إلا فيمن يتهمه غالباً)) دغه شان عراقى رحمه الله په شرح الفيه (ص،١٧٦) كښے فرمائى.((فلان فيه نظر، وفلان سكتوا عنه، وهاتان العبارتان يقولهما البخارى رحمه الله فيمن تركوا حديثه)) خو محدث جليل حضرت مولانا حبيب الرحمن اعظمى رحمه الله دحافظ ذهبى رحمه الله اوحافظ عراقى رحمه الله قول په تحقيقى اوتفصيلى طور رد كړے دے.اوورئ حاشيه ،،الرفع والتكميل،( ص،٣٨٩، ٣٩١) وحاشيه قواعد فى علوم الحديث (ص،١٥٥، ١٥٧) وحاشيه سيرأعلام النبلاء (١٢، ٤٣٩، ٤٤٠)

نقل كړى دى.د خپل طرفه خو مونږ څه هم نه دى ونيلى.(١)

بيا امام بخارى رحمه الله دحديث په حاصلولو كنبې هم ډير احتياط كړے دے.يو خل يوكس د يو حديث په باره كنبې تپوس اوكړلو.چه په هغې كنبې دتدليس گمان وو نو امام بخارى رحمه الله ورته اوفرمائيل. ته زما په باره كنبې دتدليس شبه كوے.ماخو د يو محدث لس زره احاديث ددے ويرے پريخودى دى.او هم د شبه د وجې مې د يو بل محدث دومره احاديث يا ددے نه زيات احاديث پريخودے دى.(٢)

يعقوب بن ابراهيم دورقى رحمه الله فرمائى.«محمد بن اسماعيل فقيه هذه الأمة»(٣) دا قول دنعيم بن حماد رحمه الله نه هم منقول دے.(٤)

**امام بخارى رحمه الله د عالمانو په نظركنبې** د امام بخارى استاذ محمد بن سلام بيكندى رحمه الله امام بخارى رحمه الله ته اوفرمائيل .«أنظر في كتبي، فما وجدت فيها من خطأ فاضرب عليه، كي لا أرويه» امام بخارى رحمه الله دهغوى په احاديث نظر ثانى اوكړلو.نود كومو احاديثو په باره كنبې چه امام بخارى اطمينان ښكاره كړلو.په هغې باندے استاذ اوليكلو.«رضى الفتى» او كوم احاديث چه ضعيف وو.په هغې باندے ئے اوليكل.«لم يرض الفتى» (٥)

دغه شان د دوى يو بل استاذ عبدالله بن يوسف تنيسى رحمه الله هم دوى ته فرمانيلى وو.«أنظر في كتبي وأخبرني بما فيها من السقط»(٦)

ددوى استاذ اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله فرمائى.چه په كومه باريكه طريقه چه امام بخارى زما داحاديثو اصلاح كړے ده.هغه شان چا هم نه ده كړے. دوى فرمائى. «أتنذن لي أن أجدها؟» يعنى زه دا دوباره ليكم؟نوهغوى ورته اجازت وركړلو .«فاستخرج عامة حديثي بهذه العلة»(٧)

دغه شان په خپله امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه ما د اسماعيل بن ابى اويس د كومو احاديثو انتخاب كړے وو.په هغې باندے هغوى ليكل.«هذه الأحاديث إنتخبها محمد بن اسماعيل من حديثي»(٨)

---

(١) اوګورئ: سير أعلام النبلاء (٤٤١/١٢) وهدى السارى (٤٨٠) ومقدمة قسطلانى (ص.٣٧)_

(٢) هدى السارى (٤٨١) وتاريخ بغداد (٢٥/٢)_

(٣) تهذيب التهذيب (٤٥٧/٢٤) وطبقات السبكى (٩/٢)_

(٤) تهذيب التهذيب (٤٥٩/٢٤)_

(٥) تاريخ بغداد (٢٤/٢)

(٦) هدى السارى(٤٨٣) وسير أعلام النبلاء (٤١٩/١٢)_

(٧) سير أعلام النبلاء (٤٣٠/١٢)_

(٨) هدى السارى(٤٨٣)_

حافظ رجاء بن مرجی فرمائی.((فضل محمد بن اسماعیل علی العلماء کفضل الرجال علی النساء))(۱)

دغه شان فرمائی.((هو آیة من آیات الله یمشی علی ظهر الأرض))(۲)

امام محمد بن اسحاق بن خزیمه رحمه الله فرمائی.((ما تحت أدیم السماء أعلم بالحدیث من محمد بن اسماعیل))(۳)

محمدبن بشار بندار رحمه الله قول دے((هذا أفقه خلق الله فی زماننا))(۴)

کله چه امام بخاری رحمه الله بصرے ته تشریف یوړلو.نو محمد بن بشار رحمه الله اوفرمائیل . ((دخل الیوم سید الفقهاء))(۵)

ابومصعب زهری رحمه الله فرمائی.((محمد بن اسماعیل أفقه عندنا وأبصر بالحدیث من أحمد بن حنبل رحمه الله فقیل له جاوزت الحد، فقال للرجل: لو أدرکت مالکاً ونظرت إلی وجهه ووجه محمد بن اسماعیل لقلت: کلاهما واحد فی الفقه والحدیث))(۶)

ابوعمروخفاف رحمه الله فرمائی.((محمد بن اسماعیل أعلم بالحدیث من إسحاق بن راهویه واحمد بن حنبل رحمهما الله وغیرهما بعشرین درجة))(۷)

دا ټول تعریفی کلمات یا د دوی د استاذانو دی.یا د دوی د معاصرینو.د امام بخاری رحمه الله په باره کښے چه د روستنو عالمانو کوم اقوال دی.هغه د حد نه زیات دی. حافظ رحمه الله فرمائی.

((لو فتحت باب ثناء الأئمة علیه ممن تأخر عن عصره لفنی القرطاس ونفدت الأنفاس فذاک بحر لا ساحل له))(۸)

---

(۱) تاریخ بغداد (۲۵/۲) وهدی الساری(۴۸۳) وسیر أعلام النبلاء (۴۲۷/۱۲)_

(۲) پورتنی حواله)_

(۳) هدی الساری(۴۸۵ وتاریخ بغداد (۲۷/۲) وسیر أعلام النبلاء (۴۳۱/۱۲)_

(۴) سیرأعلام النبلاء (۴۲۹/۱۲) وهدی الساری (۴۸۳)_

(۵) تهذیب الکمال (۴۴۹/۲۴) وتاریخ بغداد (۱۶/۲) وتهذیب الأسماء واللغات (۶۸/۱) وهدی الساری (ص.۴۸۳) وسیرأعلام النبلاء (۴۲۲/۱۲)_

(۶) سیرأعلام النبلاء (۴۲۰/۱۲) وهدی الساری (ص.۴۸۲) وتهذیب الکمال (۴۵۵/۲۴) اود سیرأعلام النبلاء محقق ددے په حاشیه کښے لیکی.((یغلب علی ظنی أن أبا مصعب الزهری لم یقف علی کلام احمد فی الفقه حتی جعل البخاری رحمه الله أفقه منه ولو وقف علی کلامه لم یتفوه بذلک)_

(۷) طبقات السبکی (۱۰/۲) وهدی الساری (۴۸۵) وسیرأعلام النبلاء (۴۳۵/۱۲. ۴۳۶)

(۸) هدی الساری (۴۸۵)_

## دحدیث مشهورو امامانو فقهی مذاهب دامام بخاری رحمه الله مسلک

دامام بخاری رحمه الله د مسلک په باره کښې پنځه اقوال دی.

① دټولو نه مشهور قول دا دے چه دوی مجتهد مطلق دے. د چا مقلد نه دے. دا قول د علامه ابن تیمیه رحمه الله (۱) علامه نفیس الدین سلیمان بن ابراهیم علوی (۲) او دعلامه انورشاه کشمیری رحمه الله (۳) دے. حضرت شیخ الحدیث رحمه الله هم دا اختیار کړے دے. (۴) او هم دا راجح قول دے. ځکه چه د بخاری رحمه الله د زمانې عالمانو دوی د تفقه او امامت تصریح کړے ده. او په هغه زمانه کښې چاته د فقیه یا امام ونیلو مطلب هغه مجتهد خودل وو وړاندے د نعیم بن حماد اویعقوب دورقی رحمهما الله قول تیر شو. چه هغوی امام بخاری رحمه الله ،،فقیه هذه الامه،، ګرخولے دے .دغه شان محمد بن بشار رحمه الله ورته ،، افقه خلق الله فی زماننا،، ونیلی دی.

عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله فرمائی. «محمد بن اسماعیل امام، فمن لم یجعله اماماً فاتهمه» (۵)

یوځل د قتیبه بن سعید رحمه الله نه د ،،طلاق السکران،، دمسئلے تپوس اوشو. نوامام بخاری رحمه الله تشریف راوړلو. امام قتیبه (چه دامام بخاری رحمه الله استاذ وو) اوفرمائیل. «هذا احمد بن حنبل، وابن المدینی ،وابن راهویه، قد ساقهم الله إلیك» (۶) یعنی بخاری رحمه الله چه ددے اکابرینو مجموعه ده. الله تعالی تاته راولیږلو.

وړاندے د ابومحمدزهری رحمه الله قول ذکر شوے دے. چه «محمد بن اسماعیل أفقه عندنا وأبصر بالحدیث من أحمد بن حنبل رحمه الله فقیل له جاوزت الحد، فقال للرجل: لوأدرکت مالکاً ونظرت إلی وجهه ووجه محمد بن اسماعیل لقلت: کلاهما واحد فی الفقه والحدیث» یعنی په تفقه او استنباط کښې چه کوم مقام دوی ته حاصل دے. هغه امام بخاری رحمه الله ته هم حاصل دے.

② دویم قول د ابوعاصم عبادی اوتاج الدین سبکی رحمهما الله دے. دوی امام بخاری رحمه الله په شوافعو رحمهم الله کښې شمار کړے دے. ددے وجه دا ده. چه امام بخاری رحمه الله د زعفرانی، ابوثور، کرابیسی، او حمیدی رحمهم الله نه حدیث اوفقه حاصله کړے ده. او دا ټول دامام شافعی رحمه الله شاګردان وو. (۷) خودا خبره ددے وجے ټیك نه ده. چه د شاګردئ نه دا نه لازمیږی. چه د شاګرد

---

(۱) اوګورئ مقدمه لامع الدراری (۶۹)_

(۲) اوګورئ ،،ماتمس إلیه الحاجة لمن یطالع سنن ابن ماجه (ص.۲۶) مطبوعه مع سنن ابن ماجه )_

(۳) اوګورئ فیض الباری (۵۸/۱) وذکر الترتیب بین الصحاح الست وبیان مذاهبهم مع بعض الفوائد المهمة

(۴) اوګورئ لامع الدراری (۶۰)_

(۵) هدی الساری (ص.۴۸۴)_

(۶) سیر أعلام النبلاء (۴۱۸/۱۲) وهدی الساری (ص.۴۸۲)_

(۷) اوګورئ طبقات الشافعیة (۲/۲.۳)_

مذهب دے هم هغه وی.کوم چه د استاذ وی.که داسے وی.نوبیا د امام بخاری رحمه الله په استاذانو کښے ډیر احناف هم دی.

③ دریم قول دا دے.چه دوی حنبلی دی.ابن ابی یعلی رحمه الله دوی په ،،طبقات الحنابلة،، کښے ذکر کړی دی.(١) اوابن القیم رحمه الله فرمائی.((وکذلك البخاری ومسلم وابوداود والأثرم وهذه الطبقة من أصحاب أحمد اتبع له من المقلدین المحض المنتسبین إلیه)) (٢)

④ څلورم قول دا دے.چه دوی مجتهد منتسب الی الشافعی رحمه الله دے.(٣)

⑤ پنځم قول د بعضے متاخرینوعالمانو رحمهم الله دے.چه امام بخاری رحمه الله نه مجتهد وو.اونه مقلد.(٤)

**دامام مسلم رحمه الله مسلک** دامام مسلم رحمه الله د مسلك په باره کښے شاه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی . ((وأما مسلم وابن ماجه فلا یعلم منهبهما)(٥)هغه شان فرمائی.((وأما مسلم فلا أعلم منهبه بالتحقیق))(٦)

د شاه ولی الله رحمه الله او نواب صدیق خان رحمهما الله په نظر کښے دوی شافعی وو .(٧) ابن ابی یعلی رحمه الله دوی په طبقات حنابله کښے ذکر کړے دے.(٨)

ابن تیمیه رحمه الله فرمائی.چه دوی نه مجتهد وو.اونه مقلد.بلکه دوی د اهل حدیثو په مذهب باندے وو.(٩)

علامه ابراهیم بن شیخ عبداللطیف سندهی رحمه الله فرمائی.چه امام مسلم رحمه الله مجتهد منتسب الی الشافعی رحمه الله دے.ابن الاثیر رحمه الله په جامع الاصول کښے اوحافظ ابن حجر رحمه الله په ،،تقریب،، کښے د دوی مجتهد کیدو ته اشاره کړے ده.(١٠)

علامه ابراهیم سندهی رحمه الله د ،،اتحاف الاکابر،، په حواله سره لیکلی دی.چه امام مسلم مالکی المسلك وو.

---

(١) ما تمس إليه الحاجه (ص.٢٦)_

(٢) إعلام الموقعين عن رب العالمين (٢٤٢/٢) الوجه الرابع والأربعون من وجوه رد التقليد)_

(٣) قاله الإمام ولى الله الدهلوى رحمه الله فى ،،الإنصاف فى بيان سبب الإختلاف،، كذا فى ما تمس إليه الحاجه (ص.٢٦)_

(٤) اوګورئ ،،ماتمس إليه الحاجة لمن يطالع ابن ماجه (ص.٢٧)_

(٥) فيض البارى (١٥٨/١)

(٦) العرف الشذى مطبوعه مع جامع ترمذى (٢/١)_

(٧) اوګورئ ،،ماتمس إليه الحاجه،، (ص.٢٦.٢٥)_

(٨) ،،ماتمس إليه الحاجه،، (ص.٢٦)_

(٩) توجيه النظر إلى أصول الأثر(ص.١٨٥) ذكرالنوع الثانى والثلاثين من علوم الحديث)_

(١٠) اوګورئ ،،ماتمس إليه الحاجه،، (ص.٢٥، ٢٦)_

**دامام ابوداود رحمه الله مسلک** ① دامام ابوداود رحمه الله په باره کښې مشهوره دا ده چه دوی حنبلی وو. ابن ابی یعلی رحمه الله دوی په طبقات حنابله کښې ذکر کړی دی.(۱) اسماعیل پاشاه بغدادی رحمه الله په ,,هدية العارفين،، کښې دوی ,,حنبلی،، لیکلی دی.(۲)علامه انور شاه کشمیری رحمه الله هم دوی حنبلی ګرځولی دی.(۳)شیخ الحدیث صاحب هم دا غوره کړے ده.(۴)
② تاج الدین سبکی رحمه الله دوی په طبقات شافعیه کښې ذکر کړے دے.دغه شان نواب صدیق حسن خان هم دوی ته شافعی ونیلی دی.(۵)
③ دریم قول دا دے چه دوی مجتهد مطلق وو.(۶)
④ څلورم قول دا دے چه دوی مجتهد منتسب الی احمد واسحاق رحمهما الله وو.(۷)
دبعضے متاخرینو رحمه الله په نیز دوی اهل حدیث وو.((لیس بمجتهد مطلق ولا هو من المقلدین))(۸)
**دامام ترمذی رحمه الله فقهی مسلک**: امام ترمذی رحمه الله علامه انورشاه کشمیری رحمه الله شافعی ګرځولے دے.(۹)
ابن تیمیه رحمه الله فرمائی.دوی په اهل حدیثو کښې وو.نه مجتهد مطلق وو.اونه مقلد محض(۱۰)
د شاه ولی الله رحمه الله په رائے کښې دوی مجتهد منتسب الی احمد واسحاق وو.(۱۱)
**دابن ماجه رحمه الله مسلک**: دابن ماجه رحمه الله په باره کښې شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی.چه د دوی مذهب په تحقیق سره معلوم نه دے.(۱۲)
د شاه ولی الله رحمه الله په رائے کښې دوی مجتهد منتسب الی احمد واسحاق دی.(۱۳)
دابن تیمیه رحمه الله په رائے کښې دوی نه مجتهد وو.اونه مقلد محض.بلکه اهل حدیث وو.(۱۴)

---

(۱) ,,ماتمس إليه الحاجه،، (ص۲۶)_
(۲) هدية العارفين (۱/۳۹۵) _
(۳) فيض البارى (۱/۵۸) والعرف الشذى (ص۲۰)_
(۴) مقدمة لامع الدرارى (۷۱)_ تاج الدين سبكى رحمه الله
(۵) ماتمس إليه الحاجه(۲۵. ۲۶)_
(۶) قاله ابن تيمية .كما فى توجيه النظر(ص۱۸۵)_
(۷) قاله الإمام ولى الله الدهلوى رحمه الله كذا فى ماتمس إليه الحاجه (ص۲۶)_
(۸) ,,ماتمس إليه الحاجه،، (۲۷)_
(۹) فيض البارى (۱/۵۸) والعرف الشذى (ص۲۰)_
(۱۰) توجيه النظر إلى أصول الأثر(ص۱۸۵)_
(۱۱) ,,ماتمس إليه الحاجه،، (۲۶)_
(۱۲) فيض البارى (۱/۵۸) والعرف الشذى (ص۲۰)
(۱۳) ,,ماتمس إليه الحاجه،، (۲۶)_
(۱۴) توجيه النظر(ص۱۸۵)_

**د امام نسائی رحمه الله مسلک** امام نسائی رحمه الله د شاه ولی الله رحمه الله په رائے کښے شافعی دے.([1])
د ابن تیمیه رحمه الله په نیز دوی هم اهل حدیث دی.نه مقلد محض وو.اونه مجتهد مطلق.([2])
علامه انور شاه کشمیری رحمه الله ئے حنبلی گرخوی.([3])
علامه ابن تیمیه رحمه الله امام بخاری اوامام ابوداود رحمهماالله مجتهدین گرخولی دی . او امام مسلم.امام ترمذی.امام نسائی.امام ابن ماجه. امام ابن خزیمه.ابویعلی .امام بزار رحمهم الله وغیره حضراتو په باره کښے فرمائی.چه دا حضرات داهل حدیثو په مذهب باندے عاملین وو.مجتهدین امامانو کښے نه وو.خوامام شافعی .امام احمد . امام اسحاق . او ابو عبید رحمهم الله داقوالو طرف ته مائلین وو.
دوی فرمائی.چه دے ټولو حضراتو به د سنت د تابعدارئ پوره پوره کوشش کولو . بیا په دوی کښے دوه طبقے وے.یوه طبقه عراقیینو طرف ته مائله وه.لکه امام وکیع. یحی بن سعید . رحمهماالله وغیره اویوه طبقه مدنیین ته مائله وه.لکه امام عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله بیا امام دارقطنی رحمه الله اگرچه امام شافعی رحمه الله طرف ته مائل وو . خو په هغوی کښے شان اجتهاد زیات وو.د دوی مقام د امام بیهقی رحمه الله نه اوچت وو.ځکه امام بیهقی رحمه الله دامام شافعی رحمه الله نه بیخی خلاف نه کوی.اوامام دارقطنی رحمه الله د دوی په مقابله کښے په اجتهاد کښے اوچت او په فقه کښے زیات عالم وو. ([4])والله اعلم.
**ازمیښت او وصال:** امام بخاری رحمه الله عظیم شخصیت وو.اوقاعده دا ده.چه کله سړے ترقی کوی .نو د هغه حاسدین هم پیدا کیږی.اوهغه ته قسم قسم تکلیفونه اواذیتونه رسولی شی. امام بخاری رحمه الله ته هم داسے حالات پیش شوی وو.ددے وجے هغه د خپل وطن نه په وتلو مجبوره شو.
**اولنئ جلا وطنی:** صاحب د ،،جواهر مضیئه،، لیکلی دی.چه امام بخاری رحمه الله د بغداد نه واپس راغلو .نو فتوی ورکول ئے شروع کړلو.د بخارا مشهور عالم ابوحفص کبیر چه د امام محمد رحمه الله شاگرد وو.هغوی دے منع کړلو.چه فتوی مه ورکوئ.خودوی اونه منل .نو د دوی نه چا د رضاعت د مسئلے پښتنه اوکړه.که دوه ماشومان د یوے چیلئ یا غوا پئ اوڅکی. نو رضاعت ثابتیږی که نه؟ دوی د حرمت فتوی ورکړه.نو ددے په نتیجه کښے یوه هنگامه جوړه شوه.اوامام بخاری رحمه الله په خپل وطن پریخودو باندے مجبوره شو.دا واقعه اگرچه لویو لویو عالمانوذکر کړے ده.([5])

---

(۱) ..ماتمس إليه الحاجه.. (۲۶)-
(۲) توجیه النظر (۱۸۵)_
(۳) فیض الباری (۱/۵۸) والعرف الشذی (ص.۲۰)_
(۴) اوگورئ توجیه النظر إلى أصول الأثر(ص.۱۸۵) ذکرالنوع الثانی والثلاثین من علوم الحدیث_
(۵) دا واقعه امام سرخسی رحمه الله په مبسوط کښے ذکر کړے ده.صاحب د جواهر مضیئه په جواهر مضیئه (۱/۶۷) کښے په ترجمه د احمد بن حفص کبیر کښے د شمس الائمه نه نقل کړے ده.دغه شان دا واقعه غنیه شرح وقایه. کفایه شرح هدایه او فتح القدیر کښے هم (بقیه حاشیه په راروانه صفحه........

خو ددے باوجود ددے صداقت مشکوك دے.یقینی ده.چه ددے په روایت کښے گمان داخل دے چه په دین باندے معمولی غوندے پوهیږی.نوهغه انسان هم دا حماقت نه کوی.بیا پاتے شو دومره لوئے امام فقیه، محدث، مفسر.چاچه د شپاړس کالو په عمر کښے د وکیع بن الجراح او ابن المبارك رحمهماالله کتابونه حفظ کړی وو.هغه داسے غلطه فتوی څنګه ورکولے شی؟ څکه دا واقعه معلوله ده.(۱)

**په دویم ځل ویستل** په دویم ځل په هغه وخت کښے اوویستلے شو.کله چه هغوی فتوی ورکړه چه ایمان مخلوق دے.ابوبکربن حامد، ابوحفص الزاهد ،اوشیخ ابوبکر الاسماعیلی د احنافو په اکابرینو کښے دی.هغوی په یو محضرباندے دستخط اوکړلو چه ایمان مخلوق نه دے اوڅوك چه ددے د مخلوقیت قائل وی.هغه کافر دے.نوامام بخاری رحمه الله ددے د مخلوقیت قائل وو.نوځکه دوی د بخارا نه اوویستلی شو.صاحب د ..فصول عمادیه.. ددے ذکر کړے دے.(۲)

خو دا مسئله مختلف فیه ده.داحنافو اکابرین د غیرمخلوق قائلین وو.خو بله ډله د مخلوقیت قائله ده.امام بخاری رحمه الله اوابونصر مروزی رحمه الله دے طرف ته دی.امام احمد بن حنبل رحمه الله په دواړو باندے انکار کړے دے.هغوی فرمائی.څوك چه ایمان ته مخلوق وائی.هغه کافر دے.څکه چه په دے کښے کلام الله طرف ته تعریض دے.اوڅوك چه ایمان ته غیر مخلوق وائی.هغه مبتدع دے.(۳)

خو حقیقت دا دے.چه په دے مسئله کښے تفصیل دے.که یو کس ایمان اووائی .او مراد ئے کلمه د شهادت وی.اودے ته مخلوق وائی.نودا غلطه ده.څکه چه((لا إله إلا الله محمد رسول الله)) دقرآن دستور دے.اوکه یو کس د ایمان نه اقرارلسانی ، تصدیق قلبی، او عمل بالارکان مراد اخلی.نو دا بالکل صحیح ده.څکه چه انسان دخپل ذات او صفاتو په اعتبار سره مخلوق دے.د مسئله تنقیح نه ووشوے.بلکه د اجمال نه کار اخستے شوے وو.څکه د اختلاف اوتشدد نوبت راغلو.

**په دریم ځل د وطن نه ویستل** امام بخاری رحمه الله چه کله په ۲۵۰ھ کښے نیشاپور ته تشریف

---

(....بقیه حاشیه) منقول ده.اوګورئ (۳۱۹/۳، ۳۲۰) دغه شان علامه حسین بن محمد بن الحسن دیاربکری هم په تاریخ خمیس (۳۴۲/۲) کښے دکشف الاسرار شرح منار په حواله سره دا واقعه ذکر کړے ده.دغه شان فوائد بهیه (ص.۱۸) تعلیقات دراسات اللبیب (۳۰٤)_

(۱) څکه علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله په فوائد بهیه (ص.۱۸) کښے لیکی.((لکنی استبعد وقوعها بالنسبة إلی جلالة قدرالبخاری رحمه الله ودقة فهمه وسعة نظره وغورفكره، مما لا يخفى على من انتفع بصحيحه ،على تقدير صحتها فالبشر يخطئ.)_

(۲) اوګورئ تعلیقات .. دراسات اللبیب.. (۳۰٤، ۳۰۵)_

(۳) اوګورئ ..مجموع فتاوی شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله (۶۵۵/۷، ۶۶۱) فصل: وأما الإيمان هل هو مخلوق أوغيرمخلوق)_

بوړلو نوامام محمد بن يحی ذهلی رحمه الله اوفرمائيل.صبا ته د محمد بن اسماعيل رحمه الله د استقبال دپاره تلل دی. څوك چه تلل غواړی.نو تيار دےشی.

امام مسلم رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله داسے استقبال اوشو.چه د يو والی يا حاکم يا عالم داسے استقبال نه وو شوے.دوه درے منزله ورته خلق وړاندے د ملاقات دپاره راووتل. دوی نيشاپور ته تشريف راوړلو.او داهل بخارا په محله کښے ډيره شو.امام ذهلی رحمه الله خپلو شاګردانو ته دا هدايت کړےوو.چه دوی ته ورځئ.او د احاديثو سماع ترے کوئ.اوورسره ئے ورته دا هم وئيلی وو.چه د علم کلام د څه مسئلے تپوس ترے مه کوئ.ځکه که دوی زمونږ خلاف څه خبره اوکړه.نود نيشاپور او خراسان ناصبی.رافضی. جهمی.مرجئه ټول به خوشحاله شی.او انتشار به زيات شی.

خوقاعده دا ده.چه «الإنسان حريص فيما منع» نويو کس په عام مجلس کښے تپوس اوکړلو.چه تاسو د قرآن د الفاظو په باره کښے څه وائے.نوامام بخاری رحمه الله برابر د جواب نه اعراض کولو بيا دهغه په اصرار باندے ئے اوفرمائيل.«القرآن كلام الله غير مخلوق ،وأفعال العباد مخلوقة، والإمتحان بدعة»(١)

بعضے خلقو نقل کړی دی.چه اول کښے خو محمد بن يحی ذهلی رحمه الله خلقو ته د امام بخاری رحمه الله نه د سماع ترغيب ورکولو.خوچه کله هغه طرف ته رجوع زياته شوه.نوپه ذهلی باندے دا خبره سخته شوه.اوهغه په امام بخاری رحمه الله باندے د تنقيد کولو تدبيرونه جوړول شروع کړل.(٢)

بهرحال دامام بخاری رحمه الله په دے جواب باندے يو شور جوړ شو.په خلقو کښے اختلاف پيدا شو.چه دوی«لفظي بالقرآن مخلوق»اووئيل.اوڅه کسانو انکارکولو.کوربنومفسدين اوويستل دا خبره په مزه مزه امام ذهلی پورے اورسيده.هغوی اعلان اوکړلو.«القرآن كلام الله غير مخلوق من جميع جهاته،وحيث تصرف،فمن لزم هذا استغنى عن اللفظ وعما سواه من الكلام في القرآن، ومن زعم أن القرآن مخلوق فقد كفر، وخرج عن الإيمان،وبانت منه إمرأته ،يستتاب،فإن تاب وإلا ضرب عنقه، وجعل ماله فيئاً بين المسلمين، ولم يدفن في مقابرهم،ومن وقف فقال: لا أقول: مخلوق ولا غير مخلوق ،فقد ضاهى الكفر،ومن زعم أن لفظي بالقرآن مخلوق، فهذا مبتدع ،لا يجالس ولا يكلم، ومن ذهب بعد هذا إلى محمد بن اسماعيل البخاری فاتهموه فإنه لا يحضر مجلسه إلا من كان على مثل مذهبه»(٣)

---

(١) هدى السارى (٤٩٠) وسير أعلام النبلاء (١٢/٤٥٤)_

(٢) هدى السارى (ص.٤٩٠) تاريخ بغداد (٢/٣٠) وسير أعلام النبلاء (١٢/٤٥٣) وطبقات السبكى (٢/١١).

(٣) تاريخ بغداد (٢/٣٢،٣١) وسير أعلام النبلاء (١٢/٤٥٥، ٤٥٦)_

دغه شان دا اعلان ئے هم اوکړلو «ألا من قال باللفظ فلا یحل له أن یحضر مجلسنا»(۱)
ددے اعلان نه پس امام مسلم رحمه الله هم په هغه وخت خپل څادر په سر واچولو او پاسیدو لاړل په هغه پسے امام احمد بن سلمه رحمه الله هم د مجلس نه پاسیدلو امام مسلم چه څومره حدیثونه اخستی وو هغه ټول ئے واپس کړل (۲)
بل طرف ته احمد بن سلمه رحمه الله امام بخاری رحمه الله ته راغلو اووے وئیل حضرت په خراسان کښے یو کس ته ډیر مقبولیت حاصل دے او په دے مسئله کښے هغه مخالف شو اوس به څه کیږی؟ امام بخاری رحمه الله په خپله ږیره باندے لاس رابنکلو او وے فرمائیل «وأفوض أمری إلی الله إن الله بصیر بالعباد، اللهم إنی لم أرد المقام بنیسابور أشراً، ولا بطراً، ولا طلباً للرئاسة، وإنما أبت علی نفسی فی الرجوع إلی وطنی لغلبة المخالفین، وقد قصدنی هذا الرجل حسداً لما آتانی الله لا غیر» بیا ئے اوفرمائیل اے احمد! زه به هم صبا ته ددے ځائے لاړ شم چه زما د وجے تاسو د هغه د خبرو نه خلاص شئ.(۳)
بل طرف ته دا اوشوه چه کله امام مسلم رحمه الله اوامام احمدؒ بن سلمه رحمه الله د امام ذهلی د مجلس نه پاسیدل نوذهلی اووئیل «لا یساکننی هذا الرجل فی البلد» امام بخاری رحمه الله دهغه ځائے نه روان شو اوبخارا ته ئے تشریف یوړلو.(۴)
اوس دلته د دوو خبرو تحقیق ضروری دے.

چه امام بخاری رحمه الله «لفظی بالقرآن مخلوق» وئیلی هم دی اوکه نه؟ د امام بخاری رحمه الله نه «لفظی بالقرآن» چرته منقول نه دی په تاریخ بغداد وغیره کښے ذکر دی چه امام بخاری رحمه الله خپل ځان ته ددے قول نسبت غلط خودلے دے غنجار په تاریخ بخارا کښے په خپل سند سره دابوعمرو احمد بن نصر خفاف نه نقل کړی دی چه مونږ د ابواسحاق قیسی په مجلس کښے وو زمونږ سره محمد بن نصرمروزی رحمه الله هم موجود وو چه دامام بخاری رحمه الله ذکر شروع شو محمد بن نصر رحمه الله اوفرمائیل ما د امام بخاری رحمه الله نه دا اوریدلی دی چه فرمائیل ئے «من زعم أنی قلت: لفظی بالقرآن مخلوق، فهو کذاب، فإنی لم أقله» خفاف اووئیل چه په خلقو کښے خو ددے خبرے ډیر شهرت دے محمد بن نصر اووئیل خبره هم هغه ده کومه چه ما اوکړه.
ابوعمرو خفاف رحمه الله فرمائی زه امام بخاری رحمه الله ته ورغلم اول مے ورسره د څه حدیثونو په باره کښے بحث اوکړلو تردے هغه حدیثونه حل شو بیا ورته ما عرض اوکړلو چه دلته څه خلق ستاسونه داسے خبرے نقل کوی امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل «یا أبا عمرو! احفظ ما أقول

---

(۱) سیر أعلام النبلاء (۱۲/۴۶۰) وهدی الساری (۴۹۰)_
(۲) سیر أعلام النبلاء (۱۲/۴۶۰) وهدی الساری (ص.۴۹۱)_
(۳) سیر أعلام النبلاء (۱۲/۴۵۹) وهدی الساری (۴۹۱)_
(۴) سیر أعلام النبلاء (۱۲/۴۶۰) وهدی الساری (۴۹۱)_

لك ،من زعم من أهل نيسابور، وقومس ،والرأي، وحلوان،وبغداد، وكوفة ،والبصرة ،ومكة، والمدينة، أني قلت: لفظي بالقرآن مخلوق، فهو كذاب، فإني لم أقله ،إلا أني قلت: أفعال العباد مخلوقة»(١)

دويمه خبره ده مسئله او ددے تحقيق ....نو داهل حق د سلفو اوخلفو په دے باندے اتفاق دے چه قرآن كريم دالله تعالى كتاب دے.قديم دے.اوغير مخلوق دے.

دمسئلے د تحقيق نه وړاندے دا خبره ياده كړئ.چه حسين بن علي كرابيسي.عبدالله بن كلاب. ابوثور. داود بن علي ظاهري وغيره د «لفظي بالقرآن مخلوق» قائل دی.(٢)

حسين بن علي كرابيسي دامام احمدبن حنبل رحمه الله د نزدے دوستانوځنے وو.خو ددے قول د راتلو نه پس د هغوی دوستي په دشمنئ بدله شوه.هم دا قول ئے بنيادجوړ كړلو.اود يوبل خلاف ئے خبرے اوكړلے.(٣) كرابيسي رحمه الله ته چه كله د امام احمد رحمه الله د انكار علم اوشو.نو وے وئيل. «ما ندري أيش نعمل بهذا الفتى؟ إن قلنا مخلوق، قال،بدعة،وإن قلنا غير مخلوق قال:بدعة»(٤)

دغه شان داود ظاهري رحمه الله باندے اسحاق بن راهويه رحمه الله انكار كړے وو.بيا چه كله دامام احمد بن حنبل رحمه الله مجلس ته حاضر شو.نوهغه ئے منع كړلو.او وے فرمائيل.چه ماته محمد بن يحي ذهلي رحمه الله ده په باره كښے ليكلي دی.چه دے د «لفظي بالقرآن مخلوق» قائل دے. خلقو ورته اووئيل.چه دے خوانكار كوی.دوی اوفرمائيل.«محمدبن يحي أصدق منه»(٥)

اوس د مسئلے تحقيق دا دے.چه په دے باندے خو اجماع ده.چه قرآن كريم دالله تعالى كلام قديم اوغير مخلوق دے.خود تالي په الفاظو تلاوت كښے اختلاف دے .چه تلاوت او متلو يو دے.اوكه په دواړو كښے فرق شته.بعضو فرق كړے دے . هغوی وائي.چه متلو دالله تعالى كلام دے.اوتلاوت د قاري فعل دے.اوبعضو په دے مسئله كښے خاموشي اختيار كړے ده. امام احمد رحمه الله ته دا نسبت شوے دے.چه هغوی دواړه يو څيز گنړی.(٦)

امام بيهقي رحمه الله فرمائي.چه امام احمد رحمه الله دا صرف ددے دپاره وئيل.چه څوك تفريق اوكړی.چه تلاوت دقاري فعل دے.او متلو دالله تعالى كلام دے.نوچونكه د متلو وجود د قاري په وجود باندے مبني دے.نو د قرآن د مخلوقيت قول ئے نه اختيارولو گنی د امام

(١) تاريخ بغداد (٣٢/٢) وطبقات السبكي (١٣/٢ وسيرأعلام النبلاء (٤٥٧/١٢، ٤٥٨) وهدى الساري (ص،٤٩١)_ ؟؟؟

(٢) اوگورئ .. قواعد في علوم الحديث..(ص،٢٢٦)_

(٣) اوگورئ .قواعد في علوم الحديث..(٢٢٦)_

(٤) تهذيب التهذيب (٣٦١/٢) ترجمه حسن بن علي بن يزيد كرابيسي_

(٥) اوگورئ لسان الميزان (٤٢٢/٢) ترجمة داود بن علي الأصبهاني الظاهري_

(٦) اوگورئ شرح أصول إعتقاد أهل السنة والجماعة (٣٥٥/٢) لأبي القاسم اللالكائي رحمه الله_

احمد رحمه الله پشان به ئې د «لفظي بالقرآن مخلوق» باندې نکير کولو. دغه شان ئې «د لفظي بالقرآن غير مخلوق» باندې به ئې هم انکار کولو.
اوس چه چونکه دامام احمد رحمه الله اوامام بخاري رحمه الله مسلك يو شو خکه که دامام احمد رحمه الله په نيز په لفظ او ملفوظ او تلاوت او متلو کښې فرق نه وو.نو په «لفظي بالقرآن غيرمخلوق» به هغوی انکار نه کولو بيا امام بخاري رحمه الله دومره سخت اختلاف ولې اوکړلو؟او ددې اختلاف شهرت ولې اوشو.
ددې جواب دا دې چه د امام احمد رحمه الله مقابله د قدريه.جهميه. اومعتزله سره وه .دوی د قرآن د مخلوقيت قائلين وو.او په مختلفو تعبيراتو سره به ئې دا پيش کول .امام احمد رحمه الله په «لفظي بالقرآن مخلوق» باندې خکه انکار اوکړلو.چه جهميو به په دې سره دخپل مسلك تشهير کولو.چه «لفظي بالقرآن مخلوق» او «القرآن بلفظي مخلوق» کښې څه فرق نشته حالانکه په اوله جمله کښې د «مخلوق» حمل په «لفظي» باندې دې.او په دويمه جمله کښې د «مخلوق» حمل په «قرآن» دې.اود امام بخاري رحمه الله مقابله دهغه حنابلو سره وه.کوم چه د امام احمد رحمه الله د علومو نه پوره واقف نه وو.او د ،،خلق قرآن،، په مسله کښې ئې دومره مبالغه کوله .چه په کومه سياهئ چه قرآن ليکلې شي.اوپه کوم کاغذ باندې چه هغه ليکلې شي.د قرآن کريم ليکلو نه پس به ئې هغه سياهئ اوکاغذ ته هم قديم وئيل.حالانکه دامام احمد رحمه الله او دهغه په اصحابو کښې ذي علم اوفضل کښې څوك هم ددې قائل نه وو.اوښکاره ده.چه لفظ او آواز دواړه يو شان څنګه کيدې شي . لفظ بيل څيز دې.او آواز بيل څيز دې.دامام احمد رحمه الله نه هم دا منقول دی.چه دا قرآن نه دې.دانسان فعل اومخلوق دې.په حديث کښې دی «زينوا القرآن بأصواتكم»(۱) اوښکاره خبره ده.چه که يوکس دبل نه روايت کوی.نو «هذا لفظه» وائي.يا «هذا معناه» وائي.دا څوك نه وائي.چه «هذا صوته» د لفظ او صوت فرق ددې نه ښکاره کيږي.امام احمد رحمه الله د لفظ په باره کښېهغه انداز نه وو اختيار کړې.کوم چه د صورت په باره کښې هغوی اختيار کړې وو.ددې وجه هم هغه ده.چه څوك ،،لفظي مخلوق،، اووائي.يا ددې پشان بل لفظ اووائي.اود خلق قرآن تشهير شروع نکړي.بهرحال دا ضمني طور د مسئلې تحقيق وو.
**په خپل وطن بخارا کښې ازمائش** :بيا چه کله امام بخاري رحمه الله د نيشاپور نه بخارا ته راغلو. نود بخارا خلقو د دوی په راتلو باندې ددوی زبردست استقبال اوکړلو.امام بخاري رحمه الله دلته درس شروع کړلو.خلق به ډلې ډلې د حديث اوريدو دپاره راتلل.

---

(۱) سنن نسائی (۱۵۷/۱) کتاب الإفتتاح باب تزيين القرآن بالصوت ... وسنن أبی داود کتاب الصلاة باب إستحباب الترتيل فی القراءة رقم. ۱۴۶۸ وسنن ابن ماجه کتاب إقامة الصلاة باب فی حسن الصوت بالقرآن رقم ۱۳۴۲)_

بل طرف ته خالدبن احمد ذهلي چه د بخارا حاكم وو. هغه امام بخاري رحمه الله ته درخواست اوكړلو چه ته شاهي دربارته راځه اوماته د بخاري شريف او تاريخ درس راكوه امام بخاري رحمه الله ورته اوفرمائيل «أنا لا أذل العلم ولا أحمله إلى أبواب الناس» او ورته ئے اوفرمائيل كه تاته ضرورت وى نوزما جمات يا كور ته حاضريږه او په درس كښے شركت كوه. كه ستا دا خبره خوښه نه وى نو ته حاكم ئے. ما د درس نه منع كړه. چه د قيامت په ورځ زه الله تعالى ته خپل عذر پيش كولے شم. ځكه چه زه علم نشم پټولے. نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. «من سئل عن علم فكتمه ألجم بلجام من نار»(١)

په يو روايت كښے دى. چه د بخارا حاكم امام بخاري رحمه الله ته اووئيل. چه دلته راځه او زما خامنو ته جامع صحيح بخاري او دتاريخ درس وركوه. امام بخاري رحمه الله انكار اوكړلو هغه دوباره پيغام راوليږلو. چه زما خامنو ته خصوصي درس وركوه. چه بل څوك په كښے شريك نه وى. امام بخاري رحمه الله ددے نه هم انكار اوكړلو. په دے باندے هغه د څوكسانو نه مدد اوغوښتلو. دامام بخاري رحمه الله په مذهب تنقيدونه شروع شول. او دوى مبتدع اوګرځولے شو. بيا ورته حاكم د ښار نه د وتلو حكم اوكړلو. كله چه دوى بخارا پريښودلو. نو خيرے ئے اوكړلے. «اللهم أرهم ما قصدوني به في أنفسهم وأولادهم وأهاليهم» نويوه مياشت هم نه وه تيره شوے. چه خليفة المسلمين په څه وجه د دغه حاكم نه خفه شو. اوهغه ئے معزول كړلو. او بيا ئے حكم اوكړلو. چه په خر دے سور كړے شى. او په ټول ښار كښے دے د ده تذليل اوكړے شى. په آخر كښے هغه قيد كړے شو. دغه شان نور په نوم عالمان چه هغوى امام بخاري رحمه الله تنګ كړے وو. هغوى ته هم د خپل عمل سزا ملاؤ شوه. او ښه رسوا شول.(٢) رښتيا دى. چه «من عادى لي ولياً فقد آذنته بالحرب»(٣)

بهرحال امام بخاري رحمه الله دهغه ځائے نه اووتل. اوبيكند ته اورسيدلو. هلته كښے هم د دوى په باره كښے په خلقو كښے اختلاف پيدا شو. يوفريق دده موافق او بل مخالف شو. ځكه ئے هلته كښے هم ډيره كيدل مناسب اونه ګڼړلو. په دغه دوران كښے د سمرقند خلقو دوى ته دعوت وركړلو. دوى د هغوى دعوت قبول كړلو. د بيكند نه روان شو. په لاره كښے په ،،خرتنګ،، مقام كښے ايسار شو. دلته د دوى څه خپلوان وو.

---

(١) سنن أبي داود كتاب العلم باب كراهية منع العلم رقم (٣٦٥٨) جامع ترمذي كتاب العلم باب ما جاء في كتمان العلم رقم ٢٦٤٩. وسنن ابن ماجه، مقدمة باب من سئل عن علم فكتمه رقم. ٢٦١و(٢٦٤) و٢٦٥. ومسند احمد (٢٦٣/٢. ٣٠٥. ٣٤٤. ٣٥٣. ٤٩٥)_

(٢) د دے پوره تفصيل دپاره اوګورئ هدى السارى (ص.٤٩٣) وسير أعلام النبلاء (٤٦٣/١٢. ٤٦٥) وتاريخ بغداد (٣٣/٢. ٣٤) وتهذيب الكمال (٤٦٤/٢٤. ٤٦٦) وطبقات السبكى (١٤/٢)_

(٣) صحيح بخاري كتاب الرقاق باب التواضع رقم ٦٥٠٢)_

غالب بن جبریل څوک چه ددوی میزبان وو د هغوی بیان دے چه ما د امام بخاری رحمه الله نه د شپے په وخت د تهجدو نه پس دا دعا واوریدله چه کوله ئے «اللهم إنه قد ضاقت علی الأرض بما رحبت فاقبضنی إلیك» ددے نه پس یوه میاشت هم نه وه تیره شوے چه دوی وفات شو. د رمضان په آخره کښے داهل سمرقند په جمع دعوت باندے دوی سمرقند ته روان شو. امام بخاری رحمه الله سورلئ طلب کړه د دوو کسانو په مدد ئے څو قدمونه واخستل وے فرمائیل ما کینوئ. کمزوری مے ډیره زیاتیږی. دوی څه دعا اوکړله. اوهم هلته په خرتنګ کښے د وړکی اختر په شپه ۲۵۶ه کښے وفات شود اختر په ورځ د ماسپخین نه پس هم هلته خاورو ته اوسپارلے شو. (۱).

**یو زیږی** عبدالواحد بن آدم طواویسی رحمه الله فرمائی. ماپه خوب کښے اولیدلو چه په یو ځائے کښے نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم د یوجماعت سره ولاړ دے. ما ورته سلام اوکړلو. دوی د سلام جواب راکړلو. ما عرض اوکړلو. یارسول الله تاسو دلته څه ته ولاړ یئ هغوی اوفرمائیل. مونږ د محمدبن اسماعیل رحمه الله انتظارکوو. څو ورځے پس راته د امام بخاری رحمه الله د وفات خبر راورسیدلو. چه پته اولیګیدله. نودا هم هغه وخت وو. په کوم وخت چه ما نبی کریم ﷺ په خوب کښے لیدلے وو. (۲)

**دامام بخاری رحمه الله یو کرامت** کله چه امام بخاری رحمه الله دفن کړے شو. نود قبر نه د مشکو خوشبوئی شروع شوه. خلقو به تعجب کولو. اود قبر خاوره به ئے اوړله. د څوکیدار د وس نه هم خبره اووتله. نود لرګی جالئ ورته اولګولے شوه. ډیر مخالفینو چه دا کرامت اولیدلو نو توبه ئے اوویستله.

دا خوشبو ښکه وه. ښکاره ده. چه دا د سنتو دتابعداریٔ اود شریعت د ژوندی کولو خوشبوئی وه. رحمه الله رحمة واسعة وجزاه خیرالجزاء.

**تصنیفات** امام بخاری رحمه الله د اتلس کاله په عمرکښے «قضایا الصحابة والتابعین» لیکلے وو. (۳) ددے نه پس ئے په مدینه منوره کښے په هغه شپوکښے چه سپوږمئ به په کښے رونبانه وه. ,,تاریخ کبیر،، اولیکلو. (۴) امام اسحاق بن راهویه رحمه الله دا کتاب د امیرعبدالله بن طاهر ته پیش کړلو. چه آیا زه تاته جادو نه ښایم؟ چه امیر اوکتلو. نود تعجب اظهار ئے اوکړلو. اووے وئیل. زه دا نه ګنړم. چه دا به د دوی تصنیف وی. (۵)

---

(۱) اوګورئ هدی الساری (ص،۴۹۳) وسیرأعلام النبلاء (۴۶۶/۱۲، ۴۶۷) وتاریخ بغداد(۳۴/۲) وطبقات السبکی (۱۵/۲، ۱۶) وتهذیب التهذیب (۴۶۶/۲۴) _

(۲) تهذیب التهذیب ۴۶۷/۲۴) وتاریخ بغداد (۳۴/۲) وسیرأعلام النبلاء (۴۶۸/۱۲) وهدی الساری (ص،۴۹۳) وطبقات السبکی (۱۴/۲) _

(۳) هدی الساری (ص،۴۷۸) وسیرأعلام النبلاء (۳۴/۱۲) وطبقات السبکی (۵/۲) وتاریخ بغداد(۷/۲)_

(۴) پورتنئ حواله_

(۵) هدی الساری (ص،۴۸۳) وتاریخ بغداد (۷/۲) وسیرأعلام النبلاء (۴۰۳/۱۲) وطبقات السبکی (۷/۲)_

دامام بخاری تصنیفات لاندینی دی (١) صحیح بخاری (٢) قضایا الصحابة والتابعین (٣) الأدب المفرد (٤) جزء رفع الیدین (٥) جزء قراءة خلف الإمام (٦) تاریخ کبیر (٧) تاریخ اوسط (٨) تاریخ صغیر (٩) خلق أفعال العباد (١٠) کتاب الضعفاء (١١) برالوالدین.

د دے کتابونو نه علاوه څه تصانیف نور هم دی.د کومو ذکرچه مختلفو محدثینو کړے دے. (١٢) جامع کبیر .دا محدث ابن طاهر رحمه الله ذکر کړے دے. (١٣) مسند کبیر (١٤) تفسیر کبیر (١٥) دا فربری رحمه الله ذکر کړے دے. (١٦) کتاب الاشربة. ددے ذکر امام دارقطني رحمه الله کړے دے (١٧) کتاب الهبة. ددے ذکر وراق بخاری ابن ابی حاتم رحمه الله کړے دے. (١٨) اسامی الصحابة. ددے ذکر محدث ابوالقاسم بن منده رحمه الله کړے دے. (١٩) کتاب الوحدان (٢٠) کتاب المبسوط،. ددے ذکر امام خلیلی رحمه الله في ،،الارشاد،، کښے کړے دے. (٢١) کتاب العلل ددے ذکر هم ابن منده رحمه الله کړے دے. (٢٢) کتاب الکنی.ددے ذکر حاکم ابواحمد رحمه الله کړے دے . (٢٣) کتاب الفوائد ددے ذکر امام ترمذی رحمه الله د خپل جامع د کتاب المناقب په ضمن کښے کړے دے.(١)

**صحیح بخاری** په دے تولو تصنیفاتو کښے د تولو نه زیات مشهور ،،صحیح بخاری،، دے.امام نووی رحمه الله د دے نوم «الجامع المسند الصحیح المختصر من أمور رسول الله صلی الله علیه وسلم وسننه وأیامه» لیکلے دے.(٢) او حافظ ابن حجر رحمه الله ددے نوم «الجامع الصحیح المسند من حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم وسننه وأیامه» کیخودے دے.(٣)

() ،،جامع،، ورته د اته څیزونو د وجے وئیلی شی.(یعنی په دے کښے د اته قسمه مضامینو احادیث دی.د جامع تعریف وړاندے تیر شوے دے.)

() ،،مسند،، ورته ځکه وائی.چه په سند متصل سره مرفوع روایات نقل کوی.اوکوم آثار وغیره چه ذکر دی.هغه ضمناً او تبعاً دی.

() ،،صحیح،، ځکه دے.چه په دے کښے د صحت التزام شوے دے.

() ،،مختصر،، ځکه دے.چه د تولوصحیح احادیثو احاطه په دے کښے نه ده شوے.پخپله دامام بخاری رحمه الله قول دے.«ما أدخلت في هذا الکتاب إلا ما صح وترکت من الصحاح کي لا یطول الکتاب»(٤)

() ،،من امورالرسول ﷺ،، یا ،،من حدیث رسول الله ﷺ،، ځکه چه دنبی ﷺ اقوال په کښے مروی دی.

---

(١) اوګورئ هدی الساری (٤٩١، ٤٩٢)_

(٢) اوګورئ تهذیب الأسماء واللغات (٧٣/١) ومقدمة لامع الدراری (٨٣)_

(٣) اوګورئ هدی الساری (ص.٨) الفصل الثانی فی بیان موضوعه والکشف عن مغزاه فیه)_

(٤) سیرأعلام النبلاء (٤٠٢/١٢) وتاریخ بغداد (٩/٢) وتهذیب الأسماء واللغات (٧٤/١) وطبقات السبکی (٢ ٧) وهدی الساری (ص.٧)

(...سنن.. کښې افعال اوتقریراتو ته اشاره ده
(...ایام.. نه غزوات او هغه ټول واقعاتو طرف ته اشاره ده.کوم چه د نبی ﷺ په زمانه کښې پېښ شوی وو
امام بخاری رحمه الله ډېر روایات داسې ذکر کړی دی.چه په هغې کښې د نبی ﷺ قول یا فعل یا تقریر نه دے ذکر.په داسې مقاماتو کښې خلقو ته اشکال پېښېږی که د کتاب پوره نوم د نظرلاندې وی نواشکال په کښې نشته.

**دصحیح بخاری دتالیف سبب** دد کتاب د تالیف دوه اسباب بیانولې شی

① ابراهیم بن معقل نسفی رحمه الله فرمائی.چه دامام بخاری رحمه الله بیان دے.مونږ دخپل استاذ اسحاق بن راهویه رحمه الله په مجلس کښې وو.چه زمونږ په ملګرو کښې یو کس اووئیل «**لوجمعتم کتاباً مختصراً لسنن النبی ﷺ**» د فتح الباری د مقدمه الفاظ دی.«**لوجمعتم کتاباً مختصراً لصحیح سنة رسول الله ﷺ**» دد قول د وجې زما په زړه کښې دد کتاب د تالیف داعیه پیدا شوه.(۱)

② محمدبن سلیمان بن فارسی رحمه الله لیکی.چه ما د امام بخاری رحمه الله نه اوریدلی دی.چه دوی فرمائیل.ما رسول الله ﷺ په خوب کښې اولیدلو.چه زه دوی ته مخامخ ولاړ یم.او زما په لاس کښې ببوزې دے.په هغې باندې زه د نبی ﷺ نه مچان شړم . د معبرینو نه ما د تعبیر تپوس اوکړلو.نو هغوی راته اوفرمائیل.«**أنت تذب عنه الکذب**» دد خوب د تعبیر نه زما په زړه کښې د صحیح احادیثو راجمع کولو شوق پیدا شو.(۲)

په دې دواړو اسبابو کښې څه منافات نشته.دواړه کیدې شی.چه هم خوب محرك جوړ شوې وی.اودامام اسحاق بن راهویه رحمه الله دمجلس واقعې سره داعیه پیدا شوې وی.

**د تالیف ابتداء اوانتهاء**: د صحیح بخاری دتالیف شروع کله شوې وه.اوپوره شوې کله وو؟د رجال اوتاریخ په کتابونو کښې دد څه صراحت نشته.البته حضرت شیخ الحدیث رحمه الله د بعضې واقعاتو نه معلومه کړې ده.اوفرمائیلی ئې دی.چه په ۲۱۷ھ کښې دد شروع شوې وه. اوپه ۲۳۳ھ کښې سرته رسیدلې وو.دد تفصیل دا دے.چه ابوجعفر محمود بن عمرو عقیلی رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله کله د خپل کتاب په تالیف شروع اوکړه.نوامام احمد بن حنبل رحمه الله یحی بن معین رحمه الله اوعلی بن مدینی رحمه الله ته ئې دا پیش کړلو.ټولو ئې تعریف اوکړلو. اوصرف په څلوراحادیثو کښې ئې ورسره اختلاف اوکړلو.امام عقیلی فرمائی.په دې څلورو کښې هم دامام بخاری رحمه الله رائې راجح ده.(۳)

---

(۱) اوګورئ تاریخ بغداد (۸/۲) وتهذیب الکمال (۴۴۳/۲۴) وسیرأعلام النبلاء (۴۰۱/۱۲) وطبقات السبکی (۷/۲) وهدی الساری (ص۷) وتهذیب الأسماء واللغات (۷۴/۱)_
(۲) تهذیب الأسماء واللغات (۷۴/۱) وهدی الساری (ص۷) _
(۳) اوګورئ هدی الساری (ص۷)_

په دوی کښې دیحی بن معین رحمه الله وفات په ۲۳۳ھ کښې شوے دے.(۱) دعلی بن مدینی رحمه الله وفات په ۲۳۴ھ کښې شوے دے.(۲) اودامام احمد بن حنبل رحمه الله وفات په ۲۴۱ھ کښې شوے دے.(۳) دے درے واړه امامانو ته دا کتاب هله پیش کیدے شی.چه په ۲۳۳ھ کښې شوے وی.اودا معلومه ده.چه کتاب په شپاړس کاله کښې پوره شوے دے.(۴) نو د ۲۳۳ھ نه ۱۶کاله اوباسه.نو ۲۱۷باقی پاتے کیږی.(۲۳۳-۱۶= ۲۱۷) نودا به ونیلے شی.چه په ۲۱۷ھ کښے ددے په تالیف باندے شروع شوے وه.اوپه هغه وخت کښے د امام بخاری رحمه الله عمر دریویشت کاله وو او په ۲۳۳ھ کښےئے دا تکمیل ته رسولے وو.اوپه دغه وخت کښے دامام بخاری رحمه الله عمر دوه کم څلویښت کاله وو.

بیا امام بخاری رحمه الله ددے نه پس دریویشت کاله ژوندے پاتے شوے دے.نو د مصنفینو رحمهم الله د عادت مطابق په خپل کتاب کښے ئے کمے زیاتے کولو.ددے وجے د کتاب په نسخو کښے اختلاف موندلے شی.دحماد بن شاکرپه نسخه کښے د فربری رحمه الله د نسخے په مقابله کښے دوه سوه احادیث کم دی.اود ابراهیم بن معقل په نسخه کښے خو درے سوه احادیث کم دی.(۵)

**دصحیح بخاری یو امتیاز:** ابن عدی رحمه الله فرمائی.چه د عبدالقدوس بن همام رحمه الله بیان دے.چه ما د ډیرو مشائخو نه اوریدلی دی.چه امام بخاری رحمه الله د صحیح بخاری د ابوابو تراجم په ریاض الجنة کښے د منبر مبارك اوروضه مطهره په مینځ کښے لیکلی دی.او د هرے ترجمے دپاره به ئے دوه رکعته نفل کول.(۶)

عمربن محمد بن بجیر البجیری رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله فرمائیل.ما دا کتاب په مسجدحرام کښے لیکلے دے.دهرحدیث د لیکلو نه وړاندے مے استخاره کړے ده.اودوه رکعته نفل مے کړی دی.اوترڅوچه به راته د هغے دصحت یقین نه وو شوے.نو په کتاب کښے به مے نه لیکل.(۷)

په دے دواړو خبروکښے څه تضاد نشته.ممکنه ده.چه مسوده ئے په مسجد حرام کښے لیکلی وی.اوتبییض ئے په ریاض الجنة کښے کړے وی.دا هم کیدے شی.چه تراجم ئے په ریاض الجنة کښے لیکلی وی.اود احادیثولیکلو شروع ئے په مسجد حرام کښے کړی وی.څکه چه وړاندے تیر شوی دی.چه دا کتاب په شپاړس کاله کښے مکمل شوے دے.اودا موده په یوځائے کښے نه

---

(۱) تقریب التهذیب (ص.۵۹۷) ترجمه (۷۶۵۱) _

(۲) تقریب (ص.۴۰۳) ترجمه (۴۷۶۰)_

(۳) تقریب (ص.۸۴) ترجمه (۹۶)_

(۴) اوگورئ تاریخ بغداد (۴/۲ وسیرأعلام النبلاء (۱۲/۴۰۵) وتهذیب الأسماء واللغات (۷۴/۲) وطبقات السبکی (۷/۲) وهدی الساری (ص.۴۸۹)_

(۵) اوگورئ مقدمة لامع الدراری (۱۲۴ الفائدة السادسة_

(۶) تهذیب الأسماء واللغات (۷۴/۱) وسیرأعلام النبلاء (۱۲/۴۰۴) وهدی الساری (۴۸۹)_

(۷) هدی الساری (ص.۴۸۹)_

وى تيره شوے.( )

**د بخارى د رواياتو تعداد** حافظ ابن الصلاح رحمه الله په ..مقدمه..كښے ليكلى دى.«**جملة ما فى كتابه الصحيح سبعة آلاف ومائتان وخمسة وسبعون حديثاً بالأحاديث المكررة،وقد قيل إنها بإسقاط المكررة أربعة آلاف حديث**» يعنى چه مكررات په كښے شمار كړى.نو د صحيح بخارى د احاديثوتعداد اووه زره دوه سوه پنځه اويا دى.اود مكرراتو د حذف نه پس څلور زره احاديث جوړيږى.امام نووى رحمه الله په ..تقريب.. كښے او حافظ ابن كثيرپه ،،**إختصارعلوم الحديث**،، كښے ددے اتباع كړے ده. (٢)

امام نووى رحمه الله په خپله شرح د بخارى كښے (٣) او **تهذيب الأسماء واللغات** كښے (٤) هم دا تعداد ذكر كړے دے.خو په دے دواړوكتابونو كښے ئے د ..مسندة.. قيد لګولے دے.په دے سره هغه ټول روايات خارج شول.كوم چه د تعليقاتو اومتابعاتو په صورت كښے دى.بيا هغوى په خپله شرح د بخارى كښے د حافظ ابوالفضل محمد بن طاهر رحمه الله د كتاب ..جواب المتعنت.. نه په تفصيل سره هغه ټول روايات ذكر كړى دى.حافظ ابن حجر رحمه الله دا ټول تفصيلات په مقدمه كښے نقل كړى دى.او ځائے په ځائے ئے په هغے باندے تنقيد كړے دے.اوپه آخر كښے ئے فرمائيلى دى.زما د تحقيق مطابق په بخارى كښے د مكرراتو سره اووه زره درے سوه اووه نوى احاديث دى.(٥) هم دا شماره قابل اعتماد دے.دتفصيل پيژندلو نه وړاندے په دے باندے پوهه شئ:چه په صحيح بخارى كښے څه روايات مرفوعه موصوله دى.څه معلقات دى.اوڅه متابعات دى.بيا د معلقاتو دوه قسمونه دى.يوهغه دى.چه د هغے تخريج مؤلف په خپله په خپل كتاب كښے په بل ځائے كښے كړے دے.اودويم قسم هغه معلقات دى.چه د هغے تخريج هغوى په خپله نه دے كړے.اوس په دے كښے د يو تفصيل دا دے.

روايات مرفوعه موصوله مع مكررات (٧٣٩٧)

روايات معلقه مخرجة المتون في الصحيح (١٣٤١) متابعات (٦)

(١) اوګورئ هدى السارى (ص،٤٨٩) .. قال النووى رحمه الله قال الآخرون منهم أبوالفضل محمدبن طاهر المقدسى _ صنفه ببخارى وقيل:بمكة وقيل بالبصرة وكل هذا صحيح،ومعناه أنه كان يضيف فيه فى كل بلدة من هذه البلدان فإنه بقي في تصنيفه ست عشرة سنة ... تهذيب الأسماء واللغات (٧٤/١)_

(٢) اوګورئ تقريب الراوى مع تدريب الراوى (١٠٢/١) او ..اختصار علوم الحديث.. مع شرح الباعث الحثيث..

(٣) اوګورئ مقدمة لامع الدرارى (ص، ١٢٤، ١٢٥) _

(٤) (٧٥/١)_

(٥) اوګورئ هدى السارى (ص،٤٦٥، ٤٦٩) الفصل العاشر فى عدأحاديث الجامع)_

(٦) مقدمة فتح البارى (ص،٤٦٩) كښے د متابعاتو تعداد درے سوه يوڅلويښت ذكر دے.دا د كاتب سهوه ده.صحيح تعداد درے سوه څلورڅلويښت دے.كوم چه قسطلانى رحمه الله دحافظ رحمه الله نه نقل كړے دے.كه درے سوه يوڅلويښت وو.نومجموعه به ئے نهه زره دوه څلويښت نه جوړيدله دكوم چه حافظ رحمه الله تصريح كړے ده.فتنبه _

مجموعه _ (۹۰۸۲)
روایات مرفوعه موصوله بغیر دتکرار نه (۲۶۰۴)
روایات معلقه غیر مخرجة المتنون في الصحیح (۱۵۹)
میزان د ټولو حادیثو بغیر د تکرار نه (۲۷۶۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه پورتنے شمار د آثارصحابه رضی الله عنهم اوتابعین رحمهم الله د مقطوعانو نه علاوه دے.چه دهغے شمار په پوره کتاب کښے یو زر شپږ سوه اته دے.(۱)
دلته دے دا خبره ښکاره وی.چه حافظ ابن حجر رحمه الله د فتح الباری په مختلفو ځایونو کښے اوبیا په مقدمه د فتح الباری کښے د صحیح بخاری د احادیثو شمار بیان کړے دے.خو په دے مختلفو مقاماتوکښے مختلف تعداد موجود دے.(۲) په بعضے مقاماتو کښے د حافظ رحمه الله نه سهوه شوے ده.او په بعضے مقاماتوکښے اختلاف د ناسخ په سهو محمول دے.کوم تعداد چه پورته اوخودلے شو.هغه محقق اومحرر دے.علامه قسطلانی رحمه الله هم دا غوره کړے دے.(۳)
والله سبحانه وتعالى أعلم
**دکتاب موضوع** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه دصحیح بخاری اصل موضوع خو د صحیح احادیثو جمع کول دی.دا موضوع ددے د نوم نه ښکاره ده.«الجامع الصحيح المسند من حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم وسننه وأيامه» دے سره سره دا خبره هم دے سره د نظرورانده ده.چه د فقهی استنباطاتو اوفوائدو هم په دے کښے ذکر دے.امام بخاری رحمه الله چه د احادیثو نه کوم فقهی استنباطات کړی دی.هغه ئے په متفرقو بابونو کښے ذکر کړی دی.(۴)
امام نووی رحمه الله فرمائی.چه د امام بخاری رحمه الله مقصود صرف د صحیح احادیثو جمع کول نه وو.بلکه په مختلفوفقهی بابونوکښے دهغے نه مسائل مستنبط کول هم وو.هم دا وجه ده.چه دوی په ډیرو بابونوکښے حدیث په سند سره نه دے ذکر کړے.بلکه صرف په دومره خبره ئے اکتفاء کړے ده.«فيه فلان عن النبى صلى الله عليه وسلم»اوکله متن بغیر د سندنه ذکر کوی.اوکله متن تعلیقاً ذکر کوی.دا ټول اسالیب په دے باندے دلالت کوی.چه د دوی مقصود احکام او مسائل په څه باندےچه ئے تراجم قائم کړی دی.په هغے باندے احتجاج او استدلال کول دی.نوکله یو معلوم حدیث طرف ته اشاره اوکړی.اوکله داسے کیږی.چه هغه حدیث نزدے یا په بل ځائے کښے ذکر شوے وی.(۵)

---

(۱) اوګورئ فتح الباری (۵٤۳/۱۲) خاتمه _
(۲) اوګورئ فتح الباری (۸٤/۱) كتاب الإيمان باب كفران العشير.و(۵٤۲/۱۳. ۵٤۳ خاتمه .. وهدى السارى (ص.٤٦۵. ٤٦۹) الفصل العاشر فى عد أحاديث الجامع ... و(ص.٤۷۷) ذكر من لا يعرف أسمه واختلف فيه)_
(۳) اوګورئ مقدمة إرشاد القارى (۲۸) دغه شان اوګورئ ارشاد القاری ازحضرت مولانا مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله (۳۵. ۳۶)_
(۴) هدى السارى (ص.۸) الفصل الثانى فى بيان موضوعه الكشف عن مغزاه فيه _
(۵) پورتنئ حواله_

علامه کوثری رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصود داحادیثو صحیحو تخریج .او فقه .اوسیرت. اودتفسیر استنباط دے.نوهغوی څکه ضمناً موقوف اومعلق احادیث دغه شان د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله فتاوے او رائیګانے هم ذکر کړی دی.او ددے غرض د حاصلولودپاره ئے متون حصے حصے کړی دی.اوهغه ئے په مختلفو بابونو کښے ذکر کړی دی.(۱)

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی.چه عالمانو د ټولو نه وړاندے چه دا علم مدون کړلو.نو په څلورو فنونوباندےئے تقسیم کړل.

○فن السنة: یعنی فقه لکه مؤطا امام مالك او ..جامع سفیان رحمه الله ..
○ فن تفسیر: لکه کتاب ابن جریج رحمه الله
○ فن سیر: لکه د محمد بن اسحاق کتاب .
○ فن زهد ورقائق: لکه دامام ابن المبارك رحمه الله کتاب.

دامام بخاری رحمه الله اراده دا پیدا شوه.چه دا څلور واړه فنون یو ځائے کړی . او صرف هغه احادیث راجمع کړی.په کومو باندے چه د امام بخاری رحمه الله نه وړاندے یا په دغه زمانه کښے چا دصحت حکم لګولے وی.بله دا چه دا کتاب د مرفوع اومسند احادیثو دپاره خاص کړی.نوځکه هغوی دخپل کتاب نوم ..الجامع الصحیح المسند.. کیخودلو.ترکومے پورے چه دآثارو وغیره تعلق دے.نوهغه تبعاً ذکر شوی دی.اصالةً نه دی.

بیا دامام بخاری رحمه الله مقصود دا هم وو.چه داحادیثو نه بنه استنباط اوشی.نوهغوی هم داسے اوکړلو.د یو یو حدیث نه ډیرمسائل مستنبط کوی.دا طریقه ددوی نه وړاندے چانه وه اختیار کړے.(۲)

**دصحیح بخاری شروط** د شروطو مطلب دا دے.چه مصنفین دکتاب دتالیف په وخت کښے بعضے خبرے د نظرلاندے ساتی.اوهم د هغے مطابق مضامین راوړی.دهغے نه نه اوړی.چه څه ذکر کړی . شپږو امامانو رحمهم الله هم په خپلو کتابونوکښے د څه شروطو خیال ساتلے دے.خو ددے حضراتو نه دا تصریح منقول نه ده.چه ما فلانے شرط دنظرلاندے ساتلے دے.روستنو عالمانود هغوی د کتابونو مطالعه کړے ده.اوهغه شرطونه ئے معلوم کړی دی.(۳)

امام حاکم رحمه الله فرمائی.د صحیح متفق علیه اولنے قسم هغه دے.کوم چه امام بخاری او مسلم رحمهما الله نقل کړے وی.اودا د اولے درجے صحیح دے.یعنی هغه حدیث چه داسے صحابی رضی الله عنه ئے روایت اوکړی.کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په روایت کولو کښے مشهور وی.د دغه صحابی

---

(۱) اوګورئ تعلیقات الکوثری رحمه الله علی شروط الأئمة الخمسة للحازمی (ص.۸۲) المطبوع مع سنن ابن ماجه)_
(۲) اوګورئ ابتداء رساله شرح تراجم ابواب صحیح البخاری مطبوعه مع صحیح بخاری (ص.۱۳)_
(۳) حافظ ابوالفضل محمدبن طاهرمقدسی رحمه الله لیکی.((إعلم أن البخاری ومسلماً ومن ذکرنا بعدهم لم ینقل عن واحد منهم أنه قال شرطت أن أخرج فی کتابی مایکون علی شرط الفلانی وإنما یعرف لک من سبر کتبهم فیعلم بذلک شرط کل رجل منهم)) اوګورئ ابتداء شروط الأئمة الستة (ص.۷۰) مطبوعه قدیمی کتب خانه کراچی مع سنن ابن ماجه _

رضی الله عنه نه ددغه حدیث نقل کولو دوه راویان ثقه وی.بیا دا حدیث هغه تابعی رحمه الله بیان کړی.چه هغه د صحابو رضی الله عنهم نه په روایت کولو کښې مشهور وی.او دهغې هم دوه ثقه راویان وی.بیا په تبع تابعینو کښې حافظ متقن مشهور کس دهغې روایت اوکړی.اوپه څلورمه طبقه کښې د دې حدیث د دوو نه زیات راویان وی.بیا دبخاری یا مسلم رحمهما الله شیخ حافظ اومتقن وی.او په خپل روایت کښې د عدالت شهرت لری.(۱)

په دې لحاظ سره د امام حاکم رحمه الله په نیز د صحیح دپاره د دریو خبرو وجود ضروری دې.کوم چه دهغوی په قول کښې د شیخینو رحمهما الله په شرط کښې دی.

① دصحابی رضی الله عنه اوتابعی نه د هغه حدیث دوه ثقه راویان وی.او په څلورمه طبقه کښې ددې د وو نه زیات راویان وی.لکه چه په هره طبقه کښې د دوو راویانو وجود ضروری دې.

② دامام بخاری رحمه الله او مسلم رحمه الله دشیخ نه واخله ترصحابی رضی الله عنه پورې هر راوی ثقه او په روایت کښې مشهور وی.

③ شیوخ شیخین رحمهما الله او په تبع تابعینو رحمهم الله کښې چه څوک هم دا حدیث روایت کوی.هغه د ثقاهت اوشهرت سره سره حافظ اومتقن هم وی.

حاکم رحمه الله چه اولنې شرط کوم بیان کړلو.چه په هره طبقه کښې د دوو راویانو وجود ضروری دې.داسې حدیث ته په اصطلاح کښې ..عزیز.. وائی.(۲)داسې احادیث ډیر کم دی.څکه حافظ ابوعلی غسانی رحمه الله د حاکم رحمه الله په کلام کښې د تاویل کوشش کړې دې.دوی فرمائی. «وإنما المراد أن هذا الصحابي رضی الله عنه وهذا التابعي رحمه الله قد روى عنه رجلان خرج بهما عن حد الجهالة» (۳) یعنی په هره طبقه کښې د دوو راویانو دوجود مطلب دا نه دې.چه هم دغه حدیث د صحابی رضی الله عنه یا تابعی رحمه الله نه روایت کوی.هغوی دوه کسان وی.بلکه مطلب دا دې.چه ددغه صحابی رضی الله عنه یا تابعی رحمه الله نه روایت کونکی مطلقاً دوه کسان وی.څکه که د یوراوی نه دوه کسان روایت اوکړی. نوهغه د ..جهالت.. نه اوځی.

خو دحاکم رحمه الله د کلام دا مطلب اختتل دهغوی د خپلو تصریحاتونه خلاف دې . څکه علامه ابوعبدالله المواق فرمائی.«ماحمل الغساني عليه كلام الحاكم وتبعه عليه عياض وغيره ليس بالبين» دغه شان فرمائی.زه نه پیژنم چه یوکس هم د شیخینو رحمهما الله نه روایت کړې وی.چه هغوی ددې تصریح کړې ده.اونه د دې په صحیحینوکښې څه درك لګی.اونه د صحیحینو نه علاوه د بل ځائې نه که ددې قائل په صحیحنو کښې د شیخینو رحمهما الله طرز ته کتلې وی.اودا نې ګڼړلی وی.نوهغه غلطی کړې ده څکه چه په صحیحینوکښې خو دواړه

---

(۱) اوګورئ معرفة علوم الحديث للحاكم (۶۲) ذكرالنوع التاسع عشر من علوم الحديث وهو معرفة الصحيح والسقيم والمدخل في أصول الحديث (ص.۹۰)_

(۲) اوګورئ مقدمة ابن الصلاح (ص.۱۳۶) النوع الحادي والثلاثون معرفة الغريب والعزيز من الحديث)_

(۳) تدريب الراوي (۱/۱۲۶)_

قسمه احادیث موجود دی اوکه ده په صحیحینو کښې داسې احادیث زیات لیدلی وی.اوخیال ئې کړې وی.نودا د دې خبرې دلیل نشی کیدې چه د شیخینو رحمهماالله په نیز دا مشروط دې.دا د انصاف نه بیخی لرې خبره ده.چه د دهغوی نه د ثبوت نه بغیر دا شرط په هغوی باندې لازمولې شی.حالانکه هغوی صحیحین ددې شرط نه خالی ساتلی دی.خکه که د هغوی نه ددې شرطیت ثابت شی.نوددې په پریخودو باندې به په هغوی باندې اعتراض راتلې شی.

حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه ابن المواق ددې بیان متعلق بیان کوی.((وهذا کلام مقبول وبحث قوی))(۱)

دحاکم رحمه الله دا بیان عالمانو رد کړې دې. حافظ ابوالفضل محمد بن طاهرمقدسی رحمه الله فرمائی. ((إن البخاری ومسلماً لم یشترطا هذا الشرط ولا نقل عن واحد منهما أنه قال ذلك والحاكم قدر هذا التقدير وشرط لهما هذا الشرط على ما ظن ولعمرى إنه شرط حسن لوكان موجوداً فى كتابيهما إلا أنا وجدنا هذه القاعدة التى أسسها الحاكم منتقضة فى الكتابين جميعاً))(۲)

ددې نه پس هغوی د صحیحینو نه اووه مثالونه پیش کړی دی.چه دهغې نه د امام حاکم رحمه الله د خبرې تردید کیږی.بیا فرمائی.

((هذا ما اقتصرنا منها على هذا القدر لتعلم أن القاعدة التى أسسها منتقضة لا أصل لها ولو اشتغلنا بنقض هذا الفصل فى التابعين وأتباعهم ولمن روى عنهم إلى عصر الشيخين لأربى على كتابه ،،المدخل،، إلا أن الإشتغال بنقض كلام الحاكم لايفيد فائدة وله فى سائر كتبه مثل هذا الكثير عفاالله عنا وعنه))(۳)

علامه حازمی رحمه الله هم ددې پرزور تردید کوی.اوهغوی یو مستقل باب ((باب فى إبطال قول من زعم أن شرط البخاری إخراج الحديث عن عدلين وهلم جراً إلى أن يتصل الخبر بالنبى ﷺ)) قائم کړې دې (۴)

دا خودامام حاکم رحمه الله خیال وو.ابوحفص میانجی رحمه الله ددې نه لویه دعوه کړې ده.هغوی لیکی.((شرط الشيخين فى صحيحيهما أن لا يدخلا فيه إلا ما صح عندهما وذلك ما رواه عن النبى ﷺ إثنان فصاعداً وما نقله عن كل واحد من الصحابة أربعة من التابعين فأكثر،وأن يكون عن كل واحد من التابعين أكثر من أربعة))(۵) یعنی د شیخینو رحمهماالله په نیز د حدیث دصحت دپاره دا شرط دې.چه دا د

---

(۱) شروط الأئمة الستة(۷۱)_

(۲) شروط الأئمة (ص.۷۱)_

(۳) پورتنئ حواله_

(۴) اوګورئ شروط الأئمة الخمسة (ص.۷۳. ۷۵. ۷۷)_

(۵) تدريب الراوى (۷۱/۱)_

رسول الله ﷺ نه دوه یا د دوو نه زیات صحابه کرام رضی الله عنهم روایت کړی وی او د هر صحابی رضی الله عنه نه څلور یا د څلورو نه زیات تابعین رحمهم الله روایت اوکړی او د هر تابعی رحمه الله نه د څلورو نه زیات تبع تابعین رحمهم الله روایت اوکړی

حاکم رحمه الله خو په هره طبقه کښې د دوو راویانو وجود ضروری کړے وو او ابوحفص میانجی رحمه الله په کښې په دوو باندے هم زیادت اوکړلو بیا دحاکم رحمه الله په نیز د یو صحابی شهرت کافی وو او ددوی په نیز دحدیث دصحت دپاره دوه صحابیان ضروری اوګرځولی شو دحاکم رحمه الله د بیان د تردید نه پس د دے د تردید څه ضرورت پاتے نشو صرف د حافظ رحمه الله یو قول دلته نقل کولے شی کوم چه هغوی د ابوحفص میانجی دد ے بیان په باره کښې کړے دے فرمائی

((وهو كلام من لم يمارس الصحيحين أدنى ممارسة فلو قال قائل: ليس في الكتابين حديث واحد بهذه الصفة لما أبعد)) (۱) یعنی دا داسے کس خبره ده چه دهغه د صحیحینو سره معمولی تعلق هم نشته که څوك دا اووائی چه په صحیحینو کښې په دے صفت باندے یو حدیث هم نشته نو دا خبره هم څه لرے نه ده.

باقی پاتے شو دحاکم رحمه الله دویم شرط چه دامام بخاری رحمه الله اومسلم رحمه الله د شیخ نه واخله ترصحابی رضی الله عنه پورے هرراوی ثقه وی او په حدیث کښې مشهور وی نو اګرچه په دے دعوی کښې ابن جوزی رحمه الله هم د دوی سره ولاړ دے (۲) دغه شان حافظ مقدسی رحمه الله هم لیکلی دی ((إن شرط البخاري ومسلم أن يخرجا الحديث المتفق على ثقة نقلته إلى الصحابي المشهور من غير اختلاف بين الثقات والأثبات)) (۳) یعنی د امام بخاری رحمه الله اومسلم رحمه الله شرط دا دے چه دهغه حدیث تخریج به کوی چه د شروع نه واخله ترصحابی رضی الله عنه پورے دهغے د ناقلینو ثقاهت متفق علیه وی او د ثقاهت په اثبات کښې د هغوی په مینځ کښې اختلاف نه وی . . .

خوحقیقت دا دے چه دا شرط هم صحیح نه دے حافظ عراقی رحمه الله فرمائی.

((وليس ما قاله بجيد، لأن النسائي ضعف جماعة أخرج لهم الشيخان أو أحدهما)) (۴)

دغه شان حافظ محمد بن ابراهیم وزیر یمانی رحمه الله لیکی.

((ما هذا مما اختص به النسائي بل شاركه في ذلك غير واحد من أئمة الجرح والتعديل كما هو معروف في كتب هذا الشأن)) (۵) یعنی دا صرف دامام نسائی رحمه الله پورے خاص نه دے بلکه د جرح والتعدیل ډیر

---

(۱) تدریب الراوی (۱ ۷۱)_

(۲) اوګورئ . . تبصرة برمدخل في أصول الحديث . . از مولانا عبدالرشید نعمانی مدظلهم (ص.۶۹)_

(۳) اوګورئ فاتحة شروط الأئمة (ص.۷۰)_

(۴) فتح المغيث شرح ألفية الحديث للعراقي (ص.۲۱، ۲۲) مراتب الصحيح)_

(۵) اوګورئ تبصره. المدخل في أصول الحديث (ص.۷۰)_

مومن دهغه سره په دے کښے شریك دی لکه څنګه چه په کتابونو د رجالو کښے دا خبره واضحه ده
دغه شان محدث امیریمانی رحمه الله فرمائی «لایخفی أنه لیس کل من جرح من رجال الصحیحین جرحه مطلق، بل فیه جملة جرحوا جرحاً مبین السبب»(۱) یعنی دا خبره نه ده چه د صحیحینو په رجالو کښے چه په چا باندے جرح اوشوه هغه جرح مطلق ده بلکه دے راویانو کښے یوه ډله داسے ده چه په هغوی باندے جرح مفسره ده او د جرح داسبابو وضاحت په کښے موجود دے.
خلاصه دا شوه چه د حاکم رحمه الله دا دویم شرط هم ټیك نه معلومیږی چه دټولو راویانو ثقاهت او شهرت ضروری دے ځکه چه په صحیحینو کښے ډیرداسے راویان هم موجود دی چه په هغوی باندے جرح شوے دے اودهغوی په باره کښے کلام شوے دے اوپه هغوی باندے جرح مفسره یعنی د جرح سبب هم خودلے شوے دے اصل خبره هم هغه ده کومه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلے ده چه «إن ما قاله ابن طاهر هوالأصل الذی بنیاعلیه وقدیخرجان عنه لمرجح یقوم مقامه»(۲) بیشکه دابن طاهر رحمه الله چه کوم بیان دے شیخینو رحمهما الله هم په دغه اصولو باندے بنیاد ایخودے دے خوکله دا اصول ددے وجے پریږدی چه د ترجیح څه وجه د دغه اصولو قائم مقام وی.
باقی پاتے شو دریم شرط چه په هغے کښے حاکم د صحت دحدیث دپاره د شیخینو د شیوخو اوتبع تابعینو رحمهم الله وغیره دپاره د اتقان شرط لګولے دے نودا شرط هم ټیك نه دے ځکه چه وړاندے تاسو ته معلومه شوه چه د شیخینو رحمهما الله د هرراوی دپاره ثقاهت لازمی شرط نه دے نوبیا د شیخینو د شیوخو اوتبع تابعینو دپاره د حفظ اواتقان شرط څنګه ټیك کیدے شی حافظ علائی رحمه الله لیکی «هو متفق علی قبوله والإحتجاج به إذا وجدت فیه شرائط القبول، ولیس من المختلف فیه البتة، ولا یبلغ الحفاظ العارفون نصف رواة الصحیحین ولیس کونه حافظاً شرطاً، وإلا لم احتج بغالب الرواة»(۳)
یعنی د داسے حدیث په مقبولیت باندے اتفاق دے اوپه هغے باندے استدلال هم کولے شی که په هغے کښے د قبولیت شرطونه موجود وی اودا د مختلف فیه قسم څخه نه وی بیا د حافظانو عارفانو تعداد خو د صحیحینو په راویانو کښے نیم هم نه دے نوبیا د حفظ شرط څنګه لګولے شی؟ چونکه حافظ کیدل دصحت دپاره شرط نه دے ګنی په اکثرو راویانو به احتجاج ممکن پاتے نشی.
بیا حافظ ابن حجر رحمه الله د بخاری په راویانو کښے د ډیرو داسے راویانو خودنه کړے ده. چه

(۱) پورتنئ حواله_
(۲) تدریب الراوی (۱۲۵/۱)_
(۳) تدریب الراوی (۱۴۲/۱)_

هغوی دحفظ واتقان مرتبے ته نه وو رسیدلی.احمدبن ابراهیم حرانی (استاذ د بخاری رحمه الله) ابی بن عباس (تبع تابعی) اسباط ابوالیسع (تبع تابعی) اسید بن زید بن نجیح الجمال او موسی بن مسعود ابوحذیفه النهدی (شیوخ بخاری رحمه الله) دا ټول حضرات د حفظ واتقان مرتبے ته نه وو رسیدلی.خو بیا هم ددوی روایات امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښے نقل کړی دی (۱)

معلومه شوه.چه د امام حاکم رحمه الله بیان کړی شرطونو کښے یو شرط هم ټیک نه دے.هم دا وجه ده.چه محدث امیر یمانی رحمه الله لیکی.«إنما هو تظنين وتخمين من العلماء أنه شرطهما إذلم يأت تصريح بما شرطاه» (۲) یعنی د شیخینو رحمهما الله په نیز څه شرط نشته.باقی کوم شرطونه چه عالمانو ذکر کړ دی.هغه د هغوی خپلے اندازے اوتخمینے دی.

بهرحال دلته مونږ هغه شرطونه ذکر کوو.کوم چه امام بخاری په خاص طریقه په خپل کتاب کښے مدنظرساتلی دی.

① سندمتصل وی. راوی مسلمان وی.صادق غیر مدلس. اوغیر مختلط وی.د عدالت په صفاتو متصف وی.ضابط وی.سلیم الذهن او قلیل الوهم وی.اوعقیده ئے صحیح وی. (۳)

② د راوی د مروی عنه سره کم از کم یوځل ملاقات ثابت وی. (۴)

③ راویان داسے وی.چه هغوی د اهل حفظ واتقان څنے وی.او دخپلو استاذانو سره ئے اوږد صحبت کړے وی.کله دهغه راویانو نه هم روایت اخلی.چه طویل الملازمة نه وی.خودا عمومی شرط دے.وړاندے مونږ بیان کړے دے.چه حفظ واتقان لازمی اومستقل شرط نه دے.(۵)

④ امام بخاری رحمه الله په خپل کتاب کښے د یو مدلس روایت ترهغه وخته پورے نه نقل کوی. ترڅو چه هغه دتحدیث صراحت اونکړی.که په دغه حدیث کښے وی.اوکه په بل سند کښے وی. (۶)

⑤ امام بخاری رحمه الله که د یو داسے کس روایت نقل کړی.چه په هغه باندے کلام شوے وی.نو دهغه چا روایت په کښے نه اخلی.چه په هغه باندے انکار شوے وی. (۷)

---

(۱) اوګورئ: هدی الساری وتقریب التهذیب)_

(۲) تبصره بر المدخل فی أصول الحدیث (ص.۷٤)_

(۳) اوګورئ هدی الساری (ص.۹) وشروط الأئمة الخمسة للحازمی (۷۸. ۷۹)_

(۴) مقدمة فتح الملهم (ص.۲۷۱) دغه شان اوګورئ ..النکت علی کتاب ابن الصلاح (۲۸۹/۱) النوع الأول :الصحیح.)_

(۵) اوګورئ شروط الأئمة الخمسة للحازمی (ص.۷۹. ۸۰) وهدی الساری (ص.۹) ومقدمة لامع الدراری (ص.۸۹) _

(۶) اوګورئ هدی الساری (ص.٤٤۹)_

(۷) فتح الباری (۱۸۹/۱) کتاب العلم باب من أعاد الحدیث ثلاثاً لیفهم عنه)

⑨ که په راوی کښے څه قسم نقص وی.او بیا هغه روایت په بل سند سره هم نقل وی. چه په هغے باندے نقص پوره کیږی.نودا حدیث هم د امام بخاری رحمه الله په شرط کښے داخلیږی. (۱)

دا یو څو شرطونه دی. نور شرطونه هم شته.کوم چه په فتح الباری او هدی الساری وغیره کښے په تتبع سره راویستے شی.

**دصحیح بخاری خصوصیات** ① دامام بخاری رحمه الله په صحیح کښے د ټولو نه اهم خصوصیت تراجم دی داسے تراجم نه د دوی نه وړاندے چا قائم کړی دی.اونه به ئے روستو څوك قائم کړے شی.ددوی بعضے تراجم تراوسه پورے (په ګرانوالی کښے) مشهور دی.اود هغے صحیح مراد تراوسه پورے نشی متعین کولے.هر کس د خپلو معلوماتو او قرائنو په مدد سره د مراد تعین کوی.په تراجمو به مستقل بحث انشاء الله وړاندے راشی.

② دویم خصوصیت دا دے.چه د احکامو په اثبات کښے اکثر امام بخاری رحمه الله قرآنی آیاتونه ذکر کوی.(۲)

③ دریم خصوصیت دا دے.دصحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله په آثارو سره د مختلف فیه مسائلو وضاحت کوی.اوکله چه مختلف آثار ذکرکوی.نوچه کوم اثر د دوی په نیز ارجح وی.هغه وړاندے ذکر کوی.

④ څلورم خصوصیت دا دے.چه امام بخاری رحمه الله په پوره ..الجامع الصحیح.. کښے داسے روایت نه دے ذکر کړے.کوم چه هغه د خپل استاذ نه «علی سبیل المکاتبة» اخستے وی.خو په «کتاب الأیمان والنذور» کښے ئے یو روایت داسے راوړے دے.چه په هغے کښے ئے «کتب إلی محمد بن بشار» فرمائیلی دی. (۳) د سند په مینځ کښے د مکاتبت راتلل بله خبره ده.اوهغه د امام بخاری رحمه الله فعل نه دے.بلکه د نورو راویانو عمل دے. (۴)

⑤ پنځم خصوصیت دا دے.چه امام بخاری رحمه الله د بدء الحکم ذکر هم کوی.لکه .بدء الوحی، بدء الحیض. بدء الاذان. بدء الخلق ئے ذکرکړی دی.او دحکم ابتداء ته ئے اشاره کړے ده. (۵) حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله کله بغیر د تصریح نه اشارة هم د حکم ابتداء بیانوی.(۶)

⑥ شپږم خصوصیت دا دے.چه دوی براعت اختتام طرف ته اشاره کوی.د حافظ ابن

---

(۱) فتح الباری (۶۳۵/۹) کتاب الصیدوالذبائح باب ذبیحة الأعراب ونحوهم ـ

(۲) مقدمة لامع الدراری (ص.۱۰۲)ـ

(۳) اوګورئ صحیح بخاری (۹۸۷/۲) کتاب الأیمان والنذور باب إذا حنث ناسیاً فی الأیمان رقم، ۶۶۷۳ـ

(۴) اوګورئ تدریب الراوی (۵۶/۲) النوع الرابع والعشرون: کیفی سماع الحدیث وتحمله القسم الخامس :الکتابة)ـ

(۵) مقدمة لامع الدراری (ص.۱۰۸)ـ

(۶) پورتنئ حواله ـ

حجر رحمه الله رائے دہ چہ دھر کتاب پہ آخر کښے کلہ امام بخاری رحمه الله پہ خاتمہ باندے دلالت کونکے لفظ راوړی نو دھغے د کتاب اختتام طرف تہ اشارہ وی. (۱)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چہ امام بخاری رحمه الله دانسانی ژوند ختمیدو طرف تہ یادګیرنہ کوی. (۲)

⑥ اووم خصوصیت دا دے چہ صحیح بخاری کښے ..ثلاثیات.. دی.امام بخاری رحمه الله دوہ ویشت ..ثلاثیات.. پہ خپل کتاب کښے ذکر کړی دی.

د .وثلاثیات.. پہ بارہ کښے تفصیل پہ مقدمہ کښے تیر شوے دے.

**فصل اول دبخاری تراجم** د بخاری پہ خصوصیاتو کښے د ابواب والتراجم.. بحث ډیر داهمیت حامل دے.د بخاری تراجم د حدیث د ټولو کتابونو د تراجمو پہ مقابلہ کښے ډیرګران دی.د «فقه البخاری فی تراجمه» مقولہ پہ دے بارہ کښے ډیرہ مشهورہ دہ.د دے مطلب دا دے چہ دامام بخاری رحمه الله د ژورنظراود تفقہ شان اندازہ ددوی د تراجمو نہ لګیدے شی.دویم مطلب دا بیانولے شی.چہ امام بخاری رحمه الله خپل فقهی نکتہ نظر پہ تراجمو کښے بیان کړے دے.

دامام بخاری رحمه الله دترجمے پہ قائمولو کښے خپل مخصوص انداز دے.اوھغہ پہ مختلفو طریقو سرہ ترجمہ قائموی.

① بعضے وخت د رسول الله ﷺ حدیث نہ ترجمہ جوړہ کړی.اودھغے دحدیث نبوی صراحت هم کوی.لکہ دکتاب الایمان اولنئ ترجمہ «باب قول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس» دغہ شان پہ کتاب الایمان کښے یوہ بلہ ترجمہ «باب قول النبی ﷺ الدین النصیحة» دغہ شان پہ کتاب العلم کښے «باب قول النبی ﷺ رب مبلغ أوعی من سامع»

② کلہ امام بخاری حدیث نبوی نہ ترجمہ جوړہ کړی.لیکن دھغہ د حدیث کیدو ذکر نہ کوی.لکہ «باب من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین» ترجمہ حدیث دے.خو ددے حدیث کیدو تہ ئے اشارہ نہ دہ کړے.

③ کلہ کلہ امام بخاری رحمه الله د نبی ﷺ دحدیث نہ ترجمہ جوړوی.خو پہ ھغے کښے لږ غوندے تصرف اوتبدیلی کوی.اوددے مقصد د حدیث تشریح وی.لکہ «باب ما کان النبی ﷺ یتخولهم بالموعظة والعلم کی لاینفروا»حدیث کښے «کراهة السآمة»راغلے دے.امام بخاری رحمه الله ترجمہ کښے د «سآمة» تفسیر پہ «نفرة» سرہ کړے دے.

④ کلہ امام بخاری رحمه الله داسے حدیث ترجمہ اوګرځوی.چہ ھغہ د دوی پہ شرط برابر نہ وی.بیا پہ خپلو روایاتو سرہ ھغہ مؤید کړی.لکہ ابواب الوضوء کښے «باب ما جاء لا تقبل صلاة

---

(۱) فتح الباری شرح الحدیث الأخیر)_

(۲) مقدمة لامع الدراری (ص،۱۱۳) _

يعيرطهون» اوپه . . ابواب الزكاة . . كښې «باب ماجاء لا تقبل الصدقة من غلول» دي.دا د يو روايت دوه حصې دي.مسلم اوترمذی رحمهماالله ددې تخريج کړې دې.امام بخاری رحمه الله په يوجزء په كتاب الوضوء كښې او په بل جزء په كتاب الزكاة كښې ترجمه قائمه کړې ده.

دغه شان په كتاب الصلاة كښې «باب إذا أقيمت الصلاة فلا صلاة إلا المكتوبة» ترجمه ئې قائمه كړې ده.اوددا د مسلم په روايت باندې قائمه شوې ده.

دغه شان يوه ترجمه ده.«باب الإثنان فما فوقهما جماعة» دا ترجمه دابن ماجه په روايت باندې قائمه شوې ده.[1]

⑤ په ډيرخايونوكښې امام بخاری رحمه الله په خپلو الفاظوكښې ترجمه قائمه کړې ده.اوپه هغې كښې ابهام پريږدی.ددې ابهام مختلف وجوه وی.

(الف) كله د تعارض د دلائلود وجې ترجمه مبهمه پريږدی.لکه «باب ماجاء فی قاتل النفس» ترجمه ئې مبهمه قائمه کړې ده.دلته د ابهام وجه دا ده.چه د بعضې رواياتو نه معلوميږی.چه خودکشی کونکې به هميشه دپاره په جهنم کښې وی.اود نورو قوی دلائلو نه دا ثابته ده.چه د گناه كبيره مرتكب به هميشه دپاره په جهنم كښې نه وی.نو ددلائلو دتعارض د وجې امام بخاری رحمه الله څه فيصله اونكړله.او ترجمه ئې مبهمه پريخوده.[2]

(ب) كله دا ابهام د توسع طرف ته اشاره كولو دپاره وی.لکه «باب مايقرأ بعدالتكبير» دلته امام بخاری رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه يو روايت ذكر کړې دې.چه په هغې كښې دتكبير نه پس د سورة فاتحه ذكر دې.دويم روايت ابوهريره رضی الله عنه دې.چه په هغې كښې د تكبير د قرات نه پس د «اللهم باعد بينی وبين خطاياي كما باعدت بين المشرق والمغرب،اللهم نقني من الخطايا كما ينقى الثوب الأبيض من الدنس اللهم اغسل خطاياي بالماء والثلج والبرد» دعا مذكوره ده.[3] په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده.چه د تكبير نه پس كه دا دعا اووئيلې شی.يا ثنا اووئيلې شی.يا بغير دڅه وئيلو نه د سورة فاتحه قرات شروع کړې شی.[4]

(ج) دغه شان په «كتاب الأيمان والنذور» كښې امام بخاری رحمه الله «باب إذا حنث ناسياً في الأيمان» ترجمه قائمه کړې ده.اوجزاء ئې نه ده ذكر کړې.ددې وجه دا ده.چه په باب كښې دوه قسمه روايات ذكردی.د بعضو نه معلوميږی.كه په هيره حانث شو نوكفاره لازميږی.اود بعضو نه معلوميږی.چه په هيره د حانث كيدو په صورت كښې كفاره نه واجبيږی.امام بخاری رحمه الله ترجمه مبهمه پريخودې ده.پخپله ئې فيصله نه ده کړې.بلكه فيصله ئې د مجتهد په رائې

(۱) دتفصيل دپاره اوگورئ مقدمة لامع الدراري (ص.۳۰۲، ۳۰۳، ۳۰۴)_
(۲) اوگورئ فتح الباري (۲۲۷/۳) كتاب الجنائز باب ماجاء في قاتل النفس)_
(۳) اوگورئ صحيح بخاري (۱۰۲/۱) كتاب الأذان)_
(۴) اوگورئ مقدمة لامع الدراري (ص.۳۵۱) الأصل السابع والأربعون)_

باندے پریخودے ده.چه هغه په خپل اجتهاد سره څه فیصله اوکړی.(١)

(د) کله امام بخاری رحمه الله د دلیل د محتمل کیدو په وجه هم ترجمه مبهمه راوړی .لکه چه حافظ رحمه الله د «باب إذا أسلمت المشركة أو النصرانية تحت الذمی أو الحربی» د لاندے فرمائیلی دی.(٢)

⑥کله امام بخاری رحمه الله ترجمه واضحه او په فیصله کن انداز کښے قائموی.لکه «باب وجوب صلاة الجماعة» او«باب التیمم ضربة»او«باب التیمم للوجه والكفین» امام بخاری رحمه الله دا په هغه وخت کښے کوی چه کله چه دهغوی د نقطه نظر تائیدی روایات ،صحیح. قوی. اوصریحی وی.هلته کښے نه د نورو امامانو داختلاف پرواه کوی.اونه د مخالف روایتونو لحاظ ساتی.بلکه نقطه نظر بنه پوره په قوت سره پیش کوی.(٣)

⑦ امام بخاری رحمه الله کله په .هل.. سره استفهامیه ترجمه راوړی.او دا د دلیل د محتمل کیدو په وجه وی.په کتاب التیمم کښے امام بخاری رحمه الله «باب هل ینفخ یدیه» ترجمه قائمه کړے ده.او روایت چه ئے کوم نقل کړے دے.په هغے کښے دی.«فضرب النبی ﷺ بكفیه الأرض ونفخ فیهما» دلته کښے د نبی ﷺ فعل «نفخ فیهما» مذکور دے.خو په دے کښے احتمال شته.چه د خاورے سره په لاس پورے څه خاشی بیشی انختے وی.او دا احتمال هم شته.چه دا نفخ د تیمم د سنت په حیثیت وه.په دے بناء باندے امام بخاری رحمه الله استفهامیه ترجمه «هل ینفخ فی یدیه» قائمه کړه.(٤)

⑧کله امام بخاری رحمه الله ترجمه استفهامیه قائمه کړی.اود روایاتو اوآثارو په ذریعه جواب پیش کوی.لکه «باب هل یسافر بالجاریة» (٥) قائمه کړے ده.او بیا ئے د روایت په ذریعه ددے جواب بیان کړےدے.

⑨ کله امام بخاری رحمه الله تفصیل ته د اشارے کولو دپاره ترجمه استفهامیه راوړی .لکه «باب هل یمضمض من اللبن» دلته کښے امام بخاری رحمه الله روایت نقل کړے دے .«أن رسول الله ﷺ شرب لبناً فمضمض وقال إن له دسماً» نودلته دا خودل مقصود دی.چه د پیو څکلو نه پس که په خوله کښے د غوړوالی اثر موجود وی.نو خوله کښے دے اوبه واچوی.اوکه د خولے د لیاړو په ذریعه غوړوالے زائله شوے وی. نوخوله کښے داوبو اچولو ضرورت نشته.(٦)

---

(١) اوګورئ فتح الباری (١١/٥٥٠) کتاب الأیمان والنذور)_
(٢) اوګورئ فتح الباری (١١/٥٥٠) کتاب الأیمان والنذور)_
(٣) اوګورئ مقدمة لامع (ص.٣٥٠، ٣٥١) الأصل السادس والأربعون)_
(۴) مقدمة لامع الدراری (ص.٣٣٥، ٣٣٦) الأصل الثانی والثلاثون)_
(۵) اوګورئ صحیح بخاری (١/٢٩٧) کتاب البیوع)_
(۶) اوګورئ تقریر بخاری (٢/٢٧٥)_

دغه شان ئې يوه ترجمه قائمه کړې ده.«هل تصلى المرأة فى ثوب حاضت فيه» او روايت ئې نقل کړې دے.«ماكان لأحدنا إلا ثوب واحد تحيض فيه، فإذا أصابه شئ من دم، قالت بريقها فمصعته بظفرها» يعنى مونږ سره د جامو کمے وو په کومو جامو کښې چه به د حيض زمانه تيره شوه.که هغې پورې به معمولى غوندې وينه اولګيدله.نوهغه به ئې لرې کوله.اوهم په هغې کښې به ئې مونځ کولو امام بخارى رحمه الله په خپله ترجمه کښې تفصيل طرف ته اشاره کړې ده.که بله جامه نه وى.نو هغه جامه چه په هغې کښې ئې د حيض زمانه تيره کړې وى.د مانځه په وخت کښې د هغې په استعمال کښې څه حرج نشته.خو په دے شرط چه په هغې پورې څه نجاست نه وى. (١)

دغه شان امام بخارى رحمه الله يوه ترجمه قائمه کړې ده.«باب هل يدخل الجنب يده فى الإناء قبل أن يغسلها إذا لم يكن على يده قذر غير الجنابة» ددے لاندے ئې يو روايت هم نقل کړے دے«كان رسول الله ﷺ إذا اغتسل من الجنابة غسل يده» امام بخارى رحمه الله په ترجمه کښې استفهام راوړلو.او اشاره ئې اوکړله.که په لاس باندے پليتى نه وى.نو بغير د وينځلو نه په هغه لوښى کښې داخلولو کښې څه قباحت نشته.(٢)

دغه شان امام بخارى رحمه الله يوه ترجمه قائمه کړې ده.چه «باب هل تكسر الدنان التى فيها خمر أو تخرق الزقاق» دلته کښې دے تفصيل طرف ته اشاره مقصوده ده.چه که د شرابو منګى داسې وى.چه په وينځلو سره دهغې نه دشرابو اثر نه زائله کيږى.نو بيا خو به هغه ماتولى شى.خو که د وينځلو نه پس د هغې اثر زائله کيږى . نو بيا دهغې د ماتولو ضرورت نشته. (٣) ⑩ کله امام بخارى رحمه الله ترجمه د «من قال كذا ومن فعل كذا» په عنوان سره قائموى.ددے څو وجوه دى.

(الف) کله دحکم عموم طرف ته اشاره وى.لکه هغوى باب قائم کړے دے«باب من برك على ركبتيه عند الإمام أو المحدث» (٤) په دے کښې دے طرف ته اشاره ده.چه دا طريقه دهغه کس سره خاص نه ده.د کوم واقعه چه په حديث کښې ذکر ده.بلکه کوم کس ته چه هم دا صورت پيښ شى. هغه ته دا طريقه پکار ده.

(ب)کله دا عنوان د مختار مسلك بيانولو دپاره اختيارولے شى.لکه «باب من لم يتوضأ إلا من الغشى المثقل» (٥) يا «باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين» (٦) په دے دواړو ځايونو کښې امام

---

(١) اوګورئ فتح البارى (٤١٢/١) كتاب الحيض)_

(٢) اوګورئ فتح البارى (٣٧٣/١) كتاب الغسل باب هل يدخل الجنب يده .

(٣) اوګورئ فتح البارى (١٢٢/٥) كتاب المظالم باب هل تكسر الدنان...)_

(٤) اوګورئ صحيح بخارى (٢٠/١) كتاب العلم)_

(٥) اوګورئ فتح البارى(٢٨٩/١) كتاب الوضوء باب من لم يتوضأ)_

(٦) اوګورئ فتح البارى (٢٨٠/١) كتاب الوضوء)_

بخاری رحمه الله خپل مختار مسلك اختیار کړے دے.

(ج) کله دا عنوان اخلاقو او آدابو باندے تنبیه ورکولو دپاره اختیاروی.لکه ((باب من قعد حیث ینتهی به المجلس)) کښے ئے دا خودلی دی.چه مجلس ته راتلونکے چه کوم ځائے کښے مجلس ختمیږی.هلته دے کینی.د وړاندے تلو کوشش دے نه کوی. (۱)

دغه شان ترجمه ده.((باب من رفع صوته بالعلم)) دلته دا خودل دی.چه کله مجمع زیاته وی.نو ادب دا دے.چه حدیث په اوچت آواز سره بیان شی. (۲)

① بعضے وخت امام بخاری رحمه الله د تاریخی واقعاتو بیانولو دپاره ترجمه قائموی . لکه ((باب ذکر قحطان)) (۳)

② کله امام بخاری رحمه الله داسے هم کوی.چه د سابقه باب حدیث کښے د باب نه علاوه که نور فائده موجوده وی.نوپه دغه نورے فائده باندے تنبیه ورکولودپاره ترجمه قائموی.دے ته ((باب فی باب)) وائی.یعنی دویم باب د اولنی باب په ضمن کښے شمارلے شی. (۴)

③ بعضے وخت امام بخاری رحمه الله داسے ترجمه راوړی.چه په ظاهره بے فائدے معلومیږی .خو په حقیقت کښے په هغے کښے فائده وی.لکه یوه ترجمه ده.((باب قول الرجل فاتتنا الصلاة)) دلته په ظاهره ددے ترجمے څه فائده نه ښکاری.خو امام بخاری رحمه الله په دے باندے دهغه کسانو رد کړے دے.څوك چه د ..فوت.، نسبت ..صلاة.. طرف ته جائز نه ګڼړی.لکه چه امام بخاری رحمه الله ددے جواز د حدیث نه ثابتوی. (۵)

④ کله امام بخاری رحمه الله د بدء الحکم طرف ته اشارے کولو دپاره ترجمه قائموی.لکه ((بدء الحیض))(۶)((بدء الأذان))(۷)((بدء الخلق))(۸)((بدء السلام))(۹)وغیره کښے.

---

(۱) اوګورئ مقدمة لامع الدراری (ص.۳۱۶) الأصل الرابع)_

(۲) اوګورئ فتح الباری (۱۴۳/۱) کتاب العلم دغه شان مقدمة لامع (ص.۳۱۶) الأصل الرابع عشر)_

(۳) اوګورئ مقدمة لامع (ص.۲۷۷) و(ص.۳۱۰) الأصل التاسع)_

(۴) ومثال ذلک ((باب من مضمض من السویق.. انظرمقدمة لامع (۳۰۷، ۳۰۸) الأصل السادس)_

(۵) اوګورئ فتح الباری (۱۱۶/۲) کتاب الأذان دغه شان اوګورئ هدی الساری (ص.۱۴) ومقدمة لامع (ص.۲۹۳) و(ص.۳۱۴) الأصل الرابع عشر)_

(۶) اوګورئ فتح الباری (۴۰۰/۱) کتاب الحیض)_

(۷) اوګورئ فتح الباری (۷۷/۲) کتاب الأذان)_

(۸) اوګورئ فتح الباری (۲۸۷/۶) کتاب بدء الخلق)_

(۹) فتح الباری (۳/۱۱) کتاب الإستیذان)_

⑮ كله امام بخارى رحمه الله د اشكال لرے كولو دپاره هم ترجمه قائموى لكه «باب ترك الحائض الصوم» شو حائضه ته د مونځ او روژے دواړو د پريخودلو حكم وركړے شوے دے د مانځه پريخودل خو معقوله خبره ده خكه چه دمانځه دپاره طهارت شرط دے اوحائضه ناپاكه وى خو د روژے د پريخودو په حكم اشكال دے چه ددے حكم ولے وركړے شوے دے حالانكه ددے دپاره طهارت هم شرط نه دے امام بخارى رحمه الله دا ترجمه قائمه كړه اواشكال ئے لرے كړلو او دے طرف ته ئے اشاره اوكړه چه دا حكم تعبدى دے په دے كښے د عقل د دخل اندازئ گنجائش نشته (١)

⑯ كله امام بخارى رحمه الله د ..جمع بين الروايات.. دپاره ترجمه قائموى لكه «باب لا تستقبل القبلة بغائط أوبول، إلا عندالبناء، جدار أونحوه» دحضرت ابوايوب انصارى رضى الله عنه كښے داستقبال اواستدبار دواړو مطلقاً ممانعت دے (٢) اودحضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنه په روايت كښے دا ذكر دى چه نبى صلى الله عليه وسلم د ديوال په موجودگئ كښے استدبار كړے وو. (٣) امام بخارى رحمه الله ترجمه قائمه كړله اوپه دواړوكښے ئے تطبيق اوكړلو چه دحضرت ابوايوب انصارى رضى الله عنه روايت په دے صورت محمول دے چه په مينځ كښے ديوال وغيره بل څه نه وى اود حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما روايت په دے حالت محمول دے چه حائل موجود وى. (٤)

دغه شان يوه ترجمه ده. «باب قول النبى صلى الله عليه وسلم يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه إذا كان النوح من سنته» دلته كښے هم امام بخارى رحمه الله مقصد جمع بين الروايات ده. د حضرت عمر او حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهم د رواياتو نه معلوميږى چه د اهل د ژړا د وجے مړى ته عذاب ملاويږى او دحضرت عائشے رضى الله عنها په روايت كښے ددے نه انكار موجود دے حضرت عائشے رضى الله عنها په ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ باندے استدلال كړے دے.(٥) دلته امام بخارى رحمه الله ددے ترجمے په ذريعه په دواړوكښے تطبيق اوكړلو چه دحضرت عمر رضى الله عنه اوحضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما روايت په هغه حالت باندے محمول دے چه د مړى عادت وير كول وى اود حضرت عائشے رضى الله عنها روايت دهغه صورت متعلق دے چه د مړى عادت وير كول نه وى. (٦)

---

(١) اوگورئ فتح البارى (٤٠٥) كتاب الحيض)_
(٢) ددوى نه مرفوع روايت دے((إذا أتى أحدكم الغائط فلا يستقبل القبلة ولايولها ظهره. شرقوا أو غربوا صحيح البخارى كتاب الوضوء باب لاتستقبل القبلة بغائط أو بول إلا عند البناء جدار أونحوه)_
(٣) اوگورئ صحيح بخارى كتاب الوضوء باب من تبرز على لبنتين رقم .١٤٥) وباب التبرز فى البيوت رقم.١٤٨)_
(٤) اوگورئ مقدمة لامع (ص.٣٠٦. ٣٠٧) الأصل السادس)_
(٥) اوگورئ صحيح بخارى كتاب الجنائزباب قول النبى ﷺ يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه إذا كان النوح من سنته رقم. ١٢٨٦، ١٢٨٨)_
(٦) اوگورئ مقدمة لامع (ص.٣٠٧) الأصل الخامس)_

⑮ بعضے وخت په ترجمه کښې څو خبرے ذکر وی خوامام بخاری په هغے کښے صرف دیوے دپاره روایت راوړی د نورو خبرو په باره کښے روایات نه پیش کوی ددے هم مختلف وجوهات دی.

(الف) کله خوداسے وی چه د کومې خبرے په تائید کښے امام بخاری رحمه الله روایت پیش کوی دهغے ثابتول ئے مقصود وی اود کومو خبرودپاره چه روایات پیش نکړی د هغے نفی ئے مقصود وی لکه امام بخاری رحمه الله ((باب الصلاة بعد الجمعة وقبلها)) ترجمه قائمه کړے ده اوپه دے کښے د ,,صلاة بعد الجمعة،، روایت خو ئے ذکرکړے دے خو د ,,قبل الجمعة،، روایت ئے نه دے ذکر کړے دلته کښے دامام بخاری رحمه الله مقصود ,,صلاة بعد الجمعة،، ثابتول دی اود ,,صلاة قبل الجمعة،، نفی کول دی.(۱)

(ب) کله په داسے موقعه امام بخاری رحمه الله بل روایت ته اشاره کوی کوم چه په بخاری کښے موجود نه وی لکه یوه ترجمه ئے قائمه کړے ده ((باب التقاضی والملازمة فی المسجد))(۲) په دے ترجمه کښے دوه څیزونه مذکور دی یو ,,تقاضی،، او بل ,,ملازمة،، خوپه دے باب کښے چه کوم روایت ذکر دے په هغے کښے د ,,تقاضی،، ذکرشته خود ,,ملازمة،، ذکر نشته خو په کتاب الخصومات کښے چه امام بخاری رحمه الله کوم روایت نقل کړے دے په هغے کښے د ,,ملازمة،، ذکر شته.(۳) خکه به دا ونیلی شی چه دلته ئے دغه د خصومت روایت ته اشاره کړے ده (۴)

(ج) کله امام بخاری رحمه الله داسے روایت طرف ته اشاره کوی کوم چه په بخاری کښے ذکر نه وی اودهغے نه خپله مدعا ثابتوی لکه ((باب دلك المرأة نفسها إذا تطهرت من المحيض وكيف تغتسل وتأخذ فرصة ممسكة فتتبع بها أثر الدم)) ددے دلاندے د ,,غسل،، ذکر شته خود ,,دلك،، ذکر نشته.(۵) خکه دا ونیلی شی چه امام بخاری رحمه الله د ترجمے ثابتولو دپاره د امام مسلم روایت ته اشاره کړے ده. (۶) خکه به دا ونیلی شی چه امام بخاری رحمه الله دترجمے ثابتولو دپاره د مسلم روایت ته اشاره کړے ده. (۷)

---

(۱) اوګورئ فتح الباری (۸۲۶/۲) کتاب الجمعة)_

(۲) اوګورئ صحیح بخاری (۶۵/۱) کتاب الصلاة)_

(۳) اوګورئ صحیح بخاری (۳۲۷/۱) کتاب الخصومات باب الملازمة)_

(۴) اوګورئ مقدمة لامع (ص ۳۱٤) الأصل الحادی عشر)_

(۵) اوګورئ صحیح بخاری (٤۵/۱) کتاب الحیض)_

(۶) په مسلم شریف (۱۵/۱) کتاب الحیض باب إستحباب إستعمال المغتسلة من الحیض فرصة من مسک فی موضع الدم) کښے حضرت عائشے رضی الله عنها روایت کښے دی (فتدلکه دلکاً شدیداً)_

(۷) اوګورئ فتح الباری (٤۱٤/۱، ٤۱۵ ) کتاب الحیض باب دلک المرأة .. دغه شان اوګورئ مقدمة لامع (ص ۳۱۲) الأصل الحادی عشر)_

⑱ كله امام بخاري رحمه الله د باب لاندے مختلف روايات ذكر كوى اواشاره دے طرف ته وى چه مسئله مختلف فيها ده. (۱)

⑲ كله امام بخاري رحمه الله ترجمه مقيده راورى او روايت مطلق ذكر كوى. مقصود په كښے دے طرف ته اشاره وى چه په روايت كښے د ترجمے قيد مدنظر دے ددے اطلاق مراد نه دے. مثلاً ترجمه ئے قائمه كړے ده. «باب الصفرة والكدرة في غير أيام الحيض» په دے روايت كښے «في غير أيام الحيض» قيد دے حالانكه په روايت كښے اطلاق دے «كنا لا نعد الكدرة والصفرة شيأ» (۲) نو امام بخاري رحمه الله په خپلے ترجمے سره اوخودله چه د حيض په زمانه كښے به زيړ يا خاكى رنګ حيض شمارلے شى. دا د «غير أيام حيض» يعنى طهر د حالت راتلو نه پس واقعه ده. د حيض د زمانے نه ده. (۳)

⑳ كله ترجمه مطلقه وى او حديث مقيد وى. په دے كښے امام بخاري دے طرف ته اشاره كوى چه په روايت كښے كوم قيد ذكر دے دا اتفاقى دے احترازى نه دے نوځكه به حكم مطلق وى لكه «باب الجمع في السفر بين المغرب والعشاء» (۴).

دا ترجمه مطلق ده. اوددے لاندے چه كوم روايت ذكر دے په هغے كښے «كان النبي ﷺ يجمع بين المغرب والعشاء إذا جد به السير» ذكر دے په دے كښے د «جمع بين الصلاتين» دپاره د «إذا جد به السير» قيد مذكور دے امام بخاري رحمه الله ترجمه مطلق راوړه دے طرف ته ئے اشاره اوكړه چه ,,جمع بين الصلاتين،، په سفر كښے مطلقاً جائزده. اود «إذا جد به السير» قيد احترازى نه دے. (۵)

㉑ كله ترجمه خاص راوړى اودهغے لاندے روايت عام ذكر كوى. دے طرف ته اشاره مقصود وى چه د روايت عموم معتبر نه دے. (۶)

㉒ كله ترجمه عامه وى او روايت خاص راوړى دے طرف ته اشاره مقصود وى چه د روايت خصوصيت ملحوظ نه دے بلكه حكم عام دے. (۷)

㉓ كله ترجمه د شرط سره ذكر كړى. اودهغے جواب هم په روايت كښے موجود وى لكه «باب

---

(۱) اوګورئ مقدمة لامع (ص.۳۰۶) الأصل الرابع)_
(۲) صحيح بخاري كتاب الحيض باب الصفرة والكدرة في غير أيام الحيض رقم. ۳۲۶)_
(۳) اوګورئ فتح البارى (۱/ ٤۲۶) دغه شان اوګورئ مقدمه لامع (ص.۳۲۵) الأصل الثالث والعشرون)_
(۴) صحيح بخاري (۱/ ۱٤۹) كتاب تقصير الصلاة)_
(۵) اوګورئ (فتح البارى (۲/ ۵۸۰) كتاب تقصير الصلاة)_
(۶) اوګورئ مقدمة فتح البارى (ص.۱۳) ومقدمة لامع (ص.۳۱۷) الأصل الخامس عشر)_
(۷) پورتنئ حواله)_

إذا وكل المسلم حربياً فى دار الحرب أو فى دار الإسلام جاز» (۱) خوكله په ترجمه كښې شرط ذكر كړى.اودهغې جواب په ترجمه كښې نه وى.لكه «باب إذا وهب هبة فقبضها الآخرولم يقل قبلت» (۲) دلته كښې جواب په ترجمه كښې ذكر نه دے.بلكه د روايت نه جواب معلوميږى.چه په قبض كولو سره هبه تماميږى.اګرچه ..موهوب له.. د ..قبلت.. لفظ نه وى وئيلے (۳)

⑬ كله امام بخارى رحمه الله ترجمه شرطيه راوړى.اوجواب د صحابى رضى الله عنه يا تابعى رحمه الله په اثر سره بيانوى.لكه «باب إذا أقرضه إلى أجل مسمى» كښې ئې په ترجمه كښې د حضرت ابن عمر رضى الله عنه اثر ذكر كړے دے.چه دهغې نه د تاجيل جواز معلوميږى. (۴)

دا تفصيل دهغه تراجمو په باره كښې وو.په كوم ځائے كښې چه امام بخارى رحمه الله د ترجمے قائمولو نه پس حديث مسند پيش كوى.بلكه كله داسے كيږى.چه امام بخارى رحمه الله د آيت نه ترجمه جوړه كړى.اوبيا هلته نه مسند حديث راوړى.اونه معلق.هغه آيت په خپله دعوا هم وى.او دهغه دعوے دپاره دليل هم وى. (۵)

كله داسے كوى.چه دخپل طرفه ترجمه راوړى.اودهغې سره آيت يا حديث معلق ذكر كوى.په داسے صورت كښې هغه آيت اوحديث معلق د دغه ترجمے دپاره دليل جوړيږى. (۶)

په پوره صحيح بخارى كښې نهه مقامات داسے دى.چه امام بخارى رحمه الله په خپلو الفاظو كښې ترجمه قائمه كړے ده.اوبيا ئې نه حديث مسند ذكر كړے دے.اونه حديث معلق.اونه ئې څه آيت پيش كړے دے.بلكه صرف خالى ترجمه ده.د داسے مقاماتو په باره كښې وئيلے شوى دى.چه په خواه خواه كښې نزدے ورسره يو روايت ضرور داسے وى.چه دهغې نه دغه ترجمه ثابتيږى. (۷)

# باب بلا ترجمة

امام بخارى رحمه الله په څو ځايونو كښې باب بغير د ترجمے نه راوړے دے.صرف ..باب.. وى.ترجمه نه وى.اود هغې دلاندے مسند روايات پيش كوى.په دے باره كښې حضرات شارحينو رحمهم الله مختلف توجيهات كړى دى.

① امام بخارى رحمه الله سهوه شوے دے.ځكه ئې باب نه دے قائم كړے.

② مصنف نه دے سهوه شوے.بلكه كاتب سهوه شوے دے يعنى مصنف رحمه الله چه كومه ترجمه

---

(۱) صحيح بخارى (۱/۳۰۸) كتاب الوكالة_

(۲) صحيح بخارى (۱/۳۵٤) كتاب الهبة_

(۳) اوګورئ فتح البارى (۵/۲۲۳)_

(۴) اوګورئ فتح البارى (۵/۶۶) كتاب الإستقراض_

(۵) اوګورئ مقدمة لامع (ص.۳۲)_

(۶) اوګورئ مقدمة لامع (ص.۳۲۹. ۳۳۰)_

(۷) اوګورئ مقدمة لامع (ص.۳۲۹. ۳۳۰)_ الأصل السابع والعشرون_

لیکلے وہ.کاتب نه هغه پاتے شوے دہ.

④ بعضے حضرات فرمائی.چه دا د راوی تصرف دے.(۱)

④ حافظ ابن حجر رحمه الله په بعضے مقاماتو کښے دا وئیلی دی.چه مصنف رحمه الله قصداً ترجمه پریخودے دہ.د ترجمے قائمولو اراده ئے وه خو ورستو ورته موقع ملاؤ نشوه.

خودا جوابونه ټیک نه دی.ځکه چه د کتاب مکمل کولو نه پس تقریباً درویشت کاله امام بخاری رحمه الله ددے کتاب درس ورکړے دے.او سل کم یولاکه شاګردانو د امام بخاری رحمه الله نه دا لوستے دے.نوپه دے صورت کښے د امام بخاری یا کاتب د سهوبرقرار پاتے کیدو څه ګنجائش کیدے شی؟دغه د موقعے نه ملاویدو عذر هم د اوریدو قابل نه دے.اوبیا هم که دوه ځلور ځایه د..باب بلاترجمه.. سهو که د مؤلف یا کاتب نه وه.نود دے څه ګنجائش کیدے شی.دلته کښے خو ډیر بابونه په بخاری کښے بلا ترجمه دی.

⑤ علامه کرمانی رحمه الله (۲) حافظ ابن حجر رحمه الله (۳)علامه عینی رحمه الله (۴) علامه قسطلانی رحمه الله (۵)ابن رشد رحمه الله (۶) شیخ نورالحق رحمه الله (۷) اوشاه ولی الله رحمه الله (۸) دوی عام طور ..باب بلاترجمه.. دباب سابق نه دفصل پشان ګرځولے دے.یعنی امام بخاری رحمه الله په ..باب بلاترجمه.. کښے داسے روایت راوړی.چه هغه من وجه د سابقه باب سره هم متعلق وی.او من وجه مستقل هم وی.نوځکه دا باب د سابقه باب دپاره د فصل په پشان وی.

⑥ دشیخ الهند حضرت مولانا محمودالحسن دیوبندی رحمه الله رائے دا ده.چه ..باب بلاترجمه.. په بعضے مقاماتو کښے د تشحیذ اذهان دپاره وی.یعنی دامام بخاری رحمه الله مقصد دا وی.چه چه د باب روایت ته نظر اوکړی.اوقاری په خپله داسے ترجمه قائمه کړی.چه هغه د بخاری د شان مطابق هم وی.اوتکرار په کښے رانشی.په دے طریقه ذهن تیزیږی.اود مسائلو د استخراج او استنباط صلاحیت پیداکیږی.(۹)

⑦ کله امام بخاری رحمه الله دسابقه باب نه د پیدا شوی اشکال لرے کولو دپاره باب بلاترجمه.. راوړی. (۱۰)

---

(۱) اوګورئ فتح الباری (۵۶۱/۶) باب بلاترجمة بعدباب کنیة النبی ﷺ )

(۲) شرح کرمانی (۱۰۳/۱)_

(۳) فتح الباری (۶٤/۱)_

(۴) عمدة القاری (۱۵۲/۱)_

(۵) ارشادالساری (۱۹۹/۱)_

(۶) مقدمة لامع (ص،۳۲۲) الأصل العشرون)_

(۷) تیسیرالقاری (۲۰/۱، ۲۱)_

(۸) رساله شرح تراجم ابواب البخاری (ص،۲۲)_

(۹) مقدمة لامع (ص،۳۲۷، ۳۲۸) الأصل الخامس والعشرون)_

(۱۰) اوګورئ تقریربخاری (۱۲۶/۱)_

⑧ ..بلاترجمه .. باب د زیاتو فواندو دپاره وی.یعنی د باب روایت ډیرو فائدو ته شامل وی.که ترجمه ئے قائمه کړے وه.نو دقاری ذهن به صرف هم دغه ترجمے طرف ته تلو.نورو فواندو طرف ته به نه متوجه کیدلو.امام بخاری بلا ترجمه باب ددے وجے ذکر کوی.چه ټولو فواندو طرف ته ذهن متوجه شی. (۱)

⑨ باب بلا ترجمه د رجوع الی الاصل دپاره وی.یعنی د بابونو یوه سلسله زاروانه وی.په مینځ کښے څه ضمنی تراجم راشی.نو اصل سلسلے طرف ته د رجوع کولو دپاره باب بلاترجمه راوړلے شی. (۲)

⑩ علامه عینی رحمه الله په بعضے مقاماتو کښے دا هم فرمانیلی دی.چه امام بخاری د تکثیر طرق طرف ته داشارے کولو دپاره .باب بلاترجمه.. راوړی. (۳)

⑪ شاه ولی الله رحمه الله فرمائی.چه داامام بخاری رحمه الله..باب بلا ترجمه.. د تحویل په طور وی.لکه چه یو سند ذکر کوی.اودهغے په مینځ کښے ..ح.. راوړی او د دے نه پس بل سند ذکر کوی.دا تحویل من سند الی سند وی.او وړاندے دواړه سندونه ملاویږی. (۴)

خو په دے باندے اشکال دا کیږی.چه په پوره بخاری کښے صرف په باب بدء الخلق کښے ددے یو مثال موجود دے.اود یو مثال په وجود باندے دا نه لازمیږی.

چه امام بخاری به دا په خپل کتاب کښے د قاعدے په طور غوره کړے وی. (۵)

دا ټولے خبرے د ابواب وتراجم په باره کښے د اول فصل حیثیت لری.

**فصل ثانی د تراجمو د اثبات طریقې** ددے بحث دویم فصل دا دے.چه امام بخاری رحمه الله دترجمے د اثبات دپاره کومه طریقه اختیاروی.اوخپله دعوی په کوم انداز باندے ثابتوی.یعنی ددوی د استدلال طریقه څه ده.

عام طور باندے د امام بخاری تراجم دعاوی وی.او احادیث مسنده د دغه دعاویو دلائل وی.خو د امام بخاری رحمه الله څه تراجم. تراجم شارحه هم دی.هلته کښے د دعوی او اثبات دعوی بالدلیل سلسله نه وی.

یوحدیث عام وی.او په هغے باندے خاص ترجمه قائمه کړی.اودا ښائی.چه ددے عام نه خاص مراد دے.یا روایت مطلق وی.اوترجمه مقیده راوړی.اودا خودل غواړی.چه په روایت مطلقه کښے دترجمے قید ملحوظ دے.اوکله ددے په عکس وی.چه روایت خاص وی.اوپه هغے باندے ترجمه عامه راوړی.ددے خودلو دپاره چه په روایت کښے د کوم خصوصیت ذکردے.هغه ملحوظ نه دے.کله روایت مقید وی.اوترجمه مطلقه راوړی.هلته دا خودل غواړی.چه په روایت کښے د کوم قید ذکر دے.هغه ملحوظ نه دے.بلکه هغه اتفاقی قید دے.داسے تراجمو

(۱) اوګورئ: مقدمة لامع (۳۲۹) الأصل السادس والعشرون)۔
(۲) مقدمة لامع (۳۶۷) الأصل السابع والخمسون)۔
(۳) اوګورئ: مقدمة لامع (ص.۳۱۸، ۳۱۹) الأصل السابع عشر)۔
(۴) اوګورئ: رساله شرح تراجم ابواب البخاری (ص.۱۲)۔
(۵) اوګورئ: مقدمة لامع (۳۰۹) الأصل الرابع)۔

ته ،،تراجم شارحه،، وائی. دلته ددے خبرے ضرورت نشته.چه ترجمه په روایت باندے ثابته کړی.خو عام طور داسے وی.چه تراجم په منزله د دعوی وی.او د باب روایت دلیل وی.هم دا طریقه په صحیح بخاری کښے د ټولو نه زیاته ده.

**دتراجم قسمونه** بیا د تراجم دوه قسمونه دی.① تراجم ظاهره ② تراجم خفیه

په تراجم ظاهره کښے د ترجم الباب اود باب په حدیث کښے مطابقت آسان وی.هلته څه مشکل نه وی.خوپه تراجم خفیه کښے تطبیق ګران وی.ځکه امام بخاری رحمه الله د ترجمه د اثبات دپاره د یوے طریقے پابندی نه ده کړے.کله یوه طریقه اختیاروی.اوکله بله طریقه اختیاروی.

① کله داسے کوی.چه ترجمه قائمه کړی.اودهغے لاندے روایت نقل کړی.خو د ترجمے ثبوت د بل روایت نه کیږی.کوم چه په بخاری کښے په بل ځائے کښے موجود وی.

مثلاً کتاب العلم کښے ئے ترجمه قائمه کړے ده.((باب السمر فی العلم)) او کوم روایت چه ئے نقل کړے دے.په هغے کښے د ((سمر فی العلم)) ذکر نشته.خوپه کتاب التفسیر کښے ئے هم دا روایت ذکر کړے دے.او په هغے کښے ((فتحدث رسول الله مع أهله ساعة)) الفاظ ذکر دی. (۱) لکه چه ترجمه ئے په کتاب العلم کښے ده.او ددے ثبوت د کتاب التفسیر نه کیږی. (۲)

دغه شان د کتاب العلم یوه ترجمه ده.((باب الفتیا وهو واقف علی الدابة وغیرها)) دلته کښے چه ئے کوم روایت ذکر کړے دے.په دے کښے د ((وقوف علی الدابة)) ذکر نشته.خو په کتاب الحج کښے هم دا روایت ذکر دے.او هلته ((وقف رسول الله ﷺ علی ناقته)) (۳) الفاظ موجود دی.لکه چه ترجمه د کتاب الحج د روایت نه ثابتیږی. (۴)

دغه شان وړاندے راغلی دی.چه امام بخاری رحمه الله په ((ابواب الصلاة)) کښے ((باب التقاضی والملازمة فی المسجد)) ترجمه قائمه کړه.اودے لاندے چه ئے کوم روایت نقل کړے دے.په هغے کښے د ((تقاضی)) ذکر شته.خود ((ملازمة)) ذکر په کښے نشته.خوچه په ((کتاب الخصومات)) کښے دا روایت ذکر کړے دے.نو هلته ((فلقیه فلزمه)) الفاظ راغلی دی.په دے طریقه دا ترجمه هم په بخاری کښے د ذکر شوی روایت نه ثابته شوه.کومه چه ئے ددے ځائے په ځائے بل ځائے ذکر کړے دے. (۵)

---

(۱) اوګورئ صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة آل عمران باب ﴿ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾رقم ۴۵۶۹.

(۲) اوګورئ فتح الباری (۲۱۳/۱) کتاب العلم باب السمر فی العلم).

(۳) اوګورئ صحیح بخاری کتاب الحج باب الفتیا علی الدابة عند الجمرة رقم. ۱۷۳۸).

(۴) اوګورئ فتح الباری (۱۸۱/۱) کتاب العلم باب الفتیا وهو واقف علی الدابة وغیرها).

(۵) اوګورئ اصل ⑮ شق (ب)

④ دغه شان امام بخاري رحمه الله کله ترجمه قائموي او دهغې داثبات دپاره په داسې روايت بندې اعتماد کوي کوم چه په بخاري کښې مذکور نه وي ددې مثال وړاندې تيرشوې دې چه امام بخاري رحمه الله ترجمه قائمه کړې ده ((باب دلك المرأة نفسها إذا تطهرت من المحيض)) اود باب لاندې چه نې کوم روايت نقل کړې دې په هغې کښې د ..دلك.. ذکر نشته.خو په صحيح مسلم کښې داسې روايت مذکور دې چه په هغې کښې د ..دلك.. ذکر شته.(۱)

⑤ کله امام بخاري رحمه الله د روايت داجمال نه ترجمه ثابتوي په کتاب الوضوء کښې يوه ترجمه ده ((باب وضوء الرجل مع إمرأته وفضل وضوء المرأة)) او ددې لاندې امام بخاري رحمه الله اثر نقل کړې دې((وتوضأ عمر رضي الله عنه بالحميم ومن بيت نصراني)) ددې نه امام بخاري رحمه الله داسې استدلال کوي چه حضرت عمر رضي الله عنه په ګرمو اوبو باندې اودس کوي.اوښځې عام طور اوبه ګرموي.اود ګرمولو په وخت کښې هغه خو کرته په اوبوکښې لاس وهي.چه اوبه څومره ګرمې شوې دي.دلته کښې حضرت عمر رضي الله عنه ګرمې اوبه په اودس کښې استعمال کړې دي.اوڅه تفصيل معلوم نه دې چه د ښځې ګرمې کړې اوبه وې اوکه د سړي.که د ښځې ګرمې کړې اوبه وې.نودې په هغې کښې لاس دننه کړې وو اوکه نه؟ نوګرمې اوبه نې په اودس کښې استعمال کړې اوحقيقت نې مجمل پريخودلو.ددې نه امام بخاري رحمه الله ثابته کړه.چه که سړې اوښځه دواړه په يوځائې اودس کوي.اود ښځې لاس د سړي د ا ودس په اوبو کښې ورداخل شي.نوبه دې کښې څه قباحت نشته.

دغه شان ((ومن بيت نصراني)) جمله ده.په دې کښې عقلاً دوه احتمالات دي.يو دا چه ګرمې اوبه د دغه نصراني ښځې د کور وې.اوعبارت داسې دې.((وتوضأ عمر رضي الله عنه بالحميم من بيت نصراني))لکه چه په يوه نسخه کښې دغه شان بغير د .واو.. نه راغلې دي.او دويم احتمال دا دې چه په ګرمو اوبود اودس کولو واقعه جدا ده.اود ((وضوء من بيت نصرانية)) واقعه بله ده.لکه چه حقيقت دواقعې هم دا دې.(۲)که دا يوه واقعه وي.نو ددې بحث تير شوې دې.اوکه دا واقعه جدا وي نود استدلال تقرير به دا وي چه حضرت عمر رضي الله عنه دنصراني ښځې د کور نه اوبه واخستلې اوبه هغې نې اودس اوکړلو.اودا تفصيل نې ترې اونه پوښتلو.چه دا اوبه د نصراني ښځې د استعمال کړې اوبو باقي مانده خو نه دي.حالانکه هلته د دواړو صورتونو احتمال وو دا هم ممکنه وه چه دا د هغې نصراني ښځې د استعمال شوې اوبو نه باقي پاتې شوې اوبه

---

(۱) اوګورئ اصل شق (ج)_

(۲) خکه چه ((توضأ بالحميم)) اثر مستقل دې او دا سعيد بن منصور، عبدالرزاق، ابن ابي شيبه، او دارقطني رحمهم الله وغيره موصولاً ذکر کړې دې او((ومن بيت نصراني)) دايو مستقل اثر دې.کوم چه شافعي.عبدالرزاق بيهقي.اواسماعيلي وغيره موصولاً ذکر کړې دې حافظ ابن حجر رحمه الله دا تفصيل ذکر کړې دې او ددې د وحدانيت احتمال نې رد کړې دې اوفرمائيلي نې دي((وقد عرفت أنهما أثران متغايران)) اوګورئ فتح الباري (۲۹۹/۱) کتاب الوضوء باب وضوء الرجل مع إمرأته...)

وے اودا هم ممکنه وه چه خانله اوبه وے داستعمال نه بچ شوے نه وے خو حضرت عمر رضی الله عنه تفصیل اونه غوښتلو امام بخاري رحمه الله ددے نه استدلال اوکړلو او ددے اجمال نه ئے خپله ترجمه ثابته کړه (۱)

④ کله امام بخاري رحمه الله د یوباب لاندے څورِوایتونه ذکر کوی اودهر روایت نه ترجمة الباب نه ثابتیږی بلکه یوروایت په کښے د ترجمے سره مطابق وی په داسے موقع ونیلی شی چه بخاري رحمه الله خپله ترجمه ددے روایاتو د مجموعے نه ثابته کړے ده لکه «باب کیف کان بدء الوحی إلى رسول الله صلی الله علیه وسلم» ددے لاندے شپږ روایات دی. خو د دریم روایت نه سوا په بل یو روایت کښے هم د بدء الوحی ذکر نشته. دلته کښے یوه توجیه دا هم کولے شی چه بخاري رحمه الله د مجموعه روایات نه ترجمه ثابته کړے ده په هر روایت باندے د ترجمے منطبق کیدل ضروری نه دی (۲)

⑤ کله امام بخاري د روایت دعموم نه ترجمه ثابتوی هغوی باب قائم کړے دے «باب التیمن في دخول المسجد» (۳) ددے لاندے ئے د حضرت عائشے رضی الله عنها حدیث ذکر کړے دے چه په هغے کښے دی «کان النبي صلی الله علیه وسلم یحب التیمن ما استطاع في شأنه کله» په روایت کښے دتیمن په استحباب کښے عموم دے امام بخاري رحمه الله د روایت د عموم نه «تیمن في دخول المسجد» ثابت کړے (۴)

⑥ کله امام بخاري لغوی اواصلی معنی مدنظرساتی اوترجمه ثابتوی لکه په ..کتاب الصلاة.. کښے ترجمه ده «باب ما یذکر في الفخذ» امام بخاري رحمه الله د ..فخذ.. (پتون) عورتیت طرف ته اشاره کوی اودحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه روایت پیش کوی «وفخذه على فخذي» (۵)
اود فخذی اصلی اولغوی معنی دنظرلاندے
ساتی اودا خودل غواړی چه ..فخذ.. عورت نه دے که دا عورت وے نودحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه ..فخذ.. به نبی صلی الله علیه وسلم په خپل ..فخذ.. باندے نه کیخودلو خکه چه خپل عورت بل په عورت باندے کیخودل جائز نه دی
دلته کښے ونیلی شی چه دا وضع د ..فخذ.. بغیر د حائل نه نهٔ وه کومه چه ناجائز ده بلکه حائل سره وه یود نبی صلی الله علیه وسلم لنګ او قمیص وو او بیا دحضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه لنګ

---

(۱) اوګورئ فتح الباري (۱/ ۲۹۹)_
(۲) اوګورئ لامع (۱/ ۴۸۹) باب کیف کان بدء الوحی إلى رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه شان مقدمة لامع (ص. ۳۳۴، ۳۳۵) الأصل الحادي والثلاثون)_
(۳) صحیح بخاري (۱/ ۶۱) کتاب الصلاة)_
(۴) اوګورئ فتح الباري (۱/ ۵۲۳) کتاب الصلاة باب التیمن فی دخول المسجد وغیره وعمدة القاري (۴/ ۱۷۱)
(۵) أخرجه البخاري تعلیقاً فی کتاب الصلاة باب ما یذکر فی الفخذ. وموصولاً فی کتاب التفسیر. تفسیر سورة النساء باب ﴿لا یستوي القاعدون من المؤمنین﴾ ..._

اوقمیص په مینځ کښے حائل وو.خوامام بخاری رحمه الله دے ته نظر نه کوی.اود،،فخذ،، د لغوی معنی اعتبار کوی.اوددے نه استدلال کوی. (۱)

⑥ کله امام بخاری رحمه الله په طریق د اولویت باندے ترجمه ثابتوی.لکه ((باب البول قاعداً وقائماً))

کښے دحضرت حذیفه رضی الله عنه روایت نقل کوی.((أن النبی ﷺ أتی سباطة قوم فبال قائماً)) (۲) روایت کښے د بول قاعداً ذکر نشته.حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی.امام بخاری رحمه الله دا په طریق د اولویت سره ثابت کړه ده.ځکه چه په ولاړه بولو کولو کښے جامو او بدن ته د متیازو ځاڅکو ورتلو ویره وی.او ددوی د فعل نه ددے جواز ثابت شو.نو.بول قاعداً،، چه په دے کښے دا خطره نشته.اوپه هغے کښے ستر هم زیات دے.به په طریقه اولی سره جائز وی.(۳)

دغه شان امام بخاری رحمه الله یوه ترجمه قائمه کړے ده.((باب التیمن فی الوضوء والغسل))اوددے لاندے ئے دحضرت ام عطیه رضی الله عنها روایت نقل کړے دے.چه نبی ﷺ د خپلے لور بی بی د غسل په باره کښے کله چه هغه وفات شوے وه . دا فرمائیلی وو.((وابدأ بمیامنها ومواضع الوضوء منها))(۴)

دلته کښے اشکال کیږی.چه امام بخاری رحمه الله خو په دے باب کښے د ژوندی دپاره د ((التیمن فی الوضوء والغسل)) بیان کوی.اوروایت د مړی د اودس اوغسل ذکر کوی.ددے جواب هم دا دے.چه امام بخاری رحمه الله په طریقه داولویت باندے استدلال کړے دے.چه هرکله د مړی دپاره دا حکم دے.نو دژوندی دپاره خو به په طریق اولی سره وی. (۵)

**د جامع صحیح بخاری فضائل:** ① یو فضیلت خو ئے دا دے.چه امام بخاری رحمه الله ددے دتالیف په وخت کښے یوحدیث ترهغه وخته پورے نه دے لیکلے.ترڅوچه ئے د دے نه وړاندے غسل .دوه رکعته مونځ اود استخارے نه پس ددے حدیث د صحت یقین نه وو کړے. (۶)

② دویم فضیلت ئے دا دے.چه ددے ټول احادیث صحیح دی. (۷)

③ دریم فضیلت دا دے.چه د نبی ﷺ دخوب بشارت د دے د تالیف سبب جوړ شوے وو.د ابوزید مروزی بیان دے.چه زه د رکن او مقام په مینځ کښے اوده وم.چه دنبی کریم ﷺ زیارت مے نصیب شو.نبی ﷺ اوفرمائیل.((یا أبازید إلی متی تدرس کتاب الشافعی ولاتدرس کتابی)) ماورته

---

(۱) اوګورئ فتح الباری (۱/۴۷۹) کتاب الصلاة باب مایذکر فی الفخذ)_

(۲) اوګورئ رساله شرح تراجم ابواب البخاری(ص.۱۸) دغه شان اوګورئ مقدمة لامع(ص.۳۲۰) الأصل التاسع عشر)

(۳) اوګورئ رساله شرح تراجم ابواب البخاری(ص.۱۸)دغه شان اوګورئ مقدمة لامع (ص.۳۲۰) الاصل التاسع)

(۴) صحیح بخاری (۱/ ۲۸. ۲۹) کتاب الوضوء )_

(۵) اوګورئ رساله شرح تراجم أبواب البخاری ⑱ دغه شان مقدمة لامع(ص.۳۲۰) الأصل التاسع عشر)_

(۶) اوګورئ تاریخ بغداد (۲/۱۹) وتهذیب الأسماء واللغات (۱/۱۷۴) وهدی الساری (ص.۴۸۹) وسیرأعلام النبلاء (۱۲/۴۰۲)_

(۷) تاریخ بغداد (۲/۱۹) تهذیب الأسماء واللغات (۱/۱۷۲) وسیرأعلام النبلاء (۱۲/۴۰۲)_

عرض اوکړلو.یا رسول الله ستاسو کتاب کوم یو دے؟ نو وے فرمائیل:«جامع محمد بن اسماعیل» [1]

④ څلورم فضیلت دا دے چه لکه څنګه ددے کتاب باطنی برکات دی.اوپه دے باندے عمل کولوسره سړی ته په دین کښے ترقی ملاویږی.دغه شان ددے ظاهری برکات هم دی.

ابن ابی جمره رحمه الله فرمائی چه ماته بعضے عارفینو د داسے بزرګانو نه نقل کړی دی .چه دهغوی د فضل او بزرګئ په خلقو کښے ښه شهرت اواعتراف وو.که صحیح بخاری په څه مصیبت کښے اولوستے شی.هغه به لرے شی.اوکه په کشتئ کښے ئے خان سره په سفر کښے اوساتی.نوهغه به ډوبیدو نه محفوظه وی.اونجات به مومی .مصنف رحمه الله مستجاب الدعوات وو.هغوی ددے د لوستونکو دپاره دعا کړے ده. [2]

علامه جمال الدین رحمه الله دخپل استاذ اصیل ا لدین نه نقل کړی دی.چه فرمائیل ئے .ما دا کتاب تقریباً یوسل شل کرته لوستے دے.په کوم نیت چه مے هم وئیلے دے.نو هغه مراد مے پوره شوے دے. [3] ددے وجے دبخاری رحمه الله د ختم رواج په عالمانو اومحدثینو رحمهم الله کښے راروان دے.داسلسله د کوم وخت نه راروانه ده.په دے باره کښے یقینی خبره نشی کولے.خو د اوومے اتمے صدئ نه ددے پته لګی.کیدے شی . چه ددے نه وړاندے هم دا سلسله جاری وه.

## أصح الكتب بعد كتاب الله الصحيح البخاري

دصحیح بخاری د شرطونو .خصوصیاتو .اوفضائلو پیژندلو نه پس دا خبره ښکاره کیږی.چه دے ته دحدیث په نوروکتابونو باندے مجموعی طورفوقیت حاصل دے .څکه چه امام بخاری رحمه الله چه په کوم باریك نظرئ اواحتیاط سره دصحیح احادیثو انتخاب کړے دے.اوبیا دهغوی جلالت شان اوپه معرفت علل کښے هم د هغوی مقام مقدم دے.ددے څیزونو په رڼا کښےکه د «أصح الكتب بعد كتاب الله صحيح البخاري» اطلاق پرے شوے وی.نودا به یے ځایه نه وی.دصحیح بخاری نه وړاندے د موطا مالك دپاره د امام شافعی رحمه الله نه داسے الفاظ منقول دی.خوچونکه په موطا کښے د مراسیل، بلاغاتو او منقطعاتو کافی تعداد موجود دے.کوم چه د امام مالك رحمه الله په نیز حجت دی.اود کتاب د موضوع په مینځ کښے داخل دی.اوپه صحیح بخاری کښے عام طور احادیث صحیح متصله دی.اوتعلیقات، وغیره چه په کښے داستشهاد دپاره راوړلے شوی دی.د کتاب د مینځ جزء نه دے.څکه متاخرینو رحمهم الله د صحیح بخاری په باره کښے د «أصح الكتب بعد كتاب الله صحيح البخاري» اطلاق بیان کړلو.اوهم دا ئے خپل کړلو.

---

(۱) هدی الساری (ص،۴۸۹)_
(۲) هدی الساری)_
(۳) اشعة اللمعات (۱/۱۱)_

دصحيح بخارى سره صحيح مسلم هم د صحت په اعتبار سره شريك دے خود حديثو جمهور عالمانو رحمهم الله صحيح بخارى ته په صحيح مسلم باندے فوقيت ورکړے دے حافظ ابن حجر رحمه الله د صحيح بخارى فوقيت ثابتوى اوفرمائى.

() كه د راويانو د عدالت په اعتبار سره اوكتلے شى نودصحيح بخارى فضيلت داسے ثابتيږى چه امام بخارى په کومو راويانو كنبے منفرد دے دهغوى تعداد څلور سوه پنځه ديرش دے په هغے كنبے متكلم فيه راويان صرف اتيا دى اوامام مسلم رحمه الله په شپږ سوه شل راويانو كنبے متفرد دےاوپه دے كنبےمتكلم فيه راويان يو سل شپته دى دا تعداد د امام بخارى رحمه الله د متكلم فيه راويانو په دوچنده دے بنكاره خبره ده چه د متكلم فيه راويانو تعداد په كوم كنبے كم وى هغه ته به فضيلت وى

() بيا امام بخارى رحمه الله چه د کومو متكلم فيه راويانو نه احاديث نقل كړى دى نو د هغوى نه ئے زيات احاديث نه دى اخستے.اوامام مسلم رحمه الله دخپل متكلم فيه راويانو نه زيات احاديث اخستے دى.

()يوه وجه دا هم ده.چه دامام بخارى رحمه الله دمتكلم فيه راويان دهغوى خپل استاذان او براه راست شيوخ دى.چه دهغوى دحالاتو اودهغوى دصحيح اوسقيم روايتو نه امام بخارى رحمه الله بنه خبر وو.نوامام بخارى رحمه الله دهغوى ټول احاديث چه څنګه ورته ملاؤ شوى دى.نه دى نقل كړى بلكه بنه پوره نچوړ ئے په كنبے كړے دے اونقل كړى ئے دى حالانكه د امام مسلم رحمه الله متكلم فيه راويان دهغوى براه راست شيوخ نه دى.بلكه متقدمين دى.

() بيا امام بخارى رحمه الله د دغه متكلم فيه راويانو احاديث اكثر په استشهاد، متابعاتو او تعليقاتوكنبے راوړى.حالانكه امام مسلم ئے په اصل كتاب كنبے داحتجاج په طور نقل كوى

() داتصال سند په اعتبار سره صحيح بخارى ته داسے فوقيت حاصل دے.چه د امام مسلم مذهب دا دے.چه حديث معنعن دمتصل په حكم كنبے وى.خو په دے شرط چه راوى او مروى عنه په يوه زمانه كنبے وى.اګرچه ددوى په مينځ كنبے ملاقات ثابت نه وى.حالانكه امام بخارى رحمه الله په خپل جامع كنبے دا مسلك اختيار كړے دے.چه حديث معنعن داتصال په حكم كنبے هله ګنړى.چه دمعاصرت سره سره كم از كم يو ځل ملاقات هم ثابت وى.بنكاره ده چه دامام بخارى شرط داتصال په اعتبار سره زيات قوى اوسخت دے.

() دعلت اوشذوذ د انتفاء په اعتبار سره صحيح بخارى ته په صحيح مسلم فوقيت داسے حاصل دے.چه دصيحينو په احاديثو كنبے ټول په دوه سوه احاديثو باندے كلام شوے دے چه په دے كنبے داتياؤ احاديثو نه هم كم په بخارى كنبے دى. او باقى احاديث په صحيح مسلم كنبے دى (۱)

اوس د دے تفصيل نه به بنه معلومه شوے وى چه صحيح بخارى ته په صحيح مسلم او نور دحديثو په كتابونو باندے فوقيت حاصل دے.

---

۱. اوګورئ هدى السارى (ص.۱۱،۱۲)_

**یوه غلط فهمي** خو ددې دا مطلب نه دې چه د صحیح بخاری هریو حدیث ته د صحیح مسلم با د حدیث د نورو کتابونو په هر یو حدیث باندې فوقیت حاصل دې بلکه صحیح بخاری ته چه کوم فوقیت حاصل دې هغه په مجموعي طور حاصل دې څکه حافظ سیوطي رحمه الله په تدریب الراوي کښې نقل کړی «قد یعرض للمفوق ما یجعله فائقاً کأن یتفقا علی إخراج حدیث غریب ،ویخرج مسلم اوغیره حدیثاً مشهوراً أو مما وصفت ترجمته بکونها أصح الأسانید، ولا یقدح ذلك فیما تقدم أی من کون ما فی البخاری فائقاً؛ لأن ذلك باعتبار الإجمال، قال الزرکشی ومن هٰهنا یعلم أن ترجیح کتاب البخاری علی مسلم وغیره إنما المراد به ترجیح الجملة علی الجملة لا کل فرد من أحادیثه علی کل فرد من أحادیث غیره» (۱)

په اصل کښې ددې غلط فهمۍ شروع د هغه تقسیم نه کیږی کوم چه حافظ ابن الصلاح رحمه الله د صحیح د مراتبو په بیان کښې ذکر کړی دی هغوی د صحیح قسمونه بیانوی او فرمائی «فأولها صحیح أخرجه البخاری ومسلم جمیعاً، الثانی صحیح إنفرد به البخاری أی عن مسلم، الثالث، صحیح إنفرد به مسلم أی عن البخاری، الرابع صحیح علی شرطهما لم یخرجاه، الخامس: صحیح علی شرط البخاری لم یخرجه: السادس: صحیح علی شرط مسلم لم یخرجه، السابع صحیح عند غیرهما ولیس علی شرط واحد منهما، هذه أمهات أقسامه وأعلاها الأول» (۲)

دحافظ ابن الصلاح په اتباع کښې دحدیث نورو عالمانو هم دا تقسیم ذکر کړې دې خو د حدیث محققینو عالمانو رحمهم الله دا رد کړې دې د تولو نه وړاندې محقق ابن الهمام رحمه الله دا تقسیم رد کړې دې هغوی په فتح القدیر کښې لیکلی دی.

«وکون معارضه فی البخاری لا یستلزم تقدیمه بعد إشتراکهما فی الصحة بل یطلب الترجیح من خارج، وقول من قال :أصح الأحادیث ما فی الصحیحین ثم ما إنفرد به البخاری ثم ما إنفرد به مسلم ،ثم ما إشتمل علی شرطهما من غیرهما، ثم ما إنفرد علی شرط أحدهما، تحکم لا یجوز التقلید فیه، إذ الأصحیة لیس إلا لإشتمال رواتهما علی الشروط التی إعتبراها، فإذا فرض وجود تلك الشروط فی رواة حدیث فی غیر الکتابین أفلا یکون الحکم بأصحیة ما فی الکتابین عن التحکم، ثم حکمهما أو أحدهما بأن الراوی المعین مجتمع تلك الشروط لیس مما یقطع فیه بمطابقة الواقع فیجوز کون الواقع خلافه، وقد أخرج مسلم عن کثیر فی کتابه لم یسلم من غوائل الجرح، وکذا فی البخاری جماعة تکلم فیهم، فدار الأمر فی الرواة علی إجتهاد العلماء فیهم، وکذا فی الشروط ،حتی

---

(۱) تدریب الراوی (۱/ ۲٤) دغه شان اوګورئ شرح نخبة الفکر(ص. ٤٠) قواعد فی علوم الحدیث (ص.۶۵) ما تمس إلیه الحاجه (ص.۲۲) تعلیقات الشیخ نورالدین عتر علی مقدمة ابن الصلاح (ص.۱۹)ـ

(۲) علوم الحدیث لإبن الصلاح (۲۷، ۲۸)ـ

إن من إعتبر شرطاً وألغاه آخر يكون ما رواه الآخر مما ليس فيه ذلك الشرط عنده مكافئاً لمعارضة المشتمل على ذلك الشرط وكذا فيمن ضعف راوياً ووثقه الآخر»[1]

د محقق ابن الهمام رحمه الله تائید حافظ زین الدین قاسم قطلوبغا او علامه ابن امیرالحاج[2] کړے دے. بیا دلته کښے د سوچ خبره ده. چه «ماأخرجه الشیخان» مطلقاً څنګه اصح ګرځولے شی. حالانکه پخپله امام بخاری رحمه الله فرمائی. «ما أدخلت فی کتابی الجامع الصحیح، ترکت من الصحاح لحال الطول»[3] دغه شان امام مسلم رحمه الله فرمائی. «لیس کل شئ عندی صحیح وضعته ههنا»[4] د دے وجے د حافظ ابن الصلاح رحمه الله دا تقسیم حافظ ابن حجر رحمه الله نه دے تسلیم کړے.

«ثم إن البخاری ومسلم لم يلتزما بإخراج جميع ما يحكم بصحته من الأحاديث، فإنهما صححا أحاديث ليست في كتابيهما، كما ينقل الترمذی وغيره عن البخاری تصحيح أحاديث ليست عنده بل في السنن وغيرها»[5]

دغه شان هغوی فرمائی.

«وقد خرجت كتب كثيرة على الصحيحين، يؤخذ منها زيادات مفيدة وأسانيد جيدة كصحيح أبي عوانة وأبي بكر الإسماعيلي والبرقاني، وأبي نعيم الأصبهاني وغيرهم، و كتب أخر التزم أصحابها صحتها كابن خزيمة، وابن حبان البستي، وهما خير من المستدرك، بكثير وانظف أسانيد ومتوناً، وكذلك يوجد في مسند الإمام احمد من الأسانيد والمتون شئ كثير مما يوازي كثيراً من أحاديث مسلم، بل والبخاری أيضاً وليست عندهما ولا عند أحدهما، بل ولم يخرجاه ولم يخرجه أحد من أصحاب الكتب الأربعة وهم ابوداود والترمذی والنسائی وابن ماجه»[6]

دغه شان په دے ترتیب باندے علامه قسطلانی شارح د صحیح بخاری هم تنقید کړے دے هغوی د ابن الهمام رحمه الله قول دتائید اواستحسان په طورنقل کوی.

«وهذا تحكم محض لأنه إذا كان الفرض، أن المروی على نفس الشرط المعتبر عندهما فلم يفته إلا كونه لم يكتب في خصوص أوراق معينة»[7]

---

(۱) فتح القدير (۱/۳۱۷. ۳۱۸) باب النوافل)_
(۲) اوګورئ قفوالأثر (ص.۵۷) التقرير والتحرير (۳/۳۰)_
(۳) اوګورئ علوم الحديث لإبن الصلاح (ص.۱۹)_
(۴) اوګورئ صحيح مسلم (۱/۱۷۴) كتاب الصلاة باب التشهد في الصلاة)_
(۵) إختصار علوم الحديث مع الباعث الحثيث (ص.۱۹. ۱۸)_
(۶) پورتنئ حواله.
(۷) ارشاد الساری كذا في تعليقات ذب ذبابات الدراسات (۲/۲۴۰. ۲۴۱)_

د ذکر شوی ترتیب رد کونکی صرف دا حضرات نه دی.بلکه علامه رضی الدین ابن الحنبلی رحمه الله (۱) علامه عبدالحق دهلوی رحمه الله (۲) علامه محمد اکرم نصر پوری (۳) ملا علی قاری (۴) علامه عبداللطیف سندهی (۵) علامه امیر صنعانی (۶) شیخ احمد شاکر (۷) علامه کوثری (۸) مولانا ظفر احمد عثمانی (۹) رحمهم الله تعالی هم دی.

په اصل کښې ددې ټولوحضراتو ددې په رد کولو کښې مقصد دا دے چه دحدیث دصحت مدار په دے خبره باندے نه وی.چه فلانے حدیث په صحیح بخاری یا صحیح مسلم کښې یا په فلانی کتاب کښې شته که نه.بلکه ددے مدار خو دشرطونو د صحت په وجود باندے دےپه کوم حدیث کښې چه د صحت شروط څومره پوره وی.نوهغه حدیث به دصحت په دغه مرتبه وی. لکه حافظ عراقی رحمه الله چه صراحت کوی.

«القول المعتمد عليه المختار أنه لايطلق على إسناد معين بأنه أصح الأسانيد، لأن تفاوت مراتب الصحة مرتب على تمكن الإسناد من شروط الصحة» (۱۰)

دغه شان فرمائی.«إعلم أن درجات الصحيح تتفاوت بحسب تمكن الحديث من شروط الصحة وعدم تمكنه» (۱۱)

علامه زین الدین قاسم بن قطلوبغا رحمه الله فرمائی.

«قوة الحديث إنما هى بالنظر إلى رجاله لا بالنظر إلى كونه فى كتاب كذا» (۱۲) بیا دلته دا خبره هم د غور قابله ده.چه ټول عالمان په دے باندے اقرار کوی.چه په صحیحینوکښې څه احادیث متکلم فیه دی.اودغه شان څه راویان متکلم فیه دی.هم دا وجه ده.چه امام بخاری رحمه الله د خپلو

---

(۱) اوګورئ قفوا الأثر (ص.۵۷)
(۲) شرح سفرالسعادة اوګورئ ..ذب ذبابات الدراسات عن المذاهب الأربعة المتناسبات (۲/۲٤۲)
(۳) اوګورئ أمعان النظر (ص.۶۳)_
(۴) كذا فى ذب الذبابات الدراسات(۲/۲٤۲)_
(۵) ذب ذبابات الدراسات (۲/۲٤۲)_
(۶) توضيح الأفكار اوګورئ تعليقات قفوا الأثر(ص.۵۷) وتعليقات ..النكت على كتاب ابن الصلاح(۱/۲۹۸)
(۷) تعليقات مسند احمد (۱۳/۱۶) والباعث الحثيث (ص.۲۲) _
(۸) تعليقات شروط الأئمة الخمسة للحازمى (ص.۸۳)_
(۹) قواعد فى علوم الحديث (۳۵، ٤۶ ۶۶) _
(۱۰) شرح الألفيه للعراقى (ص.۹۰)_
(۱۱) شرح الألفية للعراقى (ص.۲۱)_
(۱۲) القول المبتكر على شرح نخبة الفكر - كذا فى تعليقات الشيخ ابوغدة على قفوا الأثر(ص.۵۷)_

متکلم فیه شیوخو هر حدیث نه اخلی بلکه په هغې کښې چه په کوم روایت د هغه اطمینان وی هغه روایات د استشهاد او متابعت دپاره ذکر کوی ښکاره ده چه د دوی درجه هغه نه ده کوم چه امام بخاری رحمه الله د احتجاج او استدلال په طور ذکر کوی (۱)

دغه شان حاکم رحمه الله فرمائی ((ولم یحکما ولا واحد منهما أنه لم یصح من الحدیث غیر ما أخرجه)) (۲)

خلاصه دا چه د حافظ ابن الصلاح رحمه الله بیان کړې ترتیب د حدیث عالمانو عموماً او احنافو محدثینو خصوصاً رد کړې دې د حدیث د نورو کتابونو د حدیث د صحیحینو د صحیح بخاری د حدیث سره معارضه هم کوی اوګورئ علامه حازمی رحمه الله په خپل کتاب ((الاعتبار فی الناسخ والمنسوخ من الآثار)) کښې چه د احادیثو په مینځ کښې د تعارض په وخت کښې د ترجیح ورکولو کوم وجوهات لیکی هغوی تقریباً پنځوس وجوهات لیکلی دی په هغې کښې په یوځائې کښې هم دا وجه د ترجیح نه ده لیکلې چه ((ماأخرجه الشیخان أو أحدهما)) نه به د تعارض په وخت کښې ترجیح وی (۳)

حافظ عراقی په ((التقیید والإیضاح لما أطلق وأغلق من کتاب ابن الصلاح)) د ترجیح یو سل نس وجوه ذکر کړې دی په دې کښې ئې ((کون أحد الحدیثین أتفق علیه الشیخان)) په یو سل دوه نمبر باندې ذکر کړې دې (۴) علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی ((فیجوز معارضة حدیث أخرجاه أو واحد منهما بحدیث صحیح أخرجه غیرهما)) (۵)

دغه شان علامه عراقی رحمه الله فرمائی ((إنما یرجح بما فی الصحیحین علی ما فی غیرهما من الصحیح حیث کان ذلك الصحیح مما لم تضعفه الأئمة، فأما ما ضعفوه فلا یقدم علی غیره لخطأ وقع من بعض رواته)) والله أعلم (۶)

هم دا وجه ده چه د صحیحینو د جلالت باوجود د هغې د احادیثو سره عالمانو موازنه کړې ده او د معارضه په صورت کښې ئې بعضې وخت د غیر صحیحینو احادیثو نه د صحیحینو په احادیثو باندې ترجیح هم ورکړې ده مولانا عبدالرشید نعمانی صاحب په خپل کتاب ((ابن

---

(۱) اوګورئ نصب الرأیة (۱ ۳٤۱)_

(۲) مستدرک حاکم (۱ ۲)_

(۳) اوګورئ شرح الألفیه للعراقی (ص.۳۳۷)_

(۴) التقیید والإیضاح (.۲۸۹) النوع السادس والثلاثون معرفة مختلف الحدیث)_

(۵) قواعد فی علوم الحدیث (ص.۶۳)_

(۶) اوګورئ التعقیبات علی الدراسات (ص.۳۷۵)_

ماجه اور علم حدیث» کښې د ابن ماجه څو داسې احادیث پیش کړی دی چه هغې ته ئې د صحیح بخاری په احادیثو باندې مقابله کښې ترجیح ورکړې ده (۱)

ب: علامه ابن امیر الحاج رحمه الله فرمائی «ثم مم ینبغی التنبه له أن أصحیتهما علی ما سواهما تنزلاً إنما تکون بالنظر إلی من بعدهما لا المجتهدین المتقدمین علیهما، فإن هذا مع ظهوره قد یخفی علی بعضهم أو یغالط به والله سبحانه أعلم» (۲)

علامه کوثری رحمه الله ددې په تشریح کښې لیکی «یرید أن الشیخین وأصحاب السنن جماعة متعاصرون من الحفاظ أتوا بعد تدوین فقه الإسلامی، واعتنوا بقسم من الحدیث، وکان الأئمة المجتهدون قبلهم أوفر مادة وأکثر حدیثاً بین أیدیهم المرفوع والموقوف والمرسل وفتاوی الصحابة والتابعین، ونظر المجتهد لیس بقاصر علی قسم من الحدیث، ودونك ،،الجوامع،، والمصنفات،، فی کل باب منها تذکر هذه الأنواع التی لایستغنی عنها المجتهد وأصحاب الجوامع والمصنفات قبل الستة من الحفاظ، أصحاب هولاء المجتهدین وأصحاب أصحابهم، والنظر فی أسانیدها کان أمراً هیناً عندهم لعلو طبقتهم لاسیما واستدل المجتهد بحدیث صحیح له، والإحتیاج إلی الستة، والإحتجاج بها إنما هو بالنظر إلی من تأخر عنهم فقط والله أعلم» (۳)

علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی

«لو سلم أصحیة ما فی کتابیهما فهذا مما یلتفت إلیه فی المعارضة کما إذا قام الرجلان ببینة وشهود کلیهما عدول، ولکن شهود أحدهما أتقی وأورع من شهود الآخر فلا یترجح بینته لهذه الزیادة بعد إشتراکهما فی العدالة الشرعیة، بل یطلب الترجیح من خارج» (۴)

بیا بعضې حضراتو د صحیحینو د ترجیح دپاره دا هم ونیلی دی چه ددې دواړو کتابونو ته تلقی بالقبول حاصله ده.

خودا خبره علامه امیر صنعانی او علامه ابوالفضل جعفر بن ثعلب اوفوی رحمه الله رد کړې ده

علامه اوفوی رحمه الله فرمائی چه امت تلقی صرف د صحیحینو نه ده کړې بلکه د حدیث د نورو کتابونو تلقی ئې هم کړې ده. چه په هغې کښې صرف صحیح احادیث نه بلکه حسن احادیث هم داخل دی.

---

(۱) اوګورئ ابن ماجه اور حدیث (ص۲۴۳، ۲۴۴)۔

(۲) التقریر والتحریر (۳: ۳۰) فصل فی التعارض)۔

(۳) تعلیقات شروط الأئمة الخمسة للحازمی (۸۳)۔

(۴) قواعد فی علوم الحدیث (ص۶۵)۔

علامه امیر صنعانی رحمه الله فرمائی. ((تلقی الأمة بالقبول)) مطلب هم دا دے چه دا احادیث ثابت دی. اوبعضے خلق په دے باندے عمل کوی. اوبعضے خلق په دے کښے تاویل کوی. کتل دا پکار دی چه آیا دا تلقی د صحیحنو احادیثو ته حاصله ده.؟

اوس مونږ دا تپوس کوو چه د ..تلقی امت.. نه ټول امت مراد دے که حضرات مجتهدین بنکاره خبره ده چه ټول امت مراد نشی کیدے. نومعلومه شوه چه ددے نه د امت مجتهدین مراد دی. اوس کتل دا پکار دی چه آیا دامت په مجتهدینو کښے هر یو فرد ..تلقی بالقبول.. کړے ده. بنکاره خبره ده چه ددے دعوے دپاره د دلیل ضرورت دے. کوم چه عادة متعذر دے. ځکه چه دا دعوے په اجماع باندے د دلائلو داقامت د قبیلے نه دی. امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی. ((من ادعی الإجماع فهو کاذب)) کله چه دصحیحینو د تالیف نه وړاندے اجماع دا حال دے. نو په روستو زمانه کښے به د اجماع څه حیثیت وی.

بیا که چرته دا تسلیم کړے شی. چه صحیحینو ته تلقی دامت بالقبول حاصل ده. اود امت په دے باندے اجماع ده. نو بیا به هم دا منل پکار وی. چه اول د صحیحینو تالیف شوے وو. اوبیا دهغے شهرت شوے دے. مشرق اومغرب ته دا دواړه کتابونه اورسیدل. اوهرمجتهد ددے نه خبر شو. بیا په څه وخت کښے پرے اتفاق اواجماع اوشوه. خودا خبره محل د نظر ده. چه هرمجتهد د صحیحینو نه واقف شوے دے.

بل دا سوال هم واردیږی. چه د تلقی امت نه څه مراد دی؟ که دا مراد وی. چه امت دا پیژنی چه صحیحین د امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله کتابونه دی. نودا مفید د مطلوب نه ده. اوکه دا مراد شی. چه د صحیحینو دهر یو حدیث په باره کښے امت ته دا یقین دے چه دا د رسول الله ﷺ نه ثابت دے. نودا مفید د مطلوب ضرور دے. خو بنکاره خبره ده. چه دا دعوی مسلمه نه ده. ځکه چه د صحیحینو دکم نه کم دوه او لسو احادیثو باندے کلام شوے دے. دغه شان په دے کښے متکلم فیه راویان هم په سوونو دی. نومعلومه شوه. چه دامت په دے خبره باندے اجماع هم نه ده. چه د صحیحینو هریو حدیث ملقی بالقبول دی. اود رسول الله ﷺ نه ثابت دے. بیاکه بالفرض دا هم اومنلے شی. چه تلقی بالقبول هرحدیث ته حاصله ده. نو بیا هم خطا ممکنه ده. ځکه چه د امت معصوم عن الضلالة ضمانت خو اخستے شوے دے. خود معصوم عن الخطا ضمانت نه دے اخستے شوے.

بیا که مونږ دا هم اومنو. چه دامت ټولو مجتهدینو دصحیحینو احادیث قبول کړی دی. او هم ددے وجے ددے ارجحیت ثابتیږی. نوبیا خو د صحیحنو په مینځ کښے فرق نه دے پکار. نو

«ما انفرد به البخارى» ته په «ما انفرد به مسلم» باندے ترجيح نه دى وركول پكار.(۱) والله سبحانه اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

# باب بدءالوحي

الحمدلله رب العالمين، والصلاة والسلام على سيدنا محمد النبى الأمى وعلى آله وصحبه أجمعين،

**دامام بخارى رحمه الله د شروع طريقه او په دې باندې اعتراض** مصنف رحمه الله دا كتاب د بسم الله نه شروع كړے دے. د كتاب په شروع كښے ئے نه څه خطبه راوړے ده. چه په هغے كښے مقصود طرف ته اشاره وى. او نه د ..حمد.. صلاة.. او ..شهادة.. ذكر شته. حالانكه قانون دا دے چه مصنفين د خپلو كتابونو شروع د ..حمد.. ..شهادة.. او ..صلاة.. نه كوى.
تركومے پورے چه د خطبه تعلق دے نو ددے دپاره د څه خاص لفظ يا مخصوص سياق متعين نه دے. بلكه دهر داسے څيز نه شروع كول كافى دى. كوم چه په مقصود باندے دلالت كوى. امام بخارى رحمه الله دا مقصود د ..بسم الله.. نه پس د ..باب بدء الوحى.. ترجمے انعقاد كړے دے. اوددے نه پس ئے د ټولو نه اولنے حديث «انما الأعمال بالنيات» ذكر كړے دے. او ښكاره كړے ئے ده. چه په دے كتاب كښے .. وحى سنت .. وحى غيرمتلو) جمع كول غواړم. كومه چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه منقول ده. اوهم ددے خائے نه په دے كښے د نيت اندازه پخپله لګولے شى خكه چه د امام بخارى رحمه الله عادت دے چه دوى ..اخفى.. په ..اجلى.. باندے ترجيح وركوى (يعنى پټ ته په ښكاره باندے ترجيح وركوى) امام بخارى رحمه الله د خپل كتاب په ابتداء كښے هم داسے كړى دى.(۲) باقى پاتے شوه دا خبره چه امام بخارى رحمه الله په كتاب كښے نه ..حمد.. ذكركړے دے. اونه ..صلاة.. اونه شهادت. حالانكه د احاديثو نه ددے مطالبه معلوميږى.

د ..حمد.. مطالبه دحضرت ابوهريره رضى الله عنه په حديث كښے راغلے ده. «قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كل كلام لا يبدأ فيه ..بالحمدلله.. فهو أجذم» رواه ابوداود(۳) (واللفظ له) وابن ماجه(۴) والنسائى فى عمل اليوم والليلة(۵) وابوعوانة فى أول مستخرجه على صحيح مسلم(۶) وابن حبان(۷) وغيرهم(۸) حسنه ابن الصلاح(۹) والنووى(۱۰)

---

(۱) هذا ملخص ما فى ..العقيبات على الدراسات.. للمحدث الناقد الشيخ عبدالرشيد النعمانى حفظه الله (ص. ۳۸۵، ۳۸۹)_

(۲) اوګورئ فتح البارى (۸/۱)_

(۳) سنن ابى داود كتاب الأدب باب الهدى فى الكلام رقم. ۴۸۴۰_

(۴) سنن ابن ماجه كتاب النكاح. باب خطبة النكاح رقم. ۱۸۹۴_

(۵) اوګورئ تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف للحافظ المزى (۱۱/ ۴۰، ۴۱)_

(۶) قاله النووى فى فاتحة المجموع شرح المهذب (۷۳/۱)_

د شهادت متعلق هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع روايت دے «كل خطبة ليس فيها تشهد فهي كاليد الجذماء» رواه ابوداود[5] والترمذي[6] واحمد[7] قال الترمذي، «هذا حديث حسن صحيح غريب»[8]
او د صلاة على النبى ﷺ مطالبه هم د بعضے رواياتو نه معلوميږي امام ديلمي رحمه الله په ..مسند الفردوس.. كښے او عبدالقادر رهاوي رحمه الله په ..اربعين.. كښے د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت نقل كړے دے چه «كل أمري ذى بال لا يبدأ فيه بحمد الله والصلاة على فهو أقطع أبتر ممحوق من كل بركة»[9] او ابن منده رحمه الله په ..فضائل.. كښے دا حديث «كل كلام لا يذكر الله فيه فيبدأ به ويصلى على فيه فهو أقطع أكتع ممحوق من كل بركة»[10] الفاظ نقل كړي دي.

**د اشكال جوابونه** (۱) خو په دے رواياتو كښے يوهم د امام بخاري رحمه الله د شرط مطابق نه دے[11] ځكه چه د اول روايت په سند كښے ..قرة بن عبدالرحمن.. دے[12] امام بخاري رحمه الله د دوى كوم روايت نه دے اخستے امام مسلم رحمه الله د ده روايات په شواهدو او متابعاتو كښے اخستے دي.[13]

---

(۱) انظر الطبقات الشافعية الكبرى للتاج السبكي (۱/ ٤)_

(۲) مثل الدارقطني في سننه (۱/ ۷۳) فاتحة كتاب الصلاة وعبدالقادر الرهاوي في أربعينه كما في المجموع شرح المهذب للنووي رحمه الله (۱/ ۷۳) وقال التاج السبكي رحمه الله في طبقاته (۱/ ٤) وكذلك أخرجه الحاكم في مستدركه)_

(۳) قال التاج السبكي في طبقاته (۱/ ٤) وقضى ابن الصلاح بأن الحديث حسن ..)_

(۴) انظر المجموع شرح المهذب (۱/ ۷۳) فقد حسنه ابن الصلاح رحمه الله والنووي والعراقي والحافظ ابن حجر كما في الفتوحات الربانية عي الأذكار النووية لابن عجلان (۳/ ۲۸۸) و(۶/ ۶۳)_

(۵) سنن ابى داود كتاب الأدب باب في الخطبة رقم ٤٨٤١)_

(۶) سنن الترمذي. كتاب النكاح. باب ما جاء في خطبة النكاح رقم ۱۱۰۶)_

(۷) مسند احمد (۲/ ۳۰۲، ۳٤۳)

(۸) كذا في النسخة التى حققها الشيخ احمد بن محمد الشاكر. محمد فواد عبدالباقي والشيخ ابراهيم عطوه عوض _ وأما في النسخة المطبوعة مع تحفة الأحوذي ففيها ..هذا حديث حسن غريب.. أنظر (۲/ ۱۷۹)_

(۹) كذا في الجامع الكبير للسيوطي رحمه الله (۱/ ۶۲۳)_

(۱۰) كذا في الجامع الكبير (۱/ ۶۲۳) وكنز العمال (۳/ ۲۶۵) رقم ۶٤۶۳)_

(۱۱) قال الحافظ رحمه الله في فتح البارى (۱/ ۸) والجواب: أن الحديثين (أى حديث الحمد والشهادة) ليسا على شرطه. بل في كل منهما مقال)_

(۱۲) قرة بن عبدالرحمن حيويل _ بمهملة مفتوحة تحتانية وزن جبريل _ المعافري المصري. يقال إسمه يحيى. صدوق له مناكير من السابعة. مات سنة سبع وأربعين (أى بعد المائة أخرج له مسلم والأربعة كذا في تقريب التهذيب (۵۵٤) رقم الترجمة (۵٥٤١) وانظر تهذيب الكمال (۲۳/ ۵۸۱) رقم الترجمة (٤۸۷۱) وميزان الإعتدال (۳/ ۳۸۸) رقم الترجمة (۶۸۸۶) ولسان الميزان (۸/ ۳۷۲، ۳۷٤) رقم (۶۶۱)_

(۱۳) خرج له مسلم في الشواهد _ ميزان الإعتدال (۳/ ۳۸۸) وانظر طبقات الشافعية للسبكي (۱/ ٤)_

دغه شان په دے روايت كښے وصلا وارسالا اختلاف دے.قره دا موصولا نقل كوى او يونس. عقيل. شعيب. اوسعيد بن عبدالعزيز رحمهم الله ئے ارسالا نقل كوى (١) امام دارقطنى رحمه الله فرمائى.((والمرسل هوالصواب))(٢)

د دويم روايت په سند كښے عاصم بن كليب دے (٣) د دوى نه امام مسلم رحمه الله اونورو اصحاب اصول روايتونه اخستى دى اوامام بخارى رحمه الله ددوى نه هيڅ يوروايت اصلا نه دے نقل كړے(٤)د دريم روايت په سند كښے اسماعيل بن ابى زياد شامى دے (٥)

حافظ عبدالقادر رهاوى رحمه الله فرمائى ((غريب، تفرد بذكر الصلاة فيه إسماعيل بن أبي زياد الشامي، وهو ضعيف لايعتد بروايته ولا بزيادته))(٦)

خودا جواب ضعيف دے.ځكه چه امام بخارى رحمه الله په خپل ..صحيح.. كښے حديث ذكركولودپاره دغسل .دوه ركعته نفلونو او استخارے پورے اهتمام كړے وو (٧) حالانكه په دے كښے د يو ذكر هم په حديث كښے نشته.او د تسميه اوتحميد دپاره حديث خو شته اګرچه ضعيف وى.

دويمه دا لكه چه ذكر شو.چه د ..قره.. متابعين موجود دى.نو ضعف هم باقى پاتے نشو

دريمه دا چه هسے هم د فضائلو په احاديثو كښے زيات تحقيق نه كيږى په ضعيف حديث باندے هم عمل كولے شى.(٨)

څلورمه داچه شاه انورشاه كشميرى رحمه الله د صحت دپاره څلور معياره مقرر كړى دى

---

(١) قاله ابوداود فى سننه فى كتاب الأدب باب الهدى فى الكلام رقم ٤٨٤٠_

(٢) سنن دارقطنى (١/٢٢٩) فاتحة كتاب الصلاة)_

(٣) قال الحافظ فى التقريب:عاصم بن كليب بن شهاب بن المجنون الجرمى الكوفى :صدوق رمى بالإرجاء من الخامسة مات سنة بضع وثلاثين (أى بعدالمائة )خت (أى البخارى فى صحيحه تعليقا)م ٤)

(٤) استشهد به ا لبخارى فى ..الصحيح.. وروى له فى كتاب رفع اليدين فى الصلاة وفى .. الأدب.. وروى له الباقون – كذا فى تهذيب الكمال للمزى (١٣/٥٣٩) رقم الترجمة (٣٠٢٤)_

(٥) اسماعيل بن ابى زياد أ ابن أبى زياد .الكوفى.قاضى الموصل.متروك.كذبوه. من الثامنة ق.(أى أخرج له ابن ماجه فى سننه) تقريب التهذيب (ص.١٠٧) رقم الترجمة (٤٤٦)_

(٦) انظر الجامع الكبير للسيوطى (١/٦٢٣)_

(٧) اوګورئ لامع الدرارى (١/١٢٢) الفائدة السادسة فيما اهتم به البخارى فى تاليفه من الغسل والصلاة وغيرذلک) علامه عينى رحمه الله فرمائى.((ولئن سلمنا أن الحديث ليس على شرطه فلا يلزم من ذلک ترک العمل به.. اوګورئ عمدة القارى (١/١٢) _

(٨) قال الحافظ فى هدى السارى (ص.٤٤٠) وهو يسرد أسماء من طعن فيه من رجال صحيح البخارى فى ترجمة محمدبن عبدالرحمن الطفاوى ...فهذا الحديث قد تفرد به الطفاوى وهو من غرائب الصحيح وكأن البخارى لم يشدد فيه لكونه من احاديث الترغيب والترهيب والله أعلم) _

① ما رواه تام الضبط، کامل العدالة، باتصال السند، لایکون فیه الشذوذ والعلة،
② یو ماهر محدث دهغے تصحیح کرے وی.
③ کومو مؤلفینوچه د صحت التزام کرے وی.په هغوی کښے چا نقل کړی وی.
④ چه راویان غیرمجروح وی.او روایت عملاً د قبولیت درجه حاصله کړے وی. اوکه یو راوی مجروح وی.نو په متابعت سره دهغے تدارک شوے وی.(۱)
دلته آخری درے واړه معیار موجود دی.ځکه چه ابن الصلاح.نووی. عراقی.سبکی رحهم الله وغیره ددے حدیث تصحیح اوتحسین کړے دے.دغه شان چه کومو مؤلفینو د صحت التزام کړے دے.په هغو کښے هم ابوعوانه رحمه الله او ابن حبان رحمه الله ددے تخریج کړے دے.دغه شان متابعین هم موجود دی.((وقد مرالتفصیل آنفاً))
②دویم جواب دا دے.چه دا روایتونه امام بخاری رحمه الله ته نه دی رسیدلی.لکه چه په امام مزنی رحمه الله باندے په ..مختصرالمزنی.. کښے په دے طریقه باندے دا اعتراض شوے دے.هلته کښے هم شارحینو رحمهم الله د نورو جوابونه نه علاوه دا هم ذکر کړی دی.چه هغوی ته دا روایات نه وو رسیدلی.(۲) ((ولایقدح ذلک فی جلالته))
خوبه دے جواب باندے اشکال دادے.چه داامام بخاری رحمه الله غوندے جامع شخصیت باندے ددے روایاتو پټ پاتے کیدل ډیرلرے خبره ده.
③ دریم جواب دا دے.چه د ..حمد وغیره دپاره تحریر اوکتابت ضروری نه دے.په ژبه حمد ونیل هم کافی دی.کیدے شی.چه امام بخاری رحمه الله په خوله باندے حمد ونیلی وی.اګرچه په قلم سره ئے نه وی لیکلے.(۳) د سلفو طریقه وه.چه هغوی به احادیث لیکل.او په ژبه به ئے درود شریف ونیل.خطیب بغدادی رحمه الله په ..الجامع.. کښے د ..مسند احمد.. په باره کښے نقل کوی.چه هغوی به درود لیکل نه بلکه ونیل به ئے.(۴)
④ څلورم جواب دا دے.چه په ..بسمله.. کښے دکمال په صفتونو باندے دلالت کونکی الفاظ ..الله.. - ..رحمن.. _ او ..رحیم.. دی.ښکاره خبره ده.چه ددے ذکر د حمد په ضمن کښے راغی.(۵)
⑤ پنځم جواب دا دے.چه د ..حمد.. دحدیث مقصد دالله تعالی ذکر دے.مطلب دا دے.چه ((کل أمرذی بال)) که دالله تعالی د ذکرنه بغیر شروع شی.نوهغه به ناتمامه او نامکمله

---

(۱) اوګورئ فضل الباری (۱۶۶/۱) وایضاح البخاری (۲۸/۱)_
(۲) (۲۸) انظرالمجموع شرح المهذب (۷٤/۱)_
(۳) اوګورئ فتح الباری (۸/۱)_
(۴) اوګورئ فتح الباری (۹/۱)_
(۵) انظرلامع الدراری (۴۸۶/۱. ٤۸۷)_

وى.ددے دليل دا دے چه دا حديث «كل أمرذى بال لا يبدأ فيه بالحمد: أقطع» الفاظو سره مروى دے.(١)

هم ددے حديث نور الفاظو كښے «كل أمرذى بال لا يبدأ فيه ببسم الله الرحمن الرحيم أقطع» دى.رواه عبدالقادر الرهاوى فى أربعينه»(٢)

دغه شان ددے دريم قسم الفاظ دا دى.چه «كل أمرذى بال لا يبدأ فيه بذكر الله :أقطع» رواه الدارقطنى(٣) واحمد(٤)

د درے واړه قسمه الفاظو دحديث مدار په ..قره بن عبدالرحمن.. باندے دے معلومه شوه. چه دحمد مقصد ..ذكر.. دے.اودا مقصد په بسم الله سره حاصل شو .هم دا جواب امام نووى رحمه الله اختيار كړے دے.(٥)

خو په دے باندے معمولى غوندے اشكال دا دے.چه دحديث په الفاظو كښے اختلاف يقينى شته.خو په دے اختلافاتو كښے د ..وحمد.. لفظ د ..بسم الله.. او ..ذكرالله.. د الفاظو په مقابله كښے اثبت اوارجح دے.

ددے جواب دا دے.چه د..حمد.. په رواياتو كښے د..حمد..نه اعم مراد دے.چه ..بسم الله.. او ..حمد.. دواړو ته شامل دے.هم دا وجه ده.چه اكثرشرعى اعمال د حمد نه نه شروع كيږى.مثلاً مونځ چه د تكبير نه شروع كيږى.دحمد نه نه شروع كيږى.دغه شان حج وغيره. ددے نه علاوه د ..حمد.. په رواياتو كښے په څه ځائے كښے ..بحمدالله.. مروى دے .اوپه څه ځائے كښے ..بالحمد.. مروى دے.اوپه څه ځائے كښے ..بالحمدلله.. نو معلومه شوه.چه مطلق حمد مراد دے.كوم چه په ذكر كښے داخل دے.(٦)

⑨ شپږم جواب دا دے.چه امام بخارى رحمه الله د «أول مانزل» تابعدراى كړے ده.د ټولو نه وړاندے آيت كريمه چه نازل شوے دے.هغه ((اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ)) په اولنئ وحى كښے د رب په اسم باندے د قرات حكم وركړے شوے دے.نوځكه امام بخارى رحمه الله په تسميه باندے د خپل كتاب شروع اوكړله.اوبيا د خوند خبره دا ده.چه په «أول مانزل» كښے د رب د اسم نه د وحى د قرات حكم وو.او دامام بخارى رحمه الله ټول كتاب په وحى (غيرمتلو) باندے مشتمل دے . نو دوى هم د وحى دپاره په اول كښے تسميه راوړله.اود رب د اسم نه خپل كتاب شروع كړلو.

---

(١) سنن ابن ماجه كتاب النكاح باب خطبة النكاح رقم ١٨٩٤.

(٢) قاله السيوطى فى الجامع الكبير(٦٢٣/١)

(٣) سنن الدارقطنى (٢٢٩/١) كتاب الصلاة

(٤) مسند احمد (٣٥٩/٢)

(٥) انظرالمجموع شرح المهذب (٧٤/١)

(٦) د پوره تفصيل دپاره اوگورئ طبقات الشافعية الكبرى (٩/١، ١٠)

⑦ اووم جواب دا دے چه امام بخاري رحمه الله د نبي كريم ﷺ تابعداري كړې ده خكه چه نبي كريم ﷺ د صلح حديبه په موقع كومه صلح نامه ليكله نود هغې شروع ئے په اول كښې د ((بسم الله الرحمن الرحيم)) نه وه كړے (۱)

⑧ اتم جواب دا دے چه د حمد د حديث تعلق د خطبو سره دے د كتابونو سره نه دے دے وضاحت دا دے چه په عربو كښې رواج دا وو چه كله به هغوئ خطبه ونيله نو شروع به ئے داشعارو نه كوله نو نبي كريم ﷺ د دے دا تعليم وركړلو چه د حمد نه شروع كول پكار دي (۲)

باقي پاتے شوه دا خبره چه كتاب ټول اشعارو وي نود هغې ابتداء د ..بسم الله.. نه كول پكار ده اوكه د ..حمد.. نه؟ نوامام شعبي رحمه الله منع كوي اوامام سعيد بن جبير رحمه الله اجازت وركوي اكثروعالمانو او جمهورو رحمهم الله د سعيد بن جبير رحمه الله تابعداري كړے ده (۳)

⑨ نهم جواب دا وركړے شوے دے دحمد حديث د حديبيه د ورځې په واقعه سره منسوخ شوے دے (۴)

خودا جواب صحيح نه دے خكه چه د نسخ دپاره د تاريخ د بيان ضرورت وي (۵)

بله دا چه د نسخ قول اختيارول په هغه وخت كښې پكار وي چه جمع ناممكن وي دجمهورو عالمانو هم دا مسلك دے كه په دلائلو متعارضو كښې جمع ممكن وي نو د نسخ قول اختيارول نه دي پكار. ⑨

⑩ لسم جواب بعضے عالمانو دا وركړے دے چه دامام بخاري رحمه الله پيش نظر د ..حمدله.. اوبسمله.. روايات وو اوپه دواړو كښې تعارض دے خكه كه د ..حمدله.. نه شروع كوله نودعرف اوعادت خلاف راتلو اوكه د ..بسمله.. نه ئے شروع كوله نود ..حمدله.. ترك لازميدلو نوامام بخاري رحمه الله هم د بسم الله نه شروع اوكړله (۶)

خودا جواب ضعيف دے خكه چه ..بسمله.. او ..حمدله.. دواړه جمع كيدے شي.

---

(۱) اوګورئ فتح الباري (۱/ ۸) وذكر ابن سعد بسنده عن عكرمة قال:لما كتب النبي ﷺ الكتاب الذي بينه وبين أهل مكة يوم الحديبية قال اكتبوا بسم الرحمن الرحيم قالوا: أما الله فنعرفه وأما الرحمن الرحيم. فلا نعرفه.قال فكتبوا باسمک اللهم ...الطبقات الكبرى لابن سعد (۲/ ۱۰۱) غزوة رسول الله ﷺ الحديبية وانظر أيضاً زاد المعاد في هدي خيرالعباد لابن القيم (۳/ ۲۹٤)_

(۲) عمدة القاري (۱/ ۱۲) قاله العيني روى أن أعرابياً خطب فترک التحميد فقال ﷺ كل أمر ...الحديث )_

(۳) قال الحافظ في الفتح (۱/ ۹) واختلف القدماء فيما إذا كان الكتاب شعراً فجاء عن الشعبي رحمه الله منع ذلک، وعن الزهري قال مضت السنة أن لا يكتب في الشعر بسم الله الرحمن الرحيم وعن سعيد بن جبير جواز ذلک وتابعه على ذلک الجمهور قال الخطيب : هوالمختار ) _

(۴) عمدة القاري (۱/ ۱۲)_

(۵) انظرمقدمة ابن الصلاح (ص: ۱٤۰) النوع الرابع والثلاثون.معرفة ناسخ الحديث ومنسوخه .والتقريب مع شرحه التدريب (۲/ ۱۹۱، ۱۹۲)_

(۶) فتح الباري (۱/ ۸) وعمدة القاري (۱/ ۱۲)_

لكه چه په قرآن پاك كښے دى.

① يو ولسم جواب دا وركړے شوے دے چه امام بخارى رحمه الله د نبى كريم ﷺ په كلام باندے خپل كلام مقدم كولو نه احتراز اوكړلو. اوپه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ [1] باندے ئے عمل اوكړلو. [2]

په دے باندے دا اشكال كيدے شى چه امام بخارى رحمه الله دالله تعالى دكلام نه اول حمد هم اخستلے شو. [3] مثلاً سورة فاتحه اولنى آياتونه ﴿لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ۝ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ۝﴾ ئے هم ذكر كولے شول.

دويم اشكال دا دے چه امام بخارى رحمه الله دحديث نه وړاندے ترجمة الباب اوسند ذكركړے دے او دا خپل كلام مقدم كول دى.

بعضے حضراتو ددے جواب دا وركړے دے چه اگرچه ترجمة الباب اوسند په ظاهره مقدم دے خو په حكم كښے روستو دے [4] خو دا جواب صحيح نه دے.

② دولسم جواب دا وركړے شوے دے چه امام بخارى رحمه الله په خپل كتاب كښے دتسميه نه پس حمد هم ذكر كړے وو. خو د ناسخينو د بے توجهئ د وجے ساقط شوے دے. علامه عينى رحمه الله دا جواب خوښ كړے دے. اوفرمائيلى ئے دى. چه دا خبره ما دخپلو بعضو لويو استاذانو نه اوريدلے ده. [5] خو دا جواب صحيح نه دے. ځكه كه امام بخارى رحمه الله حمد ذكر كړے وو. نو به يوه نيمه نسخه كښے به موجود وو.

دويمه خبره دا ده. چه پكار دا وه. چه دامام بخارى رحمه الله په بل يو تصنيف كښے هم ..حمد.. موجود وے. حالانكه دامام بخارى رحمه الله كوم تاليفات چه اوس موجود دى. لكه ،،الأدب المفرد، خلق أفعال العباد، جزء رفع اليدين، جزء القراءة خلف الإمام ،تاريخ كبير، تاريخ صغير، كتاب الكنى،، وغيره. په دوى كښے په يو كښے هم دحمد ذكر نشته.

ښكاره ده. چه امام بخارى رحمه الله دا كتاب د متقدمينو رحمهم الله په طرز باندے ليكلے دے. هغوى به ((بسم الله الرحمن الرحيم)) اووئيله اوكتاب به ئے شروع كړلو امام بخارى رحمه الله اودهغه د استاذانو او داستاذانو استاذانو او هم عصرو هم دا طريقه وه. امام مالك، امام عبدالرزاق. ابن ابى شيبه .امام احمدبن حنبل. امام حميدى. امام دارمى. امام ابوداود، رحمهم الله دى. ټولوحضراتو د ..بسم الله.. نه خپل كتابونه شروع كړى دى.

---

(۱) سورة حجرات:۱)_
(۲) فتح البارى (۱/۸) وعمدة القارى (۱/۱۲)_
(۳) فتح البارى (۱/۸)_
(۴)..اوگورئ فتح وعمده اوپورتنئ حواله)_
(۵) اوگورئ (۱/۱۲. ۱۳)_

() حضرت شیخ الحدیث صاحب نورالله مرقده چه کله په ۱۳۸۴ھ کښې حج دبیت الله ته تشریف یوړلو.نوحضرت په مدینه منوره کښې خوب اولیدلو.چه په مسجد نبوی کښې دوی ته د صحیح بخاری د وئیلو حکم کولے شی.حضرت خپل عذر پیش کړلو.چه ما خپل خان سره کتابونه وغیره نه دی راوړی.چه د ضروت په وخت ورته مراجعت کولے شی.خو چه مې اوکتلو.نو نزدے امام بخاری رحمه الله تشریف فرما دے .او ارشاد فرمائی.چه ته ئې لوله.چه په کوم خائے کښې ضرورت وی.زه به درسره مدد کوم.حضرت دحمد نه ذکر کولو وجوه شروع کړل په دے باندے امام بخاری رحمه الله ارشاد اوفرمائیل.په اصل کښې خبره داسې شوے وه.چه دا کتاب د کراساتو یعنی کاپیانو په شکل کښې تالیف شوے وو.روستو ټول کراسات جمع کړے شوے.او دحمد لیکلو موقع رانغله.(۱)

خودے ته یو لطیفه غوندے وئیلے شی.دے ته په جواب وئیلو کښې تامل دے.خکه چه دحضرت نورالله مرقده تحقیق دا دے.چه دا کتاب په ۲۳۳ھ کښې مکمل شوے وو.(۲)

③ خوارلسم جواب دا ورکړے شوے دے.چه دا بیخی بې فائدے جواب دے . چه مؤلف خپل کتاب نه دے ګنړلے.لکه د ..کافیه.. شارحینو چه د صاحب کافیه د طرفه جواب ورکړے دے.خکه چه هلته کښې هم صرف تسمیه ذکر ده . حمد نشته.

ددے جواب د عبثیت وجه دا ده.چه امام بخاری رحمه الله دصحیح بخاری دتالیف دومره زبردست اهتمام کړے وو.چه دهرحدیث دپاره به ئې غسل کولو.مونځ به ئې کولو . اواستخاره به ئې کوله.چه کله به ورته د صحت یقین اوشو.نوهله به ئې په خپل کتاب کښې داخلولو.دغه شان ددے تراجم ئې په ریاض الجنة یعنی دقبر اومنبر په مینځ کښې په ناسته کښې لیکلی دی.(۳)

نو آیا د دومره لوئې اهتمام باوجود به هم امام بخاری رحمه الله خپل کتاب کتاب نه ګنړلو . دا جواب زما په نیز صحیح نه دے.

**خوښ جوابونه:** زما په نیز په دے جوابونو کښې خوښ دوه جوابونه دی.

① یا چه دا اووئیلی شی.چه ((**انه حمد لفظا لا کتابة**))

② یادا اووئیلی شی.چه د..حمد.. مقصود په ((**بسم الله الرحمن الرحیم**)) سره حاصل شو.والله اعلم

---

(۱) تقریربخاری ازحضرت شیخ الحدیث صاحب قدس سره (۶۴/۱)_

(۲) مقدمة لامع الدراری(ص.۱۲٤) الفائدة السادسة فیما اهتم به البخاری فی تالیفه من الغسل والصلاة وغیرذلک دغه شان اوګورئ تقریر بخاری شریف (٤٢/۱)_ ددے نه پس امام بخاری رحمه الله ۲۳کاله ژوندے وو.خکه چه دهغوی وفات په کال ۲۵۶ھ کښې شوے وو.نو آیا په دومره اوږده موده کښې به ورته د حمد لیکلو موقع نه وی ملاو شوے؟ دا خبره ډیره لرے ده.والله اعلم _

(۳) اوګورئ مقدمة لامع الدراری (۱۲۲/۱) الفائدة السادسة فیما إهتم به البخاری فی تالیفه من الغسل والصلاة وغیرذلک)_

**بسم الله الرحمن الرحيم** باء حرف جار دے چه د خوارلس معانيودپاره استعماليږى.(١) په دے كښے حقيقى معنى د الصاق ده

دلته د زمخشرى رحمه الله په رائے كښے ..باء..دپاره دمصاحبت ده.حالانكه د امام بيضاوى رحمه الله ميلان ..باء استعانت.. طرف ته دے.(٢)

په دے كښے اختلاف دے چه ددے متعلق اسم دے لكه چه بصريان وائى.يا فعل دے لكه چه كوفيان وائى.

بيا په دے كښے هم اختلاف دے چه دا مقدر به مقدم منلے شى كه موخر؟مشهوره دا ده.چه مقدم اومنلے شى.بعضے حضراتو وئيلى دى.چه اسم به موخرمنلے شى.بياپه دے كښے هم اختلاف دے.چه عام به منلے شى كه خاص؟دعلامه زمخشرى رحمه الله رائے دا ده.چه فعل به مقدر منلے شى.خاص اوموخر.يعنى دكوم فعل نه چه ابتداء كيږى.هم هغه فعل به مقدر منلے شى.لكه چه ته قرات شروع كوے.نو دبسم الله سره به «أقرأ»مقدروى.اوكه كتابت كوے.نو «أكتب» به مقدركولےشى.حالانكه نور حضرات فرمائى.چه عام منل ئے غوره دى. صحيح دا ده. چه خاص مقدر منل ئے اولى دى.خكه كه چرته عام چه «ابتدائى»يا«أبتدئ»اومنلے شى.نواستعانت به د ..باء.. سره خاص شى.اودخاص منلو په صورت كښے استعانت د فعل تولو صورتونو ته شامليږى.

**د ,,اسم،، د لفظ تحقيق** لفظ د ..اسم.. د بصريانو په نيزد«سمو»نه ماخوذدے.اود كوفيانو په نيز د «وسم»نه ماخوذ دے.د بصريانو رائے ارجح ده.خكه چه داشتقاق فائده دا ده.چه مشتق اومشتق منه په ماده كښے مشترك وى.او د جمع او تصغير نه د ماده حقيقت هم معلوميږى.

نود اسم جمع «اسماء» راخى. «اوسام» نه راخى.كه دا د «وسم» نه ماخوذ وو.نوددے جمع به «أوسام»راتله.بله دا چه ددے فعل «سميت» راخى .«وسمت» نه راخى.دغه شان ددے تصغير «سُمَىّ» راخى.«وُسَيْم» نه راخى.

البته كه د«وسم» نه دا مشتق اومنلے شى.نودا وئيلى شى.چه دا خو يا «اشتقاق اوسط» دے.چه په هغے كښے مشتق او مشتق منه په نفس ماده كښے مشترك وى. او په ترتيب كښے مختلف وى. اويا اشتقاق اكبر دے.چه په هغے كښے مشتق اومشتق منه داشتقاق په اكثرو حروفو كښے مشترك وى.

**د ,,الله،، د لفظ تحقيق** دالله تعالى ذات اوصفات ښكاره نه دى.خكه چه هغه دخپل عظمت په نور كښے پټ دے .عقلونه په دے باره كښے حيران دى.لكه ځنگه چه د ذات او صفاتو پته نه لگى.دغه شان د دے لفظ په باره كښے هم عقلونه حيران دى.داسے معلوميږى.چه د ذات

(١) مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح(٤/١)_

(٢) انظر روح المعانى لخاتمة المفسرين الآلوسى رحمه الله (٤٧/١) مباحث فى البسملة البحث الثالث فى معناها)_

انوارات دے لفظ طرف تہ منتقل شوی دی.لکہ څنګہ چہ د عظمت د انواراتو سره د اختلاط د وجے علقونہ پہ ذات اوصفاتو کښے حیران دی. دغہ شان د لفظ پہ بارہ کښے عقلونہ حیران دی.

حضرات علماء کرامو کښے اختلاف دے چہ دا لفظ عربی دے.کہ عبرانی اوکہ سریانی؟بیا کہ عربی وی.نوعَلم دے کہ صفت؟دعلمیت پہ صورت کښے مشتق دے کہ غیر مشتق؟ بیا عَلم پہ طریقہ د وضع دے اوکہ پہ طریقہ د غلبہ؟

د ابوزید بلخی رحمہ اللہ قول دے.چہ دا لفظ عبرانی یا سریانی دے.خوراجح دا دے.چہ دا عربی لفظ دے.اسم دے.اوعَلم دے.اومرتجل دے.ھم دا د امام ابوحنیفہ، امام محمد، امام شافعی،خلیل بن احمد،زجاج، ابن کیسان،حلیمی،امام غزالی ،امام الحرمین،خطابی،او د سیبویہ رحمہم اللہ رائے دا دہ.(۱)

**اسم عین مسمی دہ اوکہ غیر دې د مسمی نہ** دلتہ زہ یوہ مسئلہ ضمناً بیانوم.اگرچہ ددے څہ خاص ضرورت نشتہ.ھغہ دا چہ اسم او مسمی دواړہ یو دے.کہ جدا جدا.یعنی اسم عین مسمی دے.اوکہ غیر دمسمی نہ دے؟ د بعضے حضرات فرمائی.چہ اسم عین مسمی دے.ھم دا دامام ابوالحسن اشعری رحمہ اللہ نہ ھم منقول دی.

د معتزلہ،جھمیہ،او کرامیہ رائے دہ.چہ «الإسم غیرالمسمی» امام غزالی رحمہ اللہ اوابن التین رحمہما اللہ ھم دا قول اختیار کړے دے.څکہ چہ د «اسم» نہ مراد ھغہ لفظ دے.کوم چہ د ذات پہ مقابل کښے وضع شوے دے.چہ دا یاد کړے شی.نومراد ترے ذات اخستلے شی.اود «مسمی» نہ مراد ذات دے.او پہ دواړو کښے فرق دے. دواړہ جدا جدا دی.

اوځہ حضرات ددے خبرے قائلین دی.چہ «الإسم لا عین ولا غیر» یعنی اسم نہ عین مسمی دہ.اونہ غیر دے د مسمی نہ.(۲)

پہ اصل کښے داللہ تعالی اسمونہ پہ درے قسمہ دی.

① بعضے خو عین مسمی دی.لکہ موجود، ذات، قدیم.

② بعضے غیرمسمی دی.لکہ خالق،رازق، وغیرہ صفات فعلیہ.

③ اوبعضے نہ عین دی.اونہ غیر دی.لکہ علیم،قادر، وغیرہ صفات حقیقیہ کوم چہ قائم بالذات دی.(۳)

---

(۱) اوګورئ فتح الملهم.(۱/۳۰۱) اوفتح الله بخصائص الإسم :الله.. (ص،۱۵۵) الباب الرابع والثلاثون، فصل فی إیضاح القول الرابع)_

(۲) اوګورئ مرقاة المفاتیح(۱/٤)_

(۳) اوګورئ إرشاد الساری للقسطلانی (۱/٤۹) وفتح الله بخانص الإسم الله(ص،۵۹۶)_

په سلفو کښې دا اختلاف نه وو.معتزلو دااختلاف ايجاد کړے دے.اود هغه وخت نه اختلاف راروان دے.معتزله د ((خلق قرآن)) قائلين وو.او ددے نے مختلف دلائل پيش کول.نوهغوى يو دليل دا هم پيش کړے دے.چه ((الإسم غيرالمسمى)) اوچه کله اسم الله غير دے دالله نه.نو خامخا به مخلوق وى.ځکه چه څه غيرالله وى.هغه به مخلوق وى.او دالله نوم د قرآن کريم يوه کلمه ده.نوکله چه دقرآن پاك دبعضے کلمے مخلوقيت ثابت شو.نود باقى مخلوقيت هم ښکاره شو.

خواهل سنت عالمانو ددے ترديد کړے دے.اودا ئے اختيارکړى دى.چه ((الإسم عين المسمى)) د بعضے حضراتونه نقل دى.که ديوسړى نه داواورئ.چه((الإسم غيرالمسمى فاشهدواعليه بالزندقة))(١)

ډيرسلفو دا مسئله چيړل نه خوښولو.چه اسم عين مسمى دے.اوکه غير مسمى؟ ابن جريرطبرى رحمه الله فرمائى...دا حماقات مبتدعه دى.. دانسان دپاره خو بس دا کافى دى.چه څه په قرآن کښے راغلى وى.هلته اودريږى.(٢)

الله تعالى فرمائى.﴿ وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ﴾ ددے نه معلومه شوه.چه ((الإسم للمسمى)) يعنى اسم دمسمى دپاره دے.اودهغےدپاره ثابت دے.ددے نه د معتزلو خبره نه ثابتيږى.چه کلام دمتکلم دپاره ثابت دے.اوپه دواړو کښے غيريت دے .ځکه چه يوځيز د يوذات دپاره ثابت شى.نوپه دے سره ددغه ځيزد دغه ذات نه جدا کيدل اوغيرلازميت نه راځى.والله اعلم

د ,,الله،، د لفظ څو لفظى خصوصيات ① يوخصوصيت دا دے.چه دا منسوب اليه وى.خو په خپله بل ځيزته نه منسوب کيږى.② دويم خصوصيت دا دے.چه په مخلوق کښے دا نوم د چا دپاره هم نشى ايخودلے. ③ دريم خصوصيت دا دے.چه دحرف ندا ..يا .. په ځائے کښے ددے په آخر کښے ,,ميم مشدد.. راوړل ټيك دى.لکه ((اللهم)).④کله چه ,,يا الله.. وائى.نو ددے باوجود چه دا همزه همزة الوصل دے.ددے سره د ..همزة القطع..معامله کولے شى.(يَاالله به نشى وئيلے.بلکه يَاالله به وئيلے شى)⑤..يا..حرف ندا چه په خپله هم مفيد د تعريف دے.او..لام تعريف..جمع کوى⑥ ..حرف جار..حذف کوى.اودهغے عمل باقى ساتى.وائى.((اللهِ لأفعلن كذا))(٣)

---

(١) قاله الأصمعى وأبوعبيدة معمربن المثنى .انظرشرح أصول إعتقاد أهل السنة والجماعة للإمام ابى القاسم اللالكائى رحمه الله (٢/٢١٢.٢٠٧)_

(٢) علامه طبرى رحمه الله فرمائى.((وأما القول فى الإسم.أهوالمسمى أوغيرالمسمى فإن من الحماقات الحادثة التى لا أثر فيها فيتبع ولاقول من إمام فيستمع.والخوض فيه شين. والصمت عنه زين.وحسب المرئ من العلم به.والقول فيه.أن ينتهى إلى قول الصادق عزوجل وهو قوله ﴿ قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ؕ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ﴾ وقوله ﴿ وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا ﴾ اوګورى.شرح أصول إعتقاد أهل السنة والجماعة (١/١٨٥. ١٨٦)_

(٣)ددے خصوصياتو او ددے نه علاوه د نورو خصوصياتو دپاره اوګورى ((فتح الله بخصائص الإسم الله)) (١٠٨، ٢١٧، ٢٧٨، ٢٨٣، وغيره)_

الرحمن الرحيم () دا دواړه دمبالغه صيغے دی خو په ..الرحمن.. کښے د ..الرحيم.. په نسبت مبالغه زياته ده.ځکه چه ددے حروف زيات دی.((وزيادة المبنى تدل على زيادة المعنى))

() بعضے حضرات وائی چه ((رحمن)) هغه دے چه په دنيا اوآخرت کښے رحم کونکے وی. او ((رحيم)) چه صرف په آخرت کښے رحم کونکے وی.

() بعضے حضرات وائی چه ((رحمن))دلويو نعمتونو ورکونکے اواحسان کونکے دے . او((رحيم)) د وړو نعمتونو ورکونکے اواحسان کونکے دے.(۱)

اعلم رحمه الله اوابن مالك رحمه الله فرمائی چه دا په اصل کښے علم دے ..صفت مشتقه.. نه دے(۲) خودا خبره ټيك نه ده.ځکه چه د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه په حديث کښے دی

((سمعت رسول الله ﷺ يقول قال الله، أنا الله ،وأنا الرحمن، خلقت الرحم، وشققت لها من إسمي ،فمن وصلها وصلته،ومن قطعها قطعته))(۳)

بيا دلته دالله تعالی دجمال په صفاتو کښے په دوو باندے اکتفا شوے ده.د جلال څه صفت په کښے نه دے ذکر.ځکه چه په حديث قدسی کښے دی.((إن رحمتي غلبت غضبي))(۴)

دغه شان په رحيم باندے اختتام کښے دے طرف ته اشاره ده.چه دمومنانو دپاره حسن خاتمه ده.او د انجام خيګړے د متقيانو دپاره دی.

# (۱) باب كَيْفَ كَانَ بَدْءُ الْوَحْيِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَقَوْلُ اللَّهِ جَلَّ ذِكْرُهُ ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ﴾(۵)

---

(۱) دتفصلاتو دپاره اوګورئ ((مرقاة المفاتيح (۱/۶۰)_

(۲) روح المعانی (۱/۶۰)_

(۳) أخرجه الترمذي في جامعه في كتاب البروالصلة باب ما جآء في قطيعة الرحم.رقم الحديث (۱۹۰۷) قال الترمذي حديث سفيان عن الزهري حديث صحيح وأخرجه ابوداود في كتاب الزكاة باب في صلة الرحم رقم. ۱۶۹٤. ۱۶۹۵)_

(۴) اوګورئ صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ماجآء في قول الله تعالى: ﴿وهوالذي بدأالخلق ثم يعيده﴾.. رقم ۳۱۹٤) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ويحذركم الله نفسه﴾ رقم ۷٤۰٤) وباب كان عرشه على الماء رقم ۷٤۲۲. وباب قوله تعالى ﴿ولقد سبقت كلمتنا لعبادنا المرسلين﴾ رقم ۷٤۵۳. وباب قول الله تعالى: ﴿بل هوقرآن مجيد في لوح محفوظ﴾ رقم ۷۵۵٤. دغه شان اوګورئ صحيح مسلم (۲/۳۵۶) كتاب التوبة باب سعة رحمة الله تعالى وأنها تغلب غضبه)_

(۵) النساء:۱۶۲)_

**دصحیح بخاری شروع** دا دامام بخاری رحمه الله د دے عظیم کتاب افتتاحیه ده.د کتاب په شروع کښے هم امام بخاری رحمه الله ناشنا اوعجیبه انداز اختیار کړے دے امام ابوداود. امام ترمذی، امام نسائی رحمهم الله د خپلو کتابونوشروع د «کتاب الطهارة» نه کړے ده.خکه چه مونځ د دین په ارکانو کښے یواهم ترین رکن دے اوددے صحت په طهارت باندے موقوف دے.بیا په قبر کښے به هم د ټولونه اول د طهارت تپوس کیږی.اوپه حشر کښے به هم دټولونه وړاندے د مونځ سوال کیږی.(۱) دطهارت په باره کښے په قبر کښے دسوال په باره کښے احقرته دلټون باوجود څه نص ملاؤ نشو.خوحضرت مولانا سید فخرالدین صاحب شیخ الحدیث دارالعلوم دیوبند په تقریر بخاری شریف کښے بعینه هم دا خبره موجود ده.(۲)

البته د قبر د قید نه بغیردابوالعالیه رحمه الله نه مرسلاً روایت مروی دے.«أول مایحاسب به العبد طهورة، فإذاحسن طهورة فصلاته كنحوطهورة، وإن حسنت صلاته فسائرعمله كنحوصلاته»(۳)

امام ابن ماجه خپل کتاب د ..اتباع سنت.. نه شروع کړے دے.خکه که د سنتو اتباع اونشی.اوبدعات په دین کښے داخل شی.نوصرف ددین هیئت اوشکل به مسخ نشی بلکه ددے وجود به هم په خطره کښے واقع شی.نوامام ابن ماجه د حفاظت دین د وجه اتبا سنت دټولو نه وړاندے ذکرکړله.بیاچونکه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم د سنت ناقلین دی.دغه شان نبی صلی الله علیه وسلم صحابه کراموته خطاب کړے وو.چه «لیبلغ الشاهد الغائب»(۴) یعنی کوم کسان چه موجود دی.هغوی دے دا دین غائبینو ته ورسوی.

دغه شان نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی.«لیلینی منکم أولوالأحلام والنهى»(۵)

---

(۱) أخرجه النسائى فى سننه (۸۱/۱) فى كتاب الصلاة باب المحاسبة على الصلوات من حديث أبى هريرة رضى الله عنه مرفوعاً: إن أول ما يحاسب به العبد بصلاته .. وأخرجه الترمذى أيضاً فى جامعه فى أبواب الصلاة باب ماجآء أن أول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلاة. رقم ۴۱۳) من حديثه كما أخرج ابوداود فى سننه فى كتاب الصلاة باب قول النبى ﷺ كل صلاة لايتمها صاحبها تتم تطوعه رقم ۸۶۴، ۸۶۶) من حديث ابى هريرة وتميم الدارى رضى الله عنه وابن ماجه فى سننه فى كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها.باب ماجآء فى أول ما يحاسب به العبدالصلاة رقم ۱۴۲۵، ۱۴۲۶) من حديثهما أيضاً)

(۲) إيضاح البخارى (۴۰/۱)

(۳)اوګورئ كنزالعمال (۲۷۸/۹، ۲۷۹)رقم ۲۶۰۱۰)كتاب الطهارة الباب الأول فى فضل الطهارة مطلقاً الإكمال)

(۴) صحيح بخارى كتاب العلم باب قول النبى ﷺ ..رب مبلغ أوعى من سامع رقم ۶۷ وباب ليبلغ العلم الشاهد الغائب رقم ۱۰۵. وكتاب الحج باب الخطبة أيام منى رقم ۱۷۴۱. وصحيح مسلم (۶۰/۲، ۶۱) كتاب القسامة والمحاربين والقصاص والديات باب تغليظ الدماء والأعراض والأموال_ وسنن ابن ماجه باب من بلغ علماً رقم ۲۳۳، ۲۳۵)_

(۵) صحيح مسلم ۱۸۱/۹۱) كتاب الصلاة باب تسوية الصفوف وإقامتها ...وسنن نسائى (۱۲۹/۱) كتاب الإمامة باب من يلى الإمام ثم الذى يليه .. وسنن ابى داود كتاب الصلاة باب من يستحب أن يلى الإمام فى الصف وكراهية التأخررقم ۶۷۴، ۶۷۵ وسنن ترمذى .أبواب الصلاة باب ماجآء ليلينى منك أولوالأحلام والنهى رقم ۲۲۸)_

یعنی په مانځه کښې دے ماسره هغه کسان نزدے اودریږی چه عقلمنداو پوهان وی.ددې حکم د نورومصلحتونونه علاوه یو مصلحت دا هم دے چه دوی د نبی ﷺ مونځ په بنه طریقه اوګوری او نورو ته ئې صحیح صحیح بیان کړی.نوصحابه کرام رضی الله عنهم د سنت پوهان او ناقلین شو که صحابه کرام ثم معاذالله مشکوک شی اودهغوی نه اعتماد پاسی نودهغوی نه منقول سنت به هم مشکوک شی.ددے وجه امام ابن ماجه رحمه الله اتباع سنت او دهغې د متعلقاتو نه پس د صحابه کرامو رضی الله عنهم مناقب ذکر کړل.

امام مسلم رحمه الله یوبل طرف ته نظر کړے دے اود ..اسناد.. بحث ئې مقدم کړے دے.ځکه چه

«لولا الإسناد لقال من شاء ما شاء» (۱)

که اسناد نه وے.نو چه زړه چه څه غوښتل هغه به ئې وئیل.د سنت تحفظ اود دین حفاظت په سند باندے موقوف دے.دسند ددے اهمیت په وجه امام مسلم رحمه الله د اسناد مباحث اول ذکر کړی دی.

امام مالك رحمه الله دخپلې موطا شروع د «أوقات الصلاة» نه کړے ده.ځکه چه ددین په حکمونوکښې دټولو نه اهم رکن مونځ ادا کول په وخت کښې فرض کیږی.چه وخت داخل شی.دغه شان: ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ (۲) او ﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا﴾ (۳) نه هم د وخت اهمیت معلومیږی.

خوامام بخاری رحمه الله دټولو نه جدا لار اختیار کړے ده.اودخپل کتاب شروع ئې د ..وحی.. نه اوکړله.ځکه چه بیشکه د ..سنت.. طهارت.. صلاة.. اوقات صلاة.. او اسناد.. اهمیت په خپل خپل ځائے ضرور شته.خو ددے ټولو دارومدار خو په وحی دے.ځکه چه د .مونځ. سنت.وختونو. طهارت. ثبوت هم په وحی دے.دغه شان د اسناد اهمیت د سنت دحفاظت دپاره دے.اود سنت اثبات په وحی دے.نوچونکه د ټول شریعت منبع اومدار په وحی دے.نو ځکه امام بخاری رحمه الله د وحی دعظمت او ددے اهمیت ښکاره کولو دپاره د وحی د بحث نه د خپل عظیم الشان کتاب افتتاح اوکړله.

---

(۱) دا د امام عبدالله بن مبارك رحمه الله د اقوالو یوه حصه ده پوره قول دا دے((الإسناد من الدین.ولو لا الإسناد لقال من شاء ما شاء.. فإذا قیل له من حدثک؟ بقی))اوګورئ ((مقدمة صحیح مسلم باب الکشف عن معایب رواة الحدیث ونقلة الأخبار وقول الأئمة فی ذلک))دغه شان اوګورئ ((الأجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الکاملة للعلامة اللکنوی رحمه الله مع ..التعلیقات الحافلة علی الأجوبة الفاضلة .. للشیخ عبدالفتاح أبوغدة حفظه الله تعالی۔ السوال الأول فی الإسناد. (ص.۲۰، ٦۵)_

(۲) سورة بقره:۲۳۸)_

(۳) سورة نساء:۱۰۳)_

**دعلامه سندهی رحمه الله رائې** علامه سندهی رحمه الله فرمائی (۱) چه امام بخاری رحمه الله د خپل کتاب شروع د وحی نه کړې ده.اوداً ئې په ایمان باندې مقدم کړې ده خکه چه په دې صحیح کښې دوی د څه ذکر کونکې دې.هغه ټول په دې خبره موقوف دی چه نبی ﷺ ..موحی الیه.. پیغمبر دې.نوځکه ئې اول دا ثابته کړه چه دوی دالله تعالی رسول دې.او وحی پرې نازلیږی.

بیا چونکه وحی کله د الهام په معنی کښې هم راځی.لکه ﴿وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ﴾ (۲) او﴿وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى اَنْ اَرْضِعِيْهِ﴾ (۳) خکه امام بخاری رحمه الله آیت کریمه ﴿اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ﴾ (۴) ذکرکړه.اوداً ئې اوخودله چه وحی ددې قبیلې وحی نه وه بلکه وحی رسالت وه. کومه چه په پیغمبرانوعلیهم السلام باندې نازلیدله.

کله چه د وحی په ذریعه د نبی ﷺ نبوت ثابت شو.او په جامع بخاری کښې چه کوم احادیث امام بخاری رحمه الله د نبی ﷺ نه نقل کړی دی.په دې باندې اعتماد پیدا شو اوپه دې باندې ایمان راوړل ضروری شو.نو ددې نه پس ئې کتاب الایمان ذکر کړلو (۵)

**دحضرت شیخ الهند رحمه الله تقریر** حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه الله تعالی انسان ته حواس هم ورکړی دی.اوعقل ئې ورته هم ورکړې دې.خوددې په ذریعه دیوخاص حده پورې علم حاصلیدې شی.بلکه په دې هم غلطیانې کیږی.مثلاً مونږ دشپې اووړې گوزو چه سترگې په کتلو کښې غلطی کوی.چه دسپوږمۍ په شپه سپوږمۍ هم راختلې اوپه آسمان باندې وریځ هم وی.کتونکې دا محسوسوی.لکه چه سپوږمۍ منډې وهی.خوپه حقیقت کښې هغه وریځه

(۱) العلامة المحقق المحدث الفقیه الأصولی.ابوالحسن نورالدین محمدبن عبدالهادی سندهی. دوی د سند په مردم خیزه زمکه ټهټه کښې پیدا شوی وو.اوهم دلته کښې لوئې شوی وو تسترئې ته سفر اوکړلو او:هغه ځائې د مشائخو نه ئې استفاده اوکړه.اومدینې منورې ته ئې تشریف یوړلو هلته ئې د سید محمد برزنجی رحمه الله ملا ابراهیم کورانی رحمه الله وغیره نه علم حاصل کړلو اوپه حرم نبوی کښې ئې درس ورکولو ټول علوم حدیث.فقه.اصول. معانی.منطق اوعربیت باندې ئې پوره ماهر وو دعلامه محمد حیات سندهی رحمه الله غوندې جلیل القدر علماء ددوی په شاگردانو کښې دی
په علمی دنیا کښې اصول سته مسند احمد فتح القدیر.(تاباب النکاح) بیضاوی .الزهراوین للقاری .شرح جمع الجوامع لابن قاسم باندې د دوی قیمتی حاشیې د دوی یادگار دې او انشاءالله د آخرت ذخیره به وی.د علم اوتقوی دې مجسمه په دولس شوال ۱۱۳۸ه کښې د مدینې منورې په پاکه زمکه د آخرت سفر اوکړلو.په مسجد نبوی کښې ئې دجنازې مونځ اوشو اوپه ..بقیع.. کښې دفن شو.جزاه الله تعالی عن العلم وأهله خیرالجزاء اوگورئ ..ماتمس إلیه الحاجه (ص:۵۳)_

(۲) سورة نحل:۶۸)_

(۳) سورة قصص:۷)_

(۴) سورة نساء:۱۶۳)_

(۵) اوگورئ حاشیة السندی علی البخاری (۱/۵،۶)_

منډے وهي دغه شان په يو ګاړي کښے ته سوړ ئے اوهغه اودريدلے وي.اوبل ګاډے ورسره نزدے تيريږي.کتونکي ته داسے محسوسيږي.چه زمونږ ګاړے منډے وهي.حالانکه هغه اودريدلي وي.
دغه شان چه په ريل ګاډي کښے ناست ئے.کله چه درته په ځنګل کښے اونے په نظر راشي.نو داسے محسوسيږي.چه هغه منډے وهي.حالانکه اونے په خپل ځائے باندے وي.نودا نظر چه په حواس ظاهره کښے دي.د شيے اوورځے غلطيانے کوي.
دغه شان الله تعالى قوت سامعه راکړے ده.خوددے بنه تجربه ده.چه دا په اوريدلو کښے غلطي کوي.ويونکے غريب وائي يو څه.اواوريدونکے دهغے خلاف اوريدل کوي.
قوت ذائقه خوبدليږي رابدليږي.چه معمولي غونډے دصفرا تبه شي.نوخوږ څيز هم په ژبه باندے تريخ لګي.نود حواسوخو دا حالت دے.
ترکومے پورے چه دعقل تعلق دے.نو تاسو ته معلومه ده.چه دا نابالغه دے.اګرچه ده ترقي کړي وي.اود کوم ځائے نه کوم ځائے ته رسيدلے وي.په ده کښے دعدم بلوغ شان باقي اوبرقرار وي.مونږ عاقلانو ته ګورو.چه په هرڅيز کښے اختلاف کوي.شاذ اونادر په څه مسئله کښے اتفاق کوي.ګني بس اختلاف او اختلاف وي.د عقلاؤ په خپل مينځ کښے اختلاف ددے خبرے دليل دے.چه دا ضروري نه ده.چه عقل به خامخا حق خبرے ته رسي.
معلومه شوه.چه دانسان دکاميابئ دپاره نه خو په حواس خمسه باندے پوره اعتماد کولے شي.اونه په انساني عقل باندے.ځکه چه دا څيزونه دحقيقت دادراك نه کما حقه قاصر دي.
ددے په مقابله کښے يوه ذريعه ..علم وحي.. دے.چه دهغے د دائره کار شروع دعقل او حواسو د حدوود د ختميدونه پس کيږي.اودا داسے محفوظه ذريعه ده.چه قرآن پاك اعلان کوي﴿لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ تَنْزِيلٌ مِنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ﴾(۱) په دےکښے دباطل دګډون هډوڅه ګنجائش نشته.ته به حيران شے.چه رسول الله ﷺ ته به کله وحي راتله.نو په رواياتو کښے راځي.چه بعضے وخت کښے به اويا زره فرشتے دهغے دحفاظت دپاره دحضرت جبرئيل ؈ سره راتلے.(۲) نود ﴿لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ﴾ اعلان په خپل ځائے بالکل ټيك دے.په دے کښے د غلطئ يا هيرے څه احتمال نشته.ځکه که دانسان د فلاح اوکاميابئ دپاره په څه څيز مکمل اعتماد کولے شي . نو هغه صرف وحي ده.
چونکه امام بخاري رحمه الله د انسانانو د کاميابئ اوکامرانئ دپاره ((الجامع الصحيح المسند من حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم وسننه وأيامه)) تصنيف کوي . نو ځکه امام بخاري رحمه الله ضروري اوګنړله.چه د ..وحي.. اهميت اوضرورت ښکاره کړے شي.ځکه چه د انسانانو د

(۱) حم السجدة:۴۲)_
(۲) دتفصيل دپاره اوګورئ الإتقان في علوم القرآن (۱/۵۰) النوع الثالث عشر: ما نزل مفرقاً وما نزل جمعاً او النوع الرابع عشر:ما نزل مشيعاً وما نزل مفرداً)_

کامیابی، اوکامرانی، دپاره محفوظ،قابل اطمینان، اوبااعتماده لار که چرته وی نوصرف دالله تعالی وحی ده.نوځکه دوی دخپل کتاب افتتاحیه وحی اوګرځوله.

**دحضرت کشمیری رحمه الله رائې** امام العصر حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله یوه بله خبره کړې ده هغوی فرمائیلی دی.چه په اصل کښې د الله تعالی سره د بندګانو کوم تعلق دے.چه الله تعالی خالق دے اوبندګان مخلوق دے.الله تعالی مالک دے.اوبندګان مملوک دی.الله تعالی معبود دے.اوبندګان عابدان دی.دا تعلق د وحی په ذریعه ثابت شوے دے.

ددے تعلق دثبوت نه پس د بندګانو نه د ایمان،علم،اعمالو او عباداتو مطالبات کیږی .نوهم په دے ترتیب باندے امام بخاری رحمه الله اول وحی ذکرکړه.ځکه چه ددے نه د تعلق ظهور اوثبوت شوے دے.او بیا ئې ددے متقضیات ایمان ،علم، اواعمال ذکر کړل.(١)

**ترجمة الباب** امام بخاری رحمه الله ترجمه قائمه کړے ده.«**باب کیف کان بدأالوحی إلی رسول الله ﷺ**» دلته په عنوان کښې لفظ د ،،باب ،، دے.دکتاب نه دے.ځکه چه دمؤلفینو په اصطلاح کښې ،،کتاب،، په هغه وخت کښې وئیلی شی.چه په هغې کښې مختلف ابواب.فصول اوانواع وی. ددے په مقابله کښې باب هغې ته وائی.چه په هغې کښې یو قسم څیزونه ذکر وی.چونکه په «**بدأالوحی**» کښې هم ټول احادیث د وحی سره متعلق وو.نوځکه ئې دلت د ،،باب،، لفظ غوره کړلو.(٢)

بیا دا لفظ په درے طریقو باندے لوستلے شوے دے.

○ **بابٌ** (تنوین سره) کیف کان...

() **بابُ** (بغیر دتنوین نه. بلکه اضافت سره) کیف کان..

() **بابْ** (په سکون سره) د وقف په حالت کښې وئیلی شی.(٣)

په اولنی یعنی دتنوین په صورت کښې به تقدیر د عبارت داسے وی.«**هذا باب کیف کان...**» په دے کښې «**هذا**»مبتداء «**باب**» مبدل منه او «**کیف کان..**»بدل دے .مبدل منه سره د بدل نه. نو خبر شو د مبتدا دپاره.مبتدء او خبر دواړه ملاؤ شو . نو جمله اسمیه جوړه شوه.

یا تقدیرد عبارت «**هذا باب مضمونة کیف کان**» راویستے شی.په دے صورت کښې «هذا»مبتدا «**باب**» موصوف. «**مضمونة کیف کان**» خبر.مبتدء او خبر دواړه ملاؤ شو.نوصفت شو د موصوف. کوم چه خبرواقع دے.د مبتداء دپاره.

---

(١) فیض الباری (٣/١)_

(٢) عمدة القاری للعینی رحمه الله (١٣/١)_

(٣) یجوز فیه وفی نظائره أوجه ثلاثة،أحدها رفعه مع التنوین. والثانی رفعه بلا تنوین علی الإضافة ..والثالث باب علی سبیل التعدا للأبواب بصورة الوقف.فلا إعراب له کذا فی الکواکب الدراری فی شرح صحیح البخاری المعروف بشرح الکرمانی (١٣/١)_

په دویم یعنی بغیر د تنوین نه داضافت سره دونیلو په صورت کښے به تقدیردعبارت دا وی.((هذا باب کیف کان...))یعنی((کیف کان الخ)) به مضاف الیه وی.

دلته کښے دا اشکال خوکیدے شی.چه((کیف کان..الخ)) دا خوجمله ده.او لفظ د((باب)) دهغه الفاظو څخه نه دے.کوم چه جملے طرف ته مضاف وی.(۱)

ددے جواب دا دے.چه یا خوبه دا ونیلی شی.چه جمله دمفرد په حکم کښے ده.یا په تقدیر دعبارت دا وی.((هذا باب جواب قول القائل : کیف کان..))په دے صورت کښے څه اشکال نشته.

او په دریم صورت کښے به نه تنوین وانی.اونه رفع.بلکه سکون به وانی.لکه کاغذ. کتاب. قلم. وغیره چه شماری.نووقف به کوی.اوسکون سره به ئے لولی.اوپه دے به اعراب نه وی.(۲)

د مذکوره ترجمة الباب نه امام بخاری رحمه الله مقصود څه دے؟ په دےخبره دپوهیدو نه وړاندے یوه بله خبره په ذهن کښے کینول ډیر ضروری دی.چه دامام بخاری رحمه الله طریقه د ترجمة الالباب په باره کښے دنورو مصنفینو په مقابله کښے بالکل جدا دے.دنورحضراتو په نیز اکثر داسے وی.چه ترجمة الباب دعوی وی.اودهغے لاندے چه کوم احادیث وی.هغه د دغے دعوی دلائل وی.عامه طریقه هم دا ده.خودامام بخاری رحمه الله په نیزصرف دا طریقه نه ده.بلکه امام بخاری رحمه الله تراجم ا لابواب ډیر ګران جوړ کړی دی.د دوی په نیز تراجم د ډیرومقاصدو دپاره دی.ددے پوره تفصیل وړاندے په ((مقدمة الکتاب)) کښے تیر شوے دے.

**دترجمة الباب مقصد** دلته چه امام بخاری رحمه الله کومه ترجمه قائمه کړے ده.د دے نه ظاهره دا معلومیږی.چه امام بخاری داولنئ وحی دنزول کیفیت بیانوی.چه په غار حراء کښے اولنئ وحی ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ﴾ نازل شوے وه.دهغے دنزول په وخت کښے کوم کیفیات وو؟

**دترجمه الباب په مقصد باندې اشکال** که دترجمة الباب هم دا مقصد اوګرځولے شی.نودلته دا اشکال کیږی.چه په دے باب کښے شپږ روایات ذکر شوی دی.په دے کښے صرف داولنی روایت (چه په هغے کښے په غارحراء کښے د وحی دنزول واقعه ذکرده) نه علاوه په یوروایت کښے هم دوحی دنزول اولنئ کیفیت ذکرنه دے؟ نودذکرشوے ترجمے به دذکرشوو احادیثو سره مطابقت څنګه راځی.ددے اشکال مختلف جوابونه ورکړے شوی دی. کوم چه دا لاندے دی.

(۱)محمد بن اسماعیل تیمی رحمه الله فرمائی.که دلته د((کیف کان الوحی وبدءه)) عنوان وو.نوبهتره به وه.څکه چه په دے ټولو روایاتو کښے د بدءالوحی کیفیت ته تعرض نشته .دمطلق کیفیت وحی بیان دے (۱)

---

(۱) یضاف إلی الجملة ثمانیة أسماء کما فی مغنی ابن هشام _ الزمان.وحیث. وآیة بمعنی علامة . وذو.ولدن. وریث. وقول وقائل.کذا فی شرح القسطلانی (۱/٤۷)-

(۲) اورد القاری فی شرح الشمائل علی هذا الأخیران أن التعداد فی عرف البلغاء إنما یکون لضبط العدد من غیرفصل بین أجزاء المعدود بشی آخر فضلا عن إیراد الأحوال الکثیرة بین المعدودات کذا فی الأبواب والتراجم لصحیح البخاری ..شیخ الحدیث علامة محمد زکریا الکاندهلوی رحمه الله (ص.۲۲)_

**دعلامه سندهى رحمه الله جواب** علامه سندهى رحمه الله فرمائى چه په ..بدء.. كښې اضافت د ..وحى.. طرف ته اضافت بيانيه دے يعنى ((كيف كان بدء أمرالدين والنبوة الذى هوالوحى)) مطلب دا شو چه نبى كريم ﷺ ته د وحى نزول د دين حكم دے اوپه دے باندے د نبوت اورسالت مدار دے ځكه ئے د ..وحى.. نه په ..بدء.. سره تعبير اوكړلو (۲)

لكه چه په دے صورت كښې به د ترجمے غرض د وحى ابتداء بيانول نه وى بلكه د دين ابتداء بيانول وى.چه دالله تعالى د دين شروع څنګه شوے وه.اودے مبدا څنګه وه.نو ددے جواب دا شو چه د دين مبتدا وحى خداوندى ده.ښكاره ده. چه په دے صورت كښې د باب د احاديثو د ترجمة الباب سره په مطابقت اومناسبت كښې څه اشكال نه پاتے كيږى (۳)

**دحضرت شاه ولى الله رحمه الله جواب** حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه زما په نيز ددے معنى ده.چه وحى متلو محفوظ يعنى قرآن كريم او غيرمتلو چه حديث ورته وئيلى شى.كوم چه د مسلمانانو په ژبه باندے پروت دے. يعنى د كوم ځائے نه ښكاره شوے دے؟د دے وجود څنګه وو؟اومونږ ته څنګه راورسيدلو؟ددے جواب دا دے.چه دا به مونږ ته د ثقات عالمانو په ذريعه رارسى.هغوئ ته دصحابه كرامو رضى الله عنهم نه اوهغوى ته د نبى ﷺ نه او دوى ته دالله تعالى د طرفه د وحى په ذريعه رارسيدلے ده او د الله تعالى نبى كريم ﷺ ته ددے كارونو وحى راليږل په طريقه دتواتر سره ثابته ده.حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه په ترجمه كښې د ((كيف)) ذكر د ((تنبيه على الفائدة)) په طور سره دے

هغوى دا هم فرمائى.چه دا هم كيدے شى چه د وحى نه مراد صرف د نبى كريم ﷺ احاديث وى.اود ((بدأ)) نه مراد ((مبدأ)) وى.اوهغه الله تعالى دے.نواوس به مطلب دا شى چه ددے احاديثو كوم چه د نبى كريم ﷺ نه نقل شوى دى.مبدا څه ده؟د روايات باب نه معلومه شوه.چه مبدا د وحى اوفرښتو په واسطه ده.يعنى حضرت جبرئيل عليه السلام په نبى ﷺ باندے دالله تعالى د طرفه وحى راوړله.

دحضرت شاه ولى الله رحمه الله د دواړو تقريرونو خلاصه دا ده.چه دا خودل مقصود دى.چه ددے ظهورڅنګه اوشو.ددے مبدا څه ده؟ اومونږ ته څنګه رارسيدلے دے. په دے طريقه د باب داحاديثو د ترجمة الباب سره مطابقت هم ښكاره شو.

**دحافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله جواب** حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله فرمائى.چه د بدء الوحى نه دامام بخارى رحمه الله مدعا دا نه ده.چه صرف د وحى ابتداء اواغاز

---

(۱) اوګورئ شرح كرمانى (۱/٤) وفتح البارى (۹/۱) وعمدة القارى (۱۳/۱) په دےقول باندے علامه كرمانى رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دواړو رد كړے دے۔

(۲) انظرحاشية السندى على البخارى (۶/۱)۔

(۳) الأبواب والتراجم. ازحضرت علامه محمد ادريس كاندهلوى رحمه الله (ص.۲۷. ۲۸)۔

بيان کړے شي. بلکه بعضے وخت داسے کيږي. چه ذکر خو دابتداء وي. خومراد ترے کل وي. په صحيح بخاري کښے به باب راشي. ((باب بدء الأذان)) اوهلته د اذان ټول متعلقات ذکر دي.
دغه شان دلته اګرچه ذکر د ..بدا.. دے. خو دامام بخاري رحمه الله صرف دابتداء وحي د کيفيت بيان مقصود نه دے. بلکه د مطلق وحي ټول کيفيات اود هغے متعلقات بيانول مقصود دي.
يا داسے اووايه. چه دحديث د ټولو داحاديثو نه ترجمة الباب ثابتول کافي دي. دا ضروري نه ده چه هرحديث دترجمة الباب دپاره ثابتونکے وي.(۱)
**دحضرت شيخ الهند رحمه الله تقرير** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرماني. چه په دے ترجمه کښے واقع الفاظ د ..وحي.. او ..بدء.. کيف.. عام اوګرځوئ. هغه داسے چه وحي عامه ده که متلو وي اوکه غير متلو. منامي وي اوکه الهامي وي. فرشته په اصلي صورت کښے راغلي وي اوکه په بشري صورت کښے. په وحي کښے خو به دا تعميم شي.
اودويم لفظ د ..بدء.. دے. په دے کښے به هم تعميم وي. چه ..بدايت په اعتبار دمکان چه د کوم ځائے نه شروع شوے وه. بدايت په اعتبار د زمان. چه په کومه زمانه کښے شروع شوے وه. بدايت په اعتبار د ماحول. اوحالاتو چه په کومو حالاتو کښے ابتداء شوے وه. بدايت په اعتبارد موحي اليه اومبعوث اليهم. چه په وحي په چا نازليده. اودهغه څه صفات وو. اوڅه طرف ته چه دوی ليږلے شوے وي. دهغوی څه صفات وو. د ..بدء.. په لفظ کښے به داسے تعميم راشي.
دغه شان لفظ د ..کيف.. دے. په دے کښے به هم د مکاني. زماني. موحي اليه او مبعوث اليهم تعميم ګنړلي شي. په دے طريقه به په ترجمه کښے ډير وسعت راشي. اودټولو احاديثو به په باب باندے منطبق کولو کښے څه مشکل نه پيښيږي. ځکه چه په ټولو رواياتو کښے په څه نا څه صورت کښے د وحي کيفيت اوحالت ذکر دے.(۲)
**دشيخ الهند رحمه الله يو بل تقرير** حضرت شيخ الهند رحمه الله يوه بله خبره هم کړے ده. فرماني. چه دلته دامام بخاري رحمه الله مقصد هغه نه دے. کوم چه په ظاهره ګنړلے شي. بلکه اصلي مقصد د وحي د عظمت. عصمت اوصدق اثبات دے. کوم چه دترجمة الباب مدلول مطابقي خو نه دے. خو مدلول التزامي ضرور دے.
تاسو وړاندينئ دتعميم خبره په ذهن کښے اوساتئ. اوآيت ﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ....﴾ هم د نظرلاندے ساتئ. نو دعظمت طرف ته به درته ښکاره اشاره معلومه شي.
ددے وضاحت دا دے. چه ((باب کيف کان بدء الوحي)) کوم چه نے د کتاب الايمان نه وړاندے راوړلو. دا په منزله د ..کبرى.. اوګنړئ اود کتاب الايمان نه واخلئ تر آخره پورے ټول احاديث په منزله د ..صغرى.. ده. نو نتيجه به داسے راوځي ((هذا حديث رسول الله ﷺ من کتاب

---

(۱) اوګورئ فتح الباري (۹/۱) وعمدة القاري(۱۳/۱) دغه شان اوګورئ ((الأبواب والتراجم)) ازمولانا کاندهلوي رحمه الله (ص.۲٤)_
(۲) اوګورئ ايضاح البخاري (۲٤/۱) وفضل الباري (۱۲۱/۱)_

العلم مثلاً وحی)) دا صغری شوه.دویمه مقدمه به دا وی.((وما کان وحیاً یجب العلم به لعظمة الوحی وحفظه عن السهو والخلل)) نونتیجه به ئے دا شی.((فهذا الحدیث یجب العمل به))
لکه امام بخاری رحمه الله چه کومه ترجمه قائمه کړے ده.دا ئے د وحی د عظمت بیانولو دپاره قائمه کړے ده.ددے دپاره چه په کتاب کښے کوم احادیث ذکر کولی شی په هغے باندےعمل کولو طرف ته اشاره اوشی.د وحی دعظمت تقاضا دا ده.چه په دے باندے دعمل کولو اهتمام اوشی.
دوحی دعظمت خو دا حال وو.چه نبی ﷺ سره په شروع شروع کښے دا ویره وه. چه کیدے شی.زه هلاك شم.دغه د وحی د شدت د وجه به په ژمی کښے په دوی باندے خوله راتله.د نزول وحی په وخت کښے که به نبی ﷺ په سورلئ باندے سور وو.نو د ډیربوج دوجه به هغه کیناستله.که دچا په پتون باندےبه د نبی ﷺ پتون پروت وو.نوهغه به دا گنړل چه چرته زما هډوکی چوری چوری نشی.
اودوحی دعصمت اوحفاظت دپاره څکه چه ددے ابتداء د الله تعالی منتهی ئے نبی کریم ﷺ اوواسطه ئے حضرت جبرئیل علیه السلام دے.په دے ټولو مراحلوکښے چرته هم د خطا سهو یا خلل څه امکان نشته.الله تعالی ددے د حفاظت دا اهتمام کړے دے.چه ددے دحفاظت انتظام ئے په خپله ذمه اخستے دے.چه ته به په وحی الهی کښے یولفظ هم نه هیروے.
کله چه داثابته شوه.چه وحی دالله تعالی کلام دے.اومعصوم عن الخطا ده.د زیادت اوکمئ نه بالکل پاکه ده.نو ددے په فرضیت اوواجب الاطاعت کیدو کښے څه شك پاتے کیدے شی؟ ددے باب ټول احادیث ددے مدعا داثبات دپاره شافی کافی دی.(١)

**د امام العصر حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله جواب** حضرت علامه سید انورشاه کشمیری قدس سره فرمائی.چه دلته د ترجمة الباب نه ظاهری معنی یعنی کومه وحی چه په نبی ﷺ باندے دټولو نه وړاندے په غار حراء کښے نازل شوے وه.بلکه مقصود دا دی.چه د حضرت عیسی علیه السلام آسمان ته د پورته کیدو نه پس چه د وحی سلسله منقطع شوے وه.اوس شپږ سوه کاله د فترت نه پس هغه سلسله څنگه شروع شوه.یعنی جنس وحی خو د ډیرے زمانے نه مفقود وه.اوس څنگه په وجود کښے راغله.او ددے د ښکاره کیدو د ټولو نه اولنے کوم صورت وو.
غرض داچه د .بدء الوحی.. نه د وحی هغه ټوله سلسله مراد ده.کومه چه دریویشت کاله پورے جاری وه.اوپه دے زمانه کښےچه څومره واقعات شوی دی. هغه ټول په بدایة الوحی کښے شامل اوداخل دی.

امام بخاری رحمه الله په دے طریقه په خپل صحیح کښے څو ابواب قائم کړی دی.مثلاً ((بدء الخلق)) ((بدء الحیض))، ((بدء الأذان)) وغیره.نو په دے ټولو ځایونو کښے ((بدء)) په معنی د بدایت اونهایت په مقابله کښے نه ده.اودا مطلب نه دے.چه په دے باب کښے صرف دتخلیق عالم،یا

(١) اوګورئ الأبواب والتراجم ازعلامه کاندهلوی رحمه الله (ص،٢٦، ٢٧)_

د اذان د ابتدائي حالاتو بيان كولے شي. او درمياني اوآخري حالات نه بيانوي.بلكه مقصود دا وي.چه كوم څيز په اول كښے موجود نه وو.اوس هغه څنګه په وجود كښے راغلو.مثلاً آيت ﴿كَمَا بَدَأْنَآ أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُ﴾ (١) كښے بدايت دنهايت په مقابله كښے نه دے.بلكه د عالم د شروع بيان دے.كوم چه د پيدائش ټولو احوالو او حالاتو ته شامل دے.اومقصود دا دے چه دا عالم دعدم نه وجود ته څنګه راغلو.نوامام بخاري رحمه الله په دے بابونو كښے د عالم دپيدائش اواذان وغيره ټول حالات بيان كړي دي.صرف دابتدائي حالاتو په بيانولو ئے اكتفا نه ده كړے.

دغه اوګڼړه.چه په ..بدء الوحي.. كښے بدايت دنهايت مقابل نه دے.چه صرف د وحي دابتداء حالت په كښے بيان شي.اومينځني اوآخري حالات نه بيانوي.بلكه مقصود دا خودل دي.چه د فترت وحي د زمانے نه پس وحي څنګه شروع شوه . او جنس وحي د عدم نه پس بيا څنګه په وجود كښے راغله.او ددے د ظهور شروع څنګه اوشوه؟ (٢)

**تنبيه** دصحيح بخاري په بعضے نسخو كښے دلته د ..بدء الوحي.. په ځائے ..بدوالوحي.. دے . د حضرت شاه صاحب په دے توجيه سره د دواړو نسخو مفهوم يو راځي.او د دواړو مآل يو كيږي.(٣)

**دشيخ الحديث حضرت مولانا زكرياصاحب كاندهلوي رحمه الله توجيه** حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده فرمائي.چه امام بخاري رحمه الله په خپل كتاب كښے ديرش بابونه اصالةً د ..كيف.. نه شروع كړي دي.په دے كښے شل په اول جلد كښے دي.او لس په دويم جلد كښے دي.داصالةً په قيد سره دهغه بابونو اخراج مقصود دے.چه په هغے كښے د كيفياتوذكر تبعاً دے اصالةً نه دے.

حضرت فرمائي.چه د دے ټولو بابونو نه په اكثروكښے د كيفياتوته تعرض نه دے شوے نو څكه په غور كولو سره دا خبره ذهن ته راځي.چه دامام بخاري رحمه الله په داسے بابونوكښے مقصود په هغه څيز كښے په اختلاف باندے تنبيه وركول وي.كوم چه د ,,كيف.. مدخول وي.برابره كه دا اختلاف په رواياتوكښے وي.اوكه په عالمانو كښے وي.(٤)

دلته چه امام بخاري رحمه الله كوم روايات ذكر كړي دي.په هغے كښے اختلاف ښكاره دے.څكه چه د وحي كوم كيفيات چه د رواياتو نه معلوميږي.هغه مختلف دي په بعضے كښے دا دي.چه خوب ئے اوليدلو.په بعضے كښے دا دي چه فرښته دانسان په شكل كښے ښكاره شوه په بعضو كښے د وحي د نزول د كيفيت تشبيه د .صلصلة الجرس.. سره بيان شوے ده.

---

(١) الأنبياء:١٠٤)_

(٢) اوګورئ فيض الباري وحاشيه البدرالساري (١/٢٠٢،٣)_

(٣) اوګورئ فيض الباري وحاشيه البدرالساري (٢٠٣/١) -

(٤) تعليقات على لامع الدراري (٤٨٦/١)_

**حضرت مولانا محمد يونس مظاهرى رحمه الله رائي** دمظاهرالعلوم شيخ الحديث حضرت مولانا محمد يونس صاحب مظاهرى فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله ددے ترجمة الباب نه اصلى مقصود خو ددے ثابتول وو چه نبى كريم ﷺ دالله تعالى پيغمبر دے.الله تعالى په دوى باندے داسے وحى نازل كړے وه. لكه څنګه چه ئے په نورو پيغمبرانو حضرت نوح اوپه نورو پيغمبرانو عليهم السلام باندے نازل كړے وه.خوامام بخارى رحمه الله ددے سره د وحى او د حى ابتدائى كيفيت ته هم اشاره اوكړه.دا ابتداء د زمان ،مكان او احوالوټولوته شامل ده. او ابتداء آنى نه ده.بلكه ممتد ده.اومطلب دادے چه په نبى ﷺ باندے د وحى د نزول حالات څه وو؟ د باب د رواياتو نه د دغه ابتدائى حالاتو پته لګى.چه اول دوى ته څه داسے حالات په نظر راغلل.بيا ورته فرشته راتله.كله به هغه فرشته په انسانى شكل كښے راتله.اوكله به د صلصلة الجرس په صورت كښے راتله.په رمضان كښے به دهغے راتګ كيدلو.د نزول وحى په وخت كښے به ئے دهغے د حفاظت اهتمام كولو.او ژبے اوشونډو ته به ئے حركت وركولو.كله چه نبى ﷺ د وحى دابتداء اظهار اوكړلو.نود دوى مخالفت اوشو.اوس په دے تقرير باندے ټولے ترجمے مطابق شوئ.بس صرف دومره خبره ده.چه د ..بدء..نه مراد ابتدائے ..آنى.. مراد نه ده.بلكه ابتدائے ممتد زمانى مراد ده.(١) دعلامه كرمانى د كلام نه هم ددے تائيد كيږى. (٢)

**دترجمة الباب د اجزاء تحليليه تشريح** وړاندے د ..باب.. دلفظ څه تشريح تيره شوے وه.

په اصل كښے دباب معنى د «مداخل الأمكنه» ده.دعلم په يوے طائفے يا مجموعه باندے د ..باب.. اطلاق په دے حيثيت كيږى.چه لكه څنګه د كورپه دروازه سړے كورته داخليږى. دغه شان دعلم پوره باب وئيلو نه پس سړے په علم كښے ور داخليږى.اوپه هغے كښےچه ئے څنګه غواړى تصرف كوى.

امام راغب اصفهانى رحمه الله ليكلى دى.چه د «باب كذا» معنى «باب إلى كذا» ده. لكه څنګه چه «باب الدار» د «دخول الدار» ذريعه ده.دغه شان «باب الطهارة» مثلا د طهارت په مسائلو كښے د داخليدو ذريعه ده.والله اعلم (٣)

د ..باب..لفظ دټولونه وړاندے د تابعينو رحمهم الله په زمانه كښے شروع شوے وو.امام شعبى رحمه الله د طلاق روايات په يوځائے جمع كړل.اووے فرمائيل.«هذا باب من الطلاق جسيم»(٤)

..كيف.. لفظ د ..كيف.. اسم استفهام دے.چه صدارت دكلام غواړى.كه ددے نه وړاندے لفظ د ..باب.. نه وو.لكه چه د ابوذر او اصيلى په روايت كښے چه دى.(١) نو بيا خو څه

---

(١) اوګورئ الأبواب والتراجم شيخ الحديث محمد زكريا رحمه الله كاندهلوى.(ص.٣٢)۔

(٢) اوګورئ شرح كرمانى (١٥/١)۔

(٣) المفردات فى غريب القرآن ص.٦٤ لفظ..باب..)۔

(٤) تدريب الراوى (٨٩/١)۔

اشكال نشته. اوكه د ..باب.. لفظ وى. لكه چه په باقى تولو نسخو كنبے موجود دے.(١) اومضاف هم وى. نو بيا اشكال واردېږى چه ..كيف.. په صدر د كلام كنبے نه ده راغلے. ددے جواب دا دے چه ..كيف.. او داستفهام د نورو ادواتو په صدر د كلام كنبے د راتلو معنى دا ده چه په كوم كلام كنبے دا ذكروى. نو دهغے كلام په ابتداء كنبے به وى.(٢) دلته هم د جمله استفاميه په صدر كنبے ..كيف.. استعمال شوے دے.

..بدء.. قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه دا لفظ دوه قسمه مروى دے.

○بدء: (بفتح الباء الموحدة وسكون الدال وآخره همزة)

○بدو بضم الباء والدال وتشديد الواو په معنى د ظهور (٣)

علامه عينى رحمه الله د بعضے عالمانونه داولنى معنى رجحان نقل كړے دے. اوبعضے نورو عالمانو د دويمے معنى رجحان غوره كړے دے.(٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله د ..بدء.. مهموزپه .. بدو.. باندے راجح كړے دے. اوفرمائيلى ئے دى. چه دبخارى د طرز سره مناسب هم دا دے. ځكه چه امام بخارى رحمه الله وړاندے ((بدء الحيض)) او ((بدء الأذان)) او((بدء الخلق)) تراجم منعقد كړى دى. او په هرځائے كنبے ..بدء.. مهموز دے. مونږ د خپلو مشانخو نه هم مهموز اوريدلے دے. دغه شان ددے تائيد ددے نه هم كيږى چه په بعضے نسخو كنبے ((كيف كان إبتداء الوحى)) واقع دے.(٦) علامه عينى رحمه الله د قاضى عياض رحمه الله قول نقل كړے دے. اوفرمائى. چه كله د ..بدو.. روايت موجود دے. نو ددے د انكار څه وجه نشته.(٧)

بهرحال كه دلته د ..بدو.. لفظ وى. نوبيا خو ئے مفهوم ښكاره دے. اوكه ..بدو.. وى. نومطلب لكه ځنگه چه مونږ دحضرت شاه انورشاه كشميرى رحمه الله په توجيه كنبے بيان كړے دے. دا دے چه د وحى تشريعى كومه سلسله چه د حضرت عيسى عليه السلام نه پس منقطع شوے وه. ځنگه په وجود كنبے راغله. والله اعلم.

..الوحى.. وحى په لغت كنبے ((الإعلام فى خفاء)) په معنى راځى.(٨) يعنى په پټه خودل. لكه فرشته به راتله. او نبى ﷺ ته به ئے دالله تعالى پيغام داسے راوړلو. چه چاته به پته هم نه

---

(١) فتح البارى (٨/١)_
(٢) فتح البارى (٨/١)_
(٣) شرح قسطلانى (٤٨/١)_
(٤) اوگورئ فتح البارى (٩/١) وعمدة القارى (١٤/١)_
(٥) عمدة (١٤/١)_
(٦) فتح البارى (٩/١)_
(٧) عمدة القارى (١٤/١)_
(٨) اوگورئ عمدة القارى (١٤/١)_

لګيدله.بعضے حضرات فرمائی.چه وحی «الإشارة السريعة» ته وائی.(۱) يعنی په جلتئ کښے اشاره کول اوخودل. دا هم بالکل ښکاره ده.څکه چه فرښته به په يو سکنډ کښے راغله.اود غيبو خبرے به ئے اوخودلے.

امام راغب رحمه الله فرمائی.«وذلك يكون بالكلام على سبيل الرمز والتعريض، وقد يكون بصوت مجرد عن التركيب وبالإشارة ببعض الجوارح وبالكتابة»(۲)

خوپه اصطلاح کښے د وحی اطلاق صرف په هغه کلام باندے کيږی.کوم چه د الله تعالى د طرفه نازل شوے وی.که د فرښتے په ذريعه وی.يا په بله ذريعه وی.په دے کښے داسباب ظاهری اوامورعاديه دخل نه وی.دا وحی نبوت ده.اوپيغمبرانوعليهم السلام سره مخصوص ده.

که وحی په ذريعه د «القاء فى القلب» وی.نودے ته «وحی الهامی» وائی.کومه چه اولياوته کيږی.

اوکه په ذريعه د خوب وی.نودے ته «رؤيا صالحه» وائی.کوم چه عام مسلمانان اونيکان هم وينی.خو د شريعت په عرف کښے چه کله د ..وحی.. د لفظ اطلاق اوشی.نوددے نه وحی دنبوت مراد وی.په کشف،الهام، او رؤيائے صالحه باندے په لغت کښے د ..وحی.. اطلاق کيږی. خو اصطلاحاً پرے نه کيږی. (۳)

**دوحی قسمونه**: امام ابوالقاسم السهيلی رحمه الله (متوفی ۵۸۱هـ) په «الروض الأنف» کښے د وحی اووه صورتونه بيان کړی دی.

① وحی منامی: چه په خوب کښے وحی راشی.دا صورت د حضرت عائشے رضی الله عنها په حديث کښے ذکر دے.کوم چه هم ددے باب دريم حديث دے.«أول ما بدئ به رسول الله صلى الله عليه وسلم من الوحي: الرؤيا الصالحة في النوم...»

② نفس في الروع: چه په زړه کښے خبره واچولے شی.په يو حديث کښے نبی صلى الله عليه وسلم فرمائی.«إن روح القدس نفث في روعي أن نفساً لن تموت حتى تستكمل أجلها وتستوعب رزقها فاتقوا الله وأجملوا في الطلب»(۴)

③ صلصلة الجرس: دټلئ دآواز په صورت کښے وحی راشی.ددے صورت د حضرت عائشے رضی الله عنها په حديث کښے ذکر دے.کوم چه د باب دويم حديث دے .«أحياناً يأتيني مثل صلصلة الجرس»

---

(۱) المفردات فی غريب القرآن (ص.۵۱۵)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) المفردات فی غريب القرآن (۵۱۵) والأبواب والتراجم للكاندهلوی (ص.۳۰)_

(۴) رواه أبونعيم فی الحلية عن أبی أمامة الباهلی:.والطبرانی عنه أيضاً و رواه ابن أبی الدنيا والحاكم عن ابن مسعود ورواه البيهقی فی المدخل وقال منقطع ..كذا فی فيض القديرللمناوی (۲/۴۵۰، ۴۵۱)_

④ تمثيل ملك يعنى د فرشتے په انسانى شكل كښے متمثل كيدل اوخبرے كول لكه چه دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا په دويم حديث كښے چه دى «وأحياناً يتمثل لى الملك رجلاً فيكلمنى»
⑤ دحضرت جبرئيل علیہ السلام په خپل اصلى شكل كښے ښكاره كيدل. حضرت جبرئيل علیہ السلام به داسے ښكاره كيدلو چه شپږ سوه وزرے به ئے اودهغے نه به جواهرات او ياقوت دوړيدل.[1]
⑥ دالله تعالى براه راست خبرے كول. كه په بيدارئ كښے وى لكه د معراج په شپه چه داسے شوى وو اوكه په خوب كښے وى. لكه چه دحضرت معاذ رضی اللہ عنہ په حديث كښے كوم چه په ترمذى شريف [2] كښے دے «إنى قمت من الليل فتوضأت وصليت ما قدر لى فنعست فى صلاتى حتى استثقلت فإذا أنا بربى تبارك وتعالى فى أحسن صورة فقال يا محمد قلت لبيك رب، قال فيم يختصم الملأ الأعلى ؟....»
⑦ وحى اسرافيل: دحضرت جبرئيل علیہ السلام نه وړاندے حضرت اسرافيل علیہ السلام نبى ﷺ ته وحى راوړے وه. اوراغلے وو.[3]
حضرت شيخ الحديث نورالله مرقده فرمائى. زما په نيز د وحى ټول څلور قسمونه دى.
① دالله تعالى كلام من وراء حجاب اوريدل: لكه چه حضرت موسى علیہ السلام په كوه طور باندے اونبى ﷺ په شپه د معراج كښے اوريدلے وو. ② تلقى بالقلب: ③ خوب يعنى وحى منامى.
④ دفرشتے په ذريعه وحى راليږل: كه هغه فرشته جبرئيل علیہ السلام وى. اوكه اسرافيل علیہ السلام يا بله فرشته وى. بيا دجبرئيل علیہ السلام راتلل كه په اصلى شكل اوصورت كښے وى . اوكه دانسان په صورت كښے وى.
خوصاحب دروح المعانى رحمہ اللہ د بعضے حضراتو نه نقل كړى دى. چه «تلقى بالقلب» عامه ده. كه په خوب كښے وى. اوكه په بيدارئ كښے وى.[4] په دے طريقه د وحى درے قسمونه پاتے كيږى.
① تكلم بلاواسطه ② تكلم په واسطه د فرشتے.
③ تلقى بالقلب كه په خوب كښے وى اوكه په بيدارئ كښے.
احنافوفقهاؤ په خپلو كتابونو كښے ليكلى دى. چه وحى دوه قسمونه دى.
(الف) وحى ظاهر (ب) وحى باطن.
(الف) وحى باطن دپيغمبر علیہ السلام اجتهاد وى. په كوم باندے چه پيغمبر علیہ السلام برقرار پاتے كولے شى.
(ب) او د وحى ظاهر امام فخرالاسلام بزدوى رحمہ اللہ درے قسمونه بيان كړى دى.
① دفرشتے بالمشافه بيان كول.
② بغير دبيان نه د فرشتے ښكاره اشاره كول دځه نه په «نفث فى الروع» سره تعبير كولے شى.

---

(۱) الروض الأنف (۱/۱۵٤)_
(۲) ابواب التفسير باب ومن سورة ص. رقم ۳۲۳۵)_
(۳) اوګورئ ..الروض الأنف.. (۱/۱۵۳. ۱۵٤) فصل فى ذكر نزول جبريل علیہ السلام على رسول الله ﷺ )_
(٤) روح المعانى (۱۳/جزء ۲۵ ص.٥٤) درتفسير ﴿وماكان لبشر أن يكلمه الله إلا وحياً﴾..)_

() الهام، يعني د فرشتے د اشارے نه بغير.يا د عبارت نه بغير په قلب كنبے القاء كول . خو پيغمبر ﷺ ته يقين كيږي.چه دا دالله تعالى دطرفه ده.(١)

د الهام په باره كنبے اختلاف دے.چه دا د وحي ظاهر قسم دے.لكه چه فخرالاسلام بزدوي رحمه الله فرمائي.يا په وحي باطن كنبے داخله ده.لكه چه د شمس الائمه سرخسي رحمه الله رائے ده.(٢)

شيخ قوام الدين اتقاني رحمه الله د شمس الائمه سرخسي رحمه الله رائے ته ترجيح وركوي . فرمائي .

«ما يثبت في القلب بالإلهام ليس بظاهر بل هو باطن»(٣)

خوكه دوحي باطن تعريف«ما ينال المقصود به بالتأمل في الأحكام المنصوصة» وي .اود وحي ظاهر تعريف «ما ينال المقصود به لا بالتأمل فيها» اوګرځولے شي.نود فخرالاسلام بزدوي رحمه الله رائے به راجح وي.(٤)

باقي د «تكلم في ليلة الإسراء والمعراج» اود تكلم منامي كنبے امام بزدوي رحمه الله وغيره ذكر نه دے كړے.دعلامه ابن اميرالحاج رحمه الله رائے دا ده.چه «تكلم في ليلة الإسراء» وحي ظاهر او منام وحي باطن كنبے داخل ده.(٥)

**أيا الهام حجت دي؟** وړاندے تير شوي دي.چه الهام غير انبياء يعني اولياؤ ته هم كيږي. دپيغمبرانو عليهم السلام د الهام په باره كنبے خو دا فيصله ده.چه دا حجت دے.البته د اولياؤ دالهام په باره كنبے اختلاف دے.

() يو قول دا دے.چه داحكامو په باره كنبے حجت دے.دا قول بعضے صوفيانو رحمهم الله ته منسوب دے.بلكه په رافضيانو كنبے د فرقه جعفريه په نيز خو ددے نه سوا خو هډو بل حجت نشته.

() دويم قول دا دے.چه الهام د صاحب الهام په حق كنبے حجت دے.د بل دپاره حجت نه دے.يعني په دے باندے پخپله د صاحب الهام عمل كول ضروري دي.خو نورو ته ددے دعوت وركول جائز نه دي.صاحب د ميزان ددے قول نسبت جمهورو عالمانو رحمهم الله ته كړے دے.امام سهروردي رحمه الله دا قول غوره كړے دے.امام رازي رحمه الله اوابن الصباغ رحمه الله هم په دے قول اعتماد كړے دے.

(١) اوګورئ ..اصول بزدوي.. مطبوعه مع شرح ..كشف الاسرار.. (٢٠٤/٣) باب تقسيم السنة في حق النبي ﷺ وشرح التحرير (٢٩٥/٣)_

(٢) شرح التحرير(٢٩٦/٣)_

(٣) پورتنئ حواله)_

(٤) اوګورئ پورتنئ حواله)_

(٥) پورتنئ حواله)_

() دريم قول دا دے.چه دا نه په صاحب الهام حجت دے.اونه په بل چا .هم دا قول مختار دے
خكه چه دغير نبي په حق كښې داسې څه قطعي دليل نشته.چه دا په حقيقت كښې دالله تعالى
د طرفه دے.اونفساني خيالات ياشيطاني وسوسې نه دى.والله اعلم (۱)
امام حليمي رحمه الله د وحي شپږڅلويښت قسمونه ذكر كړي دى.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه
په دې كښې اكثرد صاحب وحي صفتونه دى.كوم چه په ذكرشوو صورتونو كښې داخل دى.(۲)

**قوله:إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم:** كله چه لفظ د ..رسول.. مطلق ذكر شى.
نومراد ترې د نبي كريم ﷺ ذات گرامي وى.

**د رسول لغوى او اصطلاحي معنى** لفظ د ..رسول.. په لغت كښې د پيغامبر اوقاصد په معنى
راخى. اوپه اصطلاح د شريعت كښې ..رسول.. هغه شخصيت ته وائى.چه هغه الله تعالى د
خپلو پيغاماتو رسولو دپاره منتخب كړے وى.اود پيغاماتو رسولو عهده ئې ورته وركړے
وى.رسالت يوه خاصه مرتبه ده.چه الله تعالى ئې خپلو بعضوبندگانو ته وركوى.دا دالله تعالى
او بندگانو په مينځ كښې د يوسفارت نوم دے.كوم چه دعقل اوفهم خاوندانو ته په هغه خبرو
باندې تنبيه وركوى.كوموته د هغوى د عقل رسيدل نشى كيدے . يعنى د الله تعالى
صفات، د قيامت حالات،د دين اودنيا مصلحتونه،داسې محركات چه د هدايت باعث وى.
اوداسې امور چه د شبهاتو اوزندقيت منع كونكى وى.

**نبوت:** ..نبي.. د ..نبأ..نه ماخوذ دے.ددې معنى ده.خبر.چونكه نبي دالله تعالى د طرفه
خبر وركوى.څكه ورته نبي وئيلې شى.
بعضې حضرات وائى.چه دا نبوت د ارتفاع د معنى نه ماخوذ دے.چونكه د نبوت مقام يو
اوچت مقام دے.څكه ورته نبي وئيلى شى.(۳)

**د رسول او نبي په مينځ كښې فرق:** د بعضې حضراتو په نيز دا هم معنى دى.ددې په مينځ كښې
څه فرق نشته.(۴) خو راجح قول دا دے.چه په دواړو كښې فرق دے.څكه چه دالله تعالى ارشاد
دے ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ﴾ (۵)
ددې نه علاوه په كومو احاديثو كښې چه دانبياؤ اورسولانو په تعداد كښې فرق بيان شوے
دے. نو دهغې نه هم معلوميږى.چه په دواړو كښې فرق شته.

---

(۱) د تفصيل دپاره اوگورئ (التقرير والتحبير شرح التحرير.لابن أمير الحاج الحلبي (۳/۲۹۵، ۲۹۶) المقالة الثالثة في الإجتهاد وما يتبعه)_
(۲) فتح البارى (۱/۲۰) شرح حديث ثانى)_
(۳) كشاف اصطلاحات الفنون. (۲/۱۳۵۸) باب النون.فصل الهمزة .لفظ النبي)_
(۴) كشاف اصطلاحات الفنون. (۱/۵۸٤) باب الراء فصل اللام .لفظ الرسالة)_
(۵)سورة حج (۵۲)_

امام احمد رحمه الله د حضرت ابوذر رضی الله عنه روایت نقل کړے دے.په هغې کښې دی چه «قلت : یا رسول الله کم الأنبیاء؟ قال مائة ألف وأربعة وعشرون ألفاً قال:قلت: یارسول الله کم الرسل؟ قال ثلاث مائة وثلاثة عشر، جم غفیر کثیر طیب»

دغه شان هم د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه ابن مردویه رحمه الله په خپل تفسیرکښې روایت نقل کړے دے «قلت یارسول الله کم الأنبیاء ؟قال مائة ألف وأربعة وعشرون ألفاً،قلت یارسول الله کم الرسل منهم؟ قال ﷺ ثلاث مائة وثلاثة عشر جم غفیر»هم دا روایت ابن حبان رحمه الله په خپل صحیح کښې هم نقل کړے دے.

دغه شان دابوامامه رضی الله عنه نه نقل دی.«یانبی الله کم الأنبیاء؟ قال: مائة ألف وأربعة وعشرون ألفاً، الرسل من ذلك ثلاثمائة وخمسة عشر جماً غفیراً»

په اولنی اودویم روایت کښې ابراهیم بن هشام دے.دا متکلم فیه راوی دے.هم ددے راوی د وجے امام ابن جوزی رحمه الله دا روایت موضوعی ګرځولے دے.

اوپه دریم روایت کښې معان بن رفاعه ،علی بن یزید او قاسم ابوعبدالرحمن دی.دا ټول د سیرے ضعیفان دی.( )

ددے نه علاوه نور روایاتونه هم شته.چه ټول ملاوکړے شی.نو دومره اندازه خو ترے خامخا لګیدے شی.چه په انبیاؤ او رسولانو کښې فرق شته.

باقی پاتے شو دا سوال چه د دوی په مینځ کښې څه فرق دے.نو په دے سلسله کښې د قرآن اوحدیث څه په څه نص کښې خوڅه وضاحت نشته.البته عالمانو د خپلے پوهے اودخپلو معلوماتو په اعتبار سره فرق کړے دے.

() بعضو وئیلی دی.چه رسول مامور بالتبلیغ وی.په خلاف د نبی.

() بعضے حضرات وائی.چه په رسول باندے حضرت جبرئیل علیه السلام وحی راوړے وی.اونازلیږی.

() اویو قول دا دے.چه رسول هغه دے.چه هغه ته مخصوص شریعت ورکړے شوے وی.په سابقه شریعت باندے ورته د عمل کولو حکم نه وی شوے.

() یو قول دا دے.چه رسول هغه دے.چه په هغه کتاب نازل شوے وی.

() بهرحال مشهوره دا ده.چه رسول هغه پیغمبر ته وائی.چه هغه ته نوے کتاب او نوے شریعت ورکړے شوے وی.اونبی هرهغه پیغمبر ته وائی.که هغه ته نوے شریعت ورکړے شوے وی.اوکه نه.بلکه هغه د وړاندینی شریعت اود بل پیغمبر متبع وی.

**په دې تعریف باندې اشکال د هغې دفاع** خوپه دے تعریف باندے به اشکال واردیږی.چه دا تعریف جامع نه دے.ځکه چه ډیر پیغمبران داسے دی.چه هغوی ته نوے کتاب اوشریعت نه دے ورکړے شوے .خو په قرآن کښې هغوی ته رسول وئیلے شوی دی.مثلاً دحضرت اسماعیل

---

(۱) دپورتنوروایاتونونه علاوه دنوروواحادیث اوپه هغې باندے دکلام دپاره اوګورئ تفسیرابن کثیر:(۱/۵۸۵، ۵۸۶) په ذیل دآیت﴿وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ﴾ سورة نساء:۱۶۴)

ﷺ متعلق ارشاد ربانى دے ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا﴾ (۱)
حالانکه هغوى ته څه نوے شريعت يا نوے کتاب يا صحيفه نه ده ورکړے شوے بلکه هغوى به د ملت ابراهيمى اتباع او تبليغ کولو دغه شان د حضرت يوسف ﷺ په باره کښے د مؤمن آل فرعون وينا په قرآن مجيد کښے موجوده ده ﴿وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُمْ بِهٖ ۖ حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا﴾ (۲) حضرت يوسف ﷺ ته هم څه نوے کتاب يا نوے شريعت نه وو ورکړے شوے نو دا حضرات د دے تعريف په بناء د رسول د تعريف نه اووتل حالانکه قرآن پاک دوى ته رسولان وئيلى دى
دد ے اشکال نه جواب دا دے چه په اصل کښے د رسول او دنبى تعريف داسے کولے شى چه ..دالله تعالى د طرفه کوم خلق د مخلوق دهدايت لارخودلو او اصلاح دپاره مقرر کړے شى که نوے دين اوشريعت اويانوے کتاب ورته ورکړے شوے وى يا د يو کافرقوم د اصلاح او هدايت دپاره مبعوث وى نوهغه رسول دے گنى نه به وى.
حضرت اسماعيل ﷺ به د ملت ابراهيمى اتباع او دهغے تبليغ کولو خوهغوى ته کتاب نه ملاؤ شوے هم د صحف ابراهيم اشاعت به ئے کولو خوبنو جرهم قبيله کافره وه دهغوى په دعوت اوارشاد باندے مامور وو دغه شان حضرت يوسف ﷺ د ملت ابراهيمى متبع وو خود مصر کافر قوم طرف ته مبعوث وو نوځکه رسول شو والله اعلم بالصواب

**قوله**: وقول الله عزوجل: ..قول.. مرفوع هم وئيلى شى او مجرور هم
د مرفوع په صورت کښے خو به دا يا مبتداء گرځولے شى او ددے خبر به مذکوره آيت ﴿اِنَّآ اَوْحَيْنَآ...﴾ وى. اويا به د فعل محذوف دپاره فاعل گرځولے شى او تقديرى عبارت به دا وى.((ويدل عليه قول الله ...)) يا به دا هم مبتدا گرځولے شى خو خبر به ئے محذوف وى مثلًا ،،وفيه قول الله ...)) يعنى((فى اثبات ما ترجمت به قول الله عزوجل)) په دے ټولو صورتونو کښے به اوس په ((باب)) باندے تنوين وئيلى شى.
دمجرور په صورت کښے به ددے عطف په لفظ د ..باب.. مضاف اليه واقع کيدونکے جمله باندے وى اومطلب به دا وى چه ((وباب معنى قول الله عزوجل)) په دے صورت کښے به په ..باب.. په تنوين سره نشى لوستلے.
قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه دا د ((کيف)) د لاندے نشى داخليدے((لأن قول الله لا يکيف)) ځکه چه کيفيت خو داعراضو د قبيلے څخه دے اود اعراضو حلول د محدثاتو څخه دے اوالله تعالى دخپل ذات اوصفاتو سره دحلول حادث نه پاک دے (۳)

(۱) سورة مريم: ۵۴_
(۲) سورة مؤمن: ۳۴_
(۳) دتفصيل دپاره اوگورئ عمدة القارى (۱/۱۵) وفتح البارى (۱/۹)_

قوله: ﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنۢ بَعْدِهٖ﴾: دامام بخارى رحمه الله عادت دے چه دوى خنګه خپله دعوى د احاديث نبوى نه ثابتوى. دغه شان چه څومره پورے ممكنه وى.نو د قرآن كريم نه ئے هم د ثابتولو كوشش كوى.چونكه مصنف رحمه الله دا دعوى كړے وه.چه محمد ﷺ دالله تعالى رسول دے . اوپه هغوى باندے دالله تعالى د طرفه وحى نازل شوے وه.نوپه دے دعوى باندے دوى د قرآن كريم نه دليل پيش كوى﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنۢ بَعْدِهٖ﴾ يعنى اے محمد ' (ﷺ) مونږتاته داسے وحى نازله كړے ده. لكه څنګه چه مو په نوح عليه السلام اودهغه نه پس په نورو پيغمبرانوباندے نازل كړے وه. نو لكه څنګه چه نوح عليه السلام او نور پيغمبران نبيان وو.او شو.دغه شان ته هم دالله تعالى نبى ئے.ددے آيت نه دا هم معلومه شوه.چه وحى دلله تعالى سنت قديمى دے.اودا هم معلومه شوه.چه نبى كريم ﷺ دالله تعالى پيغمبر دے.دوى ته چه كومه وحى راتله.هغه وحى الهامى نه وه.بلكه وحى رسالت وه.

په حقيقت كښے د يو پيغمبر د پيغمبرئ پيژندلو دپاره يو صورت دا اختيارولے شى.چه د پخوانو پيغمبرانوعليهم السلام په حالاتو باندے دده حالات منطبق كړے شى.او اوكتلے شى.چه د نبى كريم ﷺ نه وړاندے حضرت نوح عليه السلام تشريف راوړے وو .حضرت ابراهيم عليه السلام تشريف راوړے وو.اوداسے دهغوى نه پس نور ډير پيغمبران مبعوث شوى وو.نوددغه ټولو پيغمبرانو په حالاتو دے د نبى كريم ﷺ حالات منطبق كړے شى.كه منطبق وى.نو د نبى كريم رسالت دے تسليم كړے شى.اوكه منطبق نه وى.نو رد دے كړے شى.

بيا كه په آيت باندے غوراوكړے شى.نو﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنۢ بَعْدِهٖ﴾ نوپه دے كښے ،،ان، حرف تحقيق دے.اوبيا جمله اسميه ده.كومه چه په استمرار اوثبوت باندے دلالت كوى.اوضمير هم د جمع متكلم راوړلے شوے دے.اوپه مسند فعلى باندے مسند اليه مقدم كړے شوے ده.په دے ټولو خبروپه كلام كښے يو قوت پيدا شو.اوكلام ډير تاكيدى شو.اواوس مطلب دا شو.چه يقيناً مونږ تا طرف ته بعينه هم هغه شان وحى نازل كړے ده.لكه څنګه چه مونوح عليه السلام او نورو پيغمبرانو ته ليږلے وه.

بيا په آخر كښے ئے فرمائى.﴿وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوسٰى تَكْلِيمًا﴾ چه الله تعالى د موسى عليه السلام سره خبرے كړے وے.دغه شان د نبى كريم ﷺ حالات د نورو پيغمبرانو دحالاتو سره منطبق شول.

البته دا دالله تعالى حكمت او مصلحت دے.چه كله هغه كتاب نازلوى.اوكله د الهام اوالقاء في القلب په ذريعه وحى نازله وى.اوكله هغه ،،ملك،، يعنى فرشته د وحى سره راليږى.نو د يهوديانو دا وينا چه د موسى عليه السلام نه پس په چا باندے كتاب نه دے نازل شوے.يادا خبره چه د نبوت دپاره د كتاب نزول ضرورى دے.دا خبره د منلو قابله نه ده.

**په ايت كښې د تشبيه نوعيت** بيا په دے باندے پوهه شئ.چه په آيت كښے دا فرمائيلى شوى دى.چه ﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنۢ بَعْدِهٖ﴾ كښے دا تشبيه خو يا د وحى په ټولو

صفاتو كنبے ده.يعني چه څنګه په نورو پيغمبرانو عليهم السلام باندے وحي نازليدله.نوهم دهغه صفاتو سره په تا باندے هم وحي نازل شوے ده.يا دا تشبيه په امر اول كنبے ده.يعني لكه څنګه چه په نورو پيغمبرانو عليهم السلام باندے په اول كنبے وحي د خوبونو په ذريعه نازل شوے وه.دغه شان ستا د وحي شروع هم د خوب نه اوشوه.ابونعيم رحمه الله په دلائل النبوة كنبے په حسن سند سره د حضرت علقمه بن قيس رحمه الله نه نقل كړى دى.چه ((إن أول ما يؤتى به الأنبياء في المنام، حتى تهدأ قلوبهم ثم ينزل الوحي بعد في اليقظة)) (۱)

**د آيت د ذكر كولو مقصد** مونږ وړاندے عرض كړے وو.چه امام بخارى رحمه الله په خپل مقصد باندے لكه څنګه چه احاديث نبوى راوړى.دغه شان قرآنى آياتونه هم په دے غرض باندے راوړى.اودلته كنبے دا چه امام بخارى رحمه الله د نبى كريم ﷺ رسالت اوپه دوى باندے د نازل شوے وحي حقيقت ثابتوى.

دے سره تاسو په دے هم پوهه شئ.چه ددے آيت په ذريعه د وحي عظمت ثابتول هم غوارى.هغه داسے چه دا وحي د انسانى عقل پيداوار نه دے.دا وحي د علم انسانى نتيجه نه ده.بلكه دا وحي دالله تعالى پيغام دے.اود هغه كلام دے.چه خاوند د عظمت او لوئ دے.هغه د مخلوق دهدايت دپاره د شروع نه وحي راليږى.محمد ﷺ ته هم دغه د عظمت اولوئ لوئ ذات وحي راليږلے ده.نو ددے وحي عظمت اومنئ.اودده تابعدارى اوپيروى اوكړئ.

په يو آيت كنبے ارشاد خداوندى دے ﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمْ بُرْهَانٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُبِينًا﴾ (۲) دلته كنبے وحي ربانى قوى حجت ګرځولے شوے دے.ځكه چه ،،برهان،، قوى حجت ته وائى.بيا دلته د ،،نور،، سره كوم چه په خپله روښانه وى.د ،،مبين،، صفت زياتى شوے دے.دا صرف ددے دعظمت او افتخاريت خودلو دپاره ده.

بهرحال دلته امام بخارى رحمه الله دا آيت ذكر كړلو.اود دوى مدعا د حديث رسول او د وحي عظمت او اهميت ثابتول دى.ذكر شوے آيت په دے مدعا باندے مكمل دلالت كوى.

**په آيت كنبے دحضرت نوح عليه السلام د تخصيص وجه** دحضرت نوح عليه السلام تخصيص په باره كنبے علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه شارحينو رحمهم الله په دے كنبے دوه وجوهات بيان كړى دى.

① بعضے حضرات فرمائى.چه د حضرت نوح عليه السلام تخصيص ځكه اوشو.چه هغه اولنے صاحب شريعت نبى وو.ځكه چه حضرت شيث عليه السلام اوادريس عليه السلام پيغمبران وو.خو رسولان نه وو.

② دويمه وجه دا بيان شوے ده.چه حضرت نوح عليه السلام هغه پيغمبرو.چه دهغوى د وحي نه منلو په وجه دهغه په قوم باندے عذاب راغلے وو.حالانكه دهغوى نه وړاندے په چا باندے عذاب نه وو راغلے.لكه چه د حضرت نوح عليه السلام ذكر ئے اوكړلو.نو په دے كنبے قريشو ته تنبيه

---

(۱) اوګورئ: فتح البارى (۹/۱)_

(۲) سورة نساء:۱۷۵)

ورکړه.که تاسو دمحمد ﷺ د وحي مخالفت اوکړلو.نولکه څنګه چه د حضرت نوح عليه السلام په قوم باندے عذاب راغلے وو.دغه شان به تاسو هم راشي.
علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه عالمانو رحمهم الله اګرچه دا دواړه توجيهات کړی دی. خو دواړه قابل نظر دی.
په اولني جواب کښے دا قباحت دےچه دا خبره ټيک نه ده.چه حضرت نوح عليه السلام اولنے نبي مشرع دے.بلکه حضرت آدم عليه السلام د ټولو نه اولنے رسول وو.هغوی ته د هغوی اولاد طرف ته شريعت ورکړے شوے وو.اوراليږلے شوے وو.بيا دحضرت آدم عليه السلام نه ټوله ذمه واری حضرت شيث عليه السلام اوچته کړه.نوهغوی هم نبي مرسل وو .بياحضرت ادريس عليه السلام دقابيل اولاد طرف ته ليږلے شوے وو.روستو بيا هغوی آسمان ته اوچت کړے شو.
د دويم جواب په باره کښے ونيلي شوی دی.چه دا خبره هم صحيح نه ده.چه د ټولو نه اول عذاب دحضرت نوح عليه السلام په قوم باندے نازل شوے وو.بلکه قابيل چه کله هابيل قتل کړلو.نو حضرت ادريس عليه السلام د حضرت آدم عليه السلام د وصيت مطابق قابيل ته سزا ورکړے وه.ګرفتار کړے شو.اوپه هتکړو کښے بنديوان کړے شو.بيا په زندان کښے په حالت د کفر مړ شو.لکه چه عذاب دحضرت نوح عليه السلام نه وړاندے نه موجود وو.نودا دواړه توجيهات ټيک نشي ګرځولے.
ددےنه پس علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه په حقيقت کښےدحضرت نوح عليه السلام تخصيص ددے وجے شوے دے.چه نوح عليه السلام آدم ثاني دے.يعني کله چه دنوح عليه السلام قوم دهغوی مخالفت اوکړلو.نو دطوفان په شکل کښے په هغوئ باندے عذاب راغلو.په هغے کښے ټول خلق هلاک شوی وو.دابن اسحاق رحمه الله د قول مطابق د ښځو نه علاوه صرف لس کسه سړی پاتے شوی وو.کوم چه دحضرت نوح عليه السلام په کشتئ کښے سواره وو.امام مقاتل رحمه الله فرمائي.چه ټول اويا کسان وو.اوابن عباس رضي الله عنه فرمائي.چه ټول اتيا کسان وو.په دے کښے دحضرت نوح عليه السلام درے ځامن ،سام، حام، يافث هم وو.د طوفان نه پس ددے درے واړو نه علاوه نور هم وفات شو.اودهغوی څه نسل پاتے نشو.اوچه دا درے واړه وړاندے لاړلو.نو نسل ئے راروان دے.اوپه ټوله دنيا کښے آباد شو.اودغه شان حضرت نوح عليه السلام د آدم عليه السلام نه پس دوباره د دنيا آبادولو سبب جوړ شو.نوځکه ورته آدم ثاني وائي.په دے وجه ددوی تخصيص دلته کښے اوکړے شو.(١)
**دعلامه عيني رحمه الله په قول باندې اشکال** په دے باندے اشکال کيږی.که د آدم ثاني د وجے د حضرت نوح عليه السلام تخصيص شوے دے.نوبيا به د اول آدم عليه السلام ذکرشوے وو.دهغوی د ذکر کولو نه ولے اعراض اوشو.ثاني خو د دويم نه پس وی.نوځکه د اول ذکر دلته کښے غوره وو؟
بيا دعلامه عيني رحمه الله دا ونيل.چه حضرت آدم عليه السلام هم رسول وو.دا خبره ټيک نه ده.ځکه چه امام بخاری رحمه الله په کتاب الانبياء کښے حديث د شفاعت ذکر کړے دے.په هغے کښے دی.چه د

---

(١٣١) اوګورئ عمدة القاری (١٦/١) بيان التفسير)

شفاعت د درخواست دپاره به خلق حضرت نوح ﷺ ته راشي او ورته به اووائي چه «يا نوح! أنت أول الرسل إلى أهل الأرض وسماك الله عبداً شكوراً»(١)
هم په دے طريقه په كتاب الرقاق كښے دحديث شفاعت لاندے دحضرت آدم ﷺ قول منقول دے «ايتوا نوحاً أول رسول بعثه الله ....» (٢) ددے دواړو حديثونو په رڼړا كښے حضرت آدم ﷺ ..رسول.. يا ..اول الرسل.. گرځول ټيك نه دى.
دلته يو اشكال دا كيږى چه په بخارى كښے يو روايت داسے هم موجود دے چه په هغے كښے حضرت نوح ﷺ اول نبى گرځولے شوے دے دحضرت انس ﷺ روايت دے «ولكن ائتوا نوحاً أول نبي بعثه الله تعالى إلى أهل الأرض»(٣) دلته دوه اشكال دى.
اول اشكال دا چه حضرت نوح ﷺ د دے حديث په رڼړا كښے اول نبى دے نو لازميږى چه دوى نه وړاندے چه حضرت آدم .حضرت شيث او حضرت ادريس عليهم السلام تير شوى دى هغه نبيان نه وو؟
دويم اشكال دا دے چه په دے حديث كښے دوى اول نبى گرځولے شوے دے . حالانكه ددے نه وړاندے چه كوم حديثونه ذكر شوى دى. د هغے نه ..اول رسول.. معلوميږى؟
ددے جواب دا دے چه «أول نبي بعثه الله تعالى» نه مراد دے «أول نبي بعثه الله تعالى بعد الطوفان» يعنى د طوفان نه پس چه د ټولو نه اولنے نبى مبعوث شوے دے
.هغه حضرت نوح ﷺ دے نوهغوى ته اوليت په دے اعتبار سره حاصل دے نو د حضرت آدم حضرت شيث اوحضرت ادريس عليهم السلام د نبوت نه په كښے انكار نشته.
دويم جواب دا وركړے شوے دے چه «أول نبي بعثه الله» نه مراد «أول نبي بعثه الله إلى قوم هلكوا وعذبوا لعدم الإيمان» يعنى دا هغه اولنے پيغمبر دے چه ددوى قوم ته دايمان نه راوړلو په وجه عذاب ملاؤ شوے وو .دحضرت آدم. حضرت شيث اوادريس عليهم السلام قومونو ته عذاب نه دے ملاؤ شوے.اوس څه اشكال باقى پاتے نشو .
علامه عينى رحمه الله يوه خبره دا كړے ده.چه دټولو نه وړاندے د عدم ايمان په وجه د حضرت نوح ﷺ قوم ته عذاب نه دے ملاؤ شوے.بلكه حضرت شيث ﷺ د حضرت آدم ﷺ د وصيت مطابق قابيل بنديوان كړلو .اوسزا ئے ورته وركړه .اوپه حالت د كفر كښے مړ شو .
دلته څو خبرے محل د نظر دى.
كه قابيل ته سزا وركړے شوے وى.نوحضرت آدم ﷺ په خپله ولے نه وركوله . حضرت شيث ﷺ ته د حكم كولو څه وجه وه؟

---

(١) بخارى شريف (٤٧٠/١) كتاب الأنبياء، باب قول الله عزوجل ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ ﴾_
(٢) صحيح بخارى (٩٧١/٢) كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار)_
(٣) صحيح بخارى (٩٧١/٢) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى:﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ () إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾_

دويمه خبره داچه كه قابيل ته سزا وركړے شوے وه.نودا يوه شخصي معامله وه.او دلته دټول قوم خبره كيږي.دحضرت آدم، شيث، اوادريس عليهم السلام په زمانه كښے د عدم ايمان په وجه يو قوم ته عذاب نه دے وركړے شوے داخصوصيت صرف دنوح عليه السلام دے چه دهغوى د قوم دعدم ايمان په وجه پرے عذاب راغلو.نو د حضرت شيث عليه السلام قابيل ته د سزا وركولو ذكر دلته مناسب نه دے.ځكه چه زمونږ خبره دهغه عذاب په باره كښے ده كوم چه په ټول قوم باندے راغلے وى.دانه چه يو كس ته سزا وركړے شوے وى.

يواشكال دا هم راځي.چه علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه د قابيل انتقال په حالت د كفر كښے شوے وو.نودا خبره هم قابل تسليم نه ده.ځكه چه هغه د قتل عمد ارتكاب كړے وو.او قتل عمد د اهل السنة والجماعة په نيز يقيناً كفر نه دے.

بيا ددے نه علاوه شاه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائيلي دى.چه كفر خو د قابيل په نسل كښے د شپږو نسلو نه پس پيدا شوے وو.(۱)

**دحضرت نوح عليه السلام د تخصيص په باره كښې د حضرت شيخ الهند رحمه الله ارشاد** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي.چه لكه څنګه په انسان باندے طفوليت،ځواني او شيخوخت راځي.دغه شان په دنيا باندے هم دا درے واړه دورونه راځي.

د آدم عليه السلام نه دا دنيا پيدا شروع شوے ده.د هغوى نه پس حضرت شيث عليه السلام تشريف راوړلو اودهغوى نه پس ادريس عليه السلام دازمانه لكه چه د طفوليت وه.لكه څنګه چه ماشوم ته په اول كښے وړے وړے خبرے،د خبرو آداب، د ناسته پاسته آداب،اود معاشرت آداب خودلې شى. څه سخت حكم ورته نشي وركولے.دغه شان ددے پيغمبرانو عليهم السلام په زمانه كښے به وحي عام طورد تكويني امور په باره كښے وه.دامور تشريعي اوتكليفي وجود وو.خو ډير كم. الله تعالى حضرت آدم عليه السلام ته په جنت كښے پيدا كيدونكوټولو څيزونو تخم وركړے وو.دهغه د كرلو طريقه ئے ورته خودلے وه.د كورونو جوړولو طريقے ئے ورته خودلے وے.دجامو ګنډلو طريقه ئے ورته خودلے وه.دغه شان ئے ورته د نورو ډيرو څيزونو چل خودلے وو.

كله چه د حضرت نوح عليه السلام دور راغلو.نو د ځوانئ زمانه شروع شوے وه.كه چه د ځوانئ وخت راشي.نوذمه وارياني هم پيدا كيږي.نوځكه د حضرت نوح عليه السلام په دور كښے په امورتشريعيه او تكلفيه كښے ترقي اوشوه.حضرت نوح عليه السلام ترډيرے زمانے پورے دخپل قوم داصلاح كوشش كولو.هغوى به ورته د عزت اووقار اود دين داصولو تعليم وركولو.اوهغوى به وريورے توقے اومسخرے كولے.

حضرت نوح عليه السلام هغوى ته د توحيد دعوت وركړلو.نوهغوى دے په كانړو اوويشتلو .ددے صورت حال نتيجه دا شوه.چه الله تعالى د حضرت نوح عليه السلام په قوم باندے خپل عذاب راوليږلو.

---

(۱) اوګورئ فيض البارى (۳/۱)_

منشا دا چه دحضرت نوح ﷺ د زمانے نه د خوانئ دور شروع شو.د امورتشريعيه او تكليفيه وحي زياته نازليدل شروع شو بيا ددے وحي په مخالفت باندے قوم ته عذاب وركړے شو.

دخوانئ دا دور دحضرت نوح ﷺ نه شروع شو.او په حضرت ابراهيم ﷺ باندے ختم شو.اوددے ځائے نه د شيخوخت دور شروع كيږي.

هم دا وجه ده چه دحضرت ابراهيم ﷺ د دور نه چه دعلوم او معارفو كومے چينے راوخي دا وړاندے نه وے.حكيمان او فلسفيان چه د حضرت ابراهيم ﷺ نه پس څومره پيدا شوي دي دهغوي نه وړاندے داسے نه وو پيدا شوے.

بهرحال د حضرت ابراهيم ﷺ د زمانے نه په علومو كښے ترقي اوشوه.روحانيت ورځ په ورځ په ترقئ روان وو.تردے چه د نبي كريم ﷺ په بعثت باندے علوم او معارف او روحانيت خپل كمال ته اورسيدلو.

كله چه د نبي كريم ﷺ په ذريعه د علومو تكميل اوشو.اوروحانيت انتها ته اورسيدلو نو ضروري شوه.چه په دوي كښے دا د كاملے درجے صفات پيداكړے شي .چه كوم چه دے انتها سره مناسبت لري.

نو نبي كريم ﷺ ته كلامي وحي وركړے شوه.كومه چه دانساني علم د ارتقاء آخري پوړئ ده.اوددے نه د علم اوچته درجه نشته.اوسروركائنات نبي كريم ﷺ ته دا كلامي وحي اوشوه.حضرت موسى ﷺ ته يو ځل نه بلكه په تسلسل سره شوے وه.اوبيا په هغه وحي كښے داسے وزن كيخودے شو.چه كله به په دوي باندے وحي راتله.نودوي به په سخته يخنئ كښے خولے خولے شو.كه ددوي جسم مبارك به دبل چا په بدن باندے وو.نوهغه سړے به هم دے وزن زغملو ته تيار نه وو.اوهغه به دا وزن نشوزغملے.

بيا ددے اثرات دومره زيات اوژور شول.چه دبلے وحي وسعت او ژوروالے دومره نه وو.صرف: دريويشت كالو موده دوي ته وركړے شوے وه.چه په دے كښے ديارلس كاله دوي په مكه معظمه كښے تير كړل.دلته ماحول ډيرناموافق وو.ددے نه پس بيا نبي كريم ﷺ خپل مركز بدل كړلو.اودوي مدينے منورے ته تشريف يوړلو.د مدينےمنورے اولنے دور هم په اول كښے ډير دكشالو وو.دصلح حديبيه په وجه څه د اطميان اوآسانتيا فضا پيدا شوه.نوددے وحي اثرات خوارۀ شول.اوحيرت ناك وسعت ئے ښكاره كړلو.يعني خلق ډلے ډلے په اسلام كښے داخليدل شروع شول.او پوره جزيرة العرب په دغه څلورو كالو كښے داسلام د اثر لاندے راغله.

بيا دريويشت كاله پس څو نبي كريم ﷺ وفات شو خوددے وحي اثراتو ،ايشياء ،يورپ بلكه دټولے دنيا ټول ملكونه متاثره كړل.اود علم ،حكمت، اومعرفت سلسله ترننه پورے وسعت اختياروي.اوقيامته پورے به انشاء الله د دے اثرات خوريږي.

نوحضرت شيخ الهند ﷬ فرمائي چه په دے تشبيه كښے په حقيقت كښے دے طرف ته اشاره ده.چه څنګه حضرت نوح ﷺ ته وحي شوے وه.نوپه هغے كښے د تكليفاتو اوتشريعاتو عنصر غالب وو.اوقوم چه كله مخالفت اوكړلو.نوپه هغوي باندے د وعيد نه پس عذاب نازل شوے وو.دغه شان د رسول الله ﷺ وحي چه ډيره اعلى او اوچته او اكمله ده.په دے كښے هم

تشریعات غالب دی. که ددے مخالفت اوشو. نو هم په دغه طریقه به په عذاب کښے گرفتار شی. لکه څنګه چه د نوح علیه السلام قوم گرفتار شوے وو. (۱)

# الحديث الأول

[۱] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيُّ أَنَّهُ سَمِعَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ اللَّيْثِيَّ يَقُولُ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِءٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوْ إِلَى امْرَأَةٍ يَنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ [۶۹۵۳، ۶۶۸۹، ۵۰۷۰، ۳۸۹۸، ۲۵۲۹، ۵۴]

**قوله حدثنا** دلته کښے دا خبره زده کړئ چه په سند کښے کله «حدثنا» یا «أخبرنا» راشی. نو هلته ددے نه وړاندے «وبه قال» وئیلی شی. کوم چه د «بالسند المتصل منا إلى الإمام الهمام الحافظ الحجة أمير المؤمنين في الحديث محمد بن اسماعيل بن المغيرة الجعفي البخاري قال:» مخفف دے. غوره دا ده. چه کله سبق شروع شی. نو یوځل دا پوره عبارت اووئیلی شی. او ددے نه پس په هر حدیث کښے «وبه قال» باندے اکتفا کولے شی.

**په «حدثنا» او «اخبرنا» کښې فرق** «حدثنا» د تحدیث نه دے. تحدیث دا دے چه استاذ بیان کوی. اوشاګرد اوری. او «أخبرنا» د «إخبار» ځنے دے. او «إخبار» دا دے چه شاګرد لولی. او استاذ اوری. که د یوے ډلے وړاندے استاذ لوستل کوی. نو «حدثنا» به وائی. اوکه دخانله سرې په مخ کښے ئے وئیلی وی. نو «حدثني» به وئیلی شی.

دغه شان که د جماعت په موجودګئ کښے قرات کیږی. نو «أخبرنا» به وائی. اوکه قاری یواځے وی. نو هغه به «أخبرني» وائی. ددے طریقو التزام مناسب دے (۲)

باقی پاتے شوه دا خبره چه په دے دواړو کښے آیا مساوات دے یا یو ته په بل باندے فضیلت حاصل دے؟ نو ددے بحث به انشاءالله وړاندے په کتاب العلم کښے راشی.

**الحمیدی** دا دامام بخاری رحمه الله استاذ ابوبکرعبدالله بن الزبیربن عیسی القرشی الاسدی الحمیدی المکی دے. دوی دامام شافعی رحمه الله د هم عصر سره سره دحدیث په دطلب ملګرے هم دے. دامام شافعی رحمه الله نه دوی د فقه علم حاصل کړے وو. اوهغوی سره ئے د مصر سفر کړے وو. اوبیا چه کله هغوی وفات شو نومکے معظمے ته واپس راغلو. د دوی وفات په کال ۲۱۹هـ

---

(۱) اوګورئ ایضاح البخاری (۱۵، ۵۲)_

(۲) اوګورئ نزهة النظر فی توضیح نخبة الفکر (ص. ۱۱۷، ۱۱۸) وقفوا الأثر فی صفو علوم الأثر (ص. ۱۱۲)

کښے شوے وو (۱) ددوی په تصانیفو کښے «مسند الحمیدی» زیات مشهور دے. اود علامه حبیب الرحمن اعظمی رحمه الله د تحقیق سره په دوو جلدونو کښے شائع شوے دے.

ددے نه علاوه یو «حمیدی» بل هم دے. اودهغوی نوم «ابوعبدالله محمدبن ابی النصرفتوح الحمیدی الاندلسی» دے. دے داولنی حمیدی نه روستو دے. د دوی کتاب «الجمع بین الصحیحین» مشهور دے. په هغے کښے دوی د صحیحینو.. احادیث جمع کړی دی. ددوی وفات په ۴۸۸ھ کښے شوے دے. (۲)

**یوه نکته** دامام بخاری رحمه الله هم عجیبه اشارات وی. دلته کښے هم یوه عجیبه لطیفه ده. هغه دا چه امام بخاری رحمه الله دټولونه وړاندے دامام حمیدی رحمه الله روایت ذکر کړلو. اودوی قریشی دے. اود رسول الله ﷺ ارشاد دے. «قدموا قریشاً» (۳) دغه شان نبی ﷺ فرمائیلی دی. «الأئمة من قریش» (۴) لکه چه امام بخاری رحمه الله دا روایات د نظر وړاندے ساتلی دی. اودخپل استاذ حمیدی رحمه الله نه ئے د کتاب شروع اوکړله.

بیا دوی مکی هم دی. لکه چه د دوی شیخ سفیان بن عیینه رحمه الله چه مکی دے. د دے روایت نه پس دویم روایت د «عبدالله بن یوسف أخبرنا مالك» په سند سره مروی دے. اوامام مالک رحمه الله مدنی دے. چونکه اسلام په مکه کښے راغلے وو. اوپه مدینه منوره کښے ښکاره شوے وو. ابتداء ئے د مکے مکرمے نه شوے وه. اوترقی ئے په مدینه منوره کښے شوے وه. لکه چه د وحی اولنے منزل مکه او دویم مدینه منوره ده. نوځکه ئے اولنے منزل مکه مکرمه او دویم منزل مدینه منوره ده. نوځکه ئے اولنے روایت دمکی استاذانو اودویم روایت دمدنی استاذانونه ذکر کړلو. بیا چه امام بخاری رحمه الله په خپل کتاب کښے دټولو نه اولنے سند کوم ذکر کړے دے. په هغے کښے ددوی استاذ امام حمیدی دے. اودکتاب په آخری سند کښے د دوی استاذ.. احمدبن اشکاب.. دے. د دواړو په نومونوکښے حمد واقع دے. په دے کښے دے طرف ته اشاره ده. چه دامام بخاری رحمه الله په دے کتاب کښے داول نه واخله ترآخره پورے هر څیز هم محمود دے. دغه شان دے طرف هم اشاره ده. چه انسان ته په خپل ټول ژوند کښے دالله تعالی په حمد اوثنا

---

(۱) اوګورئ فتح الباری (۱۰/۱)_

(۲) اوګورئ کشف الظنون (۵۹۹/۱)_

(۳) رواه الطبرانی وفیه ابومعشروحدیثه حسن. وبقیة رجاله رجال الصحیح .قاله الهیثمی أنظرمجمع الزوائد (۲۵/۱۰) کتاب المناقب باب فضائل قریش وانظرأیضاً التخلیص الخبیر.(۳۶/۲) کتاب صلاة الجمعة رقم. ۵۷۹)

(۴) رواه احمد فی مسنده (۱۲۹/۳. ۱۸۳) من حدیث أنس بن مالک رضی الله عنه)_

کښې مشغول وی تردے چه منتها ئے په جنت اوشی.کوم چه ((دارالحمد)) دے هلته به خلق ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ﴾ وائی.(۱)

**قوله حدثنا سفیان:** دا سفیان بن عیینه بن میمون ،ابومحمد الکوفی رحمه الله دے. ددوی وفات په ۱۹۸ھ کښې شوے وو.(۲)

په دے نوم دویم بزرګ سفیان بن سعید بن مسروق ثوری رحمه الله دے.هغه د دوی نه وړاندے او ددوی استاذ دے.دهغوی وفات په ۱۶۱ھ کښې شوے دے.(۳)

**قوله حدثنا یحی بن سعید الانصاری :** دا یحیی بن سعید بن قیس بن عمرو الانصاری المدنی دے.د دوی قرنیکه قیس بن عمروصحابی رضی الله عنه وو اودوی په خپله په وړو تابعینو رحمهم الله کښې دے.(۴)دابوذر په نسخه کښې دلته د ((حدثنا)) په ځائے ((عن یحیی...))دے.(۵)

**قوله اخبرنی محمد بن ابراهیم التیمی رحمه الله:** محمدبن ابراهیم بن حارث بن خالد تیمی .د اوساط تابعینو رحمهم الله کښې د دوی شمار کیږی.(۶)

**قوله سمع علقمة بن وقاص اللیثی :** دے په کبارو تابعینو رحمهم الله کښې دے تردے چه بعضے حضراتو صحابی رضی الله عنه ګرځولے دے.خو دا خبره ټیک نه ده.صحیح دا ده.چه دوی په کبار تابعینو رحمهم الله کښې دی.(۷)

ددے حدیث په لطائفو کښې یوه لطیفه دا هم ده.چه په دے کښې درے تابعیان مسلسل راغلی دی.اوکه دعلقمه رحمه الله صحابیت ثابت شی.نوبیا به په کښې دوه تابعیان اودوه صحابیان شی.((تابعی عن تابعی))او((صحابی عن صحابی)).(۸)

یوه بله لطیفه په دے سند کښې دا ده.چه امام بخاری رحمه الله په دے ځائے کښې هغه ټول الفاظ استعمال کړی دی.کوم چه په محدثینو کښې رائج دی.یعنی ((تحدیث))((اخبار)) او((سماع)) او ((عنعنه)) البته دا ده.چه دا عنعنه د ابوذر رحمه الله د روایت مطابق ده.(۱)

---

(۱) ﴿وَاٰخِرُ دَعۡوٰىهُمۡ اَنِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ﴾ یونس: ۱۰)_

(۲) اوګورئ: عمدة القاری (۱/ ۶۷) _

(۳) اوګورئ: خلاصة الخزرجی (ص.۱٤۵)_

(۴) فتح الباری (۱/ ۱۰)_

(۵) پورتنئ حواله)_

(۶) پورتنئ حواله)_

(۷) پورتنئ حواله)_

(۸) پورتنئ حواله)

**قوله**: سمعت عمر بن الخطاب رضی الله عنه: دوی په خلفاء راشدینو رضی الله عنهم کښې دویم خلیفه امیرالمومنین عمر بن الخطاب رضی الله عنه دے چه عشره مبشره (یعنی هغه لس خوش قسمته حضرات چاته چه په یومجلس کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرفه دجنت زیرے ملاؤ شوے دے) کښې دے د دوی مناقب او فضائل بې شمیره دی (۲).

## آیا دامام بخاری رحمه الله په نیز د صحت حدیث دپاره په هره طبقه کښې د دوو راویانو وجود ضروری دی؟

امام حاکم رحمه الله فرمائیلی دی چه امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې کوم روایت نقل کوی نو دا خیال ساتی چه دا غریب نه وی یعنی چه په دے کښې په څه مرحله کښې هم تفرد د راوی نه وی راغلے بلکه په هره طبقه کښې کم ازکم دوه راویان ضرور وی نو دا ضروری گڼړی (۳)
خودا دامام بخاری رحمه الله اولنی روایت دے هم ددے نه دامام حاکم رحمه الله د خیال تردید کیږی ځکه چه په دے کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کولو کښې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه متفرد دے او حضرت عمر رضی الله عنه نه په نقل کولو کښې حضرت علقمة بن وقاص رحمه الله متفرد دے او ددوی نه محمد بن ابراهیم روایت کوی دے هم متفرد دے بیا یحیی بن سعید دخپل استاذ محمد بن ابراهیم رحمه الله نه په روایت کولو کښې متفرد دے البته د یحیی بن سعید نه پس په دے کښې د راویانو کثرت پیدا شوے دے.
ددے وجے علامه حازمی رحمه الله او حافظ محمد بن طاهر مقدسی رحمه الله نه علاوه نورو ډیرو محققینو دحاکم رحمه الله قول رد کړے دے علامه حازمی رحمه الله خو په «شروط الأئمة الخمسة» کښې د ډیرو مثالونو په ذریعه دا ښکاره کړے ده چه دا شرط مقبول نه دے (۴)

په بخاری کښې داولنی حدیث پشان ددے آخری حدیث «کلمتان حبیبتان إلی الرحمن، ثقیلتان فی المیزان، خفیفتان علی اللسان، سبحان الله وبحمده سبحان الله العظیم» هم غریب دے حالانکه تاسو پیژنئ چه دبخاری شریف په تصنیف کښې امام بخاری رحمه الله څومره اهتمام کړے دے بیا خاص کړددے په اولنی اوآخری حدیث کښې به ئے څومره اهتمام کړی وی ددے باوجود دا وئیل چه امام بخاری رحمه الله غریب روایت نه نقل کوی بیخی غلطه خبره ده.
ددے ځائے نه یوه خبره دا هم معلومه شوه چه په سند کښې دغرابت وجود د حدیث د صحت دپاره نقصانی نه دے یوحدیث دغرابت سره صحیح هم کیدے شی
**یوه لطیفه** بیا دلته یوه عجیبه لطیفه دا ده چه د راوی تصریح دا ده چه دحضرت عمر رضی الله عنه نه دا روایت دوی د منبر دپاسه اوریدلے دے اگرچه دلته ددے خبرے صراحت نشته چه نبی صلی الله علیه وسلم

---

(۱) اوگورئ پورتنئ حواله)_
(۲) ددوی د حالاتو دپاره اوگورئ الإصابة (۲/ ۵۱۸ـ ۵۱۹)_
(۳) اوگورئ شروط الأئمة الستة للمقدسی (ص ۱۷) وشروط الأئمة الخمسة للحازمی رحمه الله (ص ۳۰)_
(۴) اوگورئ شروط الأئمة الخمسة للحازمی رحمه الله (۷۵تا ۷۷)

هم د منبر دپاسه دا حديث اورولے وو خوامام بخاری رحمه الله دا روايت په خپل كتاب كښے په مختلفو ځايونو كښے نقل كړے دے.«كتاب الحيل باب فى ترك الحيل» كښے ئے تصريح كړے ده.چه حضرت عمر رضي الله عنه خطبه وركوله اودا حديث ئے بيان كړے وو.«سمعت رسول الله ﷺ يقول: ياأيها الناس...»

دلته كښے د«ياأيها الناس» عنوان په دےخبره دلالت كوى.چه نبى كريم ﷺ په مجمع كښے دا حديث بيان كړے دے.خو ددے باوجود د نبى ﷺ نه په حديث نقل كولو كښے حضرت عمر رضي الله عنه متفرد دے.(١)

بيا حضرت عمر رضي الله عنه په خپله په منبر دپاسه دا حديث بيانوى.خو ددوى نه روايت كونكے صرف علقمة رحمه الله دے.بيا دهغوى نه په روايت كولو كښے محمد بن ابراهيم تيمى متفرد دے. او په آخر كښے يحيى بن سعيد رحمه الله هم متفرد دے. په دے حديث كښے په تفرد باندے امام ترمذى. نسائى. بزار. ابن السكن. حمزة الكنانى رحمهم الله وغيره ډيرو حضراتو رحمهم الله تصريح كړې ده.(٢)

تردے چه علامه خطابى رحمه الله فرمائى.«ولا أعلم خلافاً بين أهل الحديث فى أن هذا الخبر لم يصح مسنداً عن النبى ﷺ إلا من رواية عمر بن الخطاب رضي الله عنه»(٣)

بيا بعضے حضراتو دا حديث متواتر ګرځولے دے خوصحيح دا ده.چه دا متواتر نه دے.البته متواتر معنوى دے.ځكه چه نيت اوددے په اهميت كښے ګڼراحاديث مروى دى.(٤)

البته د يحيى به سعيد رحمه الله نه پس په دے كښے تواتر پيدا شوے دے.حافظ محمدبن على بن سعيد النقاش رحمه الله وائى.چه د يحيى نه دا روايت په دوه نيم سوه سندونو سره مروى دے. حافظ ابوالقاسم ابن منده رحمه الله د درے سوو نه زيات نومونه شمارلى دى.دحافظ ابواسماعيل انصارى نه مروى دى.دوى فرمائى.چه ما داحديث د يحيى بن سعيد داووه سوو شاګردانو نه ليكلے دے.(٥)

---

(١) يعنى په صحت سره د بل چا نه مروى نه دے.البته څه معلول طرق دارقطنى رحمه الله اوابن منده رحمه الله وغيره ذكر كړې دى.چه دهغے په رڼڼا كښے دا حديث دحضرت عمر رضي الله عنه نه علاوه د خو نورو حضراتو نه هم مروى دے.اوګورئ: فتح البارى (١١/١) وأعلام الحديث للخطابى (١١١/١)_

(٢) فتح البارى(١١/١)

(٣) أعلام الحديث للخطابى رحمه الله بتحقيق الدكتور محمدبن سعد بن عبدالرحمن آل سعود (١١٠/١) الطبعة الأولى ١٤٠٩هـ المطابق ١٩٨٨م.

(٤) دتفصل دپاره اوګورئ فتح البارى (١١/١)_

(٥) پورتنئ حواله)_

خوحافظ ابن حجر رحمه الله دا تعداد لرے کړخولے دے فرمائي ما چه د طلب حدیث د زمانے نه
واخله تراوسه پورے ددے د طرقو کومه تتبع کړے ده نودهغے په نتیجه کښے ماته سل طرق
هم نه دي برابر شوی (۱) نودا به په مبالغه باندے محمول وی

خودا خبره دے په ذهن کښے وی چه ((من حفظ حجة علی من لم یحفظ)) حافظ رحمه الله ته د نه ملاویدو
مطلب دا نشي کیدے چه د نورو طرقو وجود نشته بلکه ممکن ده چه طرق موجود وی خو
حافظ رحمه الله ته نه وی ملاو شوے خکه چه ډیر کتابونه دحافظ رحمه الله دزمانے نه وړاندے ضائع
شوی وو دغه ډیرکتابونه داسے هم وو کوم چه ضائع شوے نه وو خوحافظ رحمه الله ته نه وو
رسیدلے والله اعلم

**دحدیث د ترجمة الباب سره مطابقت** په حدیث کښے به تاسو محسوس کړے وی چه امام
بخاري رحمه الله پوره حدیث نه دے نقل کړے ((فمن کانت هجرته إلی الله و رسوله فهجرته إلی الله و رسوله)) د
حصه دلته دحدیث نه غائبه ده دا بحث به انشاء الله تعالی وړاندے راشي چه دا حصه ئے
دلته ولے ذکر نکړه .؟

دلته قابل توجه خبره دا ده چه په دے حدیث کښے د ..وحی.. یا ..بدء الوحی.. څه ذکر نشته
نه خو ددے د ((کیف کان بدء الوحی)) سره څه ربط په پوهه کښے راځي او نه ددے د آیت ((إنا
أوحینا...)) سره څه تعلق معلومیږی نو بیا امام بخاري رحمه الله دا دلته ولے ذکر کړلو په دے باره
کښے څو توجیهات منقول دی.

۱) بعضے حضرات فرمائي چه دا حدیث امام بخاري رحمه الله دلته د خطبه په طور سره ذکرکړلو
خکه چه حضرت عمر رضی الله عنه دا په منبر دپاره د خطبے په دوران کښے بیان کړے وو. نوخکه امام
بخاري رحمه الله دا دخپل کتاب خطبه جوړه کړه .(۲)

خوبیکاره ده چه دا جواب تسلي بخش نه دے خکه که چرته خطبه جوړول ئے مقصود وو نود
..باب.. نه وړاندے به ئے ذکر کړے وو خکه چه کتاب خو د ((باب کیف کان بدء الوحی...)) نه
شروع دے داکومه طریقه ده چه کتاب دے شروع کړے شي اوخطبه روستو راوړلے شي.؟!

۱) بعضے حضراتو فرمائیلي دی چه امام بخاري رحمه الله په اصل کښے د تصحیح نیت طرف ته
اشاره کول غواړي او ددے مقصد دا دے چه لوستونکو له پکار دی چه په شروع کښے خپل
نیت صحیح کړي .(۳)

خودا خبره هم محل نظر ده خکه چه داصلاح نیت اوتصحیح نیت دپاره ضروری ده چه دا هم
د باب نه وړاندے وی مشکاة شریف تاسو ونیلے دے چه هلته د ..کتاب الایمان.. شروع
کولو نه وړاندے ئے دا حدیث راوړے دے دلته کښے هم که دوی د باب نه وړاندے ((إنما الأعمال

(۱) پورتنی حواله)_
(۲) تقریر بخاری (۱ ۷۷)_
(۳) پورتنی حوله)_

بالنيات» حديث ذكر كړے وو.نوموړی دا ونيلى شو . چه د اصلاح نيت د پاره يا د خطيے په طور ئے دا ذكر كړے دے.

() دريم جواب كوم چه يو لطيف جواب دے دا دے چه په حديث كښے ذكرد ..هجرت.. دے اوپه ترجمه كښے ذكرد ..بدءالوحى.. دے.خكه چه په حديث كښے «انما الأعمال بالنيات وانما لامرئ مانوى ،فمن كانت هجرته إلى دنيا يصيبها أوإلى إمرأة ينكحها فهجرته إلى ما هاجر إليه» دے.اوپه ترجمة الباب كښے دى «باب كيف كان بدء الوحى...» اوس موږ ته په هجرت كښے غور كول پكار دى.

د..هجرت.. معنى ده.د يو ځائے نه بل ځائے ته منتقل كيدل اوشرعى معنى ددے ده د معصيت نه طاعت طرف ته تلل.په حديث كښے دى.«المهاجر من هجر مانهى الله عنه» (١) الله تعالى چه كوم څيزونو نه منع كړے ده.هغه پريخودل ..هجرت.. دے.اوپريخودنكے ..مهاجر.. دے.

د مكے معظمے نه چه مدينے منورے ته چه هجرت فرض كړے شوے دے.دا ددے وجه چه په مكه كښے قيام په هغه وخت كښے په معصيت كښے شمارلے شو.نوهغه پريخودل اومدينے منورے ته منتقل كيدل لازمى شوى وو.

دهجرت دا معنى چه په پوهه كښے راغله.نو اوس پوهه شئ،چه هجرت دوه دى.

يوهجرت هغه دے.چه كوم چه نبى ﷺ د مكے نه غار حراء ته كړے وو.دهغے سلسله تقريباً شپږ مياشتے جارى وه.دوى به دعبادت دپاره خپل كور پريخودلو.اوغار حراء ته به ئے تشريف اوړلو..هلته به څو څو ورځے د نبى ﷺ قيام وو.كله چه به ورسره توښه ختمه شوه.نوحضرت خديجے رضي الله عنها به ورته توښه اوړله.

دويم هجرت هغه دے.كوم چه نبى ﷺ د مكے نه مدينے طرف ته كړے وو.اولنے هجرت د نزول وحى اوهدايت وحى ذريعه اوګرځيدله.اودويم هجرت د ظهور وحى اوغلبه وحى ذريعه اوګرځيدله.

دلته كښے امام بخارى رحمه الله ترجمه د ..بدايت.. قائمه كړه.اود ..هجرت.. حديث ئے نقل كړلو.دے خبرے ته داشارے كولو دپاره چه د ..بدايت.. وحى ذريعه هغه هجرت دے.كوم چه نبى ﷺ د كور نه غار حرا طرف ته كړے وو اوس په مناسبت كښے څه پتوالے پاتے نشو.خكه چه ترجمه د ..بدايت وحى.. قائمه شوے دے.اوپه دے كښے دهجرت د حديث ذكر شوے دے.كوم چه د بدء الوحى سبب دے.(٢)

() علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه د عمل دوه طرفه وى يو ..ورود من الله.. يعنى د الله تعالى د طرفه مكلف ګرځول.اوبل دمكلف د طرفه ددے صدور.

(١) صحيح بخارى كتاب الإمارة باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده رقم: ١٠)_

(٢) اوګورئ امدادالبارى (٤٣٢/٢)_

اول خيز يعني داعمالو ورود اود الله د طرفه دبندگانو مكلف جوړول.دا د وحي په ذريعه كيږي.چه فلانے عمل په تاباندے واجب شوے دے.ددے كول لازمي دي.اوفلانے عمل په تاباندے ممنوع اوحرام گرځولے شوے دے.اوچه افعال د مكلفينو نه صادريږي.نو ددے دپاره د نيت ضرورت وي چه مونځ كوي.نو نيت لازمي دے.چه زكاة وركوي.نو نيت لازمي دے دغه شان د روژے اود نورو عبادات محضه حال دے.

معلومه شوه چه ورود دعمل په ذريعه دوحي وي.او صدور د عمل په ذريعه د نيت .نو په ترجمة الباب كښے دوحي ذكر دے.او په حديث كښے دنيت.وحي د عمل اول طرف دے.او نيت ئے بل طرف دے.يعني چه ترڅو پورے د وحي راهنمائي نه وي.نود څه نيك عمل نه واقف كيدل ممكن نه دي.اوچه ترڅو پورے د دغه عمل

د كولو په وخت كښےنيت صحيح نه وي.نوهغه عمل به ناقابل قبول اوناقابل اعتبار وي.

اوس دترجمة الباب سره دحديث مناسبت بالكل ښكاره شو.څكه چه په ترجمة الباب كښے د وحي ذكر دے.كوم چه د ورود اعمال مبدا ده.اوپه حديث كښے د نيت ذكر دے.كوم چه د صدور اعمال مبدا ده.دعمل صدور دنيت په ذريعه وي.اوددے ورود دوحي په ذريعه وي نومناسبت ښكاره شو.(١)

() بعضے حضرات فرمائي.چه ددے حديث د ترجمة الباب داولني جزء «كيف كان بدء الوحي» سره مناسبت نشته.بلكه ددے د دويم جزء يعني قرآني آيت «إنا أوحينا...» سره مناسبت دے.

دا مناسبت په دے طريقه دے.چه ددے حديث په ذريعه امام بخاري رحمه الله د يوے داسے وحي مثال پيش كړلو. كومه چه ټولو پيغمبرانو عليهم السلام ته شوے وه. او هغه ده د نيت د تصحيح وحي.د كومے چه ټولو انبياؤ ته تلقين شوے وو.(٢)

() يوه توجيه دا كړے شوے ده.چه دا كتاب د وحي السنة دپاره وضع شوے دے.څكه امام بخاري د ..بدءالوحي.. نه ددے ابتداء اوكړله.بيا چونكه په وحي كښے د اعمال شرعيه بيان كيږي.نوځكه د ..حديث اعمال.. نه شروع اوشوه.(٣)

() يوه توجيه دا شوے ده.چه لكه څنگه وحي داسرار الهيه نه يو راز دے.چه الله تعالى ددے دپاره خپل خاص بندگان غوره كوي﴿ اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسٰلَتَهٗ ﴾ (٤) او ﴿ اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ ﴾ (٥) دغه شان دنيت اخلاص هم دالله تعالى د اسرارو نه يو راز دے.ددے دپاره هم د زړونو انتخاب كيږي.نولكه څنگه چه الله تعالى خپلو منتخبو بندگانو

---

(١) اوگوري: (١/١٣) وجه مناسبة الحديث مع الترجمة )_

(٢) امدادالباري (٢/٤٣٢)_

(٣) فتح الباري (١/١١)_

(٤) سورة أنعام:١٢٤)_

(٥) سورة حج:٧٥)_

ته كوى.دغه شان اخلاص هم خپلو خوښو بندګانو ته وركوى.په دے طريقه د ..وحى..د ترجمے د «اخلاص فى العمل» حديث سره مناسبت پيدا شو.

() يوه توجيه دا هم ده.چه لكه څنګه د وحى په ذريعه انشراح صدر حاصليږى.علوم ربانى .اسرار الهى.حقائق الهيه څرګنديږى دغه شان داخلاص په وجه شرح صدر نصيب كيږى.اود علومو او معارفو چينے روانيږى.لكه چه په حديث كښے راغلى دى .«ما أخلص عبد لله أربعين صباحا إلا ظهرت ينابيع الحكمة من قلبه على لسانه» (١) لكه چه ترجمه د وحى وه اوحديث د اخلاص او په دواړو كښے مناسبت موجود دے.

() يوه توجيه دا هم ممكنه ده.چه په اصل كښے وحى كيږى.دعمل دپاره اود عمل د صحت اوقبوليت دپاره نيت شرط دے.لكه چه په ترجمه كښے د وحى ذكر دے. كومه چه د اعمالو د بيان دپاره وى.اوپه حديث كښے دهغه اخلاص اونيت ذكر دے .كوم چه دعمل دصحت دپاره شرط دے.په دے طريقه په دواړو كښے مناسبت پيدا شو.

**د حضرت شيخ الهند رحمه الله توجيه** () حضرت شيخ الهند رحمه الله د مناسبت په باره كښے عجيبه خبره كړے ده.فرمائى.چه دا خبره خو معلومه ده.چه په وحى تشريعى او نبوت باندے كوم كسان فائز كولى شى. هغه دالله تعالى منتخب بندګان وى. ﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ﴾ (٢) او ﴿اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ﴾ (٣) نو نبوت يوه عهده ده.څه ډګرى نه ده.عهده خو مالك چه چاته وركوى.هغه ته ملاويږى.خو ډګرى هركس محنت اومشقت كوى اودحاصلولو كوشش ئے كوى.

منصب وهبى وى.اوډګرى كسبى.داسے كيږى.چه ډيرو كسانو يوه ډګرى حاصله كړے وى.خوعهده په هغوى كښے يو ته ملاويږى.كمشنر سره چه كومه ډګرى وى د هغے وجود د نورو سره هم ممكن دے.خو دكمشنرئ عهده صرف يو ته وركولے شى .هريو ته نه.

دغه شان نبوت هم يو ډير لوئے منصب اوعهده ده.كومه چه په زيات عبادت او رياضت سره نه حاصليږى.نود معتزلة اومتنبى قاديان دا خيال چه نبوت كسبى څيز دے .دا بالكل غلط دے.ددے تكذيب ذكر شوى نصوص كوى.

نو بيا چه لكه څنګه په دے كښے شك نشته.چه نبوت وهبى څيز دے.نو بيا په دے كښے هم شك نشته.چه كوم كس ته الله تعالى نبوت وركوى.نو په هغه كښے صفات حميده اوكمالات انسانيه په اعلى او اوچته درجه وى.يو خسيس اوبےكاره كس پيغمبر نشى جوړيدے.چاته چه دا منصب ملاويږى.په هغه كښے به دانسانيت داسے اعلى كمالات وى.چه دهغوئ په مقابله كښے به دنورو هيڅ حيثيت نه وى.

---

(١) الدرالمنثور (٢٣٧/٢) تحت تفسير قوله تعالى: ﴿أَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلَّهِ﴾_

(٢) سورة حج: ٧٥_

(٣) سورة أنعام: ١٢٤_

سرورکائنات رسول الله ﷺ الله تعالى په نبوت باندے سرفراز کړے دے اود ختم نبوت تاج ئے د دوی په سر باندے کیخودے دے دنبی ﷺ دیانت او شرافت د مسلمانو نه وو د دوی د صداقت او امانت په وجه به هرکس ددوی احترام کولو خوچه کله دوی دتوحید دعوت ورکړلو هم هغه خلق اوددوی د خپل خاندان خلق ددوی دشمنانان جوړ شول دوی ته به ئے سخت تکلیفونه ورکول دوی به ئے په لارو کوڅو کښے آزارول په کنړه او خان به ئے ورته تکلیفونه رسول د دوی په عبادت کښے به ئے رکاوټونه پیدا کول او ددوی په دعوت الی التوحید کښے به ئے خنډان پیدا کول

نبی ﷺ چه د قریشو دتکلیفونو نه تنګ شو چه طائف ته لاړلو هلته کښے دوی خلقو ته دعوت ورکړلو نو په وینو کښے رنګ بنګ کړے شو تردےچه حضرت جبرئیل ﷺ راغلو او عرض ئے اوکړلو چه ستا تول معاملات الله تعالى اوری اووینی دا د غرونو فرښته مسره تاسو ته راغلے ده.تاسو ورته حکم ورکړئ بیا «ملك الجبال» عرض اوکړلو یا رسول الله تعالى زه تاسو ته رالیږلے یم تاسو حکم اوکړئ که تاسو غواړئ نو زه به د دواړو غرونو په مینځ کښے دوی چیخرے کړم.

نبی ﷺ د ډیر لوئے شفقت مظاهره اوکړه.اودهغوی د نیست نابود کولو اجازت ئے ورنکړلو.(۱) بیا ئے مکے مکرمے ته تشریف یوړلو او بیا ئے دهغه ځائے نه مدینے منورے ته هجرت اوکړلو.په دے ټوله موده کښے د دوی په ژبه مبارکه باندے د شکایت یوحرف هم نه دے راغلے.د دوی د عزت،جان اومال دشمنانانو به هر وخت دوی ته تکلیفونه ورکول خو دوی صبر اوتحمل اختیار کړے وو.

مدینے منورے ته دهجرت کولو نه پس د جنګونو سلسله شروع شوه.اوهر وخت به هنګامی حالت وو.خود مکے د فتحے په موقع چه کله نبی ﷺ خپل دغه دشمن مغلوبه کړلو اوپه مکه مکرمه کښے د دوی حکومت قائم شو.نود قریشو یو یو سردار دوی ته مخامخ په یو قطار کښے اودریدل.اودوی ته په هغوی باندے پوره قدرت حاصل شو په دغه وخت کښے نبی ﷺ اوفرمائیل.﴿لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ اذهبوا فأنتم الطلقاء﴾ (۲) دنبی کریم ﷺ د خلق عظیم ددے نه زیات به څه ثبوت کیدے شی اوهغه به څومره عظیم الشان اخلاص وی چه دهغے په نتیجه کښے دا رحمت اوشفقت ښکاره شو ددے اخلاص اندازه لګول زمونږ د وس نه بهر ده

خلاصه دا چه بیشکه نبوت وهبی وی د کسب په دے کښے څه دخل نه وی.خوچه چاته نبوت ورکولے شی.نو پکار ده.چه په هغه کښے دکمال اعلی صفتونه موجود وی بیا دا دیاد ساتلو خبره ده.چه په صفاتو او کمالاتو کښے د ټولو نه اوچت صفت او دټولو نه لوئے کمال ,,اخلاص.. دے.کوم چه په نبی ﷺ کښے علی وجه الکمال موجود وو

(۱) اوګورئ پوره واقعه دپاره(البداية والنهاية (۲/۱۳۷)_

(۲) اوګورئ زادالمعاد مع تعلیقات (۳/۴۰۸) فصل فی الفتح الأعظم)_

امام بخارى رحمه الله ددے عبارت په ذريعه دے خبرے ته اشاره كوى چه رسول الله ﷺ ته كومه وحى رالیږلے شوے وه اوكوم نبوت چه دوى ته وركړے شوے وو دا خكه چه په دوى كښے نيت حسنه او اخلاص په اعلى درجه موجود وو په روايت كښے دى «إنما الأعمال بالنيات» كښے د دے اخلاص په اهميت باندے زور وركولے شى او ددے د حصلولو تلقين ورته كولے شى نكه چه امام بخارى رحمه الله دا عبارت راوړلو نو په اصل كښے دا خودل غواړى چه په نبوت اواخلاص كښے نزدے او ژور تعلق دے كوم سړے چه نبى جوړول وى نو په هغے كښے اخلاص په كامله درجه پكار دے په دے طريقه د حديث د ترجمة الباب سره ربط ښكاره كيږى (١)

**وحديث «انما الاعمال بالنيات» اهميت** امام بخارى رحمه الله د ټولو نه وړاندے دا حديث ذكر كړلو خكه چه د علماء اسلام په نيز د دے روايت صحت، عظمت، او جلالت متفق عليه دے حضرات علماء كرامو رحمهم الله فرمائيلى دى چه دا حديث په هغه احاديثو كښے شامل دے په كوموباندے چه د اسلام دارومدار دے (٢)

امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى «من أراد أن يصنف كتاباً فليبتدئ بهذا الحديث» (٣)

امام خطابى رحمه الله فرمائى «صدر أبوعبدالله كتابه بحديث النية، وافتتح كلامه به، وهو حديث كان المتقدمون من شيوخنا رحمهم الله يستحبون تقديم أما كل شئ ينشأ ويبتدأ من أمور الدين لعموم الحاجة إليه فى جميع أنواعها ودخوله فى كل باب من أبوابها» (٤)

امام شافعى رحمه الله فرمائى «إن هذا الحديث يدخل فيه نصف العلم» د دے توجيه دا ده چه د اعمالو تعلق به يا جوارحو سره وى او يا زړه سره كه جوارحو سره متعلق وى نو بدنى عبادات او كه زړه سره تعلق ساتى نو قلبى عبادات ورته وائى او ښكاره ده چه د نيت تعلق د زړه سره وى (٥)

د امام شافعى رحمه الله نه علاوه د نورو حضراتو نه هم دا منقول دى چه دا حديث «ثلث العلم» دے د دے توجيه امام بيهقى دا فرمائى چه د بنده عمل به يا د جوارحو سره متعلق وى يا ژبے سره او يا د زړه سره او د قلب عمل نيت دے او دا ثلث دے (٦)

امام ابوداود رحمه الله فرمائى د اسلام دارومدار په څلور احاديثو دے (٧)

---

(١) امدادالبارى (٢/ ٤٣٥)_

(٢) كتاب الأذكار النواوية بشرح الفتوحات الربانية (١/ ٦٣) فصل فى الأمر بالإخلاص)_

(٣) كتاب الأذكار (١/ ٦٦)_

(٤) أعلام الحديث للخطابى رحمه الله (١/ ١٠٦) آخر مقدمة المؤلف)_

(٥) الفتوحات الربانية على الأذكار النواوية (١/ ٦٣)_

(٦) پورتنئ حواله)_

(٧) اوګورئ الفتوحات الربانية (١/ ٦٤) وعمدة القارى (١/ ٢٢) خو په عمدة القارى كښے د څلورم حديث ((أزهد فى الدنيا..)) په ځائے ((لايكون المؤمن مؤمناً حتى يرضى لأخيه ما يرضى لنفسه)) ذكر دے

① «إنما الأعمال بالنيات»

② «من حسن إسلام المرء تركه ما لا يعنيه»(١)

③ «الحلال بين والحرام بين..»(٢)

④ «أزهد فى الدنيا يحبك الله..»(٣)

دا خبره طاهر بن مفوز رحمه الله په نظم کښې بيان کړې ده.

عمدة الدين عندنا كلمات أربع من كلام خير البرية

أتق الشبهات، و «ازهد»، و «دع ما لا يعنيك»، و «اعملن بنية»(٤)

امام احمد رحمه الله فرمائي چه اصول د اسلام په درې احاديثو باندې دي.

① «إنما الأعمال بالنيات» ② «الحلال بين والحلام بين..»

③ «من أحدث فى أمرنا هذا ما ليس منه فهو رد»(٥)

**دحديث شان ورود:** امام طبراني په صحيح سند سره د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه ددې حديث شان ورود ذکر کړې دې چه په مونږ کښې يو کس ام قيس نومې ښځې ته د نکاح پيغام اوليږلو. نو هغې ورته شرط اولګولو چه هجرت اوکړه. نو نکاح به درسره اوکړم. دې کس مدينې منورې ته هجرت اوکړلو. او هغه ښځې سره ئې نکاح اوکړه. مونږ به هغه ته «مهاجر ام قيس» وئيل.(٦) نبي ﷺ ته چه کله دا خبره اورسيدله. نو دا حديث ئې اوفرمائيل.

---

(١) أخرجه الترمذي في جامعه في كتاب الزهد باب (بلاترجمة)) بعد باب فيمن تكلم بكلمة يضحك بها الناس رقم ٢٣١٧ وابن ماجة في كتاب الفتن باب كف اللسان في الفتنة رقم ٣٩٧٦)_

(٢) أخرجه البخاري في صحيحه في كتاب الإيمان باب فضل من إستبرأ لدينه رقم ٥٢. وفي كتاب المساقاة باب الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات رقم ٢٠٥١. ومسلم في صحيحه في كتاب المساقاة باب أخذ الحلال وترك الشبهات رقم (١٥٩٩) والنسائي في سننه في كتاب البيوع باب إجتناب الشبهات في الكسب........ والترمذي في جامعه في كتاب البيوع باب ماجاء في ترك الشبهات رقم (١٢٠٥) وابن ماجة في سننه في كتاب الفتن باب الوقوف عند الشبهات (٣٩٨٤)_

(٣) أخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب الزهد باب الزهد في الدنيا رقم ٤١٠٢)_

(٤) عمدة القاري (٢٢/١) والفتوحات الربانية (٦٤/١)_

(٥) أخرجه البخاري في صحيحه في كتاب الصلح باب إذا إصطلحوا على صلح جور مردود رقم(٢٦٩٧) ومسلم في صحيحه في كتاب الأقضية باب نقض الأحكام الباطلة ورد محدثات الأمور رقم (١٧١٨) وابوداود في سننه في كتاب السنة باب لزوم السنة رقم ٤٦٠٦. وابن ماجه في سننه في المقدمة باب تعظيم حديث رسول الله ﷺ والتغليظ على من عارضه رقم ١٤)_

(٦) اوګورئ عمدة القاري (٢٨/١) بيان السبب والمورد)_

**یو اشکال او دهغې جواب** دلته یو اشکال دا کیږی چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه چه حضرت ام سلیم رضی الله عنها (دحضرت انس رضی الله عنه مور) ته دنکاح دپاره اووئیل نوحضرت ام سلیم رضی الله عنها ورسره شرط لګولے وو چه ایمان راوړه نونکاح به درسره اوکړم نوحضرت ابوطلحه رضی الله عنه ایمان راوړلو او ددے نه پس نکاح هم اوشوه.(۱)

داسلام معامله خو د هجرت نه هم اهمه اومعززه ده.نبی صلی الله علیه وسلم دنکاح دپاره په هجرت باندے انکار کړے دے.او ((فمن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إمرأة ینکحها فهجرته إلی ما هاجر إلیه)) ئے اوفرمائیل.اود ناخوښئ اظهار ئے اوکړلو.خو د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه د اسلام په باره کښے د دوی صلی الله علیه وسلم نه څه نکیر منقول نه دے.دا لرے خبره ده.چه نبی صلی الله علیه وسلم ته به د دے خبر نه وی شوے.ځکه چه ام سلیم رضی الله عنها ته په دربار رسالت کښے ډیر نزدیکت حاصل وو.(۲)

داسلام عالمانو فرمائیلی دی.چه په اصل کښے دحضرت ابوطلحه رضی الله عنه د وړاندے نه داسلام راوړلو اراده وه.هغوی هم په هغه طریقه اسلام قبول کړلو.لکه څنګه چه عاموخلقو علی وجه البصیرة اسلام قبول کړے وو.(۳) خو ورسره ورسره هغوی د تزویج مباح یعنی جائز نکاح نیت هم شامل کړے وو.

اودا داسے ده.لکه چه یو سړے روژه نیسی.نیت ئے د روژے نیولو وی.خو ورسره ورسره د پرهیز خیال هم کوی.

یا یو کس د بیت الله طواف کوی.نیت ئے هم د طواف وی.خو ورسره ورسره ئے دا نیت هم وی.چه زما مدیون چه هغه هم طواف کوی.هغه به هم د نظر لاندے ساتم. نو لکه څنګه چه د پرهیز په خیال باندے په روژه کښے نقصان نه راځی.او د ((ملازمة الغریم)) په اراده په طواف کښے فرق نه راځی.دغه شان د ابوطلحه رضی الله عنه د تزویج مباح په نیت سره دهغه په اسلام کښے څه خرابی نه راځی.

خودلته دا سوال کیدے شی.چه هم دا توجیه هم تاسو د مهاجر ام قیس په باره کښے هم کولے شئ.خوهلته تاسو دا توجیه نه کوئ؟

د دے جواب دا دے.چه دمهاجر ام قیس په باره کښے دنبی کریم صلی الله علیه وسلم نه د ((ومن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إمرأة یتزوجها فهجرته إلی ما هاجر إلیه)) په الفاظو سره نکیر راغلے دے.نو دهغه په قصه

---

(۱) عن أنس رضی الله عنه قال تزوج أبوطلحة أم سلیم رضی الله عنها فکان صداق ما بینهما الإسلام .أسلمت أم سلیم. قبل أبي طلحة فخطبها فقالت إني قد أسلمت فإن أسلمت نکحتک فأسلم أبوطلحة فکان صداق ما بینهما))_

(۲) حضرت انس رضی الله عنه فرمائي.(( أن النبي صلی الله علیه وسلم کان یزور أم سلیم فتتحفه بالشئ تصنعه له)) دغه شان حضرت انس رضی الله عنه نه منقول دی.((لم یکن رسول الله صلی الله علیه وسلم یدخل بیتاً غیر بیت أم سلیم إلا علی أزواجه فقیل له فقال إني أرحمها قتل أخوها وأبوها معي)) اوګورئ الإصابة (۴۶۱/۴)_

(۳) د لاندینی روایت نه ددے تائید کیږی ((عن أنس بن مالک رضی الله عنه أنا أباطلحة رضی الله عنه خطب أم سلیم رضی الله عنها یعني قبل أن یسلم فقالت:یا أباطلحة ألست تعلم أن إلهک الذی تعبد نبت من الأرض؟ قال بلی قالت أفلا تستحي تعبد شجرة إن أسلمت فإني لا أرید منک صداقاً غیره.قال حتی أنظر في أمري فذهب ثم جاء فقال أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله صلی الله علیه وسلم .. اوګورئ الإصابة (۴۶۱/۴) ترجمه ام سلیم بنت ملحان)

كنبے به څه تاويل يا توجيه نشى كولے او د ابوطلحه ﷺ په قصه كښے نكير موجود نه دے.نوهلته د تاويل گنجائش شته.په دے باره كښے به څه تفصيل وړاندے راشى.انشاء الله والله اعلم

**قوله إنما الأعمال بالنيات:** په دے ځائے كښے په روايت كښے د ((أعمال)) او ((نيات)) دواړه د جمع صيغے راغلى دى.حالانكه په يو روايت كښے ..نيت.. مفرد هم راغلے دے.[1] عالمانو ليكلى دى.چه په كوم ځائے كښے اعمال جمع اونيت مفرد وى نو هلته به دا توجيه كولے شى.چه داعمالو صدور چونكه د جوارحو نه كيږى.او جوارح گنړ دى نوځكه اعمال جمع راوړلے شوه.اود نيت صدور چونكه د قلب نه كيږى.او قلب واحد دے نوځكه نيت واحد راوړلے شوے دے.[2]

يو توجيه دا هم كيدے شى.چه عمل په حقيقت كښے يو وى.خو د جهاتو د تنوع د وجے يوعمل متعدد عمل اوگرځولے شو.مثلاً چه يو سړے جمات ته خى.اودے څو نيتونه اوكړى لكه : ذكر نيت اوكړى.د تلاوت نيت اراده اوكړى.د مونځ خيال ورسره وى.د جماعت انتظار كول غواړى.په دعا كښے د مشغوله كيدو اراده ئے وى . په جمات كښے په كيناستو د لايعنى حركاتو نه حفاظت ئے مقصود وى.د مسلمانانو رونړو ملاقات ئے قصد وى.اودلته د استفاده او افادے نيت هم وى.نو اوگورئ دلته عمل يو.خود جهاتود تعدد د وجے دا يوعمل نشى گرځولے.بلكه متعدد اعمال ورته وئيلى شى.په خلاف د نيت ځكه چه نيت نوم دے داخلاص لله.او په اخلاص لله كښے يووالے وى.په دے كښے تعدد نه وى.په دے وجه اعمال جمع او نيت واحد راوړلے شوے دے.

خوچه په كوم ځائے كښے اعمال او نيات دواړه جمع وى.نوهلته لكه چه ((مقابلة الجمع بالجمع)) ده.كوم چه ((انقسام الآحاد بالآحاد)) لره مقتضى دے.اومطلب به دا وى.چه ((كل عمل بنية)) يعنى : هر عمل دپاره به دهغے دځپل نيت اعتبار وى.اود نيت په اختلاف سره به عمل هم مختلف گرځى.[3]

---

(۱) امام بخارى رحمه الله دا روايت د باب بدء الوحى نه علاوه په نورو شپږو ځايونو كښے ذكر كړے دے.يو روايت خو هم دا دے.د كوم الفاظ چه ستاسو وړاندے دى ((إنما الأعمال بالنيات)) په دوو مقاماتو كښے ((إنما الأعمال بالنية)) دے.اوگورئ: كتاب الأيمان والنذورباب النية فى الأيمان رقم ۶۶۸۹.او كتاب الحيل باب فى ترك الحيل رقم ۶۹۵۳.په درے مقاماتو كښے ((الأعمال بالنية)) الفاظ دى. اوگورئ: كتاب ((الأيمان باب ما جآء أن الأعمال بالنية والحسبة رقم ۵۴. وكتاب العتق باب الخطأ والنسيان فى العتاقة والطلاق ونحوه رقم ۲۵۲۹. وكتاب مناقب الأنصار باب هجرة النبى ﷺ وأصحابه إلى المدينة رمق ۳۸۹۸)) او په يومقام كښے ((العمل بالنية)) لفظ مروى دے.اوگورئ: كتاب النكاح باب من هاجر أوعمل خيراً لتزويج إمرأة فله ما نوى رقم. ۵۰۷۰_

(۲) فتح البارى(۱/۱۲)_

(۳) اوگورئ فتح البارى (۱/۱۲) وتقرير بخارى شريف حضرت شيخ الحديث صاحب قدس سره (۱/۷۳)_

مثلا يو كس خوشبوئى استعمالوى داتباع سنت په نيت يا په دے خيال چه زما د بدن نه كومه بدبوئے داره خوله خى په هغے چاته تكليف نه رسى يا دده نيت دا وى چه زما دماغو نه تقويت ملاو شى نو ده ته به په دے باندے اجر اوثواب ملاويږى

خوكه دده نيت په دے باندے خپل خان لوئے ښكاره كول وى يا دده نيت پردئ زنانه خپل خان ته مائله كول وى نو په دے به نيول اوعذاب وى نولكه چه «انما الأعمال بالنيات» كښے ئے نيت داعمالو په مقابله كښے جمع راوړلو او دے خبرے ته ئے اشاره اوكړه چه دعمل دارومدار ددے په نيت دے كه دخير نيت ئے وى نو عمل به ئے هم عمل خيرشمارلے شى اوكه د شر نيت ئے وى نوعمل به ئے هم عمل شر شمارلے شى.

**په فعل اوعمل كښې فرق** بيا ئے دلته «انما الأعمال بالنيات» اوفرمائيل «انما الأفعال بالنيات» ئے نه دى فرمائيلى ددے وجه دا خودلے شوے ده چه په اصل كښے په ..عمل.. كښے دوام اواستمرار طرف ته اشاره وى خكه چه دعمل معنى ..ساختن.. يعنى جوړول دى او په جوړولو كښے امتداد وى اووخت پرے لگى او دفعل معنى ..كردن.. يعنى كول دى په دے كښے امتداد نه وى او دوخت ضرورت نه وى نوچونكه لفظ د ..عمل.. په دوام او استمرار باندے دلالت كوى نو ددے وجے ئے «انما الأعمال بالنيات» اوفرمائيل هم دا وجه ده چه په قرآن كريم كښے ﴿وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾ راغلى دى . خو «وافعلوا صالحا» نه دى راغلے دغه شان ﴿وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ راغلے دى خو «فعلوا الصالحات» نه دى راغلے خكه چه په ښه كارونو كښے دوام او استمرار مطلوب وى (۱) دلته كښے هم نبى ﷺ داعمال خير دوام او استمرار طرف ته اشاره كړے ده

يوه وجه دا هم بيان شوے ده چه په عمل اوفعل كښے په دے حيثيت باندے هم فرق دے چه عمل هغے ته وائى چه دمكلف نه صادريږى اوفعل عام دے كه د مكلف فعل وى اوكه د غير مكلف وى چونكه د لته د مكلفينو دافعالو ذكر كول مقصود دے خكه د ..اعمال.. لفظ استعمال شو د ..افعال.. لفظ نه (۲)

دريمه وجه دا بيان شوے ده چه د ..عمل.. لفظ د ذوى العقول سره خاص دے او ..فعل.. عام دے د ذوى العقول اوغير ذوى العقول دواړو دپاره استعماليږى هم دا وجه ده چه دبهائمو دپاره ..عمل البهائم.. نشى وئيلے بلكه ..فعل البهائم.. وئيلے شى (۳) چونكه دلته د ذوى العقول د اعمالو ذكرمقصود دے نوخكه «انما الأعمال...» فرمائيلے شوے دے

**دنيت لغوى او شرعى معنى** د نيت لغوى معنى ..قصد.. او ..اراده.. ده قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى «النية عبارة عن انبعاث القلب نحو ما يراه موافقا لغرض من جلب نفع أو دفع ضر حالا أو مآلا» (۴)

---

(۱) اوگورئ فيض البارى (۱ ۵) شرح الحديث على نحو ما قالوا)۔

(۲) حاشيه علامه سندهى رحمه الله بر صحيح بخارى (۱ ۷)۔

(۳) اوگورئ حاشية علامه سندهى رحمه الله برصحيح بخارى (۱ ۷)۔

(۴) اوگورئ كرمانى (۱ ۱۸) وفتح البارى ۱۳) وعمدة القارى (۱ ۲۳)۔

په شریعت کښې د نیت معنی ده.«الإرادة المتوجهة نحوالفعل لابتغاء رضاء الله وامتثال حکمه»(۱) لکه چه د لغوی معنی په اعتبار سره دا عام دے.البته د شرعی معنی په اعتبار سره صرف هغه اراده دنیت په تعریف کښې داخل ده چه په هغې کښې دالله تعالی رضا مقصود وی.

**په ,,انما الاعمال بالنیات،، کښې لغوی معنی مراد ده او که شرعی؟**

په دے خبره د پوهیدلو نه پس دا هم په زړه کښې کینوئ چه په دے مقام کښې د نیت نه لغوی معنی مراد ده.ددے وجه دا ده چه نبی کریم ﷺ په دے حدیث کښې دوه قسمه اعمال ذکر کړی دی یو «فمن کانت هجرته إلى الله ورسوله» او دویم «ومن کانت هجرته إلى دنیا یصیبها أو امرأة یتزوجها فهجرته إلى ما هاجر إلیه» په دے کښې په اولنی عمل کښې «ابتغاء مرضاة الله» ملحوظ ده او په دویم عمل کښې ملحوظ نه ده.نودا به وئیلی شی چه دلته د جنس نیت ذکر دے په دے کښې لغوی معنی مراد ده شرعی معنی مراد نه ده.(۲)

**په ,,نیت،،او ,,اراده،، کښې فرق** بیا په دے باندے پوهه شئ چه حافظ ابوالحسن مقدسی رحمه الله نیت، اراده ،قصد، اوعزم په یوه معنی خودلی دی.خو دمحققینو په نیز په ,,نیت،، او ,,اراده،، کښې فرق شته.هغه دا چه په اراده کښې دکوم څیز اراده کولے شی د هغې په وجود کښې راوستل مقصود وی.د ارادے کونکی غرض ملحوظ نه وی.په خلاف د نیت څکه چه په دے کښې مقصد عام طور ذکر کولے شی.نودا سے وئیلی شی.«نویت لکذا» په خلاف د ارادے چه هغه د غرض ذکرکولو نه بغیر هم استعمالولے شی.وئیلی شی . «أراد الله سبحانه وتعالی» ددے سره د غرض ذکر کول څه ضروری نه دی.هم دا وجه ده.چه دالله تعالی دپاره «أراد الله» وئیلی شی.خو «نوی الله» نه وائی.څکه چه د نیت استعمال عام طور په هغه افعالو کښې کیږی چه هغه معلل بالاغراض وی.حالانکه عالمانو رحمهم الله فرمائیلی دی چه دالله تعالی دافعال معلل بالاغراض نه وی.که «نوی الله»اووئیلی شی.نودالله تعالی د افعالو معلل بالاغراض وهم به پیدا شی.(۳)

علامه کشمیری رحمه الله فرمائی.چه دالله تعالی افعال معلل بالاغراض کیدے شی په دے کښې څه محال والے نشته.البته د شریعت په ژبه کښې دالله تعالی دپاره صرف د ارادے لفظ استعمال شوے دے دنیت ورله نه دے نوځکه په شرعی اطلاق باندے اکتفاء کول به غوره وی.والله اعلم (۴)

---

(۱) پورتنئ حواله)_
(۲) اوګورئ فتح الباری (۱۳/۱)_
(۳) فیض الباری (۵/۱)_
(۴) پورتنئ حواله)_

**يواشكال او دهغې جواب** دلته يو اشكال دا كيدے شي چه په حديث كښے «إنما الأعمال بالنيات» ونيلي شوى دى.او كلمه د «إنما» د حصر دپاره وى نو ددے معنى شوه.«لا عمل إلا بالنية» يعنى د نيت نه بغير هيڅ عمل موجود نه دے.خو مونږ ګورو دعمل وجود بغير د نيت نه هم وى دا زمونږ طالب علم دے.د كلونو راسے سبق وانى.اولګيا دےنور به هم وانى.خو ددوى څه نيت نه وى.معلومه شوه.چه د نيت نه بغير هم د عمل وجود راتلے شي.نو بيا د «لاعمل إلا بالنية» معنى څنګه صحيح شوه.؟

ددے جواب دا دے.چه رسول الله ﷺ چه د «إنما الأعمال بالنيات» په ذريعه كومو مخاطبونو ته خطاب كړے وو.هغوى اهل زبان وو.هغوى ددے جملے نه داسے مفهوم اخستے دے.چه دهغے نه بغير د شارع ﷺ د تعليم نه واقفيت ممكن نه دے .اوهغه معنى دا ده.چه د يو څيز شرعي وجود د نيت نه بغير نه وى.ښكاره ده چه دا خبره داسے ده.چه هم شارع ئے بيانولے شي. نو نبى ﷺ دلته كښے د «إنما الأعمال بالنيات» نه حسي وجود مراد نه دے اخستے.بلكه وجود شرعي ئے ترے مراد كړے دے.اوهغه وجود د نيت نه بغير نه كيږى.(۱)

**په اودس كښې د نيت مسئله** په دے مقام كښے شارحينو په اودس كښے د نيت بحث كړے دے.نو په دے باره كښے اول د مذاهبو تفصيل باندے خان پوهه كړئ.

**تفصيل د مذاهبو** دامام مالك. امام شافعي.امام احمد .ابوثور.او داود ظاهرى رحمهم الله مسلك دا دے.چه دنيت نه بغير اودس صحيح نه دے.د دوى په نيز په اودس كښے نيت شرط دے.(۲) دامام ابوحنيفه. امام ابويوسف. امام محمد. امام زفر.امام سفيان ثورى.امام اوزاعى. د حسن بن حى رحمهم الله نه او په يو روايت مطابق د امام مالك رحمه الله په نيز هم په اودس كښے نيت واجب نه دے.(۳)

**داختلاف منشا** علامه ابن رشد مالكى رحمه الله ددے حضراتو داختلاف منشا دا بيان كړے ده.چه په دے خبره كښے خو د ټولو اتفاق دے.چه په عباداتو كښے نيت شرط دے.لكه مونځ. روژه. زكاة. حج وغيره.چه په دے كښے دټولو په نيز نيت شرط دے.

البته په اودس كښے تردد دے.چه آيا دا عبادت محضه يعنى غيرمدرك بالعقل عبادت دے.چه په هغے كښے مقصود صرف قربت وى.لكه د مونځ عبادت.اوكه دا مدرك بالعقل عبادت دے.لكه غسل نجاست وغيره؟ نودرے واړه امامان او د هغوى همخيال دے ته عبادت محضه وائى.اوچونكه په عبادت محضه كښے نيت شرط وى نو ځكه په اودس كښے هم نيت ضرورى دے.

---

(۱) اوګورئ شرح كرمانى على البخارى (۱۸/۱) وفتح البارى (۱۳/۳)_

(۲) اوګورئ بداية المجتهد ونهاية المقتصد(۸/۱) كتاب الوضوء الباب الثانى.المسئلة- الأولى من الشروط)_

(۳) اوګورئ عمدة القارى (۳۰/۱) استنباط الأحكام)_

خواحناف او ددوى موافقين دے ته عبادت محضه نه وائى بلكه د عبادت محضه يوه ذريعه او وسيله ئے گڼړى نو ددوى په نيز په اودس كښے نيت ضرورى نه دے (١)

د وسيله او ذريعه گرځولو وجه دا ده چه په قرآن كريم كښے د ﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴾ (٢) راغلى دى اود چا په نيز هم د جامو د نجاست لرے كولو دپاره نيت ضرورى نه دے دغه شان په قرآن كريم د اودس د آيت په آخر كښے ونيلے شوى دى ﴿ مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ ﴾ (٣) دلته كښے الله تعالى په خپله د طهارت مقصود خودلے دے په حديث رسول كښے هم صراحت دے «مفتاح الصلاة الطهور» (٤) دلته الله تعالى په خپله مقصود طهارت گرځولے دے په حديث رسول ﷺ كښے هم صراحت دے چه «مفتاح الصلاة الطهور» (٥) د دے نه معلومه شوه چه دمونځ پشان دا په عبادت محضه كښے داخل نه دے بلكه نظافت محضه اوطهارت محضه دے.

كله چه شوافعو ﷺ ته اوونيلى شى چه د جامو نه د پليتئ لرے كولو اودهغے د پاكولو دپاره د نيت ضرورت نشته نو په اودس كښے (چه په دے كښے د بدن پاكوالے دے) نيت ولے ضرورى دے؟نود حضرات شوافعو ﷺ د طرفه دا ونيلى شى چه د جامو د حقيقى اوحسى نجاست لرے كول مقصود وى اود حسى زوال په سترگو په نظر راځى خكه په دے كښے دنيت ضرورت نشته اوپه اودس كښے د نجاست حكمى زائله كول مقصود وى كوم چه نه په خپله په نظر راځى او نه دهغے زوال په نظر راځى نوپه دے كښے به دنيت ضرورت وى اوبه د نجاست حقيقى اوحكمى دواړو دپاره پاكونكے دى

خوددے جواب دا دے چه الله تعالى ارشاد فرمائيلے دے ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا ﴾ (٦) په دے كښے اوبه بالطبع مطهر گرځولے شوے دى اود مبالغه صيغه استعمال شوے ده چه اوبه

---

(١) بداية المجتهد (١/٨ ٩)_

(٢٠٥) سورة المدثر:٤)_

(٣) سورة المائدة:٦)_

(٤) أخرجه ابوداود فى سننه كتاب الطهارة باب فرض الوضوء رقم ٦١) والترمذى فى جامعه فى أبواب الطهارة باب ما جآء أن مفتاح الصلاة الطهوررقم. ٣. وابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة باب مفتاح الصلاة الطهور رقم.٢٧٥. ٢٧٦)_

(٥) أخرجه ابوداود فى سننه فى كتاب الطهارة باب فرض الوضوء رقم .٦١. والترمذى فى جامعه فى أبواب الطهارة باب ماجآء. أن مفتاح الصلاة الطهور رقم.٣ وابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة باب مفتاح ا لصلاة الطهور رقم .٢٧٥. ٢٧٦)_

(٦) سورة الفرقان:٤٨)_

بالطبع مطهر شوے.نو ددے تقاضا دا ده.چه نجاست هرځنګه وی.که حسی حقيقی وی.يا حکمی معنوی وی.په اوبو کنبے الله تعالی د هغے دزائله کولو صلاحيت اويخودے دے.نولکه څنګه چه نجاست حسيه حقيقيه دپاره دنيت ضرورت نشته.نودغه شان به دنجاست حکميه معنويه دپاره هم د نيت ضرورت نه وی.

**په احنافو رحمهم الله يواشکال اود هغې جواب** سوال دا پيدا کيږی.چه احناف په تيمم کنبے نيت ولے ضروری ګرځوی.حالانکه دا هم طهارت دے.دغه شان احناف ﷭ په نبيذالتمر باندے د اودس کولو دپاره هم نيت ضروری ګرځوی.حالانکه هغه هم طهارت دے.(١)

ددے جواب دا دے.چه په تيمم کنبے په اصل کنبے د خاورے استعمال کيږی.او هغه بالطبع مطهر نه ده.او په اودس کنبے د اوبو استعمال کيږی.اودا بالطبع مطهر دی.نوچه په کوم ځائے کنبے د مطهر بالطبع استعمال وی.هلته به د نيت ضرورت نه وی اوچه په کوم ځائے کنبے د په کوم ځائے کنبے دخاورے استعمال کيږی.کومه چه بالطبع د بدن ګنده کونکے ده.پاکونکے نه ده.هلته به د نيت ضرورت وی.

ددے نه علاوه په دے دواړو کنبے يو بل فرق دا دے.چه د تيمم په باره کنبے په قرآن پاک کنبے ﴿فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ (٢) راغلے دے.اود تيمم لغوی معنی قصد او اراده کول دی.نوپه لغوی اوشرعی معنی کنبے دموافقت پيدا کولو دپاره احنافو په تيمم کنبے ضروری اوګرځولو او چونکه د اودس په باره کنبے داسے څه لفظ نه دے استعمال شوے.کوم چه د نيت په لزوم باندے مشعر وی.(٣)

اوترکومے پورے چه په نبيذ التمر د اودس کولو مسئله ده.نو په دے کنبے دامام ابوحنيفه ﷬ نکته نظر دا دے.چه نبيذالتمر نه خو مطلق اوبه دی.چه لکه څنګه دماء مطلق استعمال په آزادئ سره کولے شی.د نبيذ التمر په اودس کنبے داستعمال اجازت نشته.ځکه چه دا د مطلق اوبو په حکم کنبے نه دی.خو بل طرف دا ماء مقيد هم نه دی.چه په دے باند بيخی اودس کول جائز نه وی.ځکه چه نبی ﷺ ورته ((تمرة طيبة وماء طهور)) فرمائيلی دی.(٤) اوددے نه

---

(١) قال فی شرح الوقاية بشرحه السعاية (٥٢٧/١) فالنية فرض فی التيمم. علامه عبدالحی لکهنوی السعايه (٤٧٤/١) کنبے ليکی.وقال القدوری فی کتابه. وکان أصحابنا يقولون إن الوضوء بالنبيذ علی أصولهم يجب أن لا يصح إلا بالنية کالتيمم لأنه بدل عن الماء ولهذا لا يجوز التوضی به حال وجود الماء ..دغه شان اوګورئ فيض الباری (٧/١)_

(٢) سورة النساء :٤٣، وسورة المائدة:٦)_

(٣) اوګورئ فيض الباری (٧/١)_

(٤) الحديث أخرجه ابوداود عن ابن مسعود ﷛ فی کتاب الطهارة باب الوضوء بالنبيذ،رقم. ٨٤ والترمذی عنه أيضاً فی جامعه فی أبواب الطهارة باب ما جآء فی الوضوء بالنبيذ رقم ٣٨٤، و(٣٨٥) وانظر لتفصيل الکلام علی هذا الحديث نصب الرأية قبيل باب التيمم)_

پس نبی ﷺ د هغې نه اودس اوکړلو.نو د نبی ﷺ د اودس نه معلومه شوه.چه دا ..ماء مقید.. نه دی.چه اودس به پرے نه کیږی.

امام اعظم رحمه الله فرمائی چه ..نبیذ تمر.. ته چونکه د ماء مطلق او ماء مقید په مینځ مینځ کښے یوه درجه حاصله ده.نو په دے باندے به د اودس کولو اجازت وی.خو د شرطونو سره چه دنیت شرط به وی.دغه شان دا به هم ضروری وی.چه د نور مطلق اوبه موجود نه وی.(١)

**آیا احناف رحمهم الله قیاس ته په حدیث باندې ترجیح ورکوی؟** په احنافو رحمهم الله باندے عام طور دا اعتراض کیږی.چه دوی حدیث ته هغه درجه او مقام نه ورکوی.کوم مقام چه دوی په نیز د قیاس او رائے دے.دوی د حدیث په مقابله کښے قیاس او رائے ته ترجیح ورکوی.

حالانکه دا اعتراض بیخی غلط دے.بلکه دامام رحمه الله په نیز خو ضعیف حدیث هم د قیاس نه اوچت دے.هم دا د نبیذ مسئله راواخلئ.امام اعظم رحمه الله په نبیذ باندے د اودس کولو اجازت نه دے ورکړے.خکه چه دا ماء مطلق نه دی.خوامام ابوحنیفه رحمه الله د دے علم باوجود چه دا اوبه مطلق نه دی.په دے باندے داودس کولواجازت ورکوی.خکه چه په حدیث اودس کولو اجازت ورکړے دے.اوپه ائمه ثلاثه کښے چا هم په دے باندے کښے رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.«تمرة طيبة وماء طهور» او ددے نه پس نبی ﷺ په دے باندے اودس اوکړلو.نو ددے حدیث په احترام کښے امام صاحب په نبیذ باندے د اودس کولواجازت ورکړلو.اوبیا په دے باره کښے ئے د څومره باریکو خبرو خیال ساتلے

① چونکه نبی ﷺ په نبیذ تمر باندے اودس کړے وو.نوصرف په نبیذ تمربه اجازت وی په نبیذ عسل، نبیذ شعیر، او بل نبیذ باندے اجازت نشته.(٢)

② دویمه خبره دا ده.چه نبی ﷺ په هغه وخت کښے په نبیذ تمر باندے اودس کړے وو چه مطلق اوبه موجود نه وے.نوامام صاحب هم دا فرمائی.چه په نبیذ تمر باندے د اودس کولو اجازت په هغه وخت کښے وی.چه مطلق اوبه موجود نه وی.(٣)

③ دریمه خبره دا ده.چه امام صاحب فرمائی.نبی ﷺ په نبیذ تمر باندے اودس کړے وو.غسل ئے پرے نه وو کړے.نوموږ هم صرف د اودس اجازت ورکوو.د غسل اجازت نه ورکوو.(٤)

که په قیاس ئے عمل کولو.نو په نبیذ التمر به ئے قیاس کولے او په نورو نبیذونو به ئے هم د اودس کولو اجازت ورکړے وے.دغه شان د مطلق اوبو د وجود په صورت کښے به ئے هم په نبیذ تمر باندے اودس ته تیك وئیلی وو.دغه شان د اودس پشان به ئے د غسل کولو اجازت هم ورکړے وے.خود حدیث خیال ساتلو د وجے امام رحمه الله دا ټول قیاسونه نظر انداز کړل.

---

(١) اوگورئ فیض الباری (١/٨٠٧)_

(٢) السعایة (١/٤٧٣، ٤٧٤)_

(٣) اوگورئ السعایه (١/٤٧٣، ٤٧٤)_

(٤) اوگورئ السعایة (١/٤٧٤)_

**دحديث باب نه د ائمه ثلاثه استدلال** په اودس كنبې د نيت د اشتراط دپاره ائمه ثلاثه په حديث باب باندې استدلال كوى.اوفرمانى چه نبى ﷺ «انما الأعمال بالنيات» فرمائيلې دې.اوپه اعمالو كښې اودس هم داخل دې.نو د اودس دپاره به هم نيت لازم وى.

بيا چونكه دلته د ټولونيز تقدير راويستل ضرورى دى. نودا حضرات «صحة» تقدير راوباسى. اووانى.چه «انما صحة الأعمال بالنيات» يا «انما الأعمال تصح بالنيات»

اوداحنافو ﷭ په نيز دلته د «صحة» تقدير راويستل ټيك نه دى.بلكه دوى دلته د «ثواب الأعمال» يا «حكم الأعمال» تقدير ګنړى.يعنى «انما ثواب الأعمال بالنيات» يا «انما حكم الأعمال بالنيات»(١)

هرفريق د خپل مسلك داثبات دپاره دلته زور لګولې دې.خو حقيقت دا دې.چه د دواړو طرفونه په دې ځائې كښې ..غلو.. ده.ددې تفصيل به انشاء الله روستو راشى.

**د ذكرشوو تقديرونو دعدم صحت په سلسله كښې دحضرت شاه ﷫ تقرير**

حضرت شاه ﷫ فرمائى.چه كه د ..صحت.. تقدير وى.او كه د «ثواب» تقدير وى.هيڅ يو صورت په دې مقام كښې ټيك نه دې

د ..صحت.. تقدير ددې وجې دلته صحيح نه دې.چه ددې په منلو په حديث كښې دوه تخصيصه منل پكار دى.

يو دا چه حديث به بيا د دنيوى احكامو سره متعلق شى.د آخرت داحكاموته به جامع نه وى. ځكه چه د ..صحت.. معنى دا ده.چه «استجماع الشرائط والأركان بحيث يسقط الفرض عن ذمته» ديوخيزټول اركان او شرائط جمع كول ..صحت.. دې.او ددې نيتجه سقوط د فرض او غاړه خلاصيدل دى.

..بطلان..ددې نقيض دې.نبكاره ده.چه د صحت او بطلان تعلق د فقه او دنياوى احكامو سره وى.دآخرت احكامو سره نه وى.حالانكه حديث عام دې.په دې كښې ددنيا او آخرت دواړه احكام شامل دى.

دويم تخصيص په دې كښې دا لازميږى.د ..صحت.. او ..بطلان.. اجراء په هغه افعالو كښې كيږى.چه په هغې كښې دحلت اوحرمت دواړه جهته وى.اوچه كوم افعال قطعاً حرام دى.لكه قتل. زنا. سرقه وغيره. نو په دې باندې د صحت يا بطلان اطلاق نه كيږى.دا نشى وئيلې.چه «صح قتله وزناه وسرقته أوبطل» د صحت د تقدير منلو په صورت كښې به حديث ددې احكامو نه ساكت ګرخول وځى .حالانكه حديث ټولو ته شامل دې.

دغه شان دا خبره هم ياد ساتل پكار دى.چه صحت او بطلان د روستنى دور اصطلاحات دى.دنبى ﷺ ارشادات د روستنى دور اصطلاحاتو باندې مقيد كول ټيك نه دى. بيا دلته

---

(١) اوګورئ شرح وقايه مع السعايه (١٤٣/١، ١٥٢)_

داحنافو ﷺ راويستے تقدير «وثواب الأعمال» هم صحيح نه دے خکه چه د ثواب او عقاب تعلق داخروي احکامو سره وي. حالانکه ددے حديث تعلق د دنياوي احکامو سره هم دے دويم تخصيص دا لازميږي چه دا حديث به صرف د طاعاتو پورے مخصوص شي. خکه چه ثواب خو په طاعاتو ملاويږي په معاصي نه ملاويږي. خکه چه په هغے خو عذاب ملاويږي حالانکه په حديث کښے په معاصي باندے عقاب هم داخل دے. بلکه ښکاره په کښے ددے ذکر دے چه «ومن کانت هجرته إلى دنيا يصيبها»

دلته کښے دا خبره قابله د توجه ده. چه په اصل کښے د ثواب ملاويدل په صحت موقوف وي. خکه چه ثواب خو به هله وي. چه عمل صحيح وي. اوکه عمل صحيح نه وي. نو ثواب به څه ملاو شي. نو دصحت د تقدير نه د بچ کيدو دپاره د ..ثواب.. تقدير څه مفيد نه دے. خکه چه ددے په تقدير راويستلو باندے به هم صحت منل ضروري وي. او بيا به هغه ټولے قباحتونه راځي. کوم چه مونږ دصحت د تقدير په صورت کښے بيان کړي وو.(١)

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي. چه امام بخاري رحمه الله ذکر شوے حديث «الأعمال بالنيات» په خپل صحيح کښے اووه ځايه راوړے دے. اولنے خو هم دا دے. دويم په .ص ١٣. کښے «باب ما جاء أن الأعمال بالنية والحسبة ولکل امرئ ما نوى» الفاظ راغلي دي. په دے کښے دايمان .اودس. مونځ. زکاة. حج روژه وغيره ټول داخل شول. مطلب دا چه داخير داعمالو اجر اوثواب به هله حاصليږي. چه اراده د طلب ثواب وي. (که نيت فاسد وي. يا د طلب ثواب اراده نه وي. نوهغه عمل به دثواب نه خالي وي)

دريم ئے په کتاب العتق کښے راوړے دے. څلورم په باب الهجرة کښے پنځم په نکاح کښے شپږم دنذر په بيان کښے اووم په کتاب الحيل کښے (ددے ټولو مقاماتو تخريج په مخکښ حاشيه کښے شوے دے. مرتب) په څه ځائے کښے ددوی مقصد دصحت اعمال مدار په نيت باندے خودل دي. اوکله ثواب اعمال په نيت باندے موقوف خودل دي. ددے نه معلومه شوه. چه دامام بخاري رحمه الله په نيز دحديث مفهوم عام دے. چه دواړو صورتونو ته شامل دے.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي. چه د حديث مذکور نه صرف دصحت اعمال تخصيص لکه چه فقهاء ئے کوی. ټيک نه دے. لکه څنګه چه د ثواب اعمال تخصيص مناسب نه دے. لکه چه د بعضے احنافو فقهاؤ رائے ده.(٢)

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي. چه په دے مقام کښے فريقينو د ..صحت.. او ..ثواب.. تقديرونه راويستے دي. اودا بحث ئے چيړلے دے. چه په اودس کښے نيت ضروري دے اوکه نه؟ او دا چه دعمل دوجود دپاره نيت ضروري دے. اوکه بغير د نيت هم عمل په وجود کښے راتلے شي؟ حالانکه د حديث مقصود هډو دا دے نه. بلکه دلته خو د نيت د دوو قسمونو بيان

---

(١) د پوره تفصيل دپاره اوګورئ فيض الباري (٥/١، ٦)_

(٢) انوارالباري (٢٢/١، ٣٢)_

دے.یو نیت حسنه او بل نیت قبیحه.که نیت ښه وی.نو ثمره او میوه به ئے ښه وی.اوکه نیت بد وی.نو نتیجه به ئے هم بده وی.لکه چه وړاندے په «فمن کانت هجرته إلی الله ورسوله» کښے د نیت حسنه بیان دے.او په «ومن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إمرأة یتزوجها فهجرته إلی ما هاجر إلیه» کښے چه د نیت سیئه بیان دے.(۱)

حافظ ابن کثیر رحمه الله دلته د ..اعتبار.. تقدیر منلے دے.اوفرمائیلی ئے دی.چه «إنما إعتبار الأعمال عندالله بالنیات»(۲) هم دا تقدیر سلطان العلماء عزالدین عبدالسلام رحمه الله هم راویستے دے هغوی فرمائی.«الجملة الأولی(أی إنما الأعمال)لبیان ما یعتبر من الأعمال»(۳)

ددے اقوالو خلاصه هم دا شوه.چه دلته دا خبره خودلی شی.چه د اعمالو اعتبار به د نیت مطابق وی.که نیت ښه وی.نوعمل به معتبر او ښه وی.اوکه نیت خراب وی.نوثواب اوعمل به برباد ګڼړلے شی.اودا بعینه هم هغه خبره ده.کومه چه شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه داعمالو دارومدار د نیت د حسن او قبح سره متعلق دے .تر دے چه بعضے وخت داسے هم کیږی.چه په کتلو کښے عمل قبیح ښکاری.لیکن د نیت د صحت دوجے هغه قبیح نشی ګرځولے.یا دهغے د قباحت اثرات نه ښکاره کیږی.

اوګورئ کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مکه معظمه باندے د حملے کولو اراده اوکړله. نو حضرت حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه اهل مکه ته یو خط اولیکلو.اوپه هغے کښے ئے خبر ورکړلو.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو عظیم لښکر تیاروی.اوپه مکه معظمه باندے حملے کولو اراده لری.حالانکه پخپله نبی صلی الله علیه وسلم خپله اراده پټه ساتله.نوالله تعالی دوی ته د وحی په ذریعه د دے واقعه خبر ورکړلو.نبی صلی الله علیه وسلم حضرت علی، حضرت زبیراو حضرت مقداد رضی الله عنهما ته حکم ورکړلو. چه سمدستی په سورلئ باندے سواره شئ.او د ..روضه خاخ.. په مقام کښے به درته یوه مسافره ښځه ملاؤ شی.هغے سره به یو خط وی.هغه راوړئ.

دا حضرات روان شول.و د نبی صلی الله علیه وسلم دخودنے مطابق ئے په هغه مقام کښے دغه ښځه اوموندله. اودهغے نه ئے خط واخستلو.او دنبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے ئے پیش کړلو.نبی صلی الله علیه وسلم د په خط کښے د لیکلو خبرو نه خبر شو.او دحضرت حاطب رضی الله عنه نه ئے تپوس اوکړلو.نو هغوی دا عذر پیش کړلو.حضرت د اسلام په باره کښے زما په زړه کښے څه شك نشته.اصلی خبره دا ده.چه تاسو سره دلته کښے څومره مهاجرین دی.د هغوی خپل خپلوان هلته په مکه کښے موجود دی. اوهغوی ددوی داهل وعیال اومال او اسبابو حفاظت کوی.اوزه د قریشو حلیف ووم.په هغوی کښے نه یم.هلته زما خپل خپلوان داسے څوك نشته.چه زما داهل وعیال حفاظت اوکړی. ما سوچ اوکړلو.چه زه به مشرکانو ته خط اولیکم.اوهغوی به خپل خیرخواه جوړ

---

(۱) فیض الباری (۹/۱)۔

(۲) اوګورئ التعلیق الصبیح علی مشکاة المصابیح (۹/۱)۔

(۳) اوګورئ فتح الباری (۱٤/۱) والتعلیق الصبیح (۱۰/۱)۔

كرم. چه هغوى زما داهل وعيال حفاظت كوى.اودا زما يقين دےچه الله تعالى به اسلام ته غلبه وركوى.اوزما په خط ليكلو سره به اسلام ته څه نقصان نه رسى.البته زما په كنبے دغه لږه غوندے فائده وى.

نبى ﷺ اوفرمائيل.«أما إنه صدقكم» چه ده رښتيا اووئيل.حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه د راز ښكاره كولو په وجه د حضرت حاطب رضي الله عنه د څټ وهلو اجازت اوغوښتلو .خو رسول الله ﷺ منع كړلو او وے فرمائيل.«إنه قد شهد بدراً وما يدريك لعل الله أطلع على من شهد بدراً فقال: إعملوا ما شئتم، فقد غفرت لكم» يعنى دوى بدرى صحابى دےاو دالله تعالى په نيز د بدريانولږ فضيلت دے.بله دا چه دے په خپل عذر كښے رښتينے دے.[١]

دلته كښے تاسو اوس اوګورئ.چه دحضرت حاطب رضي الله عنه عمل صحيح نه وو.خوچونكه د هغوى نيت د خير وو.څكه نبى ﷺ هغه ته سزا ورنكړه.

بهرحال ددے حضراتو قول دےچه دلته د نبى ﷺ منشا دنيت حسنه او نيت سيئه په مينځ كښے فرق دے.اودوى دا بيانول.چه داعمالو دحسن اوقبح مداردنيت په حسن او قبح باندے دے.

**د شيخ الاسلام علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله تحقيق** حضرت شيخ الاسلام علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى.چه بهتره دا ده.چه دلته ،،وجود،، مقدر اومنلے شى.خو وجود به د وجود حسى سره خاص نه وى.بلكه ،،وجود عندالله،، او ،،وجود شرعى،، مراد وى.چه د ښه يا بد عمل نيت كولو سره دهغه عمل وجود دالله په نيز باندے متحقق كيږى.اوپه ظاهر كښے دعدم وجود باوجود پرے د عذاب اوثواب فيصلے مرتب كيږى.

دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه روايت دےچه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.«إذا مرض العبد أو سافر كتب له مثل ما كان يعمل صحيحاً مقيماً»[٢] يعنى كله چه سړے بيمارشى.يا په سفر لاړ شى.اوهغه نفلى اعمال كوم چه به ئے په حالت دصحت اوپه حالت د اقامت كښے كول.د مرض يا دسفر د وجے نشى كولے.نوالله تعالى دمرض او سفر په دوران كښے د هغه نيكو اعمالو ثواب دده په عمل نامه كښے ليكى.

دغه شان څه خلق چه ايمان ئے راوړے وى.خود فرضيت د هجرت باوجود په مكه كښے هغوى په ازميښت كښے وو.او بيا د غزوه بدر په موقع هغوى دمجبورئ نه خامخا د كافرانو سره راووتل.نودا آيت نازل شو.[٣] ﴿ إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنتُمْ ۖ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ ۚ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا ۚ فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴾

---

(١) د واقعه دتفصيل دپاره اوګورئ صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الفتح وما بعث به حاطب بن أبى بلتعة إلى أهل مكة يخبرهم بغزو النبى ﷺ )_

(٢) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب يكتب للمسافر ما كان يعمل فى الإقامة رقم ٢٩٩٦)_

(٣) اوګورئ تفسير قرطبى (٣٤٥/٥)_

(١) دا مسلمانان په خپله خوښه د مسلمانانو سره د جنګیدو دپاره نه وو راوتلی. خو چونکه هجرت ئې نه وو کړے او د کافرانو په زور زیاتی باندے دوی راوتلی وو په دے باندے وعید نازل شو

ددے وعید علم چه کله حضرت ضمره بن جندب رضی الله عنه (٢) ته اوشو هغوی په مکه کښے وو اوسخت بیمار وو. هغوی خپلو متعلقینو ته اوونیل چه په هرحال کښے هم زه یم ما مدینے منورے ته بوځئ. نو په کټ کښے ئې کینولو اومدینے منورے سفر شروع شو چه څنګه تنعیم ته اورسیدلو نووفات شو. د هغوی په باره کښے ګونګوسے شروع شو بعضے حضراتو ونیل که هغه مونږ ته رارسیدلے وو نو پوره اجر به ورته

ملاو شوے وو. خوچونکه هغوی په تنعیم کښے وفات شو. په دے باندے دا آیت نازل شو

(٣)﴿وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ﴾ (٤) دلته اوګورئ

په دے کلام کښے څومره زور دے.. قد.. هم دے.. وقع.. هم او.. علی الله.. هم. حالانکه هجرت متحقق شوے نه وو. د هجرت خارجي اوحسي وجود نه وو راغلے اومدینے منورے ته نه وو رسیدلے. خو ددے باوجود د دوی د هجرت اعتبار شوے دے.

دغه شان دارقطني رحمه الله (٥) کښے حضرت انس رضی الله عنه نه مروی دی. چه رسول الله ﷺ فرمائیلي

دی. ((یجاء یوم القیامة بصحف مختمة، فتنصب بین یدی الله عزوجل فیقول الله عزوجل لملائکته القوا هذا واقبلوا هذا، فتقول الملائکة وعزتك ما رأینا إلا خیراً، فیقول وهو أعلم إن هذا کان لغیری، ولا أقبل الیوم من العمل إلا ماکان ابتغی به وجهی)) دلته فرشتو ټول اعمال د نیکئ په حیثیت باندے لیکلی دی. خوچونکه په بعضے اعمالو کښے نیت صحیح نه وو. هغه رد کړے شول. اوبعضے اعمال چه په هغے کښے نیت صحیح وو. هغه قبول کړے شول. لکه چه د الله تعالی په نیز د هغه عمل وجود معتبر دے. چه په هغے کښے د صحیح نیت دخل وی. او باقی اعمال تباه اوضائع دی. لکه چه دهغے هډو وجود نشته.

امام ترمذی. ابن ماجه. اوامام احمد رحمه الله د حضرت ابوکبشه رضی الله عنه نه حدیث نقل کړے دے چه نبی ﷺ فرمائیلي دی. ((مثل هذه الأمة کمثل أربعة نفر، رجل آتاه الله مالاً وعلماً فهو یعمل بعلمه فی

---

(١) سورة النساء: ٩٧۔

(٢) په دے آیت کښے د ..ومن یخرج من بیته نه مراد څوك دے په دے باره کښے ډیر نومونه اخستے شوی دی. (١) ضمره بن العیص (٢) العیص بن ضمره بن زنباع (٣) خالد بن حزام بن خویلد (٤) حبیب بن ضمره (٥) ضمره بن جندب الضمری (٦) جندب بن ضمره الجندعی (٧) ضرمه بن بغیض لیثی (٨) ضمره بن ضمر بن نعیم (٩) ضمره بن خزاعه. اوګورئ: الجامع لأحکام القرآن للقرطبی (٣٤٩/٥)۔

(٢٢٩) اوګورئ تفسیر قرطبی (٣٤٩/٥)۔

(٤) سورة نساء: ١٠٠۔

(٥) سنن دارقطنی (٥١/١) کتاب الطهارة باب النية۔

ماله ينفقه فى حقه، ورجل آتاه الله علماً ولم يؤته مالاً فهو يقول لو كان لى مثل هذا عملت فيه مثل الذى يعمل، قال رسول الله ﷺ فهما فى الأجر سواء، ورجل آتاه الله مالاً ولم يؤته علماً فهو يخبط فى ماله، ينفقه فى غير حقه، ورجل لم يؤته علماً ولا مالاً، فهو يقول: لو كان لى مثل هذا عملت فيه مثل الذى يعمل قال رسول الله ﷺ فهما فى الوزر سواء» واللفظ لابن ماجه(۱)

په دے حديث كښے اوګورئ په اولنو دوو سړو كښے ديو سړه علم هم شته اومال هم.هغه سړے دخپل علم مطابق خپل مال د نيكو په كارونو كښے خرچ كوى.اوبل سړى سره علم شته.خومال نشته.خودهغه نيت دا دے.كه ده سره مال وے.نوده به هم د اولنى كس پشان د نيكو په كارونو كښے مال خرچ كولو.نبى ﷺ په اجر كښے دواړه برابر كړل.حالانكه د دويم دعمل څه حسى اوظاهرى وجود نشته.خودے ته شرعاً اوعندالله وجود حاصل دے.څكه معتبر اوګنړلے شو.

دغه شان په دوو روستنو كسانو كښے د يو سره مال شته. علم نشته.هغه مال په فضول او د ګناهونو په ځايونو كښے خرچ كوى.اوبل سړى سره نه علم شته.اونه مال.خوهغه دا اراده لرى.كه زما سره مال وے.نو ما به هم د فلانى پشان په نوم نهاد ،رياكارئ اوګناهونو كښے خرچ كولو.نبى ﷺ ددے دواړو په باره كښے اوفرمائيل .چه په ګناه كښے دواړه برابر دى.حالانكه د بل كس د ګناه څه عمل نه دے بنكاره شوے.خوچونكه هغه نيت كړے دے.نوځكه هغه هم په ګناه كښے شريك شو.معلومه شوه.چه په اصل كښے اعتبار وجود شرعى اووجود عندالله ته دے .د وجود حسى څه اعتبار نشته.

دغه شان په حديث كښے راځى.رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.«إن أقواماً بالمدينة خلفنا ماسلكنا شعباً ولا وادياً إلا وهم معنا فيه،حبسهم العذر»(۲)په يوبل سند كښے دا الفاظ دى.«أن رسول الله ﷺ رجع من غزوة تبوك فدنا من المدينة فقال إن بالمدينة أقواماً ما سرتم سيراً ولا قطعتم وادياً إلا كانوا معكم قالوا يارسول الله وهم بالمدينة؟! قال وهم بالمدينة حبسهم العذر»(۳)يعنى په مدينه منوره كښے څه خلق زمونږ نه روستو پاتے شوى دى.هغوى زمونږ سره شركت اونكړے شو.خوكه مونږ يوګنداؤ يا خوړ باندے تير شوى يو.نوهغوى په مدينه كښے د ايساريدو باوجود مونږ سره دى.يعنى په دے ګنداؤ او خوړ كښے چه په تګ باندے كوم اجر اوثواب الله تعالى زمونږ دپاره مقرر كړے دے.هغه اجر اوثواب به هغوى ته هم ملاويږى. حالانكه هغوى په مدينه كښے ايسار دى.لكه چه دلته هم د نيت په وجه دهغوى عمل موجود اوګرځولے شو.

---

(۱) أخرجه الترمذى فى جامعه فى كتاب الزهد باب مثل الدنيا لأربعة نفر رقم.۲۳۲۵. ابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد باب النية رقم ۴۲۲۸. واحمد فى مسنده (۴/ ۲۳۰، ۲۳۱)_

(۲) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب من حبسه العذر عن الغزو رقم ۲۸۳۸، ۲۸۳۹)_

(۳) اوګورئ صحيح بخارى كتاب المغازى باب (بلاترجمة) بعد باب نزول النبى ﷺ الحجر رقم. ۴۴۲۳)

په مسند ابويعلى كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مرفوعاً روايت دے چه «من خرج حاجاً فمات كتب له أجر الحاج إلى يوم القيامة، ومن خرج معتمراً كتب له أجر المعتمر إلى يوم القيامة، ومن خرج غازياً فى سبيل الله فمات كتب له أجر الغازى إلى يوم القيامة»(١) يعنى دحج عمرے او جهاد دپاره وتونكے كه په لاره كښې وفات شى نوصرف دنيت په وجه به عندالله ماجور وى بنكاره ده چه دلته كښې هم ثواب په وجود فى النية باندے دے.

خلاصه دكلام داشوه چه ديو څيز د وجود دپاره په خارج كښې حساً وجود ضرورى نه دے بلكه دښه يا بد عمل نيت كول دالله تعالى په نيز دهغے وجود متحقق كيږى.

هم دا وجه ده چه ونيلى شى «نية المؤمن خير من عمله»(٢) د مؤمن نيت دده دعمل نه بهتر دے ځكه چه په عمل كښې بعضے وخت رياكارى راځى او نيت چونكه ددے تعلق د زړه سره وى نوځكه په دے كښې د رياكارئ احتمال نشته نوځكه صرف دنيت په وجه د څيز وجود تسليمولے شى.

بهرحال حضرت شيخ الاسلام علامه عثمانى رحمه الله فرمائى كه په دے حديث كښې مونږ ،،وجود،، مقدر اومنو او د وجود نه مراد ،،وجود شرعى،، او ،،وجود عندالله،، مراد واخلو نو مطلب بغير د څه تكلف صفا بے غباره په پوهه كښې راشى.(٣)

**دائمه ثلاثه رحمهم الله د استدلال نه جوابونه** وړاندے تيرشو چه ائمه ثلاثه دلته د ،،صحت، تقدير راويستے دے او په اودس كښې ئے نيت شرط ګرځولے دے. د دے په جواب كښې احنافو رحمهم الله د ،،ثواب،، يا ،،حكم،، تقدير راويستے دے. حضرت علامه عثمانى رحمه الله د ،،وجود،، تقدير منلے دے. اوحافظ ابن كثير، شيخ عزالدين عبدالسلام رحمهما الله د ،،عبرة،، تقدير منلے دے او حضرت كشميرى رحمه الله ددے متعلق عام ګرځولے دے په دے ټولو صورتونو كښې په اودس كښې د نيت اشتراط نه لازميږى.

ددے نه علاوه بعضے حضراتو دا فرمائيلى دى چه دا حديث د عباداتو په سلسله كښې وارد دے دا نه چه د قربات اوطاعاتو په باره كښې مونږ دا وايو چه اودس بغير د نيت نه عبادت خو نشى ګڼړلے خوالبته هغه اودس چه نيت په كښې نه وى او هغه دے ،،مفتاح صلاة،، هم جوړ نشى نوپه دے باندے په حديث كښې څه دلالت نشته (بلكه كه نيت نه وى نو هم دغه اودس مفتاح الصلاة ګرځيدے شى.)

---

(١) رواه الدارقطنى عن سبل بن سعد الساعدى كما فى مجمع الزوائد للهيثمى رحمه الله (٣/٢٠٨، ٢٠٩) كتاب الحج باب فضل الحج والعمرة)_

(٢) رواه الطبرانى عن سهل بن سعد الساعدى .كما فى مجمع الزوائد للهيثمى رحمه الله (١/١٠٩) كتاب الإيمان باب فى نية المؤمن المنافق وعملهما)_

(٣) اوګورئ فضل البارى شرح صحيح البخارى (١/١٤٥، ١٤٦)_

شيخ الاسلام حضرت زكريا انصارى رحمه الله فرمائى چه د نيت تعلق صرف د عباداتو سره وى د قربتو او طاعاتو سره نه وى. ددے وضاحت دا دے چه يودے عبادت ددے د صحت دپاره نيت هم ضرورى دے او د «من يتقرب إليه» معرفت هم ضرورى دے لكه تلاوت دقرآن چه په دے كښے نيت لازمى نه دے خو د «من يتقرب إليه» د معرفت سره تلاوت كول ضرورى دے چه دا دالله تعالى كلام دے او ددے په تلاوت به ده ته قرب حاصليږى.

دريم څيز دے طاعت. په دے كښے نه نيت ضرورى دے او نه د «من يتقرب إليه» معرفت. لكه د دين اسلام د حقانيت پيژندلو دپاره غور او فكر.

په دے باندے داسے پوهه شئ چه يو كافر كس دے چه دالله تعالى د وجودنه منكر دے. نوهغه د عالم په حوادثاتو كښے سوچ اوفكر شروع كړل او وے كتل چه د نمر د راختلو او ډوبيدو سلسله ډيره په نظم وضبط او ترتيب سره جارى ده. مثلا نن يوديشتم تاريخ دے نن څه وخت نمر راوختلو. يوزركاله چه كله دا تاريخ وو نو هم په دے وخت نمر راختلے وو. او صبا اولنے تاريخ دے او صبا ته به نمر راختل د نن په مقابله كښے نيم منټ روستو راخيژى. نو يو زر كاله وړاندے چه كله صبائے تاريخ راغلے وو نو يو منټ پس راختلے وو. دا حيرانونكے نظام هغه ګورى. دغه شان د غروب سلسله ده. چه دا هم د مستحكم نظام سره تړلے دے. هم دا كيفيت د سپوږمۍ په راختو او پريوتو كښے مشاهده كړى. صرف په نمر سپوږمۍ كښے نه بلكه د دنيا په ټولومعاملاتو كښے هغه مشاهده كوى. چه يو نظم دے يوترتيب دے. ډير په منظم او مرتب انداز كښے دا ټوله سلسله روانه ده.

دغه شان د غور اوفكر كولو نه پس هغه دے يقين ته اورسى. چه لكه څنګه مونږ تركومے پورے د شيے او ورځے په كارونو كښے ترتيب قائم نكړو. نوپه خپله ترتيب نه قائميږى. اود ترتيب حسن، سليقه، استحكام. د ترتيب قائمونكى په علم، قدرت او اراده باندے موقوف وى. كه ترتيب قائمونكے بے علمه وى. نوهغه په صحيح طريقه ترتيب نشى قائمولے. كه هغه قادر نه وى. بلكه عاجز وى. نوهغه ترتيب نشى وركولے. چه دا ئے اوكتل. نو هغه يقين اوكړلو. چه ددے عالم پيدا كونكے هم ضرور داسے ذات دے. چه هغه په علم اوقدرت كښے د كمال خاوند دے. اوچه اراده كونكے دے. بيا هغه دا هم ګورى. چه مونږ په دنيا كښے ډيرداسے څيزونه ګورو. چه په هغے كښے ترتيب وى. خو د نظم و نسق قائمونكے زمونږ وړاندے نه وى. او مونږ ته يقين وى. چه دا ترتيب چا قائم كړے دے. نوهغه ددے خبرے يقين اوكړى. كه دغه ذات زمونږ وړاندے نه دے خوچه مخامخ نه دے. نو ددے په وجه دهغه نه انكار كول نه لازميږى. نو ددے سوچ اوفكر په نتيجه كښے دالله تعالى دوجود او بيا د الله تعالى د كمال علم، كمال قدرت، او د ارادے د صفت قائل شى.

اوس ښكاره خبره ده. چه هغه په اول كښے دا سوچ شروع كړے وو. دثواب نيت ئے نه وو كړے. نيت خو دا څه كوئ. چه هغه د ثواب اوعقاب قائل نه وو. لكه چه په هغه وخت كښے نه نيت وو. اونه د «من يتقرب إليه» معرفت حاصل وو. خو دا نظر اوفكر اودا غور اولتون په طاعاتو كښے شامل دے په دے باندے به ده ته اجر ملاويږى.

نوحضرت شيخ الاسلام زكريا انصاري رحمه الله فرمائي چه په عباداتو كښے خو د نيت هم ضرورت شته.اود معبود معرفت هم لازمي دے.اوپه قرباتو كښے د نيت ضرورت نشته.خود «من يتقرب إليه» معرفت ضروري دے.اوپه طاعاتو كښے نه نيت ضروري دے.اونه د مطاع معرفت.(١)

تركومے پورے چه د اودس تعلق دے.نو مونږ وايو.چه دا په قرباتُ كښے داخل دے . په دے كښے نيت شرط نه دے.خودا معلوموول ضروري دي.چه اودس د مانځه دپاره كيږي اومونځ دالله تعالى دپاره كولے شي.

**په كومو كومو څيزونو كښې د نيت ضرورت شته؟** حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي چه دين په اصل كښے د پنځو څيزونو نه مركب دے.

① اعتقادات ② اخلاق ③ عبادات ④ معاملات ⑤ عقوبات.

په فقه كښے د اعتقادات او اخلاقو نه بحث نه كيږي.البته د باقي نورو درے څيزونو نه بحث كيږي.په دے كښے په عباداتو كښے په اتفاق سره نيت شرط دے.نومونځ روژه.حج.زكاة كښے هيڅ يو عبادت بغير د نيت نه نهٔ صحيح كيږي.

په معاملاتو كښے مناكحات، مالي معاوضات، خصومات، تركات، او امانات داخل دي.په دے كښے په يوكښے هم په اتفاق سره د نيت ضرورت نشته.

دغه شان په عقوبات كښے حد ردت، حد قذف، حدزنا، حد سرقه، اوقصاص داخل دي.په دے كښے هم چا د نيت شرط نه دے لګولے.

حضرت كشميري رحمه الله فرمائي.چه لكه څنګه دے حضراتو په معاملات، عقوبات، د نيت په دائره كښے د راتلونكو اعمالو نه خارج كړي دي.نومونږ هم اودس ددے اعمالو نه خارج كوو. ځكه چه دا عبادت محضه نه دے.بلكه په وسائلو كښے يوه وسيله ده.كه په اودس كښے د نيت دعدم اشتراط اعتراض په مونږ باندے ددے حديث د وجے متوجه كيدے شي.نوهم ددے حديث نه په معاملاتو،عقوباتوكښے د نيت د عدم اشتراط اعتراض په دے حضراتوهم راتلے شي.والله اعلم (٢)

**آيا داحنافو رحمهم الله اودس د نيت نه خالي وي؟** حضرت كشميري رحمه الله فرمائي.كه غور اوكړے شي.نومعلومه به شي.چه دلته د حديث باب دلاندے ددے اختلاف ګنجائش نشته. ددے وجه دا ده.چه دنيت نه بغير هيڅ حنفي اودس نه كوي.ځكه چه دنيت نه قصد قلبي اود زړه اراده مراد ده .تلفظ په نيت باندے مراد نه دے.ددے وجه علامه ابن تيميه رحمه الله وغيره ګڼرو عالمانوتصريح كړے ده.چه د نيت تلفظ نه د رسول الله ﷺ نه منقول دے.اونه د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه اونه د تابعينو نه.اونه د ائمه اربعوُ نه.(٣) لكه چه حنابلوُ رحمهم الله په نيت

(١) اوګورئ فيض البارى (٦/١)_

(٢) فيض البارى (٧/١)_

(٣) اوګورئ فيض البارى (٨/١)_

باندے تلفظ بدعت گرځولے دے (۱) نود نیت نه د زړه اندازه مقصود ده. کومه چه داختیاری افعالو کولو نه وړاندے وی. اوپه دے کښے احناف او باقی ټول حضرات برابر دی. ځکه چه یو کس د اذان داوریدو نه پس د مونځ په اراده باندے د کور نه راووځی. دهغه لاس د لوټے او مسواك طرف ته وړاندے کیږی. او بیا اوبه راواخلی. د درے اندامونو وینځل او مسح اوکړی نو آیا دا کس دا ټول کارونه بغیر د نیت نه کوی؟ نه بلکه دده نیت وی په نیت نے تلفظ نه وی کړے اوپه دے کښے څه حرج نشته.

بلکه داودس عمل د متوضی دعمل نه بغیر نه ثابتیږی. ځکه چه د اودس کولو نه دده نیت کله د قرآن تلاوت وی. کله ذکر وی. کله دجماعت مونځ یا نوافل وی. اوکله د فرض مونځونو ادا کول وی. بغیر د نیت نه څوك اودس کوی نه.

البته دا صورت کیدے شی چه یو سړے د خپل کور نه رابهر شو. اود دوکان نه سودا راوړی. اوپه لاره کښے باران شروع شی چه په هغے باندے دده د اودس اندامونه اووینځلے شی دلته کښے دده نیت د اودس کولو نه دے. بلکه د دوکانه پورے تلل اوسودا راوړل مقصود دی. په دے صورت کښے اختلاف کیدے شی چه چونکه نیت نے نه وو. نو د شوافعو په نیز به اودس نه کیږی. اود احنافو ﷺ په نیز نیت ضروری نه دے. نواودس به صحیح کیږی.

خود غور کولو خبره داده. چه دا صورت خوشاذ اونادر پیښیږی. نوپه دے کښے گرم گرم بحثونه کول مناسب نه دی. بلکه داسے مسئله د مجتهدینو په اجتهاد باندے پریخودل پکار دی. او داسے شاذ مسائل دحدیث په شرح کښے داخلول نه دی پکار. چه په هغے سره د حدیث مراد نظری جوړ شی. (یعنی گران اومشکل شی) حالانکه دهغے مراد بالکل بدیهی او واضح وو.

**قوله: وإنما لكل إمرء ما نوي:** دلته کښے دا بحث دے. چه په «إنما الأعمال بالنيات» اوپه «إنما لكل إمرئ ما نوى» کښے څه فرق دے؟ په دے سلسله کښے د عالمانو څو اقوال دی.

① دعلامه قرطبی ﷫ رائے دا ده. چه دویمه جمله د اولنۍ جملے دپاره تاکید دے د نیت معامله چونکه مهتم بالشان وه. ځکه نبی ﷺ د «إنما الأعمال بالنيات» جمله اوونیله. اوهم دا مضمون نے په بل انداز کښے بیان کړلو. حالانکه خبره یوه ده. د اولنۍ جملے مطلب دا دے که نیت صحیح وی نو عمل به مقبول وی. اوکه نیت صحیح نه وی. نوعمل به مقبول نه وی. او د دویمے جملے مطلب دا دے. چه نیت ښه وی نو عمل د ښه جزاء سبب جوړیږی. اوکه په نیت کښے فتور او خرابی وی. نوعمل د خرابی بدلے سبب جوړیږی. لکه چه عنوان بدل شو. او مضمون یو دے (۲)

---

(۱) اوگورئ السعاية فى كشف ما فى شرح الوقاية.(۲ ۱۰۰) د نیت دمسائلو او ددے د شرعی حیثیت دپاره اوگورئ ..السعاية (۲ ۹۷. ۱۰۴) قبيل باب صفة الصلاة)_

(۲) فتح البارى (۱ ۱٤)_

② نور حضرات فرمائي چه په اولنئ جمله كښے داعمالو په باره كښے خودلى شوى دى.چه ددے تعلق د نيت سره دے.اود حكم ترتب به په دے كيږى.او په دويمه جمله د عامل دحالت بيان دے.چه ده ته به دخپل نيت مطابق جزا ملاويږى.(١)

③ علامه نووى رحمه الله فرمائي.چه په اوله جمله كښے د نيت اوعمل په مينځ كښے ربط بيان شوے دے.چه داعمالو تعلق دنيت سره دے.او ددے دحسن او قبح مدار په نيت دے.اوپه دويمه جمله كښے د تعين منوى داشتراط فائده حاصليږى.مثلاً د يوكس په ذمه د ماسپخين اومازيگر د مونځونه قضا ده.اوس كه هغه مطلق نيت اوكړى . اود ماسپخين مونځ ادا كول غواړى.نونۀ ادا كيږى.دغه شان د مطلق څلورو ركعتو په كولو سره د مازيگر مونځ نه ادا كيږى.بلكه د ماسپخين د ادا كولو دپاره د ماسپخين او د مازيگر دادا كولو دپاره د مازيگر تعين ضرورى دے.لكه چه په دويمه جمله كښے دا خودلے شوى دى.چه عامل ترڅو منوى متعين نكړى.نودهغه دعمل اعتبار به نه وى.(٢)

④ د ابن السمعانى رحمه الله توجيه دا ده.چه په اوله جمله كښے هم د هغه «ربط بين العمل والنية» بيانول دى.اوپه دويمه جمله كښے دهغه مباح اعمالو بيان دے.كوم چه په عبادات كښے شامل نه دى.اوپه هغے كښے د نيت نه بغير اجر او ثواب نه ملاويږى .چه نيت ئے د ثواب وى.اود خير نيت اوكړى.نوثواب به ورته ملاؤ شى.گنى نه.(٣)

مثلا خوراك څكاك په مباحاتو كښے دى.په دے باندے به ثواب په هغه وخت كښے ملاويږى.كله چه د «تقوى على العبادة» نيت وى.يعنى چه زه دا خوراك ددے دپاره كوم.چه زما په بدن كښے طاقت پيدا شى.اوهغه قوت زه دالله تعالى په عبادت كښے خرچ كړم.

⑤ علامه ابن دقيق العيد رحمه الله دا توجيه فرمائيلے ده.چه اوله جمله د «ربط بين العمل والنية» دپاره ده.اوپه دويمه جمله كښے دا خودلے شوى دى.چه په عمل باندے به اجر اوثواب په هغه وخت كښے مرتب كيږى.چه په دغه عمل كښے نيت هم وى.او ورسره ورسره د شرطونو خيال هم ساتلے شوے وى.كه صرف د شرطونو خيال اوساتلے شى.اونيت نه وى.نواجربه نه ملاويږى.دغه شان چه دعمل نيت اوكړى .اود هغے د پوره كولوپخه اراده ئے هم وى.خو د څه شرعى عذر د وجے هغه كار اونكړے شى.نوده ته به د هغے كار ثواب ملاويږى.خوصرف دهغه عمل چه نيت ئے كړے وى.(٤)

---

(١) فتح البارى (١٤/١)_
(٢) عمدة القارى (٢٧/١)_
(٣) فتح البارى (١٤/١) وعمدة القارى (٢٧/١)_
(٤) فتح البارى پورتنئ حواله)_

() بعضے شاحینو دا توجیه کړے ده چه په دویمه جمله کښے د «نیابة لی النیة» نه منع شوے ده چه بغیر دعذر نه د بل دطرفه نیت کول معتبر نه دے بلکه هرسړے دے دخپل عمل په خپله نیت کوی (۱)

() شیخ عزالدین عبدالسلام رحمه الله فرمائی چه داولنۍ جملے مقصد دا دے چه کوم عمل معتبر دے او د دویمے جملے مقصد دا دے چه په اعمالو به نتائج کله مرتب کیږی نو په اوله جمله کښے دا خودلے شوی دی چه هغه عمل معتبر دے چه په هغے کښے نیت وی اوچونکه په یو عمل کښے ښه نیت او بد نیت هم کیدے شی نوخکه ئے په «انما لکل إمرئ ما نوی» کښے اوخودل چه د عمل په وخت کښے څنګه نیت اوکړی نتیجه به هم هغه مرتب کیږی (۲)

() اتمه توجیه دا ده چه په اولنۍ جمله کښے هم هغه د نیت او عمل په مینځ کښے ربط بیان شوے دے چه د عمل دارومدار په نیت دے چه څنګه نیت وی هغه شان به عمل وی او دویمے جملے مقصد دا دے که په یوعمل کښے ګڼ نیتونه جمع کیدے شی نود ټولو ثواب به ملاویږی مثلاً یو سړے جمات ته ځی اوصرف د مونځ نیت کوی نوصرف یو ثواب یعنی د مانځه ثواب به ورته ملاویږی اوکه هغه کس جمات ته دتلو په وخت کښے د مانځه د نیت سره دا نیت هم اوکړی چه د جماعت انتظار اوکړم اوتلاوت به اوکړم نفلی اعتکاف به اوکړم د مسئلے د زده کولو او بل ته دخودلو نیت هم اوکړی د نیکانو سره د ملاقات او هغوی د لیدونیت هم اوکړی د ګناهونو نه د بچ کیدو قصد هم اوکړی نو په دے ټولو نیتونو به ورته مستقل او ځانله ځانله ثواب ملاویږی (۳)

() علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه اولنۍ جمله مقدمه تجربیه عرفیه عقلیه ده او دویمه جمله د شرعی حکم بیان دے یعنی په اوله جمله کښے دا خودلے شوے دی چه عقلاً اوعرفاً دا خبره منلے شوے ده او ټولو ته معلومه ده چه داعمالو دارومدار په نیت وی اوپه دویمه جمله اولنۍ جملے ته شرعی استناد ورکوی اودا ښائی چه شرعاً هم دا عرف او عقلی فیصله معتبر ده (۴) په احادیثو کښے ددے څو مثالونه موندلی شی د حضرت ابوعبیده رضی الله عنه په منقبت کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی «لکل أمة أمین، وأمین هذه الأمة أبوعبیدة بن الجراح» (۵) په دے حدیث کښے «لکل أمة أمین» یوه جمله عرفیه تجربیه ده او «أمین هذه الأمة أبوعبیدة بن الجراح» دا جمله شرعیه ده شریعت دے عرف ته استناد ورکړلو.

---

(۱) عمدة القاری (۲۷/۱)_
(۲) فتح الباری (۱۴/۱)_
(۳) تقریر بخاری ازشیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب کاندهلوی قدس سره (۷۴/۱)_
(۴) اوګورئ حاشیه علامه سندهی رحمه الله برصحیح بخاری (۸/۱)_
(۵) صحیح بخاری کتاب المغازی باب قصة أهل نجران رقم ۴۳۸۲)_

دغه شان د رسول الله ﷺ ارشاد دے ((لكل شئ عروس،وعروس القرآن،،الرحمن))(١) په دے كښے اولنئ جمله ((لكل شئ عروس)) جمله عرفيه تجربيه ده او دے ته دويمے جملے استناد وركړلو.

،، علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه داولنئ جملے تعلق د اصل عمل سره دے يعنى اعمال به په هغه وخت كښے محبوب اومعتبر وى.چه د نيتونو سره د هغے اقتران وى .او په دويمه جمله كښے ددے بيان دے چه نيابت به په هغه وخت كښے معتبر وى چه د اخلاص سره اقتران وى خلاصه دا چه په دويمه جمله كښے د نيت نه مراد ..اخلاص.. دے(٢)

،، بوه توجيه دا شوے ده چه په دے كښے اولنئ جمله په منزله د علت فاعليه ده اودويمه جمله علت غائيه يعنى په اولنئ جمله كښے دا خودلى شوى دى چه څنګه فاعل په فعل كښے موثر وى دغه شان نيت په عمل كښے موثر وى.او په دويمه جمله كښے غايت بيان شوے دے چه څنګه نيت وى.دعمل ثمره به هم هغه شان وى.(٣)والله اعلم

**امام بخارى رحمه الله په دې مقام كښې نامكمل حديث ولې نقل كړلو؟**

امام بخارى رحمه الله دا حديث په خپل صحيح كښے ټول په اووه مقاماتو كښے نقل كړے دے(٤) ددے مقام نه علاوه په باقى ټولو ځايونو كښے ئے حديث مكمل ذكر كړے دے.اودلته كښے ئے يوه جمله چه ((فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله فهجرته إلى الله ورسوله)) ئے پريخودے دے سوال دا پيدا كيږى.چه امام بخارى رحمه الله داسے ولے كړى دى؟

،، ابن عربى رحمه الله فرمائى.چه دامام بخارى رحمه الله سره ددے جملے په سقط كولو كښے څه عذر نشته. ځكه چه ددوى شيخ حميدى رحمه الله په خپل مسندكښے دا حديث مكمل ذكر كړے دے.(٥)

،، بعضے حضراتو فرمائيلى دى.كيدے شى.چه دا حديث امام بخارى رحمه الله دخپل شيخ حميدى رحمه الله نه زبانى اوريدلى وى.اود امام حميدى رحمه الله نه د بيانولو په وخت كښے سهو شوے وى.يا بخارى رحمه الله دخپل حفظ نه نقل كړےوى اوهغه نه سهو شوےوى.

ابن عربى رحمه الله فرمائى.ددے حضراتود قوت حافظه او عملى شغف په رڼا كښے دا جواب ډيرمستبعد معلوميږى.(٦)

---

(١) كنزالعمال (٥٨٢/١ الباب السابع فى تلاوة القرآن وفضائله .الفصل الثانى رقم. ٢٦٣٨)_

(٢) الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبى (٩٠/١)_

(٣) امدادالبارى (٢١٧/٢)_

(٤) اوګورئ د ((إنما الأعمال بالنيات)) د بحث لاندے مونږ د دغه ټولوځايونو حوالے ذكر كړى دى._

(٥) فتح البارى (١٥/١) دغه اوګورئ مسند الحميدى (١٦/١. ١٧) احاديث عمران عمربن الخطاب)_

(٦) فتح البارى(١٥/١)_

() علامه داودی فرمائی دا اسقاط یقینا دامام بخاری رحمه الله نه شوے دے.خکه چه دا حدیث د هغوی دشیخ او شیخ الشیخ په روایت کښے مکمل دے.او پورته تیر شو چه امام حمیدی رحمه الله دا حدیث په خپل مسند کښے مکمل ذکر کړے دے.

بیا د یرو عالمانو مثلاًبشربن موسی رحمه الله ،ابواسماعیل ترمذی رحمه الله وغیره دامام حمیدی رحمه الله په سند سره دا حدیث مکمل نقل کړے دے.قاسم بن اصبغ رحمه الله په خپل کتاب کښے. ابونعیم رحمه الله په مستخرج کښے،ابوعوانه رحمه الله په خپل مسند کښے هم د امام حمیدی رحمه الله په سره دا حدیث مکمل نقل کړے دے.(۱)

بالفرض که چرته اسقاط دامام بخاری رحمه الله د طرفه نه وی.بلکه د هغوی د شیخ د طرفه وی. نوسوال پیدا کیږی چه امام بخاری رحمه الله دا ناقصه حصه دخپل کتاب په اول کښے ولے راوړله؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه امام حمیدی رحمه الله دامام بخاری رحمه الله په مکی شیوخو کښے د ټولو نه لوئے شیخ وو.اوهم په مکه کښے د وحی ابتداء شوے وه.خکه امام بخاری رحمه الله دخپل دټولو نه لوئے مکی شیخ نه د افتتاح په نیت سره دا حدیث او اودا سیاق دلته کښے درج کړلو (۲)

اوکه امام بخاری رحمه الله په خپله اسقاط کړے وی.اوهم دا راجح قول دے.نوددے مختلف جوابونه شوی دی.

() ابن حزم ظاهری اندلسی رحمه الله دا جواب ورکړے دے.چه په اصل کښے امام بخاری رحمه الله د عامو مصنفینو رحمهم الله پشان دخپل کتاب شروع کړے وه.د عامو مصنفینو رحمهم الله طریقه دا ده.چه هغوی دخپل کتاب شروع د خطبے نه کوی.او په هغے کښے د مقاصدو وضاحت کوی.چه دا تالیف ولے لیکلی شی؟ددے اسباب څه دی؟ په کتاب کښے به څه راوړی؟ وغیره وغیره.امام بخاری رحمه الله دا اوغوښتل.چه دا حدیث د خطبے په ځائے راوړی.اوهغوی دا اوخودل چه ما دا کتاب د کوم مقصد دپاره لیکلے دے.دهغے علم الله تعالی ته دے.که ما د دنیا د څه خیز نیت کړے وی.نو د هغے بدله به راته ملاویږی.اود حدیث دویم جزء چونکه په تزکیه باندے دلالت کوی.نوځکه امام بخاری رحمه الله دا حذف کړلو.(۳)

حاصل دا دے.چه جمله متروکه په تزکیه باندے دلالت کوی.اوجمله مذکوره باقیه په تردد باندے.چونکه امام بخاری رحمه الله دلته د خپل حالت بیان کوی.نوځکه ئے هغه جمله حذف کړه.کومه چه په تزکیه مجرده باندے دلالت کوی. اوپه کومه جمله کښے چه احتمال او تردد وو هغه ئے ذکر کړله.لکه چه د حسن نیت د دعوے نه ئے اجتناب اوکړلو

خودا جواب ښه نه دے خکه چه په حدیث کښے ترمیم کول او دهغے جملے حذف کول صرف د دے خیال اوتوهم د وجے ټیک نه دے بیا دحدیث پوره ذکر کولو نه دا خبره نه لازمیږی.چه

---

(۱) پورتنۍ حواله)_

(۲) پورتنۍ حواله)_

(۳) فتح البارى (۱/۱۵)_

امام بخاري رحمه الله د خپل خان دپاره د حسن نيت دعوه کوي بلکه دا صرف توهم دے ددے په وجه په حديث کښے اختصار کول جائز نه دے.

() حافظ ابن حجر رحمه الله ددے جواب دا ورکړے دے چه عام طور د مصنفينو رحمهم الله عادت دا دے چه په خپلو خطبو کښے خپلو خاصو اصطلاحاتو او اختيار کړې رائے ګانو ته اشاره کوي چونکه دامام بخاري رحمه الله مسلك دا دے چه په حديث کښے ..خرم.. يعني اختصار کول جائز دے دوي د روايت بالمعنى د جواز هم قائل دي د مسائلو په استنباط کښے تحقيق کوي اخفى په ته خفى باندے ترجيح ورکوي .او هغه اسانيد خوښوي چه په هغے کښے د سماع، اوتحديث او اخبارصراحت وي . نو امام بخاري رحمه الله دے ټولو مقاصدو ته ددے حديث په سند او متن کښے اشاره اوکړله.([1])

حاصل دا چه امام بخاري رحمه الله دلته په حديث کښے اختصار کړے دے اودا ئے خودلي دي چه زما په نيز «خرم في الحديث» جائز دے.

تنبيه «خرم في الحديث» مطلب دا دے چه دحديث په بعضے جملو باندے اکتفاء اوکړے شي اوبعضے جملے حذف کړے شي د دے حکم دا دے که په دے سره په معنى کښے څه خلل نه واقع کيږي نوپه دے کښے څه قباحت نشته.([2])

() علامه کرماني رحمه الله يو عجيبه جواب ورکړے دے چه په اصل کښے امام بخاري رحمه الله دا حديث په مختلفو مواقعو کښے اوريدلے دے په کوم وخت کښے چه د دے مسئلے بحث کيدلو چه په ايمان کښے د ..نيتونو..اعتبار دے نو په هغه وخت کښے ئے مکمل حديث اوريدلے دے خکه ئے په کتاب الايمان کښے مکمل د سياق سره ذکر کړے دے اوکله چه دا مسئله زير بحث وه چه داعمالو دپاره نيت ضروري دے. نو په هغه وخت کښے ئے ناقص اوريدلے دے خکه ئے دلته ناقص حديث ذکر کړے دے.([3])خودا دعلامه کرماني رحمه الله خيال دے چه ددے څه اصل نشته. خکه چه دا خو په دے خبره باندے موقوف دے چه دا ثابته شي چه د کومو کومو شيوخو نه امام بخاري رحمه الله دا حديث حاصل کړے دے دهغه مشائخو خانله خانله تاليفات وي اوهغوي د مسائلو بحث کښے دا حديث ذکر کړے وي او بيا امام بخاري رحمه الله د خپلو دغه مشائخو په تقليد کښے هم د دغه مسائلو په ضمن کښے دا احاديث ذکر کړي وي.

اول خو د هر يو تاليف ثابت نه دے بالفرض که د بعضو ثابت هم شي نود امام بخاري رحمه الله تقليد ثابت نه دے خکه چه امام بخاري رحمه الله لکه چه څنګه د صحيح احاديثو په نقل کولو کښے د چا تقليد نه دے کړے دغه شان ئے په تبويب او اخذ تراجم کښے هم د چا تقليد نه دے

---

(۱) فتح الباري (۱/۱۵، ۱۶)_

(۲) د ((خرم في الحديث)) د جواز او عدم جواز په باره کښے د تفصيل دپاره اوګورئ تدريب الراوي (۲/۱۰۳، ۱۰۴) النوع السادس والعشرون.صفة رواية الحديث.جواز رواية بعض الحديث وإختصاره)_

(۳) اوګورئ شرح کرماني على البخاري (۱/۲۱۳) کتاب الإيمان باب ما جآء أن الأعمال بالنية والحسبة)_

کړې مشهوره ده چه دوی د تراجمو په انعقاد او د مسئلو په اخذ او استنباط کښې منفرد دې د چا اتباع ئې نه ده کړې والله اعلم

۱) خلورم جواب کوم چه د شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله خوښ کړې دې دا دې چه وړاندې مونږ د شیخ الاسلام زکریا انصاری په حواله سره ذکر کړی دی چه د خیر د اعمالو او نیکو درې قسمونه دی

طاعت.قربت.او عبادات. هلته کښې مونږ دا هم ذکر کړی وو چه په طاعاتو باندې داجر او ثواب دپاره نه د نیت ضرورت شته او د مطاع د معرفت.حالانکه په عباداتو باندې داجر و ثواب د ترتب دپاره نیت هم ضروری دې او د معبود معرفت هم.

ترکومې پورې چه د قرباتو تعلق دې نو په هغې کښې د نیت ضرورت نشته.خو د «من يتقرب إليه» معرفت ضروری دې خو شرط دا دې چه نیت فاسد نه وی .لکه چه په قربات باندې د ثواب د ترتب دپاره د بد نیت نه احتراز لازمی دې

اوس دلته کتل دا دی چه دلته د کوم تصحیح نیت په غرض دا حدیث راوړلے شوے دې هغه په کوم قسم کښې داخل دې؟ نو دا دقربات په قسم کښې داخل دې.څکه چه د نبی ﷺ احادیث لوستل د قرآن کریم دتلاوت پشان دی.او په قربات کښې نیت د تقرب شرط نه دې صرف د بد نیت نه احتراز کافی دې.

امام بخاری رحمه الله دلته جزء اول یعنی «فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله» حذف کړلو او دویم جزء یعنی «فمن كانت هجرته إلى دنيا..» ئې ذکر کړله.په دې باندې تنبیه ورکول غواړی.چه که تاسو ددې د لوستلو او اوروړلو په وخت کښې ښه نیت نشئ کولې نوکم ازکم د بد نیت نه احتراز اوکړئ.دا به هم د ثواب دپاره کافی شی.(۱)

**قوله فمن كانت هجرته:** هجرت او ددې قسمونه په لغت کښې د ..هجرة.. معنی دی پریخودل.او په عرف کښې هجرت ترک وطن ته وائی.بیا د وطن د پریخودلو مختلف صورتونه دی

۱) کله خو سړے د دنیاوی غرض دپاره وطن پریږدی.لکه ډیرخلق دتجارت په غرض یا د ملازمت په نیت په نورو ملکونو کښې اوسیږی

۱) بعضې وخت کښې ترک وطن ددې وجې کیږی چه په خپل وطن کښې امن او اطمینان نه وی.نو سړے د خوف د ځائے نه د امن ځائے ته منتقل شی لکه چه د حبشه په دواړو هجرتونو کښې داسې شوی وو مسلمانانو ته په مکه کښې امن حاصل نه وو هروخت به په ویره کښې وو.نو هغوی دغه وطن پریخودلو.او حبشه ته لاړل چه هلته کښې امن وو.

۱) دغه شان په اول کښې چه مسلمانانو مدینې منورې ته هجرت اوکړلو.نو مدینه دارالامن وو.خو چه کله نبی ﷺ مدینې ته تشریف یوړلو.او هلته ورسره قرار ملاؤ شو .نو بیا دالاسلام

---

(۱) اوګورئ فضل الباری (۱/۱۵۰)_

شو. ددے نه پس چه کومو خلقو هجرت کړے وو. نو دا هجرت من دار الکفر الی دار الاسلام وو. دا هجرت د ترک وطن يو دريم صورت شو. (١)

() بيا په آخره زمانه کښے به يو بل هجرت وى. کوم چه به شام طرف ته وى. په مسند احمد (٢) و ابوداود (٣) کښے يو حديث دے. «ستكون هجرة بعد هجرة، فخيار أهل الأرض ألزمهم مهاجر إبراهيم عليه السلام...»

او په شريعت کښے هجرت د ترک معاصى نوم دے. اوهم دا حقيقى هجرت دے. نبى ﷺ فرمائيلى دى. «المهاجر من هجر ما نهى الله عنه» (٤)

لکه چه د هجرت درے اهم قسمونه دى. () هجرت لغوى () هجرت عرفى () او هجرت حقيقى شرعى. د تجزيه کولو په صورت کښے ددے په شمار کښے زيادت راځى.

بيا په دے قسمونو کښے «هجرة إلى الحبشة» او «هجرة إلى المدينة» خو ختم شوى دى. البته «هجرة من دار الكفر إلى دار الإسلام» او «هجرة إلى مهاجر إبراهيم عليه السلام» باقى دے.

دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما په حديث کښے «لا هجرة بعد الفتح ولكن جهاد ونية» (٥) کښے د مدينے دهجرت نفى شوے ده. او دحضرت معاويه رضى الله عنه په حديث «لا تنقطع الهجرة حتى تنقطع التوبة، ولا تنقطع التوبة حتى تطلع الشمس من مغربها» (٦) کښے «هجرت من دار الكفر إلى دار الإسلام» مراد دے. والله اعلم

**قوله: إلى دنيا يصيبها:** () ..دنيا.. د ..دنو.. نه مشتق دے. ددے معنى ..نزديکت.. دے. چونکه دا زوال ته نزدے ده. خکه ورته ..دنيا.. وائى.

() اوبعضو وئيلى دى. چه ..دنيا.. ورته خکه وائى. چه دا دآخرت په نسبت نزدے ده. (٧)

() دبعضے حضراتو رائے دا ده. چه دا د «دناءة» نه ماخوذ ده. ددے معنى خست او رذالت دے. چونکه دا د آخرت په نسبت خسيسه او ذليله ده. خکه ورته ..دنيا.. وائى. (٨)

---

(١) اوګورئ فتح البارى (١/١٦)_

(٢) مسند احمد (٢/٢٠٩) مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنهما)_

(٣) سنن أبى داود كتاب الجهاد باب فى سكنى الشام رقم ١٤٨٢)_

(٤) صحيح بخارى كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده رقم ١٠)_

(٥) صحيح بخارى كتاب الجهاد والسير باب فضل الجهاد والسير رقم ٢٧٨٣)_

(٦) سنن أبى داود كتاب الجهاد باب فى الهجرة هل انقطعت؟ رقم ٢٤٧٩)_

(٧) فتح البارى (١/١٦)_

(٨) امداد البارى (٢/٤٢٥)_

دنيا د فعلى په زون داسم تفضيل صيغه ده اوغيرمنصرف ده دعدم انصراف وجه ئې لزوم تانيث دے اودا يو سبب قائم مقام د سببينو دے (١)

علامه تيمي رحمه الله فرمائي په دے کښے دوه سببه دي يو وصف او بل تانيث. خو دهغوی په قول اعتراض شوے دے چه تانيث کله دالف مقصوره يا الف مدوده سره وي نو د بل سبب ضرورت نه وی (٢) ددے نه علاوه ددے وصفيت ختم شوے هم دے خکه چه ددے نه وصفيت معني ويستلے شوے ده او خالص داسميت په معني کښے مستعمله ده هم دا وجه ده چه دا نکره راوړل ټيک دی که چرته د وصف په معني کښے وه نو د اسم تفضيل چه کوم درے طريقو (د اضافت سره د ..من.. سره. اود الف لام سره.) کښے به په يوه طريقه ددے استعمال ضروري وو . حالانکه د ..اضافت.. او ..من.. سره ددے استعمال ممکن نه دے البته دريمه طريقه ممکنه وه او هغه استعمال شوے نه ده نومعلومه شوه چه په دے کښے د وصفيت معني نشته چونکه د وصفيت معني په کښے ختمه شوے ده او د اسميت معني په کښے پيدا شوے ده نوځکه نکره استعمال ئې ټيک دے لکه د شاعر په دے شعر کښے اسم تفضيل منکر استعمال شوے دے.

وإن دعوت إلى جُلّى ومكرمة ﴿﴾ يوماً سراة كرام الناس فادعينا (٣)

که ته په دجنګ په ورځ .يا عظيمے حادثه په ورځ. ياد سخاوت دپاره شريفان راغواړے نو مونږ هم راوغواړه ځکه چه مونږ هم په سردارانو کښے يو.

دلته کښے «جلى» په اصل کښے اسم تفضيل دے او په دے کښے د وصفيت معني وه خو ددے وصفيت ختم شوے دے او اوس دا د حادثه عظيمه په معنى کښے مستعمل ده (٤)

**د دنيا تعريف** د دنيا په تعريف کښے دوه اقوال دی.

① «ماعلى الأرض من الهواء والجو»

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي دا تعريف غوره دے خو په دے کښے د «قبل قيام الساعة» قيد لګولو ضرورت دے.

② دويم قول دے «كل المخلوقات من الجواهر والأعراض الموجودة قبل الدار الآخرة» علامه عيني رحمه الله د علامه نووي رحمه الله نه ددے دويم قول ترجيح نقل کړے ده (٥)

بيا په لفظ د ..دنيا.. باندے تنوين شته که نه؟ د بخاري په ټولو نسخو کښے غير منون دے او ابن الدحيه رحمه الله دابوالهيثم کشميهني رحمه الله په روايت کښے تنوين سره نقل کړے دے او

(١) فتح الباري (١٧/١)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) اوګورئ ديوان حماسه مع شرح تسهيل الدراسة (ص.٢١)_

(٤) فتح الباري (١٧/١) وعمدة القاري (٢٤/١)_

(٥) اوګورئ فتح الباري (١٦/١) وعمدة القاري (٢٤/١)_

دے تضعيف ئے كړے دے.اودا ئے هم وئيلى دى.چه ابوذر هروى رحمه الله په آخر كښې د كشميهنى رحمه الله هغه روايات چه په هغې كښې هغه منفرد دے.هغه ئے حذف كول.اوفرمائيل به ئے چه دے دعلم خاوند نه وو.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دا خبره على الاطلاق مسلمه نه ده.خكه چه په ډيرو مقاماتو كښې د كشميهنى رحمه الله روايات د نورو د رواياتو په مقابله كښې صحيح وى.[2] تركومې پورې چه په نفس لفظ كښې د تنوين تعلق دے.نو اكثر حضرات وائى.چه دا بغيرد تنوين دے.البته علامه عينى رحمه الله د بعضې شاعرانو د شعرونو نه دا ثابته كړې ده. چه د تنوين لغت بيخى مردود نه دے.البته قليل الاستعمال دے.[3]

**قوله: أوإلى إمرأة ينكحها:** دلته كښې په ..دنيا.. كښې ښځه داخله وه.ددے باوجود ئے مستقلا ښځه ولې ذكر كړه؟د دے څو جوابونه وركړے شوى دى.

① امام نووى رحمه الله فرمائى.چه ..دنيا..نكره ده.اوتحت الاثبات ده.او په نكره تحت النفى كښې عموم وى.په دے صورت كښې د«امرأة» په ..دنيا.. كښې دخول يقينى وو.اوس چونكه نكره تحت الاثبات ده.نود «امرأة» د ..دنيا.. په مفهوم كښې دخول متيقن نه وو.خكه ئے دا ذكر كړله.[4]

خود امام نووى رحمه الله په دے جواب باندے اعتراض شوے دے.چه لكه څنګه په نكره تحت النفى كښې د عموم مفهوم وى.نو دغه په نكره في سياق الشرط كښې هم عموم وى.او دلته هم داسې ده.نو عموم راغلو.او په دے كښې ..ښځه.. هم داخله ده.[5]

② دويم جواب دا وركړے شوے دے.چه دا د قبيلې د ذكرالخاص بعدالعام دے .او دا زيادت د اهتمام دپاره وى.[6]

③ دريم جواب ابن بطال رحمه الله د ابن سراج رحمه الله نه دا نقل كړے دے.چه د ښځې تخصيص ذكر خكه راغلو.چه عربيانو به د اسلام نه وړاندے د غلام سره دعربى ښځې نكاح نه كوله.او دكفاءت اعتبار به ئے كولو.كله چه اسلام راغلو.نو دا ئے باطل كړلو.نو مدينې منورې ته ډيرو غلامانو په دے نيت باندے هجرت اوكړلو.چه دلته به دعربى ښځې سره نكاح اوكړى.[7]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دلته خو اول ددے خبرے دثبوت ضرورت دے. چه هجرت كونكے سړے غلام وو.اوهغه ښځه عربيه وه.بيا دا چه څه وئيلى شوى دى.چه عربيانو به د

---

(۱) فتح البارى (۱۷/۱)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) عمدة القارى (۲٤/۱)_

(۴) فتح البارى (۱۷/۱)_

(۵) پورتنئ حواله)_

(۶) اوګورئ شرح نووى على صحيح مسلم (۱٤۱/۲) كتاب الإمارة باب قوله ﷺ إنما الأعمال بالنية وفتح البارى (۱۷/۱)

(۷) فتح البارى (۱۷/۱)_

موالیو سره د عربی ښځو نکاح نه کوله.دا هم نه ده منلے شوے.ځکه چه د اسلام نه وړاندے د موالیو سره د نکاح ډیر واقعات ثابت دی.بیا دا هم مطلقاً نشی منلے.چه اسلام مطلقاً کفاءت باطل اوګرځولو.([1])((وسیأتی البحث منه فی موضعه إن شاء الله تعالیٰ))

④ څلورم جواب دا ورکړے شوے دے.چه مهاجرینو ﷺ کله مدینے منورے ته تشریف راوړلو نوانصارو د ایثاریے مثاله مظاهره اوکړله.اود همدردئ انتها ئے اوکړله . دخپلو مهاجرینو رونړو دپاره دخپلو زمکو او مالونو تقسیم ته غاړه کیخودله.بعضو په کنے خپلو مهاجرینو رونړو ته تر دے پورے اووئیل.چه زما په نکاح کنے دوه بیبیانے دی په هغوی کنے زه یوه ستا دپاره پریږدم.چه کومه غواړے .نوخوښه ئے کړه.نودا خطره پیدا شوه.چه د انصارو د دے قربانو او ښه اخلاقو په باره کنے څوک واوری.اوڅوک دا سوچ اونکړی.چه زه غریب او تنګ حاله یم.هجرت به اوکړم.او مدینے منورے ته به لاړ شم.هلته به راته مال هم ملاؤ شی.او ښځه هم.نو نبی ﷺ ((سدأللباب))او د تنبیه دپاره دواړه څیزونه ذکر کړل.([2])

﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۭ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ ([3]) په دے کنے دټولو نه اول د ښځو ذکر شوے دے.او ددے وجه دا ده.چه د ښځو فتنه دټولو نه سخته اوعظیمه فتنه ده. په حدیث کنے ارشاد دے ((ماترکت بعدی فتنة أضر علی الرجال من النساء)) ([4]) په یو بل حدیث کنے دی.((النساء حبائل الشیطان))([5])

چونکه د ښځو فتنه دټولو نه نقصانی وه.تردے چه ښځو ته د شیطان جال ونیلے شوے دے.د دے نه د ویرولو او بچ کیدو دپاره نبی ﷺ د ..دنیا.. د ذکر کولونه پس مستقلاً د ښځے ذکر اوکړلو.

⑤ یوجواب دا هم ورکړے شوے دے.چه چونکه د حدیث شان ورود د مهاجر ام قیس واقعه ده.ددے وجے نبی ﷺ د دنیا نه پس د ښځے ذکر اوکړلو.

وړاندے مونږ ددے حدیث په شان ورود کنے د طبرانی په حواله سره دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ روایت ذکر کړے وو.چه یو کس ام قیس نوم ښځے ته د نکاح پیغام راولیږلو.په

---

(۱) پورتنئ حواله)_

(۲) فضل الباری (۱۴۹/۱) وامداد الباری (۲۲۵/۲. ۲۲۶)_

(۳) آل عمران ۰۱۴)

(۴) اوګورئ صحیح بخاری شریف. او په یوحدیث کنے دی.((النساء حبائل الشطان)) (() رواه رزین کذا فی مشکاة المصابیح (ص.٤٤٤) کتاب الرقاق الفصل الثالث)_

(۵) رواه رزین کذا فی مشکواة المصابیح (ص.٤٤٤) کتاب الرقاق الفصل الثالث)_

دے باندے هغے د هجرت شرط اولگولو .اوهغه شرط پوره کړلو او دغه شان دهغوی په خپل مینځ کښے نکاح اوشوه.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی .دا حدیث په خپل ځائے صحیح او ټیک دے .خو ددے خبرے په دے کښے څه صراحت نشته .چه حدیث «انما الأعمال بالنیات» هم په دے واقعه کښے وارد شوے دے اونه څه په بل سند سره ددے تصریح ملاویږی. (۱) خو شیخ محمد عابد سندهی رحمه الله په خپل کتاب «مواهب لطیفه» کښے د زبیربن بکار رحمه الله دکتاب په حوالے سره روایت نقل کړے دے په هغے کښے صراحت دے .چه هم ددے واقعه په وجه نبی ﷺ خطبه ونیلے وه او په هغے کښے ئے دا حدیث اورولے وو. (۲)

**یواشکال اودهغے جواب** دلته یو اشکال کیږی .چه مهاجرام قیس رضی الله عنه صحابی دے .اود یو صحابی په حق کښے دا خبره ډیره لرے ده .چه هغوی د ښځے دپاره هجرت اوکړی .هغوی دا سے ولے اوکړلو؟

ددے جواب دادے .چه چونکه د نبی کریم ﷺ د طرفه براه راست نکیر موجود دے نوځکه ددے د نفی خو گنجائش نشته .البته په صحابه کرامو رضی الله عنهم د حسن ظن تقاضا دا ده .چه مونږ داسے اووایو .چه زمونږ دا عقیده نه ده .چه دغه صحابی رضی الله عنه صرف د نکاح په نیت باندے هجرت کړے وو .بلکه مطلب دا دے .چه د هغوی نیت مخلوط وو او دمخلوط په باره کښے دا تفصیل دے .که لوجه الله نیت غالب وی .نو هغے اعتبار به وی .اوکه نیت د غیرالله غالب وی .نو دهغے اعتبار به وی .اوکه دواړه برابر وی .نو بنا په «أنا أغنی الشرکاء عن الشرك» (۳) باندے دغیرالله اعتبار به وی .خودلته د رسول الله ﷺ په صحابی رضی الله عنه حسن ظن هم دا دے چه د هغوی نیت لوجه الله غالب وو .نو د ثواب نه بیخی محروم به نه وی خوچونکه دلته معمولی غوندے خلط هم د صحابی رضی الله عنه د شان سره لائق نه دے .نوځکه په حدیث کښے پرے تنبیه ورکړے شوه. (۴)

**فائده** د ام قیس په باره کښے حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله لیکلی دی .چه د دے نوم ..قیله.. وو .البته د ..مهاجرام قیس.. په باره کښے ټولو دلاعلمی اظهار کړے دے. (۵)

حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب قدس سره فرمائی .چه قصداً د دوی نوم نه دے ښکاره کړے شوے .چه یو صحابی په دے خاص خبره باندے مشهور نشی. (۶)

---

(۱) فتح الباری (۱۰/۱)_

(۲) اوګورئ فضل الباری (۱۴۹/۱)_

(۳) صحیح مسلم (۴۱۱/۲) کتاب الزهد باب تحریم الریاء)_

(۴) فضل الباری (۱۴۹/۱)_

(۵) اوګورئ فتح الباری (۱۷/۱) وعمدة القاری (۲۸/۱)_

(۶) تقریر بخاری (۷۶/۱)_

**نكاح يو مباح څيز دې ددې په نيت سره ولې هجرت نه صحيح كيږي؟** دلته يو اشكال داهم كيږي چه د يوې ښځې سره نكاح كول مباح څيز دې ناجائز نه دې كه يو سړې د نكاح دپاره هجرت كوى نوپه دې كښې خو د عدم جواز څه خبره نشته.نو بيا د داسې هجرت مذمت ولې بيان شو؟

ددې جواب دا دې چه بيشكه نكاح يو مباح ،مسنون بلكه په بعضې وخت كښې واجب هم وى خودلته مذمت په دې وجه دې چه د دنيا كار ته د دين شكل وركولې شي.د دنيا يوجائز كار كه د دنيا په رنګ كښې اوشي.نو په دې كښې څه اشكال نشته.خو چه د دنيا كار وى اوهغې ته د دين صورت وركړې شي.اوپه ظاهر كتونكو ته دا ښكارى چه ته د دين كار كوې.او په حقيقت كښې ستا نيت د دين نه وى.نودا خبره معيوبه او قابل اعتراض ده.

**څو سوالونه او دهغې جوابونه** مجموعى طور د حديث تشريح اوشوه.البته دلته څو سوالونه او دهغې جوابونه ذكر كولې شي.

**اولنې سوال د شرط او جزاء په مينځ كښې اتحاد** په حديث كښې «فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله فهجرته إلى الله ورسوله» الفاظ راغلى دى.په دې كښې د «من كانت هجرته إلى الله ورسوله» كښې مبتداء متضمن معنى دشرط لره ده.او «فهجرته إلى الله ورسوله» كښې دوه صورتونه كيدې شي.

يو دا چه د «إلى الله ورسوله» تعلق د «هجرة» سره وى.په دې صورت كښې به پوره عبارت مبتدا شي.او خبر به محذوف راويستلې شي.مثلاً «صحيحة» پوره عبارت به دا شي.«فهجرته إلى ورسوله صحيحة» او ددې نه پس به دا خبر متضمن معنى د جزاء لره شي.

دويم صورت دا دې چه «هجرته» مبتدا جوړه كړې شي.او«إلى الله ورسوله» د «كائنة» سره متعلق خبر كړې شي.بيا مبتدا اوخبرملاؤ شي.اومتضمن معنى د جزاء لره شي.

په صورت كښې دلته اوله حصه «من كانت هجرته إلى الله ورسوله» مبتدا متضمن معنى د شرط لره شوه.او دويمه حصه «فهجرته إلى الله ورسوله» خبر متضمن معنى د جزاء لره شو.

دلته اشكال دا دې چه د مبتدا او خبر په مينځ كښې دغه شان د شرط او جزاء په مينځ كښې تغاير پكار دې.حالانكه دلته په دواړو كښې اتحاد موندې شي.اوبعينه هم دا خبره «ومن كانت هجرته إلى دنيا يصيبها أو إلى امرأة ينكحها فهجرته إلى ما هاجر إليه» كښې هم ده.دلته كښې هم په مبتدا او خبر كښې لفظاً اتحاد دې.

ددې څو جوابونه وركړې شوى دى

① ابوالفتح قشيرى رحمه الله فرمائى.لفظاً اګرچه اتحاد دې خو معناً تغاير دې.دلته عبارت محذوف دې.هغه داسې دې «فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله فهجرته إلى الله ورسوله حكماً وشرعاً»(١)

---

(١) عمدة القارى (٢٤/١) بيان الإعراب)_

دغه شان په دويمه جمله كښې هم ونيلى شى چه «من كانت هجرته إلى دنيا.. قصداً ونية فهجرته إلى ما هاجر إليه حكماً وشرعاً» اوس په شرط او جزاء كښې اتحاد باقى پاتې نشو بلكه تغاير شو

④ دويم جواب دا دے اگرچه دلته لفظاً اتحاد دے خو معناً تغاير دے اومغايرت معنوى د صحت كلام دپاره كافى وى بيا دا «اتحاد بين الشرط والجزاء» او «اتحاد بين المبتدا والخبر» كله د «مبالغة فى التعظيم» دپاره هم وى لكه چه ونيلى شى «أنا أنا» دلته كښې په ظاهره مبتدا او خبر دواړه متحد دى خو په معنى كښې تغاير شته خكه چه په دے كښې د دويم «أنا» نه مراد «الكامل فى المروة» يا «الكامل فى الشجاعة» دے

دغه شان د ابوالنجم مشهوره مصرعه ده «أنا أبو النجم وشعرى شعرى»

په دے مصرعه كښې «شعرى شعرى» په ظاهر مبتدا او خبردواړه يو دى خو په معنى كښې ئے تغاير شته په مصرعه كښې ددے معنى ده «شعرى الآن كشعرى فيما مضى» يا دا مطلب دے چه «شعرى هو شعرى المشهور بالبلاغة» (١)

دغه شان دلته كښې هم «من كانت هجرته إلى الله ورسوله فهجرته إلى الله ورسوله» كښې د مبالغه في التعظيم د وجے صورةً اتحاد دے او حقيقةً اتحاد نه دے (٢)

بيا كله دا «اتحاد بين المبتدء والخبر» د مبالغه في التحقير دپاره هم راخى لكه چه هارون الرشيد واقعه مشهوره ده چه هغوى حج ته تلى وو نو هلته ئے په ژړا ژړا كښې دا دعا كوله «اللهم أنت أنت وأنا أنا» يعنى «أنت العواد بالمغفرة وأنا العواد بالذنب»

دغه شان دلته په دويمه جمله كښې يعنى «ومن كانت هجرته إلى دنيا يصيبها أو إلى امرأة ينكحها فهجرته إلى ما هاجر إليه» كښې مبالغه في التحقير ده (٣)

خلاصه دا كه هجرت د الله او د رسول طرف ته وى نو دهغه هجرت به ډير قدر وى اوكه هجرت د دنياوى مال ومتاع دپاره وى نو دا سے هجرت څه څيز نه دے

③ دريم جواب حضرت شاه صاحب رحمه الله وركړے دے هغوى فرمائى چه عام طور خلق دا خيال كوى چه په دنيا كښې عمل وى او په آخرت كښې د هغے ثمره وى حالانكه صحيح دا ده چه په آخرت كښې به سړے هم هغه څيز موجود بيا مومى كوم چه ده په دنيا كښې كړے وى په قرآن كريم كښې ارشاد ﴿وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا﴾ (٤) يعنى خلق به په آخرت كښې خپل كړى

---

(١) اوگورئ النبراس شرح شرح العقائد (ص ٢٩، ٣٠)_
(٢) عمدة القارى (١/٢٤)_
(٣) عمدة القارى (١/٢٤)_
(٤) الكهف ٤٩٠)

اعمال حاضر بیا مومی.هم د دے وجے نے په حدیث کښے «وإنما لإمرئ ما نوی» فرمائیلی دی.یعنی سړی ته به بعینه هم هغه څیز ملاویږی.د کوم چه ده نیت کړے وی.هم دے حقیقت طرف ته اشاره ده په دے جمله کښے چه «من کانت هجرته إلی الله ورسوله فهجرته إلی الله ورسوله» یعنی چه څنګه هجرت وی.په آخرت کښے به هم هغه ملاویږی.البته دا بیله خبره ده.چه په دنیا کښے د دغه عمل یوشکل وی.او په آخرت کښے به ئے بیل شکل وی.اودا د شکل بدلیدل څه مستبعده خبره نه ده.

اوګورئ چه نبی کریم ﷺ ته په عالم رؤیا کښے پئ پیش کړے شو.نونبی ﷺ هغه اوڅکل اوچه بنه موړ شو.نو بیا ئے حضرت عمر رضی الله عنه ته ورکړلو.صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړلو یا رسول الله ددے تعبیر څه دے؟ نونبی ﷺ اوفرمائیل.ددے تعبیر علم دے.لکه چه په عالم رؤیا کښے علم د پیو په شکل کښے پیش کړے شو.(۱)

دا خبره په دے طریقه اوبیژنئ:چه یوسړے دلته اوسیږی.اوبیمار وی.مخ ئے زیړیږی .او په بدن کښے ئے وینه کمیږی.هغه یو څو میاشتے په صحت افزاء ځائے کښے تیرے کړی.نو دهغه په صحت کښے مناسب تبدیلی راشی.د مخ رنګ ئے سور شی.او په بدن کښے ئے د وینے زیادت اوشی.اوپه هغه کښےطاقت پیدا شی.اوګورئ دا هم هغه کس دے.خو په شکل او صورت کښے ئے تبدیلی پیدا شوه.

په دے طریقه حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه په آخرت کښے سړی ته د هغه دعمل جزاء ورکړے شی.نو په جزاء کښے به ورته هم هغه عمل وړاندے کولے شی .کوم چه ده کړے وی.دا بیله خبره ده.چه دهغے په مناسبت سره به دهغے شکل جدا کړے شی.اودلته به دهغے شکل بل شان وی.نوهغوی فرمائی.چه «فهجرته إلی الله ورسوله» کښے چونکه د جزاء بیان دے او چه «من جنس العمل»وی.نو ځکه بعینه د «فهجرته إلی الله ورسوله»اعاده اوشوه.(۲)

**دویم سوال: «فهجرته الی ما هاجرالیه» کښې د ابهام وجه** یو سوال دا دے.چه د «فهجرته إلی الله ورسوله» په جواب کښے خو ئے تصریحاً د «فهجرته إلی الله ورسوله» اوفرمائیل.او د «ومن کانت هجرته إلی دنیا یصیبها أو إلی إمرأة ینکحها»په جواب کښے ئے دوباره ..دنیا..او..ښځه..ئےدصراحةً ذکر کولو په ځائے «فهجرته إلی ما هاجرالیه» اوفرمائیل.او د ..ما.. په عموم کښے ئے داخله کړه.ددے څه وجه ده؟

① ددے یوه وجه دا ده.چه د ..الله.. او ..رسول.. اعاده ئے ددے وجے اوکړله . چه د ..الله.. او ..رسول.. په ذکر کښے خوند وی.لکه چه د خوند دپاره ئے د جزاء په جانب کښے د ..الله.. او ..رسول.. ذکر دوباره اوکړلو.اوپه دویمه جمله چونکه د ..دنیا.. او..ښځے..

---

(۱) اوګورئ صحیح بخاری (۱۰۳۷/۲) کتاب التعبیر باب اللبن_
(۲) اوګورئ فیض الباری (۱۱/۱)_

ذکر وو اودا د ,,روحاني، لذت څيزونه نه دي نوځکه ئې د دے اعاده صراحتًا اونکړله.بلکه د «ماهاجرإليه» په عموم کښې ئې داخل کړل.

② دويمه وجه دا هم کيدے شي.چه چونکه دلته کښې د هغه هجرت عظمت بيانول وو.کوم چه «إلى الله ورسوله» ته وي او د دے هجرت د عظمت ټوله وجه د ,,الله,,او,,رسول,,قصد دے نوځکه د ,,الله,,او,,رسول,,دنومونواعاده اوشوه .کوم چه په اصل کښې دعظمت سبب دے اوپه هغه هجرت کښې څه عظمت نشته.چه هغه د دنيا او د ښځې دپاره وي.نوځکه ئې په جزاء کښې د دنيا او ښځې ذکرصراحةً اونکړلو.بلکه په «ماهاجرإليه» سره ئې ترے تعبير اوکړلو.

③ بوه وجه دا هم کيدے شي.چه د «هجرة إلى الله والرسول» مقصود دالله تعالى رضا ده.اودا يوه ده.په خلاف د «هجرة الى الدنيا»ځکه چه د دے مقاصد ډير دي.د دنيا دپاره په هجرت کښې کله مقصد د مال ومتاع حصول وي.اوکله د منصب او عهدے خوائش اوطلب وي.او کله د دے نه اسباب د عيش او سامان د راحت مقصود وي.نوچونکه دالله او رسول طرف ته د هجرت کولو مقصود صرف يو دے.په هغې کښې تعدد نشته.يعني د الله تعالى رضا حاصلول.نوځکه هلته د,,الله,,او,,رسول,, بعينه اعاده اوکړے شوه اودنيا طرف ته په هجرت کښې چونکه مختلف مقاصد شامليدےشي.نوځکه هلته په«ماهاجرإليه» کښې اجمال اوابهام اختيارکړے شو

## دطاعاتو، عباداتو،مباحاتواو معاصي سره د نيت دتعلق نوعيت

دلته کښې د نيت په بنياد يو عمل مقبول اوغير مقبول ګرځولے شي.چه دهجرت ديني عمل که د الله تعالى د رضا دپاره وي.خو مقبول او معتبر به وي.اوکه د دنيا د حاصلولو په اراده وي.نوغير مقبول او غير معتبر به وي.په دے باره کښې داتفصيل هم په ذهن کښې کينوئ.

چه د نيت تعلق د عباداتو او طاعاتو سره هم دے.او د مباحاتو سره هم.که عمل د عباداتو او مباحاتو څخه وي.او نيت ښه وي.نواجر او ثواب به ملاويږي.اوکه عمل د عبادات اوقربات څخه وي.او په نيت کښې فساد راغلو.نوبيا به ګناه او عذاب وي.

ترکومے پورے چه د مباحاتو او جائز امورو تعلق دے.نو د هغې په باره کښې مونږ وړاندے ذکر کړے دے.که نيت ښه وي.نو ثواب به ملاويږي.اوکه نيت غلط وي .نوګناه به وي.او که بيخي نيت نه وي.نونۀ به ثواب وي.اونۀ به ګناه وي.البته که په نيت کښې اختلاط وو.نوپه دے کښې به د غالب اعتبار وي.که د خير نيت غالب وي.نو ثواب به ملاويږي.اوکه د شر نيت غالب وي.نوګناه به وي.اوکه دواړه طرفونه برابروو.نوهم به د «أنا أغنى الشركاء عن الشرك» په بنا به د شر طرف غالب ګرځولے شي.او عمل به غيرمقبول اوګناه وي

بيا ترکومے پورے چه د معاصي تعلق دے.نوددے په باره کښې هم ښه خان پوهه کړئ.چه د نيت حسنه د معاصي سره د تعلق امکان هم نشته.په معاصي کښې ددے خبرے صلاحيت نه وي.چه د هغې سره د نيت حسنه تعلق وي.ځکه چه نيت حسنه د داسے څيز سره متعلق وي.کوم چه د شارع د منشاء مطابق وي.اود شارع د منشاء مطابق قربات، عبادات، او مباحات دي.نو ددے سره د نيت حسنه تعلق کيدے شي.د معاصي سره په هيڅ حالت کښې د

نيت حسنه تعلق نشى راتلے.بلکه كه يو كس د نيت حسنه سره گناه كوى.نو دغه د ايمان د
ضائع كيدو ويره ده.والله اعلم بالصواب

**حديث ,,انما الاعمال بالنيات،، نه د كتاب د شروع وجه** امام بخارى رحمه الله چه د دے حديث نه د
خپل تصنيف ابتداء كړے ده.د دے څو وجوهات كيدے شى.

① يوه ښكاره وجه خو دا په پوهه كښے راځى.چه امام بخارى رحمه الله د تصحيح نيت او د دے
اهميت طرف ته متوجه كولو دپاره په دے حديث د خپل ..صحيح.. شروع اوكړله.

② يوه وجه دا هم كيدے شى.چه د هجرت حديث ئے ذكر كړلو.امام بخارى رحمه الله دے طرف ته
متوجه كول غواړى.چه دعلومو د تحصيل دپاره هجرت ظاهره ضرورى دے.او هجرت ظاهرى
هم دا دے چه د يو ځائے نه بل ځائے ته منتقل شى.لكه چه امام بخارى رحمه الله فرمائى.كه ته د
علومو تحصيل غواړے.نوسفر دپاره ضرورى ده.چه د خپل كور نه هجرت اوكړے.او د دنيا
په كورونو ورگډ شے.

③ دريمه وجه دا هم كيدے شى.چه امام بخارى رحمه الله د هجرت په حديث سره صرف ظاهرى
هجرت ته اشاره نه كوى.بلكه هجرت باطنى طرف ته هم متوجه كول غواړى.ځكه چه كمال
هجرت مطلوب دے.اوكمال هم په هغه صورت كښے حاصليږى.چه په هجرت ظاهره سره سره
په هجرت باطنه باندے هم عمل اوشى.

دهجرت ظاهره مطلب خو واضح دے.چه د يو ځائے نه بل ځائے ته منتقل كيدل.لكه چه نبى
ﷺ د خپل كور نه غار حراء ته هجرت كړے وو.دا هجرت ((من مكان إلى مكان آخر)) دے.

د هجرت ظاهره يو شكل هغه هم وو.كوم چه صحابه كرامو رضى الله عنهم د مكے مكرمے نه حبشه ته
كړے وو.دا هجرت ((من دار الخوف إلى دار الأمن)) ته وو.

دغه شان د نبى ﷺ مدينے منورے ته د روانيدو نه وړاندے د صحابه كرامو رضى الله عنهم مدينے طرف
ته هجرت هم ((من دار الخوف إلى دار الأمن)) ته هجرت وو.اوپه هجرت ظاهره كښے داخل وو.بيا د
نبى ﷺ مدينے منورے ته دتشريف اوړلو نه پس هجرت ((من دار الكفر إلى دار الإسلام)) شو.دا
هم هجرت ظاهره دے.

اويو هجرت باطنه دے.د كوم چه په حديث ((المهاجر من هجر ما نهى الله عنه)) كښے ذكر دے.په دے
د منهياتو او گناهونو پريخودلو ته هجرت وئيلے شوے دے.او دا هجرت باطنه دے.

لكه چه امام بخارى رحمه الله په دے خبره باندے تنبيه وركول غواړى.چه د علوم ظاهره د تحصيل
سره سره كه ته حقيقى تكميل هم غواړے.نود هجرت ظاهره سره سره هجرت باطنه هم
اوكړه.او هجرت باطنه حاصليږى.د گناهونو او معاصى په پريخودو سره.نوترڅو چه گناهونه
پريخودے شوى نه وى.كمال نشى حاصليدے.

دامام شافعي رحمه الله مشهور اشعار دي

شكوت إلى وكيع سوء حفظي فأرشدني إلى ترك المعاصي

وأخبرني بأن العلم نور ونورالله لايهدى لعاص......(١)

**د حديث باب نه مستنبط مسائل** ددے حديث نه فقهاؤ ډير مسائل مستنبط كړي دي.مونږ دلته څو احكام ذكر كوو.

① ائمه ثلاثه په دے حديث باندے استدلال كوي.اوپه اودس او غسل كنبے نيت واجب گرځوي.اود امام ابوحنيفه،سفيان ثوري،او امام اوزاعي رحمهم الله په نيز په اودس او غسل كنبے د نيت ضرورت نشته.((وقد سبق منا التفصيل))

② دويمه مسئله ددے حديث نه دا مستنبط شوے ده.چه د امام مالك رحمه الله او په يو روايت كنبے د امام احمد رحمه الله په نيز د رمضان د مياشتے په شروع كنبے يو نيت د ټولو روژو دپاره كافي دے.هغوي فرمائي.چه د رمضان ټولے روژے چه يوځائے شي.نو يو عبادت دے.نو يو نيت به ورله كافي وي.

اوامام ابوحنيفه،امام شافعي.او د يو روايت مطابق د امام احمد رحمه الله په نيز د هرے روژے دپاره مستقل نيت كول ضروري دے.ځكه چه هره روژه مستقل عبادت دے.نو يو نيت به د ټولو دپاره كافي نه وي.

③ يوه مسئله دا مستنط شوے ده.چه د خطبه په دوران كنبے احاديث بيانول جائز دي.ځكه چه حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه د خطبے په دوران كنبے دا حديث بيان كړلو.

④ يوه مسئله دا هم مستنبطه شوے ده.چه د عباداتو دپاره نيت لازم او واجب دے.البته په عبادات مقصوده كنبے د نيت وجوبي اتفاقي دے.او په وسائلو كنبے اختلاف دے.

**دحديث باب نه حاصل شوي څو فوائد** ① ددے روايت نه يوه فائده دا ذهن ته راغله.چه د ديني علومو دتحصيل دپاره هجرت ظاهره پكار دے.

② دويمه فائده دا حاصله شوه.چه په ديني علومو كنبے كمال حاصلولو په هجرت باطنه باندے موقوف دے.

③ دريمه فائده دا په ذهن كنبے راغله.چه ((خرم في الحديث)) جائز دے.د كوم تفصيل چه وړاندے تير شو.والله اعلم بالصواب.

---

(١) ديوان الشافعي رحمه الله (ص.٥٤) جمع وتعليق محمد عفيف الزعبي)۔

# الحديث الثانى

[۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا (۱) أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْيَانًا يَأْتِينِي مِثْلَ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ فَيُفْصَمُ عَنِّي وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي فَأَعِي مَا يَقُولُ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ فَيَفْصِمُ عَنْهُ وَإِنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا [۳۰۴۳]

## رجال الحديث

**قوله:** عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ :- دوى د عبدالله بن يوسف تنيسى او دمشقى په نوم بانـدے مشهور دے. اصل خو ددوى دمشقى دے. تنيس كښے ئے ستوګنه اختيار كړے وه. (۲)

تنيس په مصر كښے د سمندر په ساحل باندے يو ښار وو. كوم چه نن صبا ويران دے. دا تنيس بن حام بن نوح ﷺ طرف ته منسوب دے. (۳)

عبدالله بن يوسف تنيسى دامام مالك او ليث بن سعد رحمهما الله په شاګردانو كښے دے. دامام ذهلى رحمه الله او امام يحيى بن معين رحمه الله غوندے فاضلان ددوى شاګردان دى. (۴)

يحيى بن معين رحمه الله فرمائى. ((ما بقى على أديم الأرض أحد أوثق فى ،،الموطا،، من عبدالله بن يوسف التنيسى رحمه الله)) (۵)

امام بخارى رحمه الله ددوى نه موطا اوريدلے ده. (۶) او فرمائيلى ئے چه ((كان من أثبت الشاميين)) (۷)

---

(۱) هذا الحديث أخرجه البخارى فى كتاب بدء الخلق أيضاً فى باب ذكر الملائكة رقم ۳۲۱۵. ومسلم فى صحيحه فى كتاب الفضائل باب طيب عرقه ﷺ ومالك فى الموطا (ص.۱۸۸) كتاب القرآن باب ما جآء فى القرآن رقم ۷. والنسائى فى سننه فى كتاب الإفتتاح باب جامع ما جآء فى القرآن رقم.۹۳۴. ۹۳۵. والترمذى فى جامعه فى كتاب المناقب باب كيف كان ينزل الوحى على النبى ﷺ رقم ۳۶۳۴. واحمد فى مسنده (۶/۱۵۸. ۲۵۷)_

(۲) عمد القارى (۱/۳۶) وتهذيب الكمال (۱۶/۳۳۳)_

(۳) عمدة القارى (۱/۳۶)_

(۴) اوګورئ تهذيب الكمال (۱۶/۳۳۳. ۳۳۴) وعمدة القارى (۱/۳۶)_

(۵) تهذيب الكمال (۱۶/۳۳۵)_

(۶) عمدة القارى (۱/۳۶)_

(۷) تهذيب الكمال (۱۶/۳۳۵)_

**قوله مَالِكٌ :-** دا مالك بن انس بن مالك بن ابى عامرالاصبحى المدنى رحمه الله دے.
ابوعبدالله ئے كنيت او «امام دار الهجرة» ئے لقب دے.(۱)
دامام مالك رحمه الله د شيوخو شمار نهه سوه دے په دے كښے درے سوه تابعيان او شپږ سوه تبع تابعيان دى (۲)
امام مالك رحمه الله چه كله موطا اوليكله نوچونكه ددوى نه وړاندے ابن ابى ذئب هم د ..موطا.. په نوم كتاب ليكلے وو.او هغه كتاب غټ هم وو نوخلقو تپوس اوكړلو «مال الفائدة فى تصنيفك؟» نو دوى جواب وركړلو.«ماكان لله بقى»(۳) يعنى مَا دَ الله تعالى د رضا دپاره دا تصنيف كړے دے.خكه به ورته دوام نصيب شى.او هم داسے اوشوه

**قوله: هِشَامُ بنُ عُروَةَ:-** دے دعروه بن زبير بن العوام خوئے دے.ددوى كنيت ابوالمنذر يا ابوعبدالله دے.تابعى دے.او مدنى هم دے.دحضرت ابن عمر رضى الله عنهما اوحضرت جابر رضى الله عنه وغيره ملاقات ئے كړے دے.حضرت عمر رضى الله عنه خو ددوى په سر باندے لاس راښكلے وو او دعا ئے ورته هم كړے وه.په ۶۱ھ كښے پيدا شوے وو.او(۱۴۵ھ) كښے په بغداد كښے وفات شو رحمه الله (۴)

**قوله: عَنْ أَبِيهِ:** دا حضرت عروه بن زبيربن العوام رحمه الله دے.جليل القدر تابعى وو.اودا دے سره سره د مدينے منورے په اووه فقهاؤ كښے شمارلے شى.
دوى ته الله تعالى د نسب اوخاندان عظيم شرافت وركړے وو.حضرت زبيربن العوام رضى الله عنه «أحد العشرة المبشرة» ئے پلار وو.اود صديق اكبر رضى الله عنه لورذات النطاقين حضرت اسماء رضى الله عنها ئے مور وه.نبى عليه الصلاة والسلام د دوى ماما وو.او حضرت عائشه رضى الله عنها د دوى ترور وه.په ۲۰ھ كښے د دوى پيدائش شوے وو.او په ۹۴ھ يا ۹۹ھ كښے وفات شوى وو.(۵)

**قوله: عَائِشَةَ:** حضرت عائشه رضى الله عنها بنت سيدنا ابوبكر رضى الله عنه وه.ددوى نكاح د نبى صلى الله عليه وسلم سره د هجرت نه وړاندے شوے وه.چه د دوى عمر شپږ كاله وو.اود يو روايت مطابق دوى عمر اووه كالو وو. دغزوه بدر نه پس د دوى وادة اوشو. چه عمر ئے نهه كاله وو.او كله چه نبى صلى الله عليه وسلم وفات شو.دوى عمر اته پنځوس كاله وو.پنځه شپيته كاله ژوندئ پاتے شوے وه.په رمضان ۵۵ھ يا شوال ۵۷ھ يا ۵۸ھ كښے وفات شوے وه.د دوى د وصيت مطابق دا د شپے په جنت البقيع كښے دفن كړے شوه.او حضرت ابوهريره رضى الله عنه پرے دجنازے مونځ اوكړلو.

---

(۱) تهذيب الكمال (۲۷/۱۶)_
(۲) عمدة القارى(۱/۳۶)_
(۳) تدريب الراوى(۱/۸۹)_
(۴) عمدة القارى.(۱/۳۷)_
(۵) عمدة القارى (۱/۳۸)

ددوى مور ام رومان زينب بنت عامر وه.نبى كريم ﷺ د حضرت اسماء رضي الله عنها د خونى او حضرت عائشے رضي الله عنها د خورى حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه په نوم باندے د دوى كنيت ..ام عبدالله.. كيخودے وو (۱)

حضرت عائشه رضي الله عنها په فقهاؤ صحابو كښے داخل ده.اوپه هغه شپږو صحابو رضي الله عنهم كښے د دوى شمار كيږى كوم چه مكثرين في الحديث دى.(۲) د دوى نه ټول دوه زره دوه سوه لس احاديث مروى دى.په دے كښے يو سل ځلوراويا احاديث متفق عليه دى.ځلور پنځوس روايتونه هغه دى.كوم چه صرف امام بخارى رحمه الله نقل كړى دى.اواته پنځوس احاديث هغه دى د كومو تخريج چه صرف امام مسلم رحمه الله كړے دے (۳)

**قوله** أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا:دا يواځے دحضرت عائشے رضي الله عنها نه بلكه د ټولو ازواج مطهراتولقب دے.او دا په اصل كښے دالله تعالى د ارشاد ﴿النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ ۖ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ﴾ (۴) نه ماخوذ دے.

خودا خبره دے واضحه وى.چه د مورولى د احترام اواحسان دوجوب او تحريم نكاح په حيثيت باندے ده.تركومے پورے چه د هغوى دلونړو سره نكاح ده.د هغوى سره د خلوت دجواز.او دهغوى سره د سفر وغيره تعلق دے.نو په دے كارونو كښے مورولى نشته.نوهغوى سره خلوت بلكه كتل ورته هم ناجائز دى.اودهغوى سره سفر كول هم ناجائز دے او دهغوى د لونړو سره نكاح جائز ده.(۵)

بيا په دے كښے اختلاف دے.چه د ازواج مطهراتو باندے لكه څنګه چه د ..ام المؤمنين.. يا..امهات المؤمنين..اطلاق كيږى.نو آيا د..امهات المؤمنات..اطلاق ورباندے هم كيدے شى كه نه؟

دحضرت عائشے رضي الله عنها رائے دا ده.چه ..امهات المؤمنات.. نشى وئيلے.قاضى ابن العربى(۶) حافظ ابن كثير(۷)اوعلامه عينى رحمه الله دے قول ته ترجيح وركړے ده.حضرت عائشے رضي الله عنها نه

---

(۱) عمدة القارى (۱/۳۸)_

(۲) مكثرين في الحديث شپږ صحابه كرام رضي الله عنهم دى(۱) حضرت ابوهريره (۲)حضرت عبدالله بن عمر (۳) حضرت عبدالله بن عباس (۴) حضرت جابربن عبدالله (۵)حضرت انس بن مالک (۶) حضرت عائشه رضى الله عنهاوعنهم اجمعين .اوګورئ تقريب النووى مع شرح تدريب الراوى (۲/۲۱۶. ۲۱۸) النوع التاسع والثلاثون فى معرفة الصحابة)_

(۳) عمدة القارى (۱/ ۳۸)_

(۴) الأحزاب: ۶)

(۵) عمدة القارى(۱/ ۳۸)_

(۶) اوګورئ تفسير قرطبى(۴/ ۱۲۳)_

(۷) ارشاد السارى للقسطلانى(۱/ ۵۷)_

بوے ښخے په ..یاامه.. سره خطاب اوکړلو نو دوی ورته اوفرمائیل. «لست بأمك أنا أم رجالكم»(۱)

دحافظ ابن حجر رحمه الله رجحان دے طرف ته دے چه د ..ام المؤمنات.. په ونیلو کښے څه قباحت نشته (۲)

بهرحال دا اختلاف په دے اختلاف باندے مبنی دے چه آیا د رجالو په خطاب کښے نساء هم داخل دی که نه؟ دچا په نیز چه داخلے دی نو دهغوی په نیز ..ام المؤمنات.
ونیل جائز دی. اودچا په نیزچه داخلے نه دي نوهغوی دا تیک نه گنړی. (۳)

**آیا په رسول الله ﷺ باندې د ,,ابو المومنین،، اطلاق کیدې شی؟** یوسوال دا هم کیدے شی چه آیا مونږ په رسول الله ﷺ باندے د ..ابوالمؤمنین.. اطلاق کولے شو نو په دے کښے هم اختلاف دے. د بعضو حضراتو خیال دے چه د..ابوالمؤمنین.. اطلاق وړباندے نشی کیدے. استاذ ابواسحاق اسفرائینی رحمه الله فرمائی..هو کأبینا.. ونیلی شی. او..ابونا.. نشی ونیلے. د دے حضراتو وینا دا ده. چه په قرآن کریم کښے صراحتة راغلی دی. ﴿مَاكَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ﴾ (۴) په دے کښے د ,,أبوّت،، نفی ده. دغه شان په یو حدیث کښے دی. «انما أنا لكم بمنزلة الوالد»(۵)

خو داکثرو عالمانورائے دا ده. چه په دوی باندے د ..ابوالمؤمنین.. اطلاق تیک دے په دے کښے څه حرج نشته. دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما او حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دے چه هغوی د دے آیت ﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ (۶) په آخر کښے ..وهو اب لهم.. اضافه کوله. هم دا د حضرت معاویه. مجاهد. عکرمه. او حسن رحمهم الله نه مروی دی (۷)

خوچه ترکومے پورے په ﴿مَاكَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ﴾ (۸) کښے د نفی تعلق دے نو په دے کښے د ..أبوّت،، صلبیه نفی ده. د مطلق.. أبوّت،، نفی په کښے نشته. (۹) هم دا وجه ده. چه په «انما أنا

(۱) طبقات ابن سعد(۸/ذكرأزواج رسول الله ﷺ ذكر عائشة رضى الله عنها)_
(۲) فتح البارى (۱/۱۸)_
(۳) اوګورئ شرح کرمانی(۱/۲۵)_
(٤) الأحزاب ٤٠) -
(۵) سنن ابى داود كتاب الطهارة باب كراهية إستقبال القبلة عند قضاء الحاجة)_
(۶) الأحزاب ٦) -
(۷) تفسير ابن كثير(۳/٤٦٨)_
(۸) الأحزاب ٤٠) –
(۹) عمدة القارى(۱/۳۹)_

لكم بمنزلة الوالد» كښې من وجه د ..أبوّت».. اثبات دے.والله اعلم.

**د اخوال المؤمنين او خالات المؤمنين اطلاق** د امهات المؤمنين خويندو ته ترورياني او رونړو ته ماماګان اولونړو ته خويندے ونيلي شي كه نه؟په دے باره كښے علامه عيني رحمه الله فرمائي.

په دے كښے هم اختلاف دے. بعضو ﴿وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ﴾ باندے قياس كړے دے. اوفرمائي.چه هركله هغوي مياندے دي.نو دهغوي په رشتے سره ورته ترورياني.ماماګان او خويندے ونيلي شي.خو اصح قول دا دے.چه ددے نومونو اطلاق صحيح نه دے.لعدم التوقيف (۱)

تركومے پورے چه د نص تعلق دے.نوهغه مؤول دے.(۲) خكه چه ازواج د احترام. عزت اواكرام په غرض امهات ګرځولے شوي دي.په څه حكم كښے نه دي.هم دا وجه ده.چه د امهات المؤمنين لونړه او خويندے بالاجماع حرامے نه دي.(۳) نو دوي ته ..اخوات المؤمنين.. او خالات المؤمنين.. هم نشي ونيلے.والله اعلم.

**حضرت عائشه رضي الله عنها غوره ده كه حضرت خديجه رضي الله عنها** بيا په دے كښے هم اختلاف دےچه حضرت عائشه رضي الله عنها افضله ده كه حضرت خديجه رضي الله عنها؟

بعضے حضرات د حضرت عائشے رضي الله عنها د فضيلت قائل دي.خو راجح دا دي.چه حضرت خديجه رضي الله عنها د حضرت عائشے رضي الله عنها نه افضله ده .د قاضي متولي. او ابن العربي مالكي رحمه الله نه علاوه د نورو ډيرو حضراتو هم دا يقيني رائے ده.(۴)

**حضرت عائشه رضي الله عنها افضله ده كه حضرت فاطمه رضي الله عنها** بيا په دے كښے هم د عالمانوكلام دےچه حضرت عائشه رضي الله عنها افضله ده كه حضرت فاطمه رضي الله عنها؟

په دے كښے راجح دا ده.چه حضرت عائشے رضي الله عنها ته په حضرت فاطمے رضي الله عنها باندے فضيلت حاصل دے.(۵)

حضرت عطاء الله شاه بخاري رحمه الله دا په عجيبه عنوان سره ذكركړے ده.هغوي فرمائي.چه حضرت فاطمه رضي الله عنها (چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خيګرتوټه وه) اوفرمائيل .چه نبي صلى الله عليه وسلم زما په باره كښے فرمائي.«هي بضعة مني» يعني فاطمه رضي الله عنها زما نه يوه حصه ده.

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.چه زه او ته څه نه پيژنو.صرف دومره خبره ستاسو نه تپوس كول غواړم.چه هركله نبي صلى الله عليه وسلم زما خاوند دے.اوهغه جنت ته ځي.نو زما لاس به دهغوي په لاس كښے وي.كوم خواه ته چه هغوي ځي.هلته به زه هم ځم.اوستا خاوند حضرت علي رضي الله عنه دے.كله چه هغه جنت ته ځي.نو ته به دهغوي سره ئے.كوم خواه ته چه هغه ځي.هلته به ته ځے.اوس تاسو په خپله سوچ اوكړئ.چه د چا مرتبه اوچته ده؟

---

(۱) عمدة القاري (۳۸/۱)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) ابن كثير(۴۶۸/۳)_

(۴) عمدة القاري (۳۸/۱)_

(۵) پورتنئ حواله)_

بهرحال په دے کښے په یوخطیبانه انداز کښے دحضرت عائشے رضی الله عنها د افضیلت اثبات دے کوم چه بالکل ټیك دے علامه عینی رحمه الله دخپلوبعضو استاذانو نه نقل کړی دی چه «فاطمة أفضل في الدنیا وعائشة أفضل في الآخرة»(۱)

**قوله أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:** دا حارث بن هشام بن مغیره دحضرت خالد بن ولید د تره خوئے اود ابوجهل حقیقی وروړ وو.د غزوه بدر په موقع د کافرانو د طرفه د مسلمانانو خلاف په جنګ کښے شریك شوے وو.د فتح مکے په موقع ئے اسلام قبول کړے وو د غزوه حنین په موقع ورته رسول الله صلی الله علیه وسلم سل اوښان ورکړی وو.په جنګ یرموك کښے دوی شهید شوی وو رضی الله تعالی عنه (۲)

**دا حدیث د مسانید عائشه رضی الله عنها څخه دې اوکه دمسانید حارث بن هشام رضی الله عنه څخه دې؟**

دلته کښے حضرت عائشه رضی الله عنها روایت کوی چه حارث بن هشام رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړلو.«کیف کان یأتیك الوحی؟» په دے مقام کښے دوه احتمالات دی.

(۱) یودا چه په کوم وخت کښے حارث بن هشام رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس کولو نو په هغه وخت کښے حضرت عائشه رضی الله عنها موجود وه.دا سوال اوجواب دوی براه راست اوریدلی وو.په دے صورت کښے دا روایت په مسانید عائشه رضی الله عنها کښے شمارلے شی.او هم دا د صاحبانو د اطراف رائے ده.(۳)

(۲) دویم احتمال دا دے.چه حضرت عائشه رضی الله عنها هلته موجود نه وه.او دا روایت هغوی د حارث بن هشام رضی الله عنه نه اوریدلے وی.نوبه دے صورت کښے به دا د مسانیدو د حارث بن هشام رضی الله عنه څخه وی.اودلته به دے ته مرسل دصحابی رضی الله عنه وئیلی شی.دجمهورو په نیز ددے حکم هم د موصول دے.(۴)

اومعجم بغوی وغیره د عامربن صالح زبیری په واسطه باندے راغلے دے.په دے کښے تصریح راغلے ده.چه حضرت عائشه رضی الله عنها حضرت حارث بن هشام رضی الله عنه نه روایت کوی.(۵)

د دے دویم احتمال په تائید کښے په مسند احمد(۶)

اګرچه په عامر بن صالح زبیری کښے ضعف دے.(۷) خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ابن منده رحمه الله سره د دوی متابع موجود دے.(۸) بهر حال مشهوره هم دا ده.چه دا د مسانید

---

(۱) عمدة القاری(۱/۳۸)_

(۲) عمدة القاری(۱/۳۹)_

(۳) فتح الباری (۱/۱۹)_

(۴) اوګورئ تقریب النووی مع شرح تدریب الراوی (۱/۲۰۷) النوع التاسع:المرسل)_

(۵) فتح الباری (۱/۱۹)_

(۶) اوګورئ مسند احمد(۶/۱۵۸، ۲۵۷) -

(۷) قال الحافظ في التقریب (ص.۲۸۷) متروک الحدیث أفرط ابن معین فکذبه)-

(۸) فتح الباری (۱/۱۹)_

عائشه رضي الله عنها څخه دے (۱)

**قوله** كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ: يعني تاسو ته وحي څنګه راځي؟

**دحضرت حارث بن هشام رضی الله عنه سوال په نزول وحی کښې د شک د وجې نه وو** دا سوال په نزول وحی کښې د شک دوجې نه وو .بلکه دا داسې وو .لکه څنګه چه حضرت ابراهيم عليه السلام دالله تعالی نه سوال کړے وو .چه ﴿رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ﴾ (۲) هغوی سوال کولو اے زما پروردیګاره! ماته د احیاء موتی د کیفیت مشاهده اوکړه .حضرت ابرهیم علی نبینا وعلیه الصلاة والسلام د جلیل القدر او اوالوالعزم پیغمبرئ سره سره د ډیرو پیغمبرانوعلیهم السلام پلار هم دے .رسول الله ﷺ ته د هغوی د ملت د تابعدارئ حکم شوے دے .هغوی ته د احیاء موتی په کیفیت کښې د شك تصور څه کیدے شو .بلکه دهغوی د سوال منشا دا وه چه هغوی ته د احیاء موتی په قدرت باندے پوره یقین وو .خو دے نه پس په هغوی کښې دا شوق پیدا شو .چه لږ اوګورم .چه د احیاء موتی کیفیت څنګه وی؟(۳)

نودغه شان حارث بن هشام رضي الله عنه ته د وحی په باره کښې مکمل یقین حاصل وو . خو د دے خبرے شوق پیدا شو .چه د دے د کیفیت علم ورته اوشی .(۴) دحضرت ابراهیم عليه السلام سوال د خصائص الوهیت په باره کښې وو .اودحضرت حارث بن هشام رضي الله عنه سوال د خصائص نبوت په باره کښې وو .

دا هم داسې ده .چه مونږ ته د مکے معظمے او مدینے منورے کښې د وجود په باره کښې په تواتر سره یقین حاصل دے .هم ددے یقین په وجه به زمونږ دا شوق پیدا کیږی .چه کاش مکه او مدینه مو اولیدلے .هم دا وجه ده .چه چا لیدلی وی .په هغوی پسې ګرځو .اودا تپوس ترے کوو .چه مکه مکرمه څنګه ده؟مدینه منوره څنګه ده؟دا سوال د مکے مکرمے یا مدینے منورے په وجود کښې د شك د وجې نه کیږی .بلکه د دے په وجود باندے د یقین حاصلیدو نه پس د شوق پیدا کیدو د وجې وی .

**دحضرت حارث بن هشام رضی الله عنه د سوال نوعیت** په ظاهره خودا معلومیږی .چه سائل د نفس وحی د راتلو کیفیت معلوم کړے وو .په «أحياناً يأتيني مثل صلصلة الجرس» باندے ددے تائید کیږی .په بخاری کښې په «کتاب بدء الخلق، اوباب ذکر الملائکة» هم دا روایت راغلے دے .د هغے نه هم د دے تائید کیږی .ځکه چه په هغے کښې د «کیف یأتیك الوحی» په جواب کښې نبی ﷺ فرمائیلی دی .«کل ذلك، یأتینی الملك أحیاناً فی مثل صلصلة الجرس» مطلب دا دے .چه بعضے وخت به وحی په غیر معروف صورت کښې راتله .چه اول وهله کښې په پوهه کښې نه راتله .

---

(۱) پورتنئ حواله)_

(۲) البقرة ۲۶۰) -

(۳) اوګورئ تفسیر ابن کثیر(۱/۳۱۵)_

(۴) فضل الباری(۱/۱۵۱)_

ودا احتمال هم شته چه د حامل وحی د راتلو د کیفیت په باره کښې تپوس کول دسائل مقصود وو دحدیث جزء ثانی «أحياناً يتمثل لي الملك رجلاً» ددې تائید کوی چه حامل وحی بعضې وخت ماته په شکل انسانی کښې راځی

اوس که دا اوونیلی شی چه سوال د نفس وحی د راتلو د کیفیت متعلق وو نو بیا به د «أحياناً يأتيني مثل صلصلة الجرس، وأحياناً يتمثل لي الملك رجلاً» مطلب دا وی چه بعضې وخت وحی په غیر معروف صورت کښې راځی چه په اوله وهله کښې پرې پوهیدل نه کیږی اوکله د اول وهله نه معلومیږی لکه څنګه چه سړے د یو انسان سره خبرے کوی نو دهغه خبرے په پوهه کښې راځی.

اوکه سوال د حامل وحی د راتلو په باره کښې وو نو مطلب به دا شی چه کله فرشته به معهود او معلوم صورت کښې راتله اود دے نه ئے په «مثل صلصلة الجرس» سره تعبیر اوکړو خکه چه د «صلصلة الجرس» نه د یوشیزنه اخذ کول اود څه کلام اخذ کول معهود نه وی اوکله به ئے به معلوم شکل یعنی انسانی شکل کښې فرشتې وحی راوړله اوراتله به «وأحياناً يتمثل لي الملك رجلاً» دلته کښې هم ممکن ده چه سوال بالکل عام وی یعنی د وحی متعلق هم سوال وی چه دا به څنګه راتله اودحامل وحی په باره کښې هم سوال وی چه هغه به څنګه راتلو؟(۱)

**قوله: صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ :-** «صلصلة» هغه آواز ته وائی کوم چه د اوسپنې په اوسپنه د راپریوتو نه پیدا کیږی په هغې کښې د طنین یعنی د ..زن.. زن.. آواز وی لکه څنګه چه تلې وهلی شی نو دهغې نه پس یو قسم آواز اوریدے شی دغه شان دے آواز ته هم «صلصلة» وئیلی شی چه هغه مسلسل وی اوبه هغې سره په اول وهله کښې څه خبره په پوهه کښې نه راځی (۲)

**د «صَلْصَلَة» نه څه مراد دی؟** - د «صَلْصَلَة» چه د کوم آواز تشبیه ورکړے شوے ده په دے باره کښې ډیر اقوال دی چه ددے نه څه مراد دے؟

① بعضې حضرات فرمائی چه دا د فرشتې د وزرو وهلو آواز دے (۳)

② بعضو فرمائیلی دی چه دا د «رصد» آواز دے یعنی دحضرت جبریل علیه السلام سره چه به د وحی د حفاظت دپاره د فرشتو کومه لویه ډله راتله دا د هغوی د راتګ آواز دے (۴) د لاندینی آیت لاندے ﴿ فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا ﴾ (۵) تاسو به کتلی وی چه کله

(۱) اوګورئ فتح الباری (۱۹/۱) وعمدة القاری (۴۳/۱)_
(۲) مجمع بحار الأنوار (۳۴۱/۳) وعمدة القاری (۴۰/۱) وفتح الباری (۲۰/۱)_
(۳) فتح الباری (۲۰/۱)_
(۴) د ..رصد.. په باره کښې داحادیثو دپاره اوګورئ الدرالمنثور (۲۷۴/۶، ۲۷۵)
(۵) الجن ۰۲۷)-

تاسو ته نزدے د مارغانو لوئے سیل تیریږی نود ..شان.. شان.. آواز ستاسو په غوږونو کښے اوریدے شی.دغه شان دلته د جبریل آمین ﷺ سره د راتلونکو فرشتو د وزرو د آواز نه په «صلصلة» سره تعبیراوکړے شو.(۱)

③ دا حضرت جبریل آمین د راتلو آواز وو.لکه څنګه چه د ریل ګاډی د راتلو آواز د لرے نه معلومیږی.دا قول د شیخ الاسلام حضرت مدنی قدس سره نه منقول دے.(۲)

په دے باندے بعضے طالبانو دا اشکال کړے دے.که داسے واقعه وه.نوبیا پکار دا وه چه تولوته ددے آواز احساس کیدلو.اوهم دا اشکال د فرشتو د وزرو په آواز باندے هم وارد کیدے شی.

خو ددے جواب ورکولے شی.چه دا څیز د کشف سره تعلق ساتی.اوګوری په احادیثو کښے دا هم دی.چه جبریل آمین په شب قدر کښے خپلے وزرے خوروی.اودا څیزاهل کشف ته معلوم دے. نورو ته نه.لکه څنګه چه کونړآواز نه اوری.دغه شان دا آواز هم نورو خلقو نه اوریدلو.(۳)

④ بعضے حضراتو فرمائیلی دی.چه دا یو خاص آواز وو.چه په دے سره به د نبی ﷺ قوتونه جمع کولی شول.اوددے په ذریعه به د وحی نه وړاندے نبی ته خبردارے ورکولے شو.لکه څنګه چه د ټیلفون ټلئ وی.چه د خبرو اترو کولو دپاره مخاطب هوښیار وی.(۴)

⑤ بعضے حضراتو فرمائیلی دی.چه الله تعالی به په خپل قدرت سره د موحی به کښے یو آواز پیدا کړلو.(۵)

⑥ بعضے حضرات فرمائی.چه دا د فرشتے خپل اصل آواز وو.(۶)

⑦ حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی.چه په اصل کښے قاعده دا ده.کله چه د انسان په حواسو کښے تعطل پیدا شی.نوپه دے حاسه کښے دا کیفیت پیدا شی.چه هغه د مختلف قسم څیزونو ادراك کولے شی.مثلاً خدائے دے نکړی.که په حاسه بصر کښے څه خرابے پیدا شی.نو قسم په قسم رنګونه په نظر راځی.دغه شان د سترګو مهلو نه پس مختلف قسم رنګونه په نظر راځی.کله سور. کله زیړ. کله تور وغیره.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه دا «صلصلة الجرس» په اصل کښے د حواسو دتعطل نه کنایه ده.یعنی الله تعالی به د وحی د نزول په وخت

(۱) فضل الباری (۱۵۲/۱)_

(۲) اوګورئ الأبواب والتراجم(۲۵)_

(۳) پورتنئ حواله)_

(۴) فضل الباری (۱۵۲/۱)_

(۵) نقله عن بعض المشائخ شیخ الحدیث العلامة الکاندهلوی فی أوجزالمسالک(۱۲۸/٤) کتاب القرآن ما جاء فی القرآن)_

(۶) فتح الباری (۲۰/۱)_

كښے د نبى ﷺ حاسه سمع د عالم شهادت د مسموعاتو نه معطل كړله او د بل عالم طرف ته به ئے متوجه كړله چه په پوره توجه سره تلقى د وحى اوكړے شى.(١)

⑧ بعضے حضرات فرمائى چه دا په خپله دالله تعالى صوت قديم دے اوشاه صاحب هم دا غوره كړے دے.

**آيا دالله تعالى دپاره صوت ثابت دې؟** په دے خبره دټولو اتفاق دے چه دالله تعالى دپاره كلام ثابت دے اوبه الله تعالى

باندے د متكلم اطلاق كيږى.خو په دے كښے اختلاف دے چه آيا دا صفت كلام په معنى د قائم بذات البارى تعالى دے اوكه قائم بغيره دے؟معتزله د قائم بغيره قائل دى اواهل السنة والجماعة د قائم بذاته سبحانه وتعالى قائل دى.

بيا په اهل سنة كښے داختلاف دے چه دا كلام په حرف وصوت دے اوكه بلا حرف ولا صوت دے د متكلمينو رحمهم الله مذهب دا دے چه كلام بلاحرف ولا صوت دے او د محدثينو مسلك دا دے چه دا كلام بحرف وصوت دے لكه چه متكلمين رحمهم الله د صوت انكار كوى اومحدثين رحمهم الله ئے اثبات كوى.(٢)

امام بخارى رحمه الله په كتاب التوحيد كښے صوت ثابت كړے دے دحضرت ابن مسعود رضى الله عنه يو روايت ئے تعليقاً ذكر كړے دے «إذا تكلم الله بالوحى سمع أهل السماوات شيأ فإذا فزع عن قلوبهم وسكن الصوت عرفوا أنه الحق، ونادوا ما ذا قال ربكم، قالوا الحق» (٣)يعنى كله چه په وحى باندے تكلم اوفرمائى نواهل سماوات يعنى فرشتے ئے واورى اوهغوى بيهوشه شى كله چه په هغوى كښے راشى نو فرشتے تپوس كوى چه الله تعالى څه ارشاد اوفرمائيلو په جواب كښے ورته اووئيلى شى چه حق ئے اوفرمائيل.

اوګورئ دلته د يو داسے څيز اثبات دے چه هغه مسموع دے ښكاره ده چه هغه صوت دے. دغه شان امام بخارى رحمه الله دحضرت عبدالله بن انيس رضى الله عنه نه يو معلق روايت نقل كړے دے «يحشر الله العباد، فيناديهم بصوت يسمعه من بعد كما يسمعه من قرب، أنا الملك الديان» (٤) دلته كښے د «ينادى» ضمير الله تعالى ته راجع دے اود صوت اثبات په صراحت سره شوے دے. خودا خبره دے واضحه وى چه دا صوت په هيڅ شان د مخلوق د صوت سره مشابه نه دے نودا به وئيلى شى چه «له صوت لا كأصواتنا» لكه چه وائى «له يد لا كأيدينا وله سمع لا كأسماعنا» وغيره ذلك.

---

(١) اوګورئ رساله شرح تراجم أبواب صحيح بخارى (ص.١٤) باب كيف كان بدء الوحى)_

(٢) تحفة القارى بحل مشكلات البخارى (ص.١٢٧. ١٣٣)_

(٣) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ﴾

(٤) صحيح بخارى كتاب التوحيد.باب قول الله تعالى.﴿ وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ﴾

**په نصوصو سره ثابت شوی صفات د تنزیه په عقیدې سره په ظاهر باندې پریخودل پکاردی**
شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه حضرت شیخ الهند رحمه الله به فرمائیل چه عالمان او مفسرین رحمهم الله په ..ید. سمع. بصر. وغیره کښې تاویل کوی چه ((له ید لا کأیدینا، وله سمع لا کأسماعنا وله بصر لا کأبصارنا)) خوچه په کوم ځائې کښې دعلم او حیات ذکر کوی نوهلته دا تاویل نه کوی.حالانکه هلته هم دا تاویل ضروری دے.ځکه چه زمونږ حیات دالله تعالی دحیات پشان نه دے.زمونږ حیات خو مسبوق بالعدم دے.چه مونږ د حیات نه وړاندے په پرده دعدم کښې وو. اوبیا به د حیات نه پس دوباره معدوم کیږو هم.لکه چه مونږ دعدمینو په مینځ کښې یو.حالانکه دالله تعالی حیات خو نه مسبوق بالعدم دے.اونه هغه فنا کیدونکے دے .هغه خو ((هوالأول والآخر)) دے.
دغه شان زمونږ علم مسبوق بالعدم دے.اول جهل وو.اود هغې نه پس علم شو.اوبیا چه لکه بوډاتوب شی.نوبه دے علم کښې ذهول او نسیان هم راځی.حالانکه دالله تعالی علم نه مسبوق بالعدم دے.اونه په دے کښې دکمی او نسیان څه امکان شته.
بیا زمونږ علم او اوزمونږ حیات په مقولاتو کښې په یوه مقوله کښې داخل دے.
حالانکه دالله تعالی علم اودهغه حیات په مقولاتو کښې په څه مقوله کښې داخل نه دے.ځکه چه هغه خو خالق للمقولات دے.
نو دعلم او حیات په باره کښې هم دا وئیل پکار دی.چه ((له علم لا کعلمنا، وله حیاة لا کحیاتنا)) الغرض د سلفو عقیده ده.چه د نصوصو نه کوم صفات ثابت وی.هغه به مونږ په ظاهر باندے پریږدو.خو دتنزیه دعقیدے سره.چه دالله تعالی صفات د چا سره مشابه نه دی.﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ (۱) لکه څنګه چه الله تعالی په خپلو نورو ټولوصفاتو کښې د مخلوق نه بالاتر دے.اودهغه د صفاتو کیفیات مونږ نشو بیانولے.او هغه زمونږ په عقلونو کښې نه راځی.دغه شان په دے صوت کښې هم هغوی د مخلوق نه بالاتر دے.په دے باره کښې چونکه احادیث چپ دی.نوددے وجے په دے کښې بحث کول زمونږ د سوچ او فکر نه بهر دی.(۲)
**په حدیث کښې د تعارض شبه او د هغې ازاله** - په دے حدیث کښې تاسو ګورئ چه د آواز د ((صلصلة الجرس)) سره تشبیه ورکړے شوے ده.اوپه یو بل حدیث کښې ((کأنه سلسلة علی صفوان)) راغلی دی. یعنی په هموار کاڼړی باندے د زنځیر پریوتو یا دهغې د راښکلو آواز سره تشبیه ورکړے شوے ده.اوپه یو بل حدیث کښې ((دوی نحل)) (یعنی د شهدو د مچئ آواز) سره تشبیه ورکړے شوے ده.په دے درے واړو تشبیهاتو کښې دومره خبره مشترکه ده.چه آواز مسلسل او متدارك وو.حروف جدا جدا نه وو.اومخارج جدا جدا نه وو.

---
(۱) الشوری :۱۱)-
(۲) اوګورئ فضل الباری (۱۵۲/۱)_

بهرحال دا درے احادیث دی چه په دے کښے په هريو کښے د وحی تشبیه دمختلف څيز سره وركړے شوے ده ددے نه په ظاهره تعارض غوندے معلوميږی
ددے تعارض دفعیه دا ده چه ددے احاديثو په الفاظو کښے غور کولو سره پخپله تعارض لرے کيږی خکه چه د ((سلسلة على صفوان)) حديث پوره داسے دے ((إذا قضى الله الأمر فى السماء ضربت الملائكة بأجنحتها خضعاناً لقوله كأنه سلسلة على صفوان))(۱) دغه شان د ((دوی النحل)) د حديث الفاظ دا دی ((كان النبى ﷺ إذا أنزل عليه الوحى سمع عند وجهه كدوى النحل))(۲) چه دا ټول احاديث وړاندے كيخودے شی نودا خبره ښکاره کيږی چه نبی ﷺ به کوم آواز اوريدلو هغه به د ((سلسلة الجرس)) وو فرشتو به هغه ((سلسلة على صفوان)) گڼړلو اوعامو صحابوﷺ کوم چه به د وحی د نزول په وخت کښے موجود وو هغه به دا ((دوی النحل)) محسوس کولو والله اعلم.

**د مشبه محمود اود مشبه به د مذموم کیدو اشکال او ددې دفع کول** - دلته کښے دا اشکال کيږی که دا د وحی آواز وی اوکه د فرشتے ددے تشبیه د ((صلصلة الجرس)) سره ورکړے شوے ده کوم چه ډیرمذموم څيز دے نبی ﷺ فرمائيلی دی ((لا تصحب الملائكة رفقة فيها كلب ولا جرس))(۳)يعنی د رحمت فرشتے د داسے ډلے سره نه وی چه په هغے کښے سپے یا ټلنګ وی دغه شان نبی ﷺ فرمائيلی دی ((الجرس مزامير الشيطان))(۴)
سوال دا دے چه نبی ﷺ د وحی غوندے محمود څيز چه دهغے تعلق د بارگاه الٰهی سره دے دداسے مذموم څيز سره ولے ورکړه چه د هغے تعلق د شيطان سره دے؟

**ددې خو جوابونه دی:**
(۱) يوآسان جواب خو دا دے چه نبی ﷺ چه د ((جرس)) کوم مذمت بيان کړے دے دا د دے وجے وو چه کله به نبی ﷺ د شپے په کافرانو د حملے کولو دپاره تلو نو ضرورت ددے خبرے وو چه دا حمله پټه وی اودشمن هوښيار نشی په داسے صورت کښے که د څاروی ته جرس آويزاند وی نودهغے آواز لرے لرے پورے رسی نو په دے باندے دشمن هوښياريدے شی په دے وجه نبی ﷺ ددے مذمت کړے دے.(۵)

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة سبا باب حتى فزع عن قلوبهم.... رقم ۴۸۰۰) وکتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿حتى إذا فزع عن قلوبهم...﴾ رقم ۴۸۰۰) وکتاب التوحيد باب قول الله تعالى: ﴿ وَلَا تَنفَعُ ٱلشَّفَٰعَةُ عِندَهُۥٓ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُۥ ﴾

(۲) جامع الترمذی کتاب التفسير باب ومن سورة المؤمنون رقم ۳۱۷۳)_

(۳) صحيح مسلم كتاب اللباس والزينة باب كراهية الكلب والجرس فى السفر)_

(۴) اوګورئ صحيح مسلم كتاب اللباس والزينة باب كراهة الكلب والجرس فى السفر)_

(۵) حكاه ابن أثير فى النهاية(۱/ ۲۶۱)_

() حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په کوم ځائے کښے تشبیه وی.نو هلته دا ضروری نه ده چه مشبه دے د مشبه به په ټولو صفاتو کښے برابر وی.بلکه په خصوصی خبره کښے هم اشتراک ضروری نه دے.صرف دومره خبره کافی ده.چه په یو صفت کښے مشترك وی.دلته د جرس صوت جرس سره تشبه ورکول مقصود دی.چه ددے صوت نه ټول سامعین مانوس کیږی.
خلاصه د جواب دا ده.چه د صوت جرس دوه حیثیتونه دی.یو حیثیت د قوت دے او بل حیثیت د تلذذ دے.دلته تشبیه په قوت کښے ورکړے شوے ده.اومذمت چه کوم بیان شوے دے.هغه د تلذذ د حیثیت په اعتبار سره ورکړے شوے دے. (۱)

() دریم جواب دا دے (کوم چه د ټولو نه قوی دے) چه په ((تشبیه المحمود بالمذموم)) کښے که وجه د شبه ښکاره وی.نو څه قباحت نشته.دلته وجه د شبه د آواز مسلسل اومتدارك کیدل دی.یعنی په دے آواز کښے حروف او مخارج جدا جدا نه دی.اودا ممتاز کولے نشی.لکه چه د وحی یا د فرشتے د آواز تشبه په تسلسل او اتصال کښے ورکړے شوے ده.اودا وجه د شبه معروفه ده.نو په دے تشبیه کښے څه قباحت نشته.(۲)

اوګورئ په حدیث کښے راغلی دی.چه ((ان الایمان لیأرز الی المدینة کما تأرز الحیة الی جحرها))(۳)
یعنی په آخره زمانه کښے به ایمان مدینے طرف ته داسے واپس شی.لکه څنګه چه مار خپلے سوړے ته واپس کیږی.ایمان څومره مقدس څیز دے.د داسے مقدس څیز تشبیه ئے ورکړے ده د مار سره.چه هغه دومره ضرری دے.چه په حرم کښے د عام ځناورو د قتلولو نه منع شوے ده. خوهلته کښے هم حکم دے.چه مار وژنئ.(۴)
خو ښکاره خبره ده.چه دلته د ایمان د مار سره په ضرر رسولو کښے تشبیه ورکول مقصود نه ده.بلکه په دے خبره کښے تشبیه ورکول مقصود دی.چه مار کوم ځائے ته هم لاړ شی.اوپه کوم ځائے کښے هم ګرځی.نوواپس کیږی به.اوهم هغه خپلے سوړے ته به ننوځی.نودغه شان به ایمان هم په ټوله دنیا کښے خور شی.اوقیامت ته نزدے به دا مدینے ته راواپس شی.
دغه شان په حدیث کښے راځی.چه نبی ﷺ حسان بن ثابت رضی الله عنه ته د کافرانو د هجو بیانولو حکم اوکړلو.نوهغه سمدستی تیار شو.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل تادی مکوه . حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورشه.هغه ته د قریشو نسب ښه معلوم دے.د هغه نه زما نسب ښه زده کړه.هغه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورغلو.اود نبی ﷺ خپل خپلوان ئے ښه اوپیژندل.اوبیا د نبی

(۱) فتح الباری(۱/۲۰)_
(۲) اوګورئ فضل الباری (۱/۱۵۵)_
(۳) صحیح بخاری کتاب فضائل المدنیة رقم ۱۸۷۶. وصحیح مسلم کتاب الإیمان أن الإسلام بدأ غریباً وسیعود غریباً وأنه یأرزبین المسجدین)_
(۴) په صحیح بخاری کښے د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث کښے دی.چه ((بینما نحن مع النبی ﷺ فی غار بمنی .إذ نزل علیه ..والمرسلات.. وإنه لیتلوها،وإنی لأتلقاها من فیه. وإن فاه لرطب بها. إذ وثبت علینا حیة. فقال النبی ﷺ اقتلوها...)) اوګورئ کتاب جزاء الصید باب ما یقتل المحرم من الدواب رقم ۱۸۳۰)_

ﷺ په خدمت كښې حاضرشو.او په يو روايت كښې دا هم دى چه نبى ﷺ دهغه نه تپوس اوكړلو.((كيف بنسبى؟)) نوحضرت حسان ﷺ اوفرمائيل ((يارسول الله قد لخص لى نسبك، والذى بعثك بالحق،لأسلنك منهم كما تسل الشعرة من العجين)) (۱) يعنى زه به تاسو د قريشو دهجو نه داسې بچ كوم.لكه څنګه چه د اوړو نه ويخته راويستې شى يعنى لكه څنګه چه په اوړو باندې د ويخته څه اثر نه وى.دغه شان به په تاسو باندې د هجو څه اثر نه وى.اودغه شان به دقريشو د هجوپه تاسو څه اثر نه كيږى.اوتاسو به ترې په آسانئ سره بچ كوم

دغه شان د سيرت په كتابونو كښې تاسو ونيلى دى.چه نبى ﷺ كله د حديبيه په سفر روان وو.نود دوى اوښه قصوى كيناستله.د هغې د پاسولو او روانولو دپاره ډير كوششونه اوشول. خو هغې د پاسيدو نوم نه اخستل.د صحابه كراموﷺ د ژبې نه اووتل ((خلأت القصواء،خلأت القصواء)) چه قصوى اوښه په ضد شوې ده.ضد كوى.چه نبى ﷺ دا واوريدل.نو وې فرمائيل. ((ما خلأت القصواء، وما ذاك لها بخلق، ولكن حبسها حابس الفيل)) (۲)يعنى دا ضد نه كوى.اونه ضد كول ددې عادت دې.بلكه دا الله تعالى ايساره كړې ده.لكه څنګه چه ئې د ابرهه هاتيان ايسار كړى وو.

اوس اوګورئ چرته د نبى ﷺ پاك ذات.اوچرته ابرهه پليت. هغه خو دمكې مكرمې د وړانولو او بيت الله نوړولو دپاره راتلو.اونبى ﷺ د مكې معظمې او د بيت الله تعظيم كونكې او جوړونكې وو.

خو وجه د شبه ښكاره ده.چه دلته صرف په مشيت خداوندى كښې د اشتراك د وجه تشبيه وركړې شوې ده.يعنى لكه څنګه چه ابرهه،دهغه لښكر اوهاتيان د الله تعالى مشيت ايسار كړى وو.دغه شان اوښه هم دالله تعالى مشيت كينولې ده.او وړاندې ئې نه روانه وى.چونكه وجه د شبه ښكاره ده.اوپه دې كښې څه قباحت نشته.نوځكه په دې تشبيه كښې هم څه د قباحت خبره نشته.دا تشبيه خو په خپله د نبى ﷺ نه منقول ده.اود حضرت حسان بن ثابت ﷺ تشبيه اګرچه د نبى ﷺ نه منقول نه ده.خود نبى ﷺ وړاندې بيان شوې وه.اوپه دې باندې نبى ﷺ څه انكار نه وو كړې.نوځكه په دې كښې هم دمذمت څه خبره نشته.

ددې ټول تفصيل نه دا خبره ښكاره شوه.چه د مشبه به د مذموميت د وجه په مشبه محموده باندې څه اثر نه غورځيږى.(۳) والله اعلم

**قوله: وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ:** اود وحى دا قسم د نورو ټولو قسمونو په مقابله كښې په مابانديې سخت وو.

---

(۱) اوګورئ صحيح بخارى كتاب المناقب باب من أحب أن لايسب نفسه رقم.۳۵۳۱ وصحيح مسلم (۲/۳۰۰) كتاب الفضائل باب فضائل حسان بن ثابت ﷺ)_

(۲) اوګورئ زادالمعاد (۲۸۹/۳) فصل فى قصة الحديبية)_

(۳) اوګورئ فضل البارى (۱۵۵/۱)_

دا صورت چه په نبی ﷺ باندے به د ټولو نه زیات سخت وو هغه دے چه په هغے کښے به د فرښتے نزول براه راست د نبی ﷺ په قلب اطهرباندے کیدلو په قرآن کریم کښے ددے ذکر دے ﴿ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِیْنُ عَلٰی قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِیْنَ ﴾ (۱)په دے صورت کښے به د فرښتے تشکل په انسانی شکل کښے نه وو چه مخامخ به راغله اود انسانانو په شان به ئے د وحی مکالمه کوله بلکه براه راست به په قلب باندے د فرښتے نزول کیدلو

**د وحی د دې قسم د ګرانوالی سبب** بیا ددے وحی تلقی به نبی ﷺ په ظاهری غوږونو باندے نه کوله بلکه د زړه په غوږونو به ئے کوله ددے دپاره به دوی ته ضروری وه چه ټول قوتونه راجمع کړی اوملا اعلی طرف ته متوجه شی اوچه تجرد روحانیت غالب اوبشریت مغلوب کړی اودا ټول کارونه د بشریت نه بیخی خلاف دی اوبنکاره خبره ده چه هرسړی ته د خپل طبیعت نه خلاف کار کولو کښے سختی وی ځکه نبی ﷺ اوفرمائیل چه دا صورت په ما باندے د ټولو نه زیات سخت اوګران دے

خلاصه دا ده چه یو قائل یعنی فرښته او یو سامع یعنی نبی ﷺ کله قائل د سامع صفت اختیارکړی یعنی فرښته په انسانی شکل کښے راځی اوپه خپل ځان صفات بشریت غالب کوی اوکله په سامع باندے د قائل صفات غالب کولی شی یعنی نبی ﷺ به صفات بشریت مغلوبه کول اوصفات ملکیت به ئے غالب کول نو په دے صورت کښے به ئے مشقت محسوس کولو دا هم ممکن ده چه فرښتے ته دانسانی صفاتو په غالب کولو کښے مشقت وی لکه څنګه چه به نبی ﷺ د صفات ملکی د غالب کولو په موقع مشقت محسوس کولو (۲)

**د وحی د سختۍ دویمه وجه** یوه وجه دا هم کیدے شی چه دالله تعالی په کلام کښے ډیر وزن وی په قرآن پاک کښے دی

﴿لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰی جَبَلٍ لَّرَاَیْتَهٗ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْیَةِ اللّٰهِ﴾ (۳) دغه شان په قرآن کریم کښے دا هم راغلی دی ﴿ اِنَّا سَنُلْقِیْ عَلَیْكَ قَوْلًا ثَقِیْلًا ﴾ (۴)

دغه شان په حدیث کښے راغلی دی چه یو خل د نبی ﷺ پتون دحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په پتون باندے پروت وو اوصرف درے الفاظ ﴿غَیْرُ اُولِی الضَّرَرِ﴾ نازل شول حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائی چه داسے معلومیدله چه زما پتون مات شو (۱) دا د وزن اثر وو.

---

(۱) الشعراء ۱۹۳-۱۹٤)-

(۲) اوګورئ فضل الباری (۱/۱۵۶)_

(۳) الحشر ۰۲۱)-

(٤) المزمل ۰۰۵)-

په حدیث کښې دا هم راځي چه کله به په نبی ﷺ باندې وحی نازلیدله اونبی ﷺ به په سورلئ باندې سور وو هغه به کیناستله په کلام کښې به دومره وزن وو چه اوښه به په ولاړه نه شوه پاتې کیده.(۲)

چونکه په دې صورت کښې به د نبی ﷺ په زړه باندې دالله تعالی کلام براه راست نازلیدلو. یا دحضرت جبریل ﷺ په واسطه.او واسطه کمه ده.یعني صرف یوه واسطه ده.په کوم ځائې کښې چه واسطه بیخي نه وی.یا کمه وی.نوهلته وزن زیات محسوسیږی.نوځکه په نبی ﷺ د وحی دا صورت ډیرګران او سخت وو.(۳)

**د حضرت مولانا فضل الرحمن گنج مراد آبادي واقعه** په وحی کښې څومره وزن وی.ددې اندازه د دې واقعه نه کیدې شی.

یوځل دحضرت مولانا شاه فضل الرحمن گنج مراد آبادی (۴) په خدمت کښې یو عالم حاضر شو.دهغوی متعلق مشهوره وه.چه د بخاری شریف حافظ دې.او دخپل خان سره ئې د خپلو شاګردانو یوه ډله هم راوستې وه.د راتلو غرض ئې دا وو.چه چونکه حضرت فضل الرحمن صاحب رحمه الله دحضرت شاه اسحاق رحمه الله شاګرد وو.بلکه د حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله نه ئې هم د بخاری د څه حصې سماع کړې وه.(۵) نوځکه ددوی سند عالی وو.ذکر شوې عالم د دوی نه د اجازت حدیث دپاره راغلې وو.

دوی بخاری شریف کهولاؤ کړلو او د بسم الله نه پس ئې قرات شروع کړلو ﴿اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ﴾ (۶) چه دلته راورسیدلو . نوهغوی چپ شول.حضرت به ورته فرمائیل.اووایه.خو دهغه ژبه نه کهولاویدله . اونه ورته د کتاب حروف په نظر راتلل.کله چه

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر.سورة النساء باب ﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ رقم(۴۵۹۲)_قال الحاکم هذا حدیث صحیح الإسناد ولم یخرجاه.وأقره الذهبي وقال صحیح)_

(۲) اوګورئ مسند احمد(۱۱۸/۶) او مستدرک حاکم (۵۰۵/۲) کتاب التفسیر.تفسیرسورة المزمل. توضیح معنی آیة ﴿اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا﴾ (المزمل ۰۰۵)-

(۳) اوګورئ ایضاح البخاری (۶۶/۱ ۶۷)_

(۴) حضرت مولانا فضل الرحمن اهل الله رحمه الله د څوارلسمې صدئ په بزرګانو کښې تیر شوې دې.په ۱۲۰۸ه کښې پیدا شوې وو دخپلې زمانې دلویو عالمانو او عظیم مشائخو نه ئې کسب فیض کړې وو.په مختلفو علومو خصوصا په علم حدیث کښې ورته اوچت مقام حاصل وو اوپه اتباع سنت او عشق رسول کښې بې مثاله وو په ربیع الاول ۱۳۱۳ه کښې په ګنج مراد آبادی کښې وفات شو.((رحمه الله رحمة واسعة)) د دوی د ژوند د تفصیلی حالاتو دپاره اوګورئ.تذکرة حضرت مولانا فضل الرحمن گنج مراد آبادی .مصنفه حضرت مولانا سید ابوالحسن ندوی مدظلهم)-

(۵) اوګورئ تذکرة مولانا فضل الرحمن گنج مراد آبادی (۱۳. ۱۴)_

(۶) النساء:۱۶۲)_

ډیر وخت تیرشو نوحضرت ورته اوفرمائیل چه ته لوستل نشے کولے نو اجازت د څه خیز درکړم د اجازت اخستلو طریقه دا راروانه وه چه د کوم څیزاجازت غوستل به وو نو دهغې څه حصه به ئې د صاحب اجازت وړاندے لوستله.آخر دا چه هغه عالم پاسیدلو.
شاګردان ئې ډیرحیران شو چه نن حضرت عبارت هم نشوونیلے چه تپوس ئې ترے اوکړنو جواب ئې ورکړو چه کله زه حدیث ته راورسیدم.نو زړے مے کار پریخودلو او په سترګو مے تیاره شوه دحضرت مولانا صاحب نه چه د حقیقت حال پوښتنه اوشوه. نو وے فرمائیل چه د پیغمبر ﷺ د کلام د وزن یوه نمونه راته اوخودلے شوه. د هغې اثر وو چه زړے او سترګو مے کار پریخودلو (۱)
**دبراه راست تاثیر یو حسی مثال** تاسو د نمر رڼرا وینئ اومحسوس کوئ الله ته پته ده چه د سوونواوزرګونو پردو نه راتیریږی.اوموږ ته رارسی.نوځکه موږ ددے تحمل کولے شو خو یو خاص قسم شیشه ده.چه هغه د نمر رڼرا براه راست جذب کوی.د هغې کیفیت دا وی که هغه تاسو جامے ته متوجه کړے.نوهغه به اوسوزی.که هغه څرمن ته متوجه کړئ نوڅرمن به سوزیدل شروع کړی.اوکه د لږ وخت دپاره دے ورته اونیوله.نواوبه سوزی.
دغه شان دلته هم د نبی ﷺ په قلب اطهر باندے د الله تعالی د کلام نزول یا خو براه راست وو.یا په یوه واسطه.نوځکه به ئې دومره مشقت اوسختی برداشت کوله.والله اعلم.
**قوله فَيُفْصَمُ عَنِّي**:په دے کښے درے روایتونه دی.
① **يَفْصِمُ**: د باب ضرب نه د مضارع معروف صیغه.
② **يُفْصَمُ**: هم د باب ضرب نه د مضارع مجهول صیغه.
③ **يُفْصِمُ**: د باب افعال نه د مضارع معروف صیغه.
اولنے روایت افصح دے.د ،،فصم،، معنی د قطع ده.او مطلب دا دے.چه د وحی جاری والے به زما نه ختم شو.یا زما نه ختم کړے شو.یعنی د وحی سلسله به ختمه شوه.(۲)
**قوله وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ**:دوحی انقطاع به په هغه وخت کښې کیدله.چه څه به فرشتې دالله تعالی دطرفه القاء کول.هغه به زما په حافظه کښې پاتے شو.او هغه به ماته یاد شول.
**قوله وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا**:د تمثیل معنی ده ،،تشکل،، یعنی د بل په شکل اومثال کښے ښکاره کیدل.مطلب دا دے چه بعضے وخت به فرشته په انسانی شکل کښے متشکل کیدله.

د ملك یا فرشتے تعریف متکلمینو ﷺ داسے کړے دے((الملائكة أجسام علوية لطيفة،يتشكل أي شكل أرادوا))(۳)یعنی فرشتے لطیف علوی اجسام دی.دوی ته په هر قسم شکل او صورت

(۱) ایضاح البخاری (۱/ ۶۷، ۶۸)_
(۲) اوګورئ عمدة القاری (۱/ ۴۱)_
(۳) فتح الباری (۱/ ۲۱)_

اختیارولو باندے قدرت وی.بیا دلته د فرشتے نه کومه مراد ده.نو د بعضے حضراتو وینا ده. چه دلته جنس فرشته مراد اخستل پکار دی ځکه چه دحضرت اسرافیل علیه السلام (۱) او ملك الجبال (۲) دوی ته راتګ ثابت دے
خوداکثرو شارحینو رحمهم الله رائے دا ده.چه دلته د ملك نه مراد حضرت جبرائیل علیه السلام دے.(۳) اوهم دا راجحه ده.ځکه چه په طبقات ابن سعد کښے د جبریل علیه السلام تصریح ده.(۴) او ددے وجے هم چه د سفارت وحی کار دحضرت جبریل علیه السلام په ذمه وو.
ترکومے پورے چه د حضرت اسرافیل علیه السلام د راتلو تعلق دے.نوهغه په اول کښے د نبی ﷺ سره لګولے شوے وو.د قرآن کریم وغیره وحی به هغوی نه راوړله.(۵) دغه شان دملك الجبال راتلل صرف یو ځل ثابت دی.هغے هم وحی نه وه راوړے.بلکه په طائف کښے چه کله دشمنانانو نبی ﷺ ډیرزیات تنګ کړلو.اودوی حیران او پریشان کیناستلو.نوپه هغه وخت کښے ملك الجبال د حضرت جبریل علیه السلام سره راغلو .اود دوی نه ئے د کافرانو د هلاك کولو اجازت اوغوښتلو.خو نبی ﷺ ورته اجازت ورنکړلو.(۶)

**د فرشتې په انساني شکل کښې متشکل کيدلوباندې اشکال او ددې جوابونه** دلته کښے یوسوال دے.چه د حضرت جبریل علیه السلام بدن خو ډیر غټ دے.نبی ﷺ چه کله هغوی په خپل اصلی شکل کښے لیدلی وو.نو دهغوی شپږ سوه وزرے وے.اوټول افق ئے پټ کړے وو.(۷) نو دومره لویه فرشته په انسانی شکل کښے څنګه راغله؟
ددے مختلف جوابونه ورکړے شوی دی.
۱) امام الحرمین رحمه الله فرمائی.چه د جبریل آمین زوائد به فنا کولے شول.بیا به الله تعالی په خپل قدرت عظیمه باندے پیدا کول.یا زوائد خو به ئے نه فنا کول.البته جدا کولے به شو. اوبیا به ئے ورسره هغه دوباره یوځائے کول.(۸)
۲) شیخ عزالدین عبدالسلام رحمه الله فرمائی.چه زوائد به فناکولے نشو.البته جدا کولے به شو.(۹)

---

(۱) اوګورئ شرح قسطلانی (۵۹/۱) وعمدة القاری (۴۴/۱) وغیره)_
(۲) وګورئ الروض الأنف(۱۵۴/۱)_
(۳) اوګورئ البدایة والنهایة۱۳۷/۲)_
(۴) ابن سعد په خپل سند سره ذکر کوی.((أن رسول الله ﷺ کان یقول: کان الوحی یأتینی علی نحیین:یأتینی به جبریل علیه السلام فیلقیه علی کما یلقی الرجل علی الرجل.فذلک یتفلت منی.ویأتینی فی شئ مثل صوت الجرس.حتی یخالط قلبی.فذاک الذی لا یتفلت منی)اوګورئ طبقات ابن سعد(۱۹۷/۱، ۱۹۸)ذکرشدة نزول الوحی علی النبی ﷺ)
(۵) علامه ابوعمربن عبدالبر رحمه الله په الاستیعاب (بهامش الإصابة ۲۴/۱) کښے دامام شعبی رحمه الله نه نقل کړی دی.چه ((أنزلت علیه النبوة وهو ابن أربعین سنة فقرن نبوته اسرافیل علیه السلام ثلاث سنین. فکان یعلمه الکلمة والشئ.ولم ینزل علیه القرآن علی لسانه..)_
(۶) د واقعه د تفصیل دپاره اوګورئ البدایة والنهایة (۱۳۷/۲)_
(۷) د جبریل علیه السلام کښے د روایاتو دپاره اوګورئ.الدرالمنثور(۱۲۳/۶) تفسیر سورة النجم)_
(۸) فتح الباری(۲۱/۱)
(۹) پورتنئ حواله)_

() حافظ ابن حجر رحمه الله دخپل شيخ قول نقل کړے دے چه هغوى به فرمائيل چه جبريل عليه السلام به په خپل اصلى شکل کښے راتلو البته دومره به کيدله چه هغوى به خپل ځان راغونډ کړلو اودانسانى شکل په اندازه به ئے کړلو اوبيا روستو به په خپل اصلى شکل کښے شو ددے مثال داسے دے لکه وينځلے شوے روئى چه دهغے حجم زيات وى خو چه زور ورکړے شى نو ور کوټے شى معلومه شوه چه د کمى زياتى نه بغيريو څيز وړکى لويدے شى (١)

**د فرشتې د تشکل انسانى نه پس به دهغې روح کوم ځائې کښې وو؟** دلته يوسوال دا هم شوے دے چه فرشته په انسانى شکل او صورت کښے شى نود هغے روح کوم ځائے وى؟که ته دا وائے چه روح هم په هغه بدن کښے وى د کوم چه شپږ سوه وزرے دى نو بيا خو راتلونکے څيز نه د جبريل عليه السلام روح دے اونه جسد جبريل. اوکه روح په دانسانى شکل په بدن کښے وى نو سوال دا پيدا کيږى چه آيا په دغه لوئے بدن باندے مرګ راځى. اوکه داسے بغير د روح نه خالى وى.

ددے جواب دا دے چه دانسانى شکل سره روح جبريلى راځى. اوپه دے سره په جسد عظيم باندے مرګ راتلل نه لازميږى. لکه چه داودہ کس بدن ژوندےوى اود هغه روح سيل کوى دغه شان د شهيدانو روحونه دشنو مارغانوپه خيټو کښے وى. اود بدن سره د هغے تعلق وى. دلته کښے دا خبره هم د ياد ساتلو ده. چه د روح په مفارقت سره د مرګ راتلل عقلاً څه ضرورى نه دى. دا خو الله تعالى عادت داسے جارى کړے دے. نوځکه مرګ واقع کيږى. الله تعالى ددے په خلاف کولو باندے هم قادر دے.

**دفرشتې په تشکل انسانى کښې تحقيقى خبره:** خودلته ددے قسم سوال اوجواب څه خاص ضرورت هم نشته. ځکه چه مونږ په شروع کښے د فرشتو تعريف ذکر کړے دے چه «الملائكة أجسام علوية لطيفة تتشكل بأى شكل أرادوا» ددے نه معلومه شوه چه الله تعالى هغوى ته دا استعداد ورکړے دے چه هغوى خپل شکلونه چه څنګه غواړى بدلولى شى. ورکوټے کولى شى. غټولے هم شى. خپل ځان راغونډولے هم شى. اوخورولے هم شى. نود فرشتے په انسانى شکل کښے راتلل څه لرے يا غيرممکنه خبره نه ده. نودا بحث بے فائدے دے. چه آيا د زوايه افناء کيږى. اوکه ازاله؟ روح جبريلى راځى. او که جرئيل آمين بجسده و روحه راځى؟

خلاصه دا شوه. چه د جبريل آمين مختلف شکلونه د قرآن او سنت نه ثابت دى. نو ددے منل ضرورى دى. او ددے کيفيات به څه وى. په دے کښے دتولو نه غوره لاره تفويض دے چه الله تعالى ته ددے صحيح علم دے والله اعلم.

**حضرت جبريل عليه السلام به عام طور د دحية الکلبى رضى الله عنه په شکل کښې راتلو** بيا چه به حضرت جبريل عليه السلام په انسانى شکل کښے راتلو نوعام طور به د حضرت دحيه الکلبى رضى الله عنه

---

(١) پورتنئ حواله)_

(٢) اوګورئ عمدة القارى(١/٤٥، ٤٦) وفتح البارى (١/٢١)_

به صورت كښې راتلو (١)دوى د يرزيات ښكلى وو په رواياتو كښې راځى چه دوى به كله مدينې منورې ته راغلو نو ښځو به ورته په چوندوكښې كتل (٢)نو دوى به په نقاب اچولې وو او وتلو به (٣)

البته كله كله په نورو شكلونو كښې راتلل هم ثابت دى لكه په حديث جبريل عليه السلام كښې تاسو وئيلى دى (٤)((إذا طلع علينا رجل شديد بياض الثياب، شديد سواد الشعر، لايرى عليه أثر السفر، ولا يعرفه منا أحد)) په دے حديث كښې تصريح ده.چه هغه په داسې شكل كښې راغلوچه چانه پيژندلو حالانكه حضرت دحية الكلبى رضي الله عنه خو ټولو پيژندلو.بلكه په بعضې روايتو كښې خو د نبى صلى الله عليه وسلم دا ارشاد هم موجود دے چه ((هذا جبريل جاء ليعلم الناس دينهم، والذى نفس محمد بيده ما جاءنى قط إلا وأنا أعرفه إلا أن تكون هذه المرة)) (٥)

يعنى دا جبريل عليه السلام دے چه خلقو ته د دين خودلو دپاره راغلے وو.ما ته د ده په پيژندګلو كښې څه مشكلات نه دى پيښ شوى.خو دا ځل مے اونه پيژندل.حضرت جبريل عليه السلام ډير وخته پورے سوالونه كول.او نبى صلى الله عليه وسلم به جوابونه وركول.خو نبى صلى الله عليه وسلم په دے دوران كښې نه وو پيژندلے.

**أيا د نبى صلى الله عليه وسلم د جبريل عليه السلام په نه پيژندلو سره په وحى اعتماد باقى پاتې كيږى؟** بعضې خلقو دلته د اعتراض كړے دے.چه كله نبى صلى الله عليه وسلم جبريل عليه السلام نه پيژندلو.نو په دے سره خود وحى نه اعتماد پورته كيږى.ځكه چه لكه په دے ځل چه نبى صلى الله عليه وسلم دوى اونه پيژندلو چه آيا دا انسان دے كه فرښته؟دا هم كيدے شى.چه شيطان په انسانى شكل كښې ښكاره شى.او دهوكه وركړى.او نبى صلى الله عليه وسلم د هغه د نه پيژنګلو د وحے په غلطئ كښې واقع شى.

ددے جواب دا دے.چه په بله موقع دغلط كيدو څه امكان نشته.اوپه دے موقع كښې چه نبى صلى الله عليه وسلم اونه پيژندلو.نودا د وحى راوړلو موقع نه وه.بلكه په دے موقع حضرت جبريل عليه السلام ـــ نل

---

(١) دحية بن خليفة بن فروة بن فضالة الكلبى. صحابى مشهور.أول مشاهده الخندق. وقيل أحد. ولم يشهد بدراً. وكان يضرب به المثل فى حسن الصورة وكان جبريل عليه السلام ينزل على صورته.... وقد شهد دحية اليرموك وقد نزل دمشق وسكن المزة وعاش إلى خلافة معاوية كذا فى ..الإصابة.. (١/٤٧٣، ٤٧٤)_

(٢) اوګورئ ..الإصابة (١/٤٧٣)_

(٣) اوګورئ عمدة القارى(١/٤٠)_

(٤) دحديث جبريل دپاره اوګورئ.صحيح بخارى كتاب الإيمان باب سوال جبريل عليه السلام النبى ﷺ عن الإيمان والإسلام والإحسان. رقم. ٥٠. وكتاب التفسير.تفسير سورة لقمان. باب إن الله عنده علم الساعة. رقم ٤٧٧٧. وصحيح مسلم كتاب الإيمان وسنن نسائى. كتاب الإيمان وشرائعه باب نعت الإسلام رقم .٤٩٩٣. وباب صفة الإيمان والإسلام رقم .٤٩٩٤. وسنن ابى داود كتاب السنة باب فى القدر رقم ٤٦٩٥. (٤٦٩٨) وسنن ترمذى كتاب الإيمان باب ما جآء فى وصف جبريل عليه السلام للنبى ﷺ الإيمان والإسلام رقم. ٢٦١٠) وسنن ابن ماجة .مقدمة باب فى الإيمان رقم ٦٣، ٦٤)_

(٥) اوګورئ مسند احمد (١٢٩/٤) دغه شان اوګورئ مجمع الزوائد(١/٤٠، ٤١، كتاب الإيمان)_

جوړ شوي وو او راغلي وو د هغوی د سوالونو په ذريعه نبی ﷺ صحابو ؓ ته د دين تعليم ورکول چونکه په دے موقع حضرت جبريل آمين وحی نه وه راوړے نوځکه که نبی ﷺ هغه نه وی پيژندلے نو په دے کښے څه نقصان نشته.اوچه کله به ئے وحی راوړله.او راتلوبه نو نبی ﷺ هغه اوپيژندلو.هغوی ته په پيژنګلو کښے څه مشکل نه وو.

**دحضرت جبريل ؑ د نه پيژندګلو حکمت** باقی پاتے شوه دا خبره.چه په دے خل دهغه نه پيژندګلو څه حکمت وو؟نو ددے جواب دا دے.چه د الله تعالى په دے خبره باندے تنبيه ورکول مقصود وو.چه دا علم کوم چه مونږ تاته در کړے دے.چه ددے شان دے«اوتيت علم الأولين والآخرين» دا زمونږ په اختيار کښے دے.مونږ دا سلب کولے هم شو.په قرآن کريم کښے ارشاد دے.﴿ وَلَئِن شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهِ عَلَيْنَا وَكِيلًا ﴾ (۱) لکه چه په دے خبره تنبيه ده.چه نبی کريم ﷺ ته کوم علم ورکړے شوے دے.هغه عطائی دے.او الله تعالى قادر دے.که غواړی نو دا سلب کولے هم شی.اوګورئ هغه جبريل ؑ چه بيشميره کرته نبی کريم ﷺ ته راغلے وو.هغه ئے اونه پيژندلو.

**دحضرت مولانا محمد يعقوب صاحب نانوتوی ؒ واقعه** حضرت مولانا محمد يعقوب ؒ (۲) يو ځل فتوی ليکله.چه فتوی ئے مکمل کړه.نو په هغے باندے ئے دستخط کول غوښتلو چه ناڅاپه ترے خپل نوم هير شو.چه ورسره کوم کس ناست وو.هغه نه ئے تپوس اوکړلو.چه زما څه نوم دے؟هغوی ورته اوخودلو.نو دوی دستخط اوکړلو.

**دحضرت تهانوی ؒ واقعه** حضرت مولانا اشرف علی تهانوی ؒ يوځل دخپلے خانقاه نه اووتلو.اوکور ته ئے تشريف اوړلو.د حضرت دواړه کورونه د خانقاه نه لږ غوندے لرے وو.د حضرت نه دخپل کور لاره هيره شوه.

**دشيخ عبدالحق ردولوی ؒ واقعه** حضرت شيخ عبدالحق ردولوی ؒ يو ډير لوئے بزرګ تير شوے دے.د ځلويښتو پنځوستو کالو راسے به هغوی دخپل کور نه جمات ته په اول وخت کښے تشريف اوړولو.اوپه خپل لاس به ئے جارو وهله.خو داستغراق ئے دا حالت وو.چه اکثر به

(۱) الإسراء ۸۶)-

(۲) حضرت مولانا محمد يعقوب صاحب نانوتوی ؒ د حضرت مولانا مملوك علی صاحب ؒ استاذ دحضرت نانوتوی ؒ اوحضرت ګنګوهی ؒ فرزند رشيد وو دوی په ۱۳صفر ۱۲۴۹ھ کښے په نانوته کښے پيدا شوے وو دحفظ قرآن نه پس ئے دخپل پلار صاحب سره د يوولسو کالو په عمر کښے دهلی ته تشريف يوړلو.ټول علوم متداوله ئے د خپل پلار نه حاصل کړل البته د علم حديث تحصيل ئے د شاه عبدالغنی مجددی ؒ نه کړے وو په ۱۲۶۷ھ کښے ئے والدصاحب وفات شو.ددے نه پس يوکاله پورے په دهلی کښے پاتے شو ددے نه پس د اجمير په ګورنمنټ کالج کښے د دوی تقرری اوشوه.د غدر په موقعه د دوی قيام په نانوته کښے وو.د سرکاري ملازمت نه فارغ شو.اوپه ميرټه کښے د منشی ممتازعلی په مطبع کښے ملازم شو په ۱۲۸۳ھ کښے ئے ديوبند ته تشريف راوړلو.اودلته د,,صدارت تدريس.. په منصب دتهوکونه وړاندے دوی مقررشو ددوی نه بيشميره طالبانو فيض حاصل کړلو.په ۳ربيع الاول ۱۳۰۲ھ کښے دهيضه په مرض ئے دمرګ فرشتے ته لبيك اووئيل.اوګورئ تاريخ دارالعلوم ديوبند (۱۷۱/۲، ۱۷۸)

ئے په لاړ کښے د خدام. ..حق حق.. آواز لګولو.او په دے آواز به هغوی جمات طرف ته روان وو د دے وجه د هغوی لقب ..عبدالحق.. شو.ګنی دهوی اصلی نوم ئے ..احمد.. وو.(۱)
دا خاص کیفیات وی.چه دالله تعالی بعضے خاص بندګان ترے تیریږی.نو دحضرت جبریل ﷺ نبی ﷺ ته راتلل.او د نبی ﷺ هغه نه پیژندل څه عجیبه خبره نه ده.والله اعلم بالصواب

**لفظ د ,,رجلا،، په ترکیب کښې څه واقع شوې دې؟** په لفظ د «رجلاً» کښے شارحینو ﷺ مختلف صورتونه بیان کړی دی.اودا ئے ونیلی دی.چه دا «تمیز» ګرځولے شی.او«حال» هم ګرځولے شی.دغه شان مفعول مطلق هم ګرځولے شی.(۲)

() د مفعول مطلق جوړولو په صورت کښے به تقدیر وی.«یتمثل لی الملك تمثل رجل»

() دحال جوړولو په صورت کښے به تقدیر داسے وی.«یتمثل لی الملك هیئة رجل»
علامه کرمانی رحمه الله دا رائے هم ښکاره کړے ده.چه دا مفعول به شی.اوفرمائیلی ئے دی.چه په دے صورت کښے به د «یتمثل» معنی «یتخذ»لره متضمن وی.(۳)
خوعلامه عینی رحمه الله دا احتمال بعید ګرځولے دے.(۴) دغه شان ئے فرمائیلی دی.چه د ..تمیز.. ګرځولو صورت هم ټیک نه دے.ځکه چه تمیز دپاره د رفع دابهام راځی .اودلته نه خو په «تمثل» کښے ابهام دے.اونه په «ملك» کښے.اونه په «تمثل ملك» کښے.نودا تمیز ګرځول ټیک نه دی.(۵)
د ټولونه نه بهتر صورت دا دے.چه دا منصوب بنزع الخافض اوګرځولے شی.لکه چه تقدیری عبارت وو.«یتمثل لی الملك صورة رجل» دلته ..رجل.. مجرور دے.او دے ته جر ورکونکے لفظ د ..صورة.. مضاف دے.او ..جر.. ورکونکے مضاف ئے حذف کړے دے او ددے په ځائے ئے مضاف الیه ساتلے دے.او د مضاف اعراب دے ته ورکړے شوی دی.
دغه شان په ..حال.. ګرځولو کښے دا خرابی راځی.چه حال په اصل کښے د ذوالحال دپاره په منزله د خبر وی.په داسے صورت کښے «الملك رجل» ونیل پکار ده چه ټیک وو.خودا ښکاره خبره ده چه ټیک نه ده.دغه شان ..حال.. هغه څیز جوړولے شی.چه په هغے کښے تغیرکیدے شی.دلته د ..رجل.. په رجولیت کښے څه تغیر نشی راتلے.نودا ..حال.. ګرځول ټیک نه دی.(۶)

---

(۱) اوګورئ تاریخ مشائخ چشت از حضرت شیخ الحدیث صاحب قدس سره (ص.۱۹٤)_
(۲) فتح الباری (۲۱/۱)_
(۳) شرح کرمانی (۲۷/۱)_
(۴) عمدة القاری (٤۲/۱)
(۵) پورتنئ حواله)_
(۶) فضل الباری (۱۵۶/۱)_

تنبیه د ((تمییز)) گرخولو صورت اګرچه علامه عینیؒ رد کړے دے خو په ظاهره د دے رد کول مناسب نه دی او دهغوی دا وینا ټیک نه معلومیږی چه دلته رفع د ابهام نشته بلکه دلته کښے د نسبت نه رفع د ابهام ده په دے طریقه چه مونږ دا منلی دی چه فرشتو ته په مختلفو شکلونو جوړولو باندے قدرت شته نوکله چه ((یتمثل لی الملک)) اووئیلی شی نوپه دے کښے ابهام شته چه په کوم شکل کښے متشکل شو؟ آیا دانسان په شکل کښے او که د غیر انسان په شکل کښے؟بیا د مذکر په شکل کښے که د مؤنث په شکل کښے؟ دا ابهام ((رجلاً)) لرے کړلو چه فرشته به ماته د سړی په شکل کښے راتله نو په دے مقام کښے ((رجلاً)) تمیز ګرخول هم ټیک دی . والله اعلم.

**قوله** فَيُكَلِّمُنِي فَأَعِي مَا يَقُولُ: یعنی فرشته چه کله په انسانی شکل کښے متشکله شی اوما سره خبرے کوی نو هغه چه څه وانی زه هغه یادوم.

دلته ستاسو وړاندے لفظ دے ((فیکلمنی)) حافظ ابن حجرؒ فرمانی چه د بیهقی پهروایت کښے کوم چه د ..قعنبی عن مالك.. په سند سره مروی دے ((فیعلمنی)) دے کوم چه په ظاهره تصحیف دے خکه چه د ..قعنبی عن مالك.. په سند سره په ..موطا.. کښے هم ((فیکلمنی)) راغلے دے.(۱)

## د وحی په دواړو صورتونو کښې د حفظ دپاره د مختلفو صیغو استعمال

دلته کښے تاسو ګورئ چه د وحی اولنے صورت یعنی ((أحیاناً یأتینی مثل صلصلة الجرس)) سره وئیلی شوی دی چه ((وقد وعیت عنه ما قال)) او په دویم صورت ((وأحیاناً یتمثل لی الملك رجلاً)) سره نبی ﷺ فرمانی چه ((فأعی مایقول)) یعنی د اول صورت سره ئے د ماضی صیغه استعمال کړے ده.اود دویم صورت سره ئے د مضارع صیغه.دا مختلف ولے اختیار شوی دی؟

() ددے یو جواب خو دا دے چه په اول صورت کښے د ماضی صیغه خکه استعمال شوے ده چه هلته ((وعی)) او((حفظ)) قبل انقطاع الوحی او قبل الفصم حاصلیږی.د انقطاع الوحی نه پس یاد پاتے کیدل متصور نه دی.

او په دویم صورت کښے فرشته په انسانی شکل کښے راخی اوخبرے کوی.او د مکالمے سره سره نبی ﷺ یادول کوی.نوبنکاره خبره ده چه ((وعی)) د مکالمے نه وړاندے ممکن نه ده. بلکه د خبرو سره سره به نبی ﷺ هغه یادول چونکه په خبرو کښے استمرار اوتجدد وی.نو خکه نبی ﷺ د مضارع صیغه استعمال کړله کومه چه په تجدد دلالت کوی.(۲)

(۱) فتح الباری (۲۱/۱)_
(۲) فتح الباری (۲۱/۱)_

ب دویم جواب دا دے چه په اصل کښے په اول صورت کښے نبی ﷺ صفات بشریت مغلوب کړی وو اوصفات ملکیت سره ئے تلبس اختیار کړے وو کله چه د وحی سلسله ختمه شوه نو په نبی ﷺ باندے د بشریت صفات غالب شول او تلبس بالصفات الملکیة باقی پاتے نشو نوځکه ئے په دے کښے د ماضی صیغه استعمال کړله.
اوپه دویم صورت کښے دوی په خپل فطری حالت باندے برقرار پاتے کیږی په دوی کښے څه تغیر نه راځی چه څنګه فرشته واني نو نبی ﷺ ئے یادوی نوځکه دلته د مضارع صیغه راوړلے شوه کوم چه په تجدد دلالت کوی.[1]

## په دې حدیث کښې د وحی صرف په دووصورتونو ولې اکتفاء شوې ده؟

دلته تاسو اوکتل چه دحارث بن هشام رضی الله عنه د سوال په جواب کښے نبی ﷺ د وحی د نزول صرف دوه صورتونه بیان کړل.سوال دا دے چه نبی ﷺ د وحی نور صورتونه ولے بیان نکړل؟
ددے جواب دا دے چه تاسو اګرچه وړاندے ډیر صورتونه لوستلی دی خو حقیقت دا دے چه د وحی په باب کښے اصل د قرآن کریم د سورت شوری آیت دے ﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ ﴾ [2] په دے آیت کښے د وحی تول درے صورتونه دی.
① اولنے صورت چه دهغے نه ئے په وحی سره تعبیر کړے دے چه په هغے کښے القاء في القلب کیږی.بغیر د څه واسطه نه.په دے قسم کښے د فرشتے یا بل څه واسطه نه وی بلکه دنبی باطن د عالم قدس تابع ګرځولے شی.اوبیا په هغے باندے د وحی القاء کولے شی.
په دے صورت کښے یو احتمال دا هم وو چه القاء په واسطه د فرشتے مراد واخستلے شی خو دا بعید احتمال وو.ځکه چه وړاندے آیت ﴿أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا﴾ کښے د فرشتے په واسطه د نزول مستقل ذکرراغی.
② دویم صورت «کلام من وراء حجاب» دے.یعنی د نبی ﷺ خاسه سماعت د الله تعالی دقدیم کلام براه راست سماع کوی.
دا صورت صرف دوه ځله د دوو پیغمبرانوعلیهما السلام سره پیښ شوے دے.یو حضرت موسی علیه السلام سره په جبل طور باندے او بل د نبی کریم ﷺ سره په معراج کښے.[3]
③ دریم صورت په آیت کښے «ارسال رسول» بیان شوے دے. د دے دوه صورتونه دی.
(الف) یودا چه فرشته په انسانی شکل کښے متشکله شی.او راشی.لکه چه په قرآن کریم کښے دحضرت بی بی مریم علیها السلام په واقعه کښے چه راغلی دی.﴿ فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴾

(۱) فتح الباری (۱/۲۱)-
(۲) الشوری ۰۵۱)-
(۳) فضل الباری (۱/۱۵۹)_

( ) دغه شان وړاندے تير شوى دى چه حضرت جبريل ﷺ به د حضرت دحية الكلبى رضی الله عنه په صورت كنبے تشريف راوړلو

(ب) دويم صورت دا دے چه فرشته په انسانى شكل كنبے ښكاره نشى او د نبى ﷺ په قلب باندے القاء كوى اود نبى ﷺ قلب دهغے احساس كوى

ددے تفصيل زده كولو نه پس دا خبره بالكل ښكاره شوه چه دلته په حديث كنبے د وحى د دے آخرى صورت د دواړو قسمونو ذكر دے نه د «القاء فى القلب بغير واسطة» ذكر شته اونه د «كلام من وراء حجاب» ذكر.

ددے واړه قسمونو نه ذكر كولو وجه دا ده چه دلته د نبى ﷺ مقصود اكثر پيښيدونكى كيفيتونه بيانول دى.او زيات واقع كيدونكى صورتونه هم دوه وو يعنى چه فرشته د نبى باطن مسخر كړى.اوالقاء پرے اوكړى اود فرشتے په انسانى شكل كنبے راتلل.باقى دواړه قسمونه كثيرالوقوع نه وو.

بيا په دے كنبے د «كلام من وراء حجاب» واقعه خو صرف د دوو پيغمبرانو سره پيښه شوے وه.او هغه هم يو يو كرته.نوځكه ئے د هغے ذكر پريخودلو.

اود فرشتے د واسطے نه بغير چه دالله تعالى كومه القاء ده.نو په هغے كنبے ..منام.. او ..الهام.. هم داخل دى.چونكه ..منام.. او ..الهام.. د پيغمبرانوعليهم السلام سره مختص نه دى.نوځكه ئے ددے ذكر هم پريخودلو.([2]) والله اعلم.

**قوله: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه ددے تعلق داسناد سابق سره دے.اودا مسند دے.په ظاهره دلته حرف عطف پكار وو.خو دامام بخارى رحمه الله عادت دے.چه د مسند معطوف نه حرف عطف حذف كوى.اوچه كوم ځائے كنبے تعليق مقصود وى.هلته حرف عطف برقرار ساتى.([3])

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه دلته دواړه احتمالات شته.يوخو هغه چه په اسناد اول باندے معطوف وى.اوحرف عطف محذوف اوګنړلے شى.«كما هو مذهب بعض النحاة مرم په ابن مالك رحمه الله» په دے صورت كنبے به دا حديث مسند وى.([4]) اومطلب به دا وى.چه حضرت عائشے رضی الله عنها د حضرت حارث بن هشام رضی الله عنه د سوال اود نبى ﷺ د جواب نه نقل كولو نه پس خپله ذاتى مشاهده هم حضرت عروه رحمه الله ته بيانوى.اوحضرت عروه رحمه الله نه دواړه رواياتونه هم په يو سند سره نقل شوى دى.نو دواړه روايتونه مسند شول.او د دواړو سند يو دے.

---

(۱) مريم ۰۱۷-

(۲) اوګورئ فضل البارى (۱/۱۵۸، ۱۵۹)_

(۳) فتح البارى (۱/۲۱)_

(۴) اوګورئ عمدة القارى(۱/۴۲)_

دا هم ممکن ده.چه حضرت عائشې رضي الله عنها دواړه روایتونه عروه رحمه الله ته په یوځائې نه وي ذکر کړې بلکه په مختلفو وختونو کښې ئې بیان کړي وي.اوعروه رحمه الله د یو روایت نقل کولو نه پس د وضاحت دپاره دویم روایت هم ذکر کړې وي.اوبیا دواړه روایتونه یوځائې نقل کول شروع شوي وي.

دویم احتمال علامه عیني رحمه الله داذکر کړې دې چه دا مستقل کلام وي او د دواړو سند یو نه وي بلکه جدا جدا وي.اوامام بخاري رحمه الله د اختصار دوجې حذف کړې وي.په دې صورت کښې به دا روایت په تعلیقات بخاري کښې وي.(۱)

علامه عیني رحمه الله په هغه خلقو باندې رد کړې دې.کوم چه د تعلیق د نفي قائل دي.او فرمائیلي ئې دي.چه د هغوی نفي قابل نفي ده.ځکه چه دوی په خپله دعوی باندې څه دلیل نه دې پیش کړې.ددې نه علاوه په عطف کښې اصل دا دې چه د حرف عطف سره وي.ترکومې پورې چه د بعضې نحاتو مذهب دې.دکوم چه ابن مالک رحمه الله تصریح کړې ده.هغه د جمهور نه خلاف یو غیر مشهور قول دې.(۲)

**قوله: وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ فَيَفْصِمُ عَنْهُ وَإِنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.چه ما رسول الله ﷺ د سختې یخنۍ په زمانه کښې د وحي نازلیدو په حالت کښې لیدلو چه کله وحي ختمه شوه.نو د دوی د تندی مبارک نه خولې بهیدلې.په دې سره حضرت عائشه رضي الله عنها د شدت وحي طرف ته اشاره کول غواړي.چه دومره سخته به وه.چه د سختې یخنۍ په زمانه کښې به هم دوی خولې خولې شو.اوداسې خوله به ترې وتله.لکه چه څنګه یو رګ اووهلې شي.او وینه مسلسل راوځي.

دا کلام تشبیهي دې.د نبي ﷺ د تندی دخولې تشبیه ئې په کثرت سیلان کښې د وهلې شوي رګ سره ورکړې ده.لکه چه څنګه یو رګ کټ کړې شي.او دهغې نه وینه وتل شروع شي.دغه شان به داسې وه.لکه چه د نبي ﷺ په تندی کښې به د خولې رګ کټ کړې شو.او دهغې نه به مسلسل خوله بهیدله.

بیا «لیتفصد» (کوم چه په فاء سره دې) بعضې حضراتو «لیتقصد» (قاف سره) وئیلې دې.کوم چه په ظاهره تصحیف دې.اوکه د ..قاف.. سره ثابت شي.نودا ..تقصد.. به په معنی د ..تقطع و تکسر.. نه ماخوذ وي.(۳) والله اعلم

**د نزول وحي په موقع د خولې د وتلو حکمت** دلته سوال دا دې چه د نبي ﷺ د تندی نه په دومره لویه پیمانه د خولې وتلو حکمت څه وو؟بیا خاص کرچه د یخنۍ زمانه به وه.نو د یخنۍ په حالت کښې داسې خوله وتل لکه چه د رګ وهلو په ذریعه باندې وینه اوځي.ډیره د تعجب خبره ده.

---

(۱) عمدة القاري (۱/۴۲، ۴۳)_

(۲) عمدة القاري (۱/۴۲، ۴۳)_

(۳) فتح الباري (۱/۲۱، ۲۲)_

ددے یو سادہ غوندے جواب خو دا دے چہ کلہ بہ پہ نبی ﷺ د وحی نزول کیدلو نو دوی باندے بہ مشقت اوسختی وہ.اوکلہ چہ پہ سړی باندے مشقت اوسختہ راشی.نوپہ ھغہ خولہ راخی کہ سختہ یخنی ولے نہ وی.نوددے وجہ بہ د نزول وحی پہ وخت د نبی ﷺ د تندی نہ خولہ بہیدلہ

ددے دویم جواب شیخ محی الدین بن عربی رحمہ اللہ پہ ..فتوحات.. او شاہ ولی اللہ رحمہ اللہ پہ ..حجۃ اللہ البالغۃ.. کښے ورکړے دے چہ د اللہ تعالی کوم کلام بہ د نبی ﷺ پہ قلب باندے نازلیدلو.نو ھغہ نور وو.کومہ فرشتہ چہ دا بہ نے نازلولو.ھغہ ھم د نور نہ جوړہ دہ.دغہ شان د نبی باطن ھم د نور نہ ډک وو.دا بہ د درے انواروانو ملاقات کیدل.اود نور پہ لقاء کښے ..حدت.. وی.ددے نہ ګرمی پیدا کیږی.د حرارت پیدا کیدو پہ وجہ پہ طبیعت کښے یو تقاضا پیدا کیږی.چہ دا لرے کړی.ھم دا خولہ دہ.(۱)

**د سختې ګرمئ دوجې خولہ وتل اود یخنئ د وجې د کمبل د اغوستلو اشکال او د ھغې دفعیہ**

دلتہ کښے دا سوال ھم شوے دے.چہ ددے حدیث نہ خو معلومہ شوہ.چہ دوی بہ د ګرمئ دحدت او شدت د وجے خولے خولے شو.حالانکہ پہ بل روایت کښے دیخنئ د زیادت د وجے «زملونی زملونی» الفاظ راغلی دی.(۲)

ددے جواب دا دے.چہ پہ حقیقت کښے صورت حال دا دے.چہ د حدت او حرارت د وجے د بدن مسامونہ پرانستے شی.اودھغے نہ خولہ وتل شروع شی.بیا چہ کلہ شدت ختم شی.اوپہ بدن باندے ھوا اولګی.نو ددغہ مسامونو پہ ذریعہ برودت پیدا شی.نو څہ اشکال پاتے نشو.
ددے نہ علاوہ خو بہ تعارض اوتناقض پہ ھغہ وخت کښے ګنړلے شو.چہ د دواړو زمانہ یوہ وہ.دلتہ د خولے وتلو زمانہ یوہ دہ.اود یخنئ لګیدو زمانہ بلہ دہ.نو څہ تعارض اوتناقض نشتہ.

**د حدیث باب نہ څو مستنبط فوائد** د حدیث باب نہ ډیر فوائد مستنبط کیږی.څو پہ کښے دا دی.① ددے حدیث نہ معلومہ شوہ.چہ فرشتے موجود دی.او فلاسفؤ چہ کوم انکار کړے دے.ھغہ غلط دے.

② دویمہ خبرہ دا معلومہ شوہ.چہ فرشتو تہ اللہ تعالی دمختلفو شکلونو جوړولو اختیار ورکړے دے.

③ دریمہ فائدہ دا معلومہ شوہ.چہ حضرات صحابہ کرام رضی اللہ عنہم بہ د نبی ﷺ نہ د خصائص نبوت پہ بارہ کښے تپوسونہ کول.او ھغوی بہ ورتہ د ھغے جوابونہ ورکول.

④ یوہ فائدہ دا ھم معلومہ شوہ.کہ سوال د تحقیق پہ غرض وی.د شك او ارتیاب یا استھزاء او توقو پہ غرض نہ وی.نو پہ داسے سوال کښے څہ قباحت نشتہ.(۳)

---

(۱) اوګورئ..درس بخاری..علامہ شبیراحمد عثمانی رحمہ اللہ ضبط وتحریرمولانا عبدالوحید صدیقی فتح پوری (ص.۵۳)

(۲) اوګورئ صحیح بخاری د باب بدء الوحی دریم حدیث)_

(۳) اوګورئ عمدۃ القاری(۱/۴۶)_

**په حدیث باب اوترجمه کښې مناسبت** اسماعیلي رحمه الله خو فرمائیلي دي چه ددې حدیث د ترجمة الباب سره څه تعلق نشته ځکه چه په دې کښې د بدء الوحي څه ذکر نشته صرف د وحي د راتلو د کیفیت بیان دې (۱)

علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه مونږ دا نه منو چه په دې کښې د بدء الوحي ذکر نشته ځکه چه کیدې شي دحضرت حارث بن هشام رضي الله عنه تپوس دابتداء وحي یاظهوروحي متعلق وي (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د جواب انداز ددې نه انکار کوي چه سوال د ابتداء وحي یا ظهور وحي متعلق وي ځکه چه په جواب کښې د «یأتیني» لفظ دې اودا د مضارع صیغه ده اودا د مستقبل دپاره استعمال شوې ده البته دا ونیلي شي چه چونکه نبي ﷺ په جواب کښې د وحي د راتلو هم دوه صورتونه بیان کړي دي نو ځکه ظاهره هم دا ده چه هم په دې دواړو صورتونو کښې به د یو نه د وحي شروع شوې وي په دې طریقه د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره شو (۳)

دا تقریر دهغه حضراتو په مسلك باندې دې چه هغوی دترجمه نه ظاهر مراد اخلي اوخوك چه دا وائي چه د ترجمه نه نفس وحي بیانول مراد دي د هغوی په رائې باندې د مطابقت بیانولو ضرورت هډو شته نه ځکه چه په روایت کښې د وحي ذکر دې

دغه شان کوم حضرات چه دا فرمائي چه د ترجمة الباب نه د وحي عظمت بیانول مقصود دي نو دهغوی د قول مطابق د حدیث مناسبت بیخي ښکاره دې ځکه چه په دې حدیث کښې خودلي شوي دي چه کله به په نبي ﷺ باندې وحي نازلیدله نو ددې د عظمت د وجې به په نبي ﷺ سختي اومشقت وو د حضرت عائشې رضي الله عنها په یو روایت کښې دا الفاظ راغلي دي «کان نبي الله ﷺ إذا نزل علیه الوحي کرب لذلك وتربد وجهه» (۴) یعنې کله چه به وحي نازلیدله نوپه نبي ﷺ باندې به د سختئ حالت شروع کیدلو او ددوی په مخ مبارك به د پریشانئ کیفیت پیدا کیدلو دا د مشقت کیفیت دا ښائي چه وحي یو اوزنې او عظیم څیز دې «والله أعلم وعلمه أتم وأحکم»

---

(۱) فتح الباري (۱۹/۱)_

(۲) شرح کرماني (۲۷/۱) وفتح الباري (۱۹/۱)_

(۳) فتح الباري (۱۹/۳۱)_

(۴) أخرجه مسلم في کتاب الفضائل باب عرق النبي ﷺ وبن یأتیه الوحي. وقد روی الحدیث عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه ایضاً انظر صحیح مسلم کتاب الحدود باب حد الزني. والطبقات لابن سعد (۱۹۷/۱) ذکر شدة الوحي علی النبي ﷺ ودلائل النبوة لأبي نعیم (۲۲٤/۱) کیفیة إلقاء الوحي إلی النبي ﷺ رقم ۱۷۳._

# الحديث الثالث

[٣] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ أَنَّهَا قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا حَتَّى جَاءَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ

فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ قَالَ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ قُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ فَقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ

فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ فَدَخَلَ عَلَى خَدِيجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَقَالَ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَزَمَّلُوهُ حَتَّى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ فَقَالَ لِخَدِيجَةَ وَأَخْبَرَهَا الْخَبَرَ لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي فَقَالَتْ خَدِيجَةُ كَلَّا وَاللَّهِ مَا يُخْزِيكَ اللَّهُ أَبَدًا إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ وَتَقْرِي الضَّيْفَ وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ

فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ حَتَّى أَتَتْ بِهِ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْنِ أَسَدِ بْنِ عَبْدِ الْعُزَّى ابْنَ عَمِّ خَدِيجَةَ وَكَانَ امْرَأً قَدْ تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَكَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعِبْرَانِيَّ فَيَكْتُبُ مِنَ الْإِنْجِيلِ بِالْعِبْرَانِيَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَكْتُبَ وَكَانَ شَيْخًا كَبِيرًا قَدْ عَمِيَ فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ يَا ابْنَ عَمِّ اسْمَعْ مِنِ ابْنِ أَخِيكَ فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ يَا ابْنَ أَخِي مَاذَا تَرَى فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرَ مَا رَأَى

فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي نَزَّلَ اللَّهُ عَلَى مُوسَى يَا لَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ قَالَ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلَّا عُودِيَ وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ وَفَتَرَ الْوَحْيُ [٣٣١٢، ٤٦٧٠، ٤٦٧٢، ٤٦٧٤، ٤٦٧٥، ٦٥٨١]

## رجال الحديث

**قوله** يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ: د ده پوره نوم ابوزكريا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشي

المخزومي المصري دے.(١) تقريبا ټولو سوانح نګارو دوی مصری ليکلے دے.(٢) البته امام بخاری رحمه الله په ..تاريخ کبير.. کښے دوی شامی ليکلے دے.(٣)

دلته امام بخاری رحمه الله دوی خپل نيکۀ طرف ته منسوب کړی دی.د پلار نوم ئے نه دے ذکر کړے خکه چه دوی هم داسے مشهور دی.(٤)

دوی د شيخينو رحمهما الله او نورو ائمه حديث په نيز په قابل احتجاج راويانو کښے دے.(٥) خصوصاً د ليث بن سعد رحمه الله په رواياتو کښے ثقه دے.البته دامام مالک رحمه الله نه دوی ته سماع حاصله ده که نه؟په دے باره کښے د عالمانو کلام دے.(٦)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.«كان يفهم هذا الشأن،يكتب حديثه ولا يحتج به» (٧) اوامام نسائی دوی مطلقاً ضعيف ګرځولی دی.(٨) خو راجحه خبره هم هغه ده.کومه چه مونږ ذکر کړے ده.چه د حديث په حافظانو کښے دے.ثقه دے.اود شيخينو رحمهما الله په نيزمحتج به دے.حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی«كان عزيزالعلم،عارفاً بالحديث،وأيام الناس،بصيراً بالفتوى،صادقاً ديناً، وما أدري ما لاح للنسائي منه حتى ضعفه وقال مرة ليس بثقة وهذا جرح مردود،فقد احتج به الشيخان، وما علمت له حديثاً منكراً حتى أورده» (٩)

دغه شان ابن حبان رحمه الله هم دوی په خپل ..كتاب الثقات.. کښے ذکر کړی دی.(١٠)

ددوی پيدائش په ١٥٤ﻫ يا ١٥٥ﻫ کښے شوے وو.اووفات ئے په نصف صفر ٢٣١ﻫ کښے شوے وو.(١١)

**قوله:اللَّيْثُ بْنِ سَعَدْ:** دوی امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی دی.(١٢)دوی په قلقشنده يا قرقشنده کښے (دا د مصر نه تقريباً درے خلور فرسخ باندے واقع دے) په ٩٤ﻫ کښے پيدا شوی وو.(١٣)

---

(١) تهذيب الكمال(٤٠١/٣١)_
(٢) اوګورئ تهذيب الكمال(٤٠١/٣١) وسيرأعلام النبلاء (٦١٢/١٠) وتقريب التهذيب(٥٩٢) وغيره)_
(٣) التاريخ الكبيربخاری (٢٨٥/٨) رقم الترجمة (٣٠١٩)_
(٤) فتح الباری(٣٢/١)_
(٥) ميزان الإعتدلال(٣٩١/٤)_
(٦) تقريب التهذيب (ص.٥٩٢) دغه شان هدی الساری (٤٥٢)_
(٧) ميزان الإعتدلال(٣٩١/٤)_
(٨) ميزان الإعتدلال(٣٩١/٤)_
(٩) سيرأعلام النبلاء (٦١٤/١٠)_
(١٠) الثقات لإبن حبان(٢٦٢/٩)_
(١١) سيرأعلام النبلاء (٦١٣/١٠، ٦١٤)_
(١٢) تهذيب الكمال(٢٥٥/٢٤)_
(١٣) وفيات الأعيان لإبن خلكان (١٢٨/٤) وتهذيب الكمال (٢٥٦/٢٤)_

د ائمه اعلام نه ئې کسب فیض کړے وو. د علم .فضل. فقه. ورع. او د سخاوت په اعتبار سره په خپله زمانه کښې ممتاز وو. (١)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.((أحد الأعلام، والأئمة الأثبات، ثقة حجة بلا نزاع)) (٢)

هم دا حافظ ذهبي رحمه الله قول دے.((ما هو بدون مالك ولا سفيان)) (٣)

يحيى بن معين رحمه الله فرمائي.چه امام ليث بن سعد رحمه الله به په شيوخواو د هغوى نه په روايت اخستلو کښې د تساهل نه کار اخستلو. (٤) خو حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.((وما تساهل فيه الليث فهو دليل على الجواز، لأنه قدوة)) (٥)يعنى امام ليث چرته د تساهل نه کار نه اخستے دا د جواز دليل دے.ځکه چه هغه مقتدا وو.

امام شافعي رحمه الله فرمائي.((هو أفقه من مالك، إلا أن أصحابه لم يقوموا به)) (٦)يعنى دوى د امام مالك رحمه الله نه هم زيات فقيه وو.خو ددوى شاګردانو د دوى علم مدون نکړلو.چه خوړ کړے ئې وے.اودامام مالك رحمه الله علم د هغوى د شاګردانو په ذريعه خور شو.

دامام ليث بن سعد رحمه الله په باره کښې ګڼرو سوانح نګارو ليکلى دى.چه دوى حنفي وو.قاضي بن خلکان رحمه الله ليکى.((ورأيت في بعض المجاميع أن الليث كان حنفي المذهب)) (٧)

قاضي زکريا انصاري رحمه الله په شرح د بخاري کښې په دے باندے جزم کړے دے. (٨)

حافظ ابن ابي العوام رحمه الله په خپل سند سره نقل کړى دى.چه دوى د امام اعظم شاګرد وو.چه کله به ئې دامام په باره کښې واوريدلو.چه دحج دپاره راځى.نو دوى به هم د حج دپاره مکے معظمے ته اورسيدلو.او دامام رحمه الله نه به ئې د مختلفو بابونو د مسائلو تپوس اوکړلو.اودامام صاحب رحمه الله په اصابت رائے اوسرعت جواب باندے به ئې تعجب کولو. (٩)

امام ليث بن سعد رحمه الله په ۱۷۵ھ هم په مصر کښې وفات شوے دے. (١٠)

رحمه الله رحمة واسعة.

---

(١) سير أعلام النبلاء (٨/١٣٦. ١٦٣)_

(٢) ميزان الإعتدلال(٣/٤٢٣)_

(٣) پورتنئ حواله)_

(٤) پورتنئ حواله)_

(٥) پورتنئ حواله)_

(٦) تذکر الحفاظ (١/٢٢٤)_

(٧) وفيات الأعيان(٤/١٢٧)_

(٨) مقدمة نصب الرأية(ص.٤٠)_

(٩) مقدمة أنوارالبارى (١/٢١٢)_

(١٠) عمدة القارى(١/٤٧)_

**قوله عُقَيْلٌ:** عقيل (بالتصغير) بن خالدبن عقيل (بالتكبير) ثقه او ثبت راويانو كښې دې.(١) دزهرى رحمه الله نه روايت كونكو مضبوطو راويانو كښې دې.(٢) په مصر كښې په ١٤۴ھ كښې وفات شوې وو.(٣)

**قوله ابْنِ شِهَابٍ:** د دوى پوره نوم ابوبكرمحمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن الحارث بن زهره بن كلاب بن مره بن كعب لوى الزهرى المدنى دے.(۴) دابن شهاب زهرى رحمه الله په نوم مشهور دے.زيات تر هم په دے نوم سره يادولے شى.
د دوى شمار په صغار تابعينو رحمهم الله كښے كيږى.دصغارصحابوْ او كبار تابعينو رحمهم الله نه دوى علم حاصل كړے دے.(۵)
د دوى فضائل بے شميره دى.په ۵۰ھ كښے پيدا شوى وو.اوپه ١٢۴ھ كښے وفات شوى وو.(۶)
دحضرت عروه بن زبير رحمه الله اوحضرت عائشے رضي الله عنها مختصرحالات وړاندے تير شوى دى.
**د باب دا روايت مرسل دې كه متصل؟** دا حديث په ظاهره مرسل معلوميږى.خكه چه په دے كښے كومه واقعه بيان شوے ده.هغه د حضرت عائشے رضي الله عنها د ولادت نه هم وړاندے ده.لكه چه دوى دا واقعه د چا صحابى رضي الله عنه نه اوريدلے ده.اونقل كوى ئے.په دے صورت كښے به دے ته روايت مرسل د صحابى وئيلے شى.اودصحابى رضي الله عنه د مرسل په باره كښے مونږ وړاندے ذكر كړے دے.چه دا د جمهورو په نيز د موصول په حكم كښے وى.
بيا دلته يو احتمال دا شته.(دا اقرب هم دے)چه دا واقعه براه راست حضرت عائشے رضي الله عنها د نبى ﷺ نه اوريدلے وى.نو په دے صورت كښے به دے روايت ته متصل وئيلے شى.(٧)

**قوله أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ:** يعنى رسول الله ﷺ ته د وحى شروع د رويائے صالحه نه شوے وه.
«من الوحى» كښے ,,من،، خويا تبعيضى دے.او يا بيانيه.كه تبعيضى وى.نو معنى به دا شى.
«أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من أقسام الوحى» په دے صورت كښے به خوب د وحى په قسمونو

---

(١) تقريب التهذيب(٣٩۶)_
(٢) فتح البارى(١/٢٢)-
(٣) عمدة القارى(١/۴٧)_
(۴) تذكرة الحفاظ (١/١٠٨) وعمدة القارى (١/۴٧، ۴٨)_
(۵) تذكرة الحفاظ (١/١٠٨)_
(۶) د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ طبقات ابن سعد(٢/٣٨٨، ٣٨٩) وتهذيب الأسماء واللغات (١/٩٠، ٩١) وسيرأعلام النبلاء(۵/٣٢۶)وتهذيب الكمال (٢۶/۴١٩، ۴۴٣)_
(٧) عمدة القارى(١/۴٧)_

کښې شي. او که بيانيه شي. نو معنی به ئې دا شي. چه د وحی شروع د خوب نه شوې وه. لکه چه دا لازمه نه ده. چه خوب وحی ده. قزاز رحمه الله بيانيه لره راجح کړخولې ده.(۱)

او د جمهور رحمهم الله په نيز دانبياؤ خوب وحی ده (۲)

دوحی ابتداء د ابن اسحاق رحمه الله وغيره معتمدو مورخينو رحمهم الله د قول مطابق په ځلوېښتم کال شوې وه مياشت د ربيع الاول وه. دحضرت جبريل عليه السلام نزول په غارحراء کښې په رمضان کښې شوې وو. د ربيع الاول نه تر رمضان پورې شپږ مياشتې جوړيږي. لکه چه دخوبونو سلسله د نبوت د شروع نه ترشپږ مياشتو پورې چليدله.(۳) دخوبونو په ذريعه په اصل کښې د نبي ﷺ مانوس کول مقصود وو. د حضرت علقمه بن قيس رحمه الله نه مروی دی. چه «إن أول ما يؤتى به الأنبياء في المنام حتى تهدأ قلوبهم ثم ينزل الوحي بعد»(۴)

صرف خوب نه بلکه د نبوت د ذمه وارئ سپارلو نه وړاندې د دوی د تيارولو په غرض به نور مبشرات هم راتلل. په رواياتو کښې راځي. چه دوی به کله په لار روان وو. نو د سلام آواز به ئې اوريدلو. چه دوی به بني اوګس طرف ته متوجه شول. او اوبه ئې کتل. نو د اونو او کاڼړو نه علاوه به نور څه نه وو.(۵)

دغه شان نبی ﷺ په خپله فرمائيلی دی. «إني لأعرف حجراً بمكة كان يسلم علي قبل أن أبعث إني لأعرفه الآن»(۶)

خلاصه دا چه په باقاعدګئ سره د وحی د نازليدو نه وړاندې د وحی سره د مناسبت پيدا کولو دپاره ورته تمهيداً ښه اورښتيني خوبه اوخودلی شول. اودغه شان شجر او حجر د دوی د رسالت اقرار کولو.

**قوله: الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ:** هم د بخاری شريف د کتاب التفسير په بعضې طرقو سره دغه شان په کتاب التعبير کښې د ..الرؤيا.. د صفت د «الصالحة» په ځائې «الصادقة» راغلی دی. لکه

---

(۱) فتح الباری (۱/۲۲، ۲۳)

(۲) كما روى عن ابن عباس رضي الله عنه قال ..رويا الأنبياء وحي.. رواه الطبرانی كذا في مجمع الزوائد للهيثمی (۷/۱۷۶) كتاب التعبير، باب فيما رآه النبي ﷺ في المنام- وری ابن ابی حاتم عنه مرفوعاً أيضاً بلفظ ..قال رسول الله ﷺ رؤيا الأنبياء في المنام وحي كذا في تفسير ابن كثير) رحمه الله (۴/۱۵۲)_

(۳) فتح الباری (۱/۲۷)_

(۴) الخصائص الكبرى للسيوطی (۱/۹۳) باب ما وقع عند المبعث من المعجزات والخصوصيات)_

(۵) دلائل النبوة للبيهقی (۳/۱۴۶) باب مبتدأ البعث والتنزيل وما ظهر عند ذلك من تسليم الحجروالشجر وتصديق ورقة بن نوفل إياه)) دغه شان سيرة ابن هشام مع الروض الأنف (۱/۱۵۲)

(۶) صحيح مسلم كتاب الفضائل باب فضل نسب النبي ﷺ وتسليم الحجر عليه قبل النبوة)_

چه د دوی د خوبونو درے صفات وو یوصالحه. دویم صادقه او دریم واضحه کوم چه «فكان لایری رؤیا إلا جاءت مثل فلق الصبح» نه په پوهه کیږی راځی

د واضحه کیدو مطلب دا دے چه نبی ﷺ به کوم خوب اولیدلو نو په هغی کښے به څه مشکلات نه وو اودهغے د تعبیر په متعین کولو کښے به څه مشکل نه راتلو هغې به په خپله مدعی اومفهوم باندے بالکل ښکاره دلالت کولو.[1]

اود ..صالحة.. معنی ده خوشحاله کونکے.مسرت انګیز.او ..صادقه.. ریښتینے خوب ته وائی بیا د ..صالحه.. او ..صادقه.. په باره کښے عالمانو فرمائیلی دی.چه د انبیاؤ علیهم السلام په اعتبار سره خو په آخرت کښے دا برابر دی.د دوی هرخوب صالح او صادق دے خود دنیا په اعتبار سره..صادقة..د صالحة.. نه اعم ده.د انبیاؤ هر خوب صادق وی. خو هر خوب ئے صالح نه وی.بلکه بعضے خوب غیرصالح وی. د جنګ احد په موقع باندے دوی خوب اولیدلو چه دوی توره راواخستله.هغه ئے اوخوزوله نوهغه په ځوځیه ماته شوه.[2] دغه شان دوی په خوب کښے اولیدلو.چه چه غواګانے ذبح کولے شی.[3] دوی د تورے د ماتیدو د مسلمانانو په شهادت سره تعبیر اوکړلو.دغه شان د غواګانو د ذبح کیدو تعبیر ئے هم د صحابو ﷺ په شهادت سره اوکړلو اوس ښکاره خبره ده.چه شکست او د صحابو ﷺ قتل څه د خوشحالئ څیز نه دے.خو خوب صحیح اوصادق وو.[4]

بیا د انبیاؤ نه علاوه د نورو خلقو په حق کښے به په ..صالحه.. او ..صادقه.. کښے د عموم خصوص من وجه نسبت وی.که د ..صادقه.. تعبیر په «ما لایحتاج الی التعبیر» سره اوکړے شی.یعنی بعضے خوبونه صالح وی.اود تعبیر محتاج هم وی.او بعضے خوبونه صالح وی.خو د تعبیر محتاج نه وی.اوبعضے داسے خوبونه وی.چه هغه صالح نه وی.او د تعبیر محتاج وی.یا د تعبیر محتاج نه وی.یعنی صادق خو وی.خو صالح نه وی.دا د افتراق دویمه ماده شوه.اویوه ماده د افتراق په اولنی صورت کښے وه.

خوکه د ..صادقه.. تفسیرپه «ما لیس بأضغاث أحلام» سره اوکړے نود دے دواړو په مینځ کښے به دعموم خصوص مطلق نسبت وی.او..رویائے صالحه.. به خاص او..رویائے صادقه.. به عام ګرځولے شی.لکه دا ضروری ده.چه هر ..رؤیائے صالحه.. به ..صادقه.. یعنی غیر ..اضغاث احلام.. وی.خودا ضروری نه ده چه هر..رؤیائے صادقه.. یعنی ..غیر اضغاث احلام.. به ..صالحه.. یعنی خوشحالونکی وی.[5]

---

(۱) فضل البارى(۱/۱۶۲)_

(۲) صحیح بخاری کتاب المغازی باب من قتل من المسلمین یوم أحد رقم. ۴۰۸۱)_

(۳) صحیح بخاری کتاب التعبیرباب إذا رأی بقرأ تنحر.رقم ۷۰۳۵)_

(۴) فتح البارى(۱۲/ ۳۵۵) کتاب التعبیر.باب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحی الرؤیا الصالحة)_

(۵) پورتنئ حواله)_

زمونږ په دے تقرير سره به دا خبره په پوهه کښے راغلے وی چه د ..صادقه.. معنی د ښښے خوب.خو د دے تفسير مختلف شوے دے

() يو تفسير د دے دا دے چه ((مالايحتاج إلى تعبير)).

() دويم تفسير ئے دا دے چه ((ماليس بأضغاث أحلام)) والله اعلم

**د مومن خوب د نبوت نه يو جزء دے** بهرحال په حديث کښے د دے ذکر شوے دے چه په نبی ﷺ باندے د وحی ابتداء د خوبونو نه شوے وه.اوامام بيهقی رحمه الله تصريح کړے ده چه د دے خوبونو موده شپږ مياشتے وه.(۱) چونکه د دے شپږو مياشتو نسبت د وحی باقی مودے يعنی د څلويښتو کالوپه مقابله کښے شپږ څلويښتمه حصه ده.نوځکه په حديث کښے راغلی چه

((رؤيا المؤمن جزء من ستة وأربعين جزءا من النبوة))(۲)

**يواشکال او دهغے جواب** دلته يو اشکال دا کيږی.چه کله د نبی ﷺ په وفات سره د وحی سلسله ختمه شوه .نود مؤمن خوب د نبوت جزء ولے گرځولے شوے دے.آيا داد ختم نبوت د مسلمه عقيدے نه خلاف نه دے؟

د دے ساده او بے غباره جواب دا دے.چه د يو جزء وجود د کل وجود لره مستلزم نه دے اوګورئ دايمان د اوياؤ نه زيات شاخونه دی.خو د يوے شعبه په وجود سره ايمان نه متحقق کيږی.ترڅو چه بنياد نه وی.او ضروريات د دين اونه منی.

دغه شان دلته هم اوګنړئ.چه ..نبوت.. صرف د يو جزء نوم نه دے.بلکه د نبوت د ټولو حصو نوم دے.اود نبوت د ټولو اجزاؤ د وجود سلسله د نبی ﷺ په وفات سره ختمه شوے ده.د څه مصلحت په بنا د دے د يوجزء يا د دے نه زياتو اجزاؤ په وجود سره د نبوت وجود نه لازميږی.(۳)

### د ((رويا المومن)) په حديث کښے د مختلفو رواياتو تعارض او دهغے دفعيه

يواشکال دا شوے دے.چه ((رويا المومن جزء من ستة وأربعين جزءا من النبوة)) حديث کښے تقريباً لس بلکه پنځلس الفاظ راغلی دی.حافظ رحمه الله چه کوم اقوال نقل کړی دی.دهغے مطابق په دے حديث کښے ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۴۰، ۴۲، ۴۵، ۴۶، ۴۷، ۴۹، ۵۰، ۷۰، ۷۲ او ۷۶ پورے شمار موندلے شی.(۴)

د دے جواب دا دے.چه په دے ټولو رواياتو کښے د ټولو نه محفوظ روايت د ((ستة وأربعين))

---

(۱) فتح الباری(۶۷/۱)_

(۲)صحيح بخاری کتاب التعبير.باب الرؤيا الصالحة ج ء من ستة وأربعين جزء من النبوة رقم(۶۹۸۷، ۶۹۸۸)

(۳) فتح الباری (۳۷۵/۱۲) کتاب التعبيرباب المبشرات .د زياتو جوابونو دپاره اوګورئ فتح الباری (۳۶۳/۱۲) کتاب التعبيرباب رؤيا الصالحين)_

(۴) فتح الباری (۳۶۲/۱۲، ۳۶۳)_ کتاب التفسيرباب روياالصالحين)_

روایت دے.اودے سره نزدے د «سبعین» روایت دے.باقی ټول روایات د راویانو تصرفات دی.(۱)

په دے صورت کښے به د شپږڅلویښت روایت په رویاصد یقین باندے محمول وی.

او د «سبعین» روایت به دعامو مسلمانانو په خوب باندے ..اودا هم ممکنه ده.چه داسے اوونیلی شی.چه اصل خو د شپږڅلویښتو روایت دے.اود «سبعین» روایت د تحدید دپاره نه دے.بلکه د تکثیر دپاره دے.ځکه چه اهل عرب دتکثیر دپاره اکثر د..سبعین.. عدد استعمالوی.(۲)

**په ,,رویا الانبیاء وحی،، باندې اشکال او دهغې جواب** بیا دجمهورو عالمانو رحمهم الله په نیز چه د انبیاؤ خوب وحی ګرځولے شوے ده.په دے باندے اشکال وارد شوے دے.چه ابراهیم علیه السلام په خوب کښے لیدلی وو.چه خپل ځوئے قربانی کړه.ددے تقاضا خو دا وه.چه حضرت ابراهیم علیه السلام سمدستی بغیر د څه سوچ نه حضرت اسماعیل علیه السلام ذبح کړے وے.خوهغوی داسے اونکړلو. بلکه د خپل خوی سره ئے مشوره اوکړله.اود هغه نه ئے رائے طلب کړله.چه ﴿قَالَ يٰبُنَيَّ اِنِّيْٓ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى﴾ (۳) یعنی حضرت ابراهیم علیه السلام حضرت اسماعیل علیه السلام ته اوفرمائیل. چه ما خوب لیدلے دے.چه تاذبح کوم.اوس اوښایه.چه ستا څه رائے ده؟

ددے جواب عالمانو رحمهم الله دا ورکړے دے.چه دحضرت ابراهیم علیه السلام دخپل خوی نه سوال ددے وجے نه وو.چه هغه راضی شی.نوعمل به اوکړی.اوکه راضی نشی.نوعمل به نه کوی.بلکه د سوال نه مقصود د خوی امتحان وو.چه دے څه جواب راکوی.چه دده اطاعت اوصبر ته اوګوری.اوخوشحاله شی.(۴)هم دا وجه ده.چه حضرت اسماعیل علیه السلام دخپل د خوب نه په امر سره تعبیر اوکړلو.او وے فرمائیل.چه ﴿قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ﴾ (۵) یعنی بابا جانه! چه تاسو ته دکوم څیز حکم کولے شی.هغه اوکړئ.

بوجواب دا هم ورکړے شوے دے.چه دحضرات پیغمبرانوعلیهم السلام طریقه همیشه دپاره دا پاتے شوے ده.چه هغوی دالله تعالی احکاماتو ته خو هر وخت تیار اوسیږی.خو اطاعت دپاره همیشه دپاره هغه لار اختیاروی.چه هغه په حکمت او حتی المقدور په آسانتیا باندے مبنی وی.که ابراهیم علیه السلام د وړاندے نه بغیر د څه وئیلو خپل ځوئے ذبح کولو.نو دا دواړو دپاره د مشقت سبب وو.اوس دا خبره دوی د مشورے په انداز کښے خپل خوی ته ځکه ذکر کړله.چه خوی ته د وړاندے نه دا معلومه شی.چه دا دالله تعالی حکم دے.نوهغه به د ذبح

---

(۱) قاله ابن بطال کذا فی فتح الباری (۳۶۵/۱۲)_

(۲) ددے توجیهاتو نه علاوه د نورو ډیرو توجیهاتو دپاره اوګورئ فتح الباری (۳۶۵/۱۲، ۳۶۸)_

(۳) سورة صافات(۱۰۲)_

(۴) تفسیر قرطبی (۱۰۳/۱۵)_

(۵) الصافات ۱۰۲-

تكليف زغمولو ته د وړاندے نه تيار شى.دغه شان كه دخوى په زړه كښے څه تذبذب پيدا شى.نوهغه به پوهه كړى.(چه بچيه دا دالله تعالى حكم دے.دے ته غاړه بسته شه) (۱)

دلته كښے دا اشكال هم شوے دے.چه هركله حضرت ابراهيم ته الله تعالى د حضرت اسماعيل د ذبح كولو حكم اوكړلو.نوذبحه ولے واقع نشوه.حضرت ابراهيم په دے باندے عمل ولے اونكړلو؟

ددے په جواب كښے خو حضرت شيخ اكبر يوه ډيره كمزورے خبره كړے ده.هغوى فرمائيلى دى.چه په اصل كښے حضرت ابراهيم ته دخوب د تعبير په پوهه كښے غلطى شوے وه.تعبير دا نه وو.چه حضرت اسماعيل ذبح كړه.بلكه ددے صحيح تعبير د ګډ ذبح وه.(۲) داسے كيږى.چه په خوب كښے په ظاهره څه اوخودلے شى.خودهغے تعبيربل څه وى.مثلاً نبى ﷺ په خوب كښے ليدلى وو.چه پئ ځكى.په ظاهره خو ددے نه هم دا په پوهه كښے راځى.چه الله تعالى په دوى باندے احسان اوكړلو.او يو نعمت ئے ورته وركړلو.اودوى هغه اوڅكل.خو پخپله نبى ﷺ اوفرمائيل.چه ددے تعبير علم دے.(۳)

دغه شان نبى ﷺ د قميص تعبير په دين سره كړے دے.(۴)

دغه شان په قرآن كريم كښے د «سبع بقرات سمان» او «سبع بقرات عجاف» ذكر موجود دے.او ددے نه اووه كاله د خوشحالئ او اووه كاله د قحط سالئ مراد دى.(۵)

شيخ اكبر فرمائى.چه دلته هم حضرت ابراهيم په خوب كښے (أَنِّي أَذْبَحُكَ) ليدلى وو.اوهغوى ددے نه ظاهرى معنى يعنى د اسماعيل ذبح اوګڼله.حالانكه ددے تعبير د ګډ ذبح وه.او ذبح د ګډ واقع شوه.هركله چه اسماعيل ذبح مراد نه ده.نو دا سوال غلط شو.چه حضرت ابراهيم خپل خوئے ولے ذبح نكړلو؟

خولكه څنګه چه مونږ عرض اوكړلو.چه د شيخ اكبر دا جواب ټيك نه دے.ځكه چه په دے كښے يو اولوالعزم پيغمبرته بغير د څه وجے نه د غلطئ نسبت كول دى.چه هغوى د خوب په مطلب پوهه نشو.دا صحيح ده.چه د پيغمبر نه اجتهادى غلطى كيږى.خو يوكار به په هغه وخت كښے په اجتهادى غلطئ باندے حمل كولے شى.چه مجبورى وى.اوبله صحيح توجيه موجود نه وى.حالانكه دلته څه داسے مجبورى نشته.

ددے نه علاوه د قرآن كريم سياق اوسباق ددے جواب ترديد كوى.په قرآن مجيد كښے دى.(أَن يَا إِبْرَاهِيمُ ۝ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا) چه اے ابراهيم! تا خوب رښتينے اوخودلو. حضرت ابراهيم خو هم دا كړى وو.چه د خپل خوى د ذبح دپاره اودريدلے وو.اودهغه د ذبح كولو عمل ئے

(۱) معارف القرآن ازمفتى اعظم حضرت مولانا محمد شفيع صاحب قدس روحه (۴۵۸/۷، ۴۵۹)_

(۲) فيض البارى(۲۲/۱)_

(۳) صحيح بخارى كتاب العبيرباب اللبن)_

(۴) صحيح بخارى كتاب التعبيرباب القميص فى المنام – وباب جر القميص فى المنام)_

(۵) تفسيرقرطبى (۲۰۲/۹، ۲۰۳)_

شروع کړے وو. هم دے عمل ته خو قرآن ﴿قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا﴾ وائی که ابراهیمؑ غلط تعبیر ویستے وے نو بیا د ﴿قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا﴾ څه مطلب وو؟

دغه شان قرآن وائی چه ﴿وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ﴾ چه مونږ د اسماعیلؑ په بدله کښے یو غټ لویه ذبیحه (یعنی ګډ) ورکړلو. ددے نه هم معلومه شوه چه په خوب کښے په اصل کښے دحضرت اسماعیلؑ ذبح خودلے شوے وه اوبیا الله تعالی په خپل فضل سره دحضرت اسماعیلؑ په ځائے ګډ راولیږلو که دلته تعبیرد ګډ وے نوبیا د ﴿وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ﴾ څه مطلب اخستے شی؟

بیاقرآن دا هم وائی چه ﴿إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ﴾ یعنی دا په حقیقت کښے لوئے امتحان وو اوس اوبنایه چه د اسماعیلؑ ذبح ته به ..البلاء المبین.. ونیلی شی که د ګډ؟ بلکه په ذبح د ګډ باندے خو د ﴿الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ﴾ اطلاق هم ټیک نه دے.

نو په واقعه کښے چه کوم نصوص راغلی دی د هغے ټولو نه دا ثبتیږی چه حضرت ابراهیمؑ ته د خوب په تعبیر کښے څه غلطی نه وه شوے او د شیخ اکبرؒ دا جواب ټینګ نه دے.

**دحضرت کشمیریؒ جواب** د پورتنی اشکال یو جواب حضرت کشمیریؒ ورکړے دے هغوی فرمائی چه حضرت ابراهیمؑ چه دخوب څومره حصه لیدلے وه په هغے ئے عمل اوکړلو هغوی په خوب کښے دا نه وو لیدلی چه دوی خپل خوئے ذبح کړے دے بلکه دا ئے لیدلی وو چه خوئے ذبح کوی اوهم دومره خوب باندے هغوی عمل اوکړو چاړه ئے راواخستله هغه ته تیره کړله خوئے څملولو اوبیا چه ئے پرے چاړه راښکله دا ټول کار په ﴿إِنِّيْ أَذْبَحُكَ﴾ باندے عمل وو نو ددے نه پس دا ونیل څنګه ټیک کیدے شی چه حضرت ابراهیمؑ په خوب باندے عمل ولے اونکړلو. (۱)

**دحافظ ابن القیمؒ جواب:** حافظ ابن القیمؒ دا جواب ورکړے دے چه حضرت ابراهیمؑ چه د حضرت اسماعیلؑ د ذبح کولو کوم خوب لیدلے وو هغه خو د الله تعالی په مصلحت د عمل نه وړاندے منسوخ شولو. (۲) اودا داسے ده لکه چه په نبی ﷺ باندے په شپه د معراج پنځوس مونځونه فرض شو خو په پنځوسو باندے د عمل کولو موقع یوځل هم رانغله. (۳)

حافظ ابن القیمؒ فرمائی چه الله تعالی د انسانانو په زړونو کښے د خپل اولنی اولاد سره محبت د وړاندے نه امانت ایخودے دے د اولنی اولاد سره محبت د نورو په نسبت سره زیات وی حضرت ابراهیمؑ د الله تعالی نه د اولاد سوال اوکړلو نو الله تعالی د هغوی سوال قبول کړلو او اولاد ئے ورته ورکړلو دحضرت ابراهیمؑ په زړه کښے چه هغه دالله

---

(۱) فیض الباری (۲۲/۱)۔

(۲) زادالمعاد فی هدی خیرالأنام. (۱/ ۷۴، ۷۵) فصل فی نسبه ﷺ بحث فی أن الذبیح إسماعیل لا إسحاق)۔

(۳) صحیح بخاری کتاب بیان الکعبة باب المعراج)۔

تعالى خليل وو د خپل خوى محبت پيدا شو. د الله تعالى دا خوښه شوه چه د حضرت ابراهيم عليه السلام د زړه نه دغير الله محبت اوباسى. نو دخپل محبوب خوى د ذبح كولو حكم ئے ورته اوكړلو. كله چه هغه د ذبح عمل شروع كړلو. نوثابته شوه چه دهغوى په زړه كښے دالله تعالى محبت د خوى دمحبت نه زيات دے. اود الله تعالى د محبت سره د بل چا محبت شريك نه دے. نو اوس د ذبح كولو مصلحت باقى پاتے نشو. چونكه مقصود قبل العمل حاصل شو. نو
خكه دا حكم منسوخ شو. (١)

**قوله**: الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِي النَّوْمِ: دلته كښے ئے د ..في النوم.. قيد لګولے دے. په ظاهره اشكال راځى. چه خوب خو د نوم په حالت كښے وى. نوبيا د ..نوم.. قيد ولے اولګولے شو؟

ددے جواب دا دے. چه د «رويا» اطلاق لكه څنګه چه په «رويا حلمى» يعنى خوب باندے كيږى. دغه شان په «رؤيت بصريه» باندے هم كيږى. (٢) چه په حالت يقظه كښے كه يو كار خارق للعادة په نظر راشى. نوپه هغے باندے هم د «رؤيا» اطلاق كيږى.

په قران كريم كښے ارشاد دے. ﴿ وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ ﴾ (٣) په دے كښے رويت دسترګو مراد دے. يعنى په واقعه د معراج كښے نبى ﷺ ته ..رويت عينيه حاصل شوے وو. «كما روى عن سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما هي رؤيا عين أريها رسول الله ﷺ ليلة اسرى به» (٤)

په دواړو ..رؤيا.. كښے مناسبت دا دے. چه لكه څنګه د ..رؤيائے منامى.. علم صرف رائى يعنى خوب ليدونكى ته وى. بل چاته نه وى. دغه شان چه په حالت د بيدارئ كښے كوم امر خارق للعادة راشى. نودهغے علم هم صرف ليدونكى ته وى. نو څكه هلته كښے هم د ..رؤيا.. اطلاق كولے شى.

خلاصه دا چه چونكه د ..رؤيا.. لفظ مشترك استعماليږى. نوخكه په حديث كښے د ..رؤيا منامى.. د تخصيص دپاره د ..في النوم.. قيد اولګولے شو. (٥)

**قوله**: فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ: يعنى نبى ﷺ چه به كوم خوب هم ليدلو. نود هغے تعبير به د صبا ورځ پشان ښكاره كيدلو.

---

(١) زادالمعاد (١/٧٤، ٧٥)_

(٢) فتح البارى (١/٢٣) وعمدة القارى (١/٥٦) وإرشادالسارى(١/٦١)_

(٣) الإسراء ٦٠-

(٤) صحيح بخارى (٢/٦٨٦) كتاب التفسير. سورة الإسراء باب قوله ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾-

(٥) فتح البارى(٢٣) وعمدة القارى (١/٥٦) وارشاد السارى(١/٦١)_

اکثروشارحينو ..مثل فلق الصبح..حال گرځولے دے.خوعلامه عينی رحمه الله فرمائی.چه «مثل فلق الصبح» د محذوف مصدر صفت دے.اوهغه مصدر مفعول مطلق دے. تقدير د عبارت به دا وی.«الا جاءت مجيئاً مثل فلق الصبح»(١)

«فلق» په لغت کښے څيرولو او شلولو ته وائی.په قرآن کريم کښے دی.﴿ اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ﴾ (٢)يعنی بيشکه الله تعالی دانه اوګيټکے څيروی.

,,فلق,, سپينوالی يا د سحرسپين والی ته وائی.اود يو ښکاره کار تشبيه په دے سره ورکولے شی.په دے حديث کښے د نبی ﷺ د خوبونو تشبيه د «فلق الصبح» سره ورکړے شوے ده.اودا خودلی شوی دی.چه د نبی ﷺ خوبونه به بالکل ښکاره وو.په هغے کښے څه قسم مشکلات نه وو.

دلته په خصوصيت سره د «فلق الصبح» سره تشبيه ددے وجے ورکړے شوے ده. چه لکه څنګه د دنياوی نمر د راختلو نه وړاندے د صبا صادق رڼائی راځی.دغه شان د روحانی نمر د راختلو نه وړاندے د رويائے صالحه او صادقه په صورت کښے روحانی صباصادق راوختلو. تاسو به کتلی وی.چه کله ريل ګاډے په يوسټيشن باندے تيريږی.د هغے دپاره هلته کښے اودريدل هم نه وی.خو بيا هم د هغے دپاره د جنډے. ټلی، اوسګنل وغيره اهتمام کولے شی. دغه شان د نمر راختلو نه وړاندے د شپے پرقيدونکی ستوری غائب شی.او د نمر راختلو نه وړاندے د شپے تيارهٔ کميږی.اود نمر راختلو نه وړاندے د صبا صادق رڼائی راځی.

دلته کښے هم اوګورئ.چه د رسول الله ﷺ د نبوت نمر راختونکے وو.نو حجر او شجر دوی ته سلامونه کول.(٣) رڼا به ورته خودلے شوه.(٤) اوربښتينی خوبونه ورته خودلی شول.دا ټول اهتمام او دا ټول انتظام ولے کيدلو.څکه چه د نبوت د نمر راختلو وخت رانزدے شوے وو.

تاسو په قرآن کريم کښے وئيلی دی.چه نبی ﷺ ته ..سراج منير.. وئيلے شوی دی.(٥) د دے مطلب هم دا دے.چه لکه څنګه نمر د آسمان د کنارو نه راخيژی.اوبيا دنيا روښانه کوی.اودهغے نه ټول جهان فائده اخلی.دغه شان نبی ﷺ سراج منير جوړ شو.اود فاران د افق نه راوختلو.چه ټولو کائناتو ترے رڼا حاصله کړه.د جهالت تيرے ختمے شوے.د علم اوفضل رڼاګانے خورے شوے.او د دوی د نور نه هر يو کس دخپل استعداد اوصلاحيت

---

(١) فتح البارى (١/٢٣) وعمدة القارى(١/٥٦)_

(٢) الأنعام ٠٩٥)

(٣) فتح البارى(١/٢٣)-

(٤) فتح البارى(١/٢٣)_

(٥) ﴿ يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا وَّدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا ﴾

مطابق کسب فیض اوکړلو
ابن ابی جمره رحمه الله فرمائی چه د نبی ﷺ د ..رؤیائے صالحه.. د ..فلق صبا.. سره تشبیه ورکړے شوه دبل څیز سره نه څکه چه د نبی ﷺ د نبوت د نمرد انوارتو شروع د ..رؤیائے صالحه.. نه شوے وه اوپه دے انوارتو کښے به پرله پسے زیادت کیدلو تردے چه شمس نبوت پوره روښانه شو لکه څنګه چه د صبا صادق رڼا خوریږی تردے چه نمر راوخیژی.اوس چه د چا باطن روحانی وی.نوهغه به په تصدیق کښے د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه پشان شی اوچه د چ باطن ظلمانی وی.نو دهغه باطن به په تکذیب کښے دابوجهل پشان ..خاپیرک..شی چه رڼا به نشی لیدلے.اوبیا به باقی خلق د دے دواړو درجو په مینځ کښے شی.اودخپل خپل استعداد مطابق به د نور نه کسب فیض کوی.(١)

**قوله: ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ:** یعنی بیا نبی ﷺ ته خلوت نشینی خوښه شوه.دلته د حُبِّبَ، صیغه مجهوله راوړلے شوه.ظاهره دا ده.چه ددے محبت منشا دالله تعالی د طرف د دوی په زړه کښے القاء کول دی.چونکه ددے محبت څه ظاهری سبب نه وو.په انسانی تقاضو کښے څه تقاضا نه وه.بلکه روحانی تقاضا اوباطنی سبب وو.نوځکه ددے فاعل ظاهر نکړے شو

**دخلوت فائدې** بیا خلوت په ډیرو فائدو باندے مشتمل دے.① یوه فائده خو په دے کښے دا ده.چه سړے فارغ القلب وی.② دویمه په ذکرکښے آسانتیا وی.③ دریم د ډیرو منکراتو نه بچ وی.④ څلورم په خانله ناسته باندے په زړه کښے خشوع پیدا کیږی.سړے چه کله خانله وی.نو هغه ته خپل پوره حقیقت په نظر راځی.اودخپل عاجزئ اوکمزورئ استحضار ورته کیږی.⑤ پنځمه فائده دا ده.چه د بشری مالوفاتو او مرغوباتو نه انقطاع راشی.

**دخلوت محبوبیت** ① ددے ټولو فائدو د وجے چه په طبیعت کښے سکون وی په غور فکر او سوچ کښے آسانتیا وی.ددنیا اوددے د تعلقاتو سره تعلق نه وی.نو ددے دپاره د نبی ﷺ په زړه کښے دخلوت نشینئ محبت واچولے شو.
② یوه وجه دا هم کیدے شی.چه چونکه دوی په نبوت او وحی باندے مشرف کیدونکی وو.او وحی مکمله یکسوئی اوفارغ القلبی غواړی.نوځکه ددوی په زړه کښے د خلوت محبت پیدا کړے شو.چه د وحی سره ئے مناسبت پیدا شی.څکه چه په خلوت سره پوره یکسوئی حاصلیږی.

**قوله: وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ:** حراء په مکه معظمه کښے یو مشهور غر دے.چه نن صبا ورته ..جبل النور.. وائی.د.. حراء.. په تلفظ کښے مختلف لغات منقول دی.په دے کښے دټولو نه اصح او افصح ((بکسر الحاء وتخفیف الراء المفتوحة وبالألف الممدودة)) دے.(٢)

**دخلوت دپاره دغار د انتخاب وجه** باقی پاتے شوه دا خبره چه دخلوت دپاره دوی د غار

---

(١) فتح الباری (٣٥٥/١٢) کتاب التعبیرباب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحی الرؤیا الصالحة)_
(٢) عمدة القاری(٤٨/١، ٤٩)_

انتخاب ولې اوكړلو؟

① ددې جواب بعضې حضراتو دا وركړې دې چه په ظاهره ددې خلوت ماخذ بقايائې شرائع ابراهيم وو. مطلب دا دې چه دحضرت ابراهيم عليه السلام د شريعت بعضې احكام په خپل اصلى صورت كښې محفوظ پاتې شوى وو. په هغې كښې خلوت نشينى هم وه. نبى ﷺ ددې وحې خلوت اختيار كړې وو. اود نبى ﷺ نه وړاندې به د دوى نيكۀ په غار حراء كښې خلوت نشينى كوله. كله چه د نبى ﷺ نوبت راغلو. نو دوى د خپل نيكۀ په ګډئ كيناستلو اوهلته ئې خلوت اختيار كړلو. د دوى ترونو او د قبيلې خلقو دوى ته څه تعرض اونكړلو. ځكه چه د ټولو په زړونو كښې د دوى قدر او عزت وو. (١)

② ابن ابى جمره رحمه الله فرمائى. چه نبى ﷺ د خلوت دپاره د غار حراء انتخاب ځكه اوكړلو. چه دهغه ځائې نه بيت الله مخامخ په نظر راتلو. نوچه هلته به كيناستلو دړې عبادتونه به ورته حاصليدل. يو خلوت، دويم تعبد، دريم د بيت الله زيارت. (٢)

خلاصه دا چه چونكه خلوت نشينى د پخوانو پيغمبرانو عليهم السلام او د دوى د نيكه په معمولاتو كښې وه. اوبيا د غار حراء محل وقوع داسې وه. چه نه ډيره نزدې چه د آبادئ د شورشغب د وجې خلل پيدا كيدلو. اونه ډيره لرې چه هلته تلل متعذر يا ګران وو. بيا د خلوت د نورو فائدو نه سوا هلته دوى په آرام سره د بيت الله زيارت هم كولې شو. نوځكه نبى ﷺ دهغه غار انتخاب اوكړلو. والله اعلم.

**نبى كريم ﷺ به په كومه زمانه كښې خلوت كولو؟** بيا د نبى ﷺ دا خلوت به د ابن اسحاق رحمه الله د تصريح مطابق په رمضان كښې وو. (٣) د مسلم شريف په يو روايت كښې دى چه

«جاورت بحراء شهرا» (٤)

**په «جوار» او «اعتكاف» كښې فرق:** علامه سهيلى رحمه الله د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله نه نقل كړى دى. چه «جوار» او «اعتكاف» دواړه په يوه معنى دى. البته اعتكاف په جمات كښې كيږى. او «جوار» په غير دجمات كښې هم دا وجه ده چه د «جوار» لفظ استعمال شوې دې. ځكه چه غارحراء اګرچه د حرم په غرونو كښې دې. خوهغه د جمات نه بهر دې. (٥)

**قوله: فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ وَهُوَ التَّعَبُّدُ:** د «حنث» معنى ګناه او نافرمانى راخى. اود باب تفعل يوه خاصه «سلب ماخذ» ده. نو لكه چه د «تحنث» معنى شوه ازاله د «حنث». چونكه ازاله د حنث يا د ګناه نه كول په يو اعتبارسره طاعت اوعبادت كښې داخل دى. نوځكه د «تحنث» لازمى تفسير په «تعبد» سره شوې دې.

---

(١) فتح البارى (٣٥٥/١) كتاب التعبيرباب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحى الرويا الصالحة)_

(٢) پورتنى حواله)_

(٣) سيرت ابن هشام مع الروض الأنف (١٥٢/١، ١٥٣)_

(٤) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب بدء الوحى إلى رسول الله ﷺ)_

(٥) الروض الأنف (١٥٣/١)_

علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه د ،،تحنث،، تعبير په ،،تعبد،، سره شوے دے.خکه چه د عبادت په ذريعه ،،حنث،، لرے کولے شى.اوفرمائى چه دغه شان د سلب ماخذ خاصيت د ،،تحنث،،نه علاوه ،،تحوب،،او،،تاثم،،هم دے.دغه شان د بعضے خلقو نه نقل دى.چه په کلام عرب کنبے په باب تفعل کنبے د سلب ماخذ خاصيت د ددے درے کلماتو نه سوا په بله کلمه کنبے نه دے موندلے شوے.(۱)

خو علامه کرمانى رحمه الله وغيره فرمائى.چه دا ټيک نه ده.خکه چه ددے نه علاوه نور هم ډير الفاظ دى.چه په هغے کنبے دا خاصيت موندلے شى.لکه ،،تحرج،، او ،،تخون،، وغيره.(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د تحنث معنى ده،،يتحنف،، يعنى دوى به د حنفيت اتباع کوله.د حنفيت نه مراد دين ابراهيمى دے.ددے تائيد ددے نه کيږى . چه د ابن اسحاق رحمه الله په روايت کنبے ،،يتحنف،، راغلى دى.(۳) هسے هم اهل عرب ،،فاء،، په ،،ثاء،، سره بدلوى. (۴)

**وهوالتعبد،، ددې ادراج چا کړې دې؟** دلته د ،،تحنث،، تفسير چه په ،،تعبد،، سره شوے دے. ددے په باره کنبے تقريباً د ټولو اتفاق دے.چه دا ،،مدرج،، دے.خو دا ادراج د چا دے؟په دے باره کنبے علامه طيبى رحمه الله خو په جزم سره فرمائى.چه دا ادراج د امام زهرى رحمه الله دے.(۵)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه علامه طيبى رحمه الله په جزم باندے څه دليل نه دے پيش کړے.(۶) خو دا کيدے شى.چه حضرت عروه رحمه الله يا د هغه نه لاندے يو راوى دا تفسير کړے وى.(۷)

خو حقيقت دا دے.چه حافظ ابن حجر رحمه الله دلته څه مستنده خبره نه ده کړے. او تر کومے پورے چه د طيبى رحمه الله د جزم تعلق دے.د هغے وجه دا ده.چه عام طور دامام زهرى رحمه الله عادت دا دے.چه دحديث په مينځ کنبے د ګرانو الفاظو تشريح کوى.(۸)

**په غار حراء کنبې د نبى ﷺ د تعبد کيفيت:** بيا دا چه نبى ﷺ به هلته څه قسم عبادت کولو. دا مسئله په اصل کنبے د يوے بلے مسئلے په تحقيق باندے موقوفه ده.اوهغه مسئله دا ده.چه آيا نبى ﷺ د نبوت نه وړاندے په سابقه شريعتو کنبے د يو شريعت په اتباع باندے مکلف وو که نه؟ په دے مسئله کنبے د عالمانو درے اقوال دى.

① يوقول دا دے.چه په دے کنبے توقف اوشى.خکه چه په نقل سره څه خبره ثابته نه ده.او

---

(۱) اعلام الحديث (۱۲۸/۱)_
(۲)شرح کرمانى (۳۲/۱) وعمدة القارى(۴۹/۱)_
(۳) فتح البارى(۲۳/۱)_
(۴) سيرت ابن هشام او الروض الانف (۱۵۳/۱)_
(۵) الکاشف عن حقائق السنن (۴۶/۱۱) کتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الوحى)_
(۶) فتح البارى(۲۳/۱)_
(۷) فتح البارى (۷۱۷/۸) کتاب التفسير تفسير سورة العلق)_
(۸) تدريب الراوى (۲۷۴/۱) النوع العشرون:المدرج او شرح کرمانى) رحمهما الله (۳۲/۱)_

عقل د يو څيز نه مانع نه دے.

۲ دويم قول دا دے چه نبى ﷺ د سابقه شريعتونو مكلف وو

بيا ددے قول په قائلينو كښے اختلاف دے چه د كوم شريعت مكلف وو؟ بعضو خو دلته كښے هم د تعيين توقف كړے دے او بعضو حضراتو تعين كړے دے.

بيا په تعين كښے اختلاف دے بعضے عالمانو فرمائيلى دى چه د حضرت آدم ؑ د شريعت مكلف وو او بعضے حضرات فرمائى چه دحضرت نوح ؑ په شريعت باندے عمل كونكے وو بعضو د حضرت ابراهيم ؑ او بعضو د حضرت موسى ؑ اوبعضو د حضرت عيسى ؑ نومونه اخستى دى. اوخه حضرات دا وائى چه په څه مخصوص شريعت باندے دوى عمل نه كولو. بلكه په سابقه ټولو شريعتونو كښے چه كوم شريعت دوى ته په صحيح طريقه سره رارسيدلے وو. په هغے باندے به ئے عمل كولو.

۳ دريم قول دا دے چه دوى د يو شريعت مكلف نه وو. اوس سوال دا پيدا كيږى چه بيا دوى څنګه عبادت كولو.

بعضے حضرات فرمائى چه كوم مسكينان به هلته كښے ورغلل نوهغوى ته به ئے روټئ وركوله. خو دا هروختى عبادت نه دے.

بعضے حضرات فرمائى چه د دوى عبادت به هلته تفكر وو. يعنى دوى به په كائناتو او مصنوعات الهيه كښے سوچ اوفكر كولو.

بعضے حضرات فرمائى چه د رؤيائے صالحه او كشف او الهام په ذريعه چه به د دوى په زړه د څه القاء اوشوه. دهغے مطابق به ئے عمل كولو.

يوقول دا دے چه دالله تعالى د طرفه چه به د معرفت د انواراتو كوم فيضان كيدلو. د هغے مطابق به ئے عبادت كولو.

يو قول دا دے چه په اصل كښے دا ،،نفس خلوت،، هم عبادت وو. ځكه چه په دے سره به د قوم او د هغوى د غلطو كارونو نه اجتناب راتلل.(۱) والله اعلم وعلمه اتم واحكم.

**قوله: اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ:** ،،الليالى،، د يتحنث دپاره ظرف دے او په مينځ كښے ،،وهو التعبد،، د يتحنث تفسير دے. تفصيل مخكښے تير شوے دے.

بيا دلته د ،،ليالى،، نه صرف شپے مراد نه دى. بلكه ورځے په كښے هم داخل دى. چونكه د خلوت دپاره شپه زياته مناسب وى. نوځكه دلته تغليباً ،،ليالى،، ذكر شوے.(۲)

دا هم ممكنه وه. چه چا وهم كړے وے چه نبى ﷺ به صرف د ورځ خلوت اختيارولو. او د شپے به واپس راتلو. ددے وهم د لرے كولو دپاره د ،،ليالى،، تصريح وارده شوه.

---

(۱) فتح البارى(۷۱۷/۸) كتاب التفسير. تفسير سورة العلق (۳۵۵/۱۲) كتاب التعبير باب أول ما بدئ برسول الله ﷺ من الوحى الرويا الصالحة وشرح كرمانى(۳۲/۱، ۳۳)۔

(۲) شرح طيبى (۴۶/۱۱) كتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الوحى)۔

**قوله** ذَوَاتِ الْعَدَدِ: دلته تاسو گورئ چه د ..لیالی.. څه مخصوص تعداد ذکر نه دے بلکه د ابهام سره ((ذوات العدد)) ذکر شوے دے په دے کښے احتمال هم شته.چه هغه شپے به کمے وی اودا احتمال هم شته چه د دغه شپو شمار زیات وو.

علامه طیبی رحمه الله فرمائی (۱) چه د تقلیل په اراده دلته د ((ذوات العدد)) قید لګولے شوے دے لکه په قرآن کریم هم تقلیل طرف ته د اشارے کولو دپاره فرمائی ﴿ وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُودَةٍ ﴾ (۲)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه دلته د تکثیر احتمال هم شته.ځکه چه ((ذوات العدد)) ونیلے شوی دی اوهم زیات څیز د شمار محتاج وی.د کم څیز د شمارلو ضرورت نه وی.(۳)

دعلامه ابن ابی جمره رحمه الله رجحان هم دے طرف ته دے.چه دا د تکثیر دبیان دپاره دے په دے باندے هغوی جزم کړے دے.هغوی فرمائی.چه د عدد دوه قسمونه دی.یو عدد قلیل اویل عدد کثیر.دلته چونکه مطلق دے.څه تعیین په کښے نشته.نوځکه به دلته د دواړو قسمونو مجموعه مراد وی.لکه چه د ((اللیالی ذوات العدد)) مطلب به وی.((لیالی کثیرة))(۴)

بعضے عالمانو فرمائیلی دی.چه ددے تعداد ځکه متعین نکړے شو.چه دا معلوم نه وو.ځکه چه حقیقت دا دے.چه نبی ﷺ به د خلوت په دوران کښے کله کله کور ته تشریف راوړلو.او ددے تشریف راوړلو موده خو معلومه نه ده.البته ټوله موده خلوت معلوم دے.لکه چه په مخکښے روایت کښے تیر شوی دی.چه ((جاورت بحراء شهرا))(۵) چه ما په غار حراء کښے یو میاشت اعتکاف کړے وو.اوهلته مے خلوت نشینی کړے وه.مخکښے ددے بیان هم شوے دے.چه نبی ﷺ په رمضان کښے په غار حراء کښے اعتکاف کړے وو.(۶) والله اعلم.

**قوله**: قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ: نزع ینزع د باب ضرب یضرب نه مستعمل دے.ددے معنی د میلان او اشتیاق سره د واپس کیدو ده.(۷)

---

(۱) پورتنئ حواله)_
(۲) یوسف ۲۰:۲
(۳) شرح کرمانی(۳۲/۱)_
(۴)فتح الباری (۳۵۵/۱۲) کتاب التعبیر باب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحي:الرویا الصالحة)_
(۵) صحیح مسلم کتاب الإیمان باب بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ)_
(۶) فتح الباری (۷۱۷/۸) کتاب التفسیر.تفسیر سورة العلق)_
(۷) شرح طیبی (۴۷/۱۱) کتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الخلق- وعمدة القاري (۴۹/۱)_

مطلب دا دے چه نبی ﷺ به په غار حراء کښے خلوت نشین شو اوعبادت به ئے کولو چه ترڅو پورے به ئے خپل اهل وعیال ته شوق نه وو پیدا شوے بیا چه کله به ئے شوق پیدا شو نو واپس به راتلو

**په اسلام کښې رهبانیت نشته** که د حدیث په دے جمله باندے غور اوکړئ نو تاسو ته به معلومه شی چه د نبی ﷺ به کله مینه پیدا شوه نوخپل کور طرف ته به ئے تشریف راوړلو مطلقاً ئے تجرد نه وو اختیار کړے ځکه چه تجرد او رهبانیت د حکمت خداوندی نه هم خلاف دے او د فطرت انسانی نه هم خلاف دے

دحکمت خداوندی نه ځکه خلاف دے چه په رهبانیت کښے تجرد اختیارولے شی او چه کله تجرد اختیار کړے شی نو دا عالم باقی نشی پاتے کیدے ځکه چه د عالم بقاء په نسل انسانی باندے ده او په تجرد اختیارولو سره نسل ختمیږی او نسل منقطع کیږی نو چه تجرد اختیار کړے شی نود عالم د بقاء تصور نشی کیدے

اود فطرت انسانی خلاف ځکه دے چه الله تعالی په انسانانو کښے څه جذبات پیدا کړی دی. څه صفات ئے په کښے ودیعت کړی دی که دغه قوتونه او صفات په صحیح ځائے کښے استعمال نشی نوهغه سبب د فساد او موجب د تباهئ او نقصان ګرځی چونکه نبی ﷺ کامل حکیم او صاحب د فطرت سلیمه وو نوځکه ئے نه رهبانیت په خپله اختیار کړے وو او نه ئے د امت دپاره مشروع کړے دے

**قوله: وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ:** یعنی کله چه به نبی ﷺ دخلوت نشنئ دپاره تشریف اوړلو نودوی به اسباب نه ترک کول نن صبا خلق ترک اسباب توکل ګنړی حالانکه په ترک اسباب سره عام طور د تعطل لار هواریږی.

هم دا وجه ده چه یو صحابی رضی الله عنه د نبی ﷺ نه تپوس اوکړلو چه یا رسول الله آیا زه خپل اوښ اوترم او په الله بهروسه اوکړم اوکه هغه پرانستے پریږدم اوپه الله بهروسه اوکړم نو نبی ﷺ اوفرمائیل «اعقلها وتوکل» (۱)

بهرحال د ترک اسباب ګنجائش د مستثنیاتو په شکل کښے خو کیدے شی په عامو حالاتو کښے دے ته توکل نشی ونیلے اونه ددے اجازت ورکولے شی په خپله د نبی ﷺ د تول ژوند ښکلے طریقه زمونږ وړاندے ده چه هغوی به د ترک اسباب په ځائے اسباب اختیارول اوپه الله پاک باندے به ئے پوره توکل لرلو.

**قوله: ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا:** یعنی بیا به دوی حضرت خدیجه رضی الله عنها ته تشریف راوړلو اود دومره ورځو توښه به ئے بیا واخستله (۲)

---

(۱) سنن ترمذی کتاب صفة القیامة باب (بلاترجمة) رقم ۶۰ رقم الحدیث (۲۵۱۷) دغه شان اوګورئ حلیة الأولیاء (۳۹۰/۸) ترجمة عبدالرحمن بن محمد بن یحیی بن سعید القطان رحمهما الله)_

(۲) فتح الباری (۳۲/۱)_

د ((لمثلها)) ضمیر په مرجع کښې څو احتمالات دي. یواحتمال دا دې چه ((عبادة)) طرف ته راجع وي. کوم چه د مقام د قرینې نه معلومیږي. دغه شان د ..مرة.. خلوة.. او ..فعلة.. احتمالات هم شته. (۱)
علامه سراج الدین بلقیني رحمه الله فرماني چه دا ضمیر ..سنة.. طرف ته راجع دې. اومطلب دا دې چه نبي ﷺ به هرکال یوه میاشت خلوت کولو. کله چه به راروان کال راغلو. نو د تیر شوي کال په اندازه به ئې توښه واخستله. او د خلوت دپاره به ئې تشریف یوړلو.
خو په دې باندې اشکال دا دې چه نبي ﷺ د مکې مکرمې اوسیدونکې وو. د اهل مکه په ژوند کښې فراخي نه وه. عام طور فقیري وه. اوعام طور به د هغوی ژوند په غوښه او پیو باندې تیریدلو. نوځکه په یو ځل د یوې میاشتې توښه اخستل اوهلته ذیره کیدل په ظاهره باندې ممکن نه ده. بیاخاص کر د نبي ﷺ په مزاج کښې جود اوسخاوت وو. اوپه روایاتو کښې راځي. چه نبي ﷺ به په لاره د تلونکو خلقو هم خبر اخستل. اوپه هغوی به ئې خوراك څکاك کول. نوځکه دا خبره ډیره لرې ده. چه د یوې میاشتې توښه د نبي ﷺ سره وه. ظاهره هم دا ده. چه دځه ورځو توښه به ئې خان سره اوړله. کله چه به هغه ختمه شوه. نو واپس به راتلو. او بیا به ئې اوړله. دغه شان به دوي یوه میاشت پوره کوله. (۲)
حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله په ..کتاب التفسیر.. کښې ددې حدیث شرح کوي. اودخپل استاذ سراج الدین بلقیني رحمه الله اتباع کوي. اودا اظهر ګرځوي. خوچه کله ..کتاب التعبیر.. ته رسي. نوپه هغې کښې د خپل قول نه رجوع کوي. اود پورتنو اسبابو په بناء قول ثاني اختیاروي. (۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

**قوله: حَتّٰی جَاءَهُ الْحَقُّ**: دلته په حدیث باب کښې د ((جاءه)) لفظ دې. حالانکه د کتاب التفسیر اوکتاب التعبیر په روایت کښې ((فجئه)) راغلي دي. یعني ناڅاپه دوي ته حق راغلو.
امام نووي رحمه الله فرماني چه ..فجئه.. ئې ځکه اوفرمائیل. چه نبي ﷺ ته دا توقع نه وه. چه په دوي به فرښته نازلیږي. اودوي ته به نبوت ورکولې شي. (۴)
علامه سراج الدین بلقیني رحمه الله په دې باندې دا اشکال کړې دې. چه نبي کریم ﷺ ته خوب کښې بعینه هم هغه صورت پیښ شوې وو. کوم چه په ویخه وو. نوځکه علی الاطلاق دا وئیل چه د نبي ﷺ څه توقع نه وه. صحیح نه ده. (۵)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرماني. که په خوب کښې نبي ﷺ ته څه څیز په نظر راغلي وي. نو ددې

---

(۱) فتح الباري (۱۷/۸) کتاب التفسیر. تفسیر سورة العلق)_
(۲) فتح الباري (۱۲/۳۵۵، ۳۶۵) کتاب التعبیر باب أول ما بدئ ... الخ)_
(۳) فتح الباري (۱۲/۳۵۵) کتاب التعبیر. باب أول ما بدئ به.. إلخ)_
(۴) شرح نووي علی صحیح مسلم (۸۹/۱) کتاب الإیمان باب بدء الوحي إلی رسول الله ﷺ)_
(۵) فتح الباري (۱۲/۳۵۶) کتاب التعبیر باب أول ما بدئ به ... إلخ)_

نه دا څنګه لازميږي چه د دوی دا توقع هم وه.چه په ويخه به هم دا څيز راپيښيږي.نوځکه دلته څه يقيني فيصله کول نه دی پکار.([1])

..الحق،، نه مراد څه دی؟ علامه طيبى رحمه الله فرمائي چه د..حق.. نه مراد يا خو ..امرحق.. يعني وحی ده.اويا ..رسول الحق.. مراد دے.يعني د ..حق قاصد.. ددے نه به مراد حضرت جبريل عليه السلام وی.([2])

علامه بلقيني رحمه الله فرمائي.چه د ..حق.. نه مراد ((الأمرالبين الظاهر)) دے.([3])والله سبحانه اعلم.

**قوله: فَجَاءَهُ الْمَلَكُ:** يعني دوی ته فرشته راغله.

دلته سوال دا دے.چه نبی ﷺ ته څنګه معلومه شوه.چه دا راتلونکے فرشته ده؟

امام اسماعيلى رحمه الله فرمائي.چه په اول کښے نبی ﷺ ته معلومه نه وه.چه دا فرشته ده البته چه کله فرشته راغله.اوملاقات ورسره اوشو.نوددے نه پس نبی ﷺ ته معلومه شوه.چه دا فرشته ده.نو په روستو معلوميدو سره نبی ﷺ د هغے نه په ..فرشتے.. سره تعبير اوکړلو.([4])

سراج الدين بلقيني رحمه الله فرمائي.چه ممکن ده.چه نبی ﷺ ته د خپل ماشوموالی واقعه ياده وه.(يعني واقعه د شق صدر) خوپه دے کښے اشکال دا دے.چه د ماشوموالی په واقعه کښے نبی ﷺ ته څنګه معلومه شوے وه.چه دا فرشته ده؟([5])

دا هم کيدے شی.چه دا تعبير د حضرت عائشے رضي الله عنها وی.([6])

بهرحال په دے درے واړه جوابونو کښے د ټولو نه ښه اوغوره جواب دامام اسماعيلى رحمه الله معلوميږی.چه نبی ﷺ ته څه هم معلوم نه وو.صرف دومره ورته معلومه وه.چه يو راتلونکے راغلو.روستو ورته پته اولګيدله.چه راتلونکے فرشته ده.نواول ورته دهغے متعلق علم نه وو.دعلم راتلو نه پس ئے دهغے نه په امرمعلوم سره تعبير اوکړلو.دا داسے ده.لکه چه زمونږ د يو کس سره ملاقات اوشی.اول خو دا ګنړو.چه دا څوک سړے دے.خوچه کله ورسره د ملاقات نه پس تعارف اوشی .اومونږ ئے اوپيژنو.نوکه روستو د اول حالت قصه بيانول وی.نوهم داسے به وايو .چه زمونږ ملاقات د فلانی کس سره شوے وو.والله اعلم.

بيا دلته د ..الملك.. نه مراد حضرت جبريل عليه السلام دے.اصحاب سير ددے صراحت کړے دے.([7])

---

(۱) پورتنئ حواله)_
(۲) شرح طيبى(۴۷/۱۱) وفتح البارى (۳۵۶/۱۲) كتاب التعبيرباب أول ما بدئ به ..إلخ)_
(۳) فتح البارى (۳۵۶/۱۲)_
(۴) پورتنئ حواله)_
(۵) پورتنئ حواله)_
(۶) فتح البارى(۳۵۶/۱۲)_
(۷) الروض الأنف للسهيلى(۱۵۳/۱)اوفتح البارى(۳۵۶/۱۲)_

## د فرشتې راتلل په کومه ورځ، په کوم تاریخ، او په کومه میاشت کښې وو او په هغه وخت کښې د نبی ﷺ عمر څومره وو؟

دوی ته د وحی راتلل د دوشنبه(ګل) په ورځ شوے وو.په دے کښے د چا اختلاف نشته.[1]
مشهوره دا ده چه په ربیع الاول کښے فرشته راغلے وه.په اول یا په اتم تاریخ.[2]
() دویم قول دا دے چه په ۲۷ رجب باندے د دوی بعثت شوے وو.[3]
() دریم قول دا دے چه د دوی بعثت په رمضان کښے شوے وو.بیا د رمضان په تاریخونو کښے اختلاف دے.اووم. یا اوولسم. یا څلیرویشتم تاریخ کښے دوی ته فرشته راغلے وه.[4]
په رمضان کښے د راتلو قول ته حافظ ابن حجر رحمه الله ترجیح ورکړے ده.[5] څکه چه مخکښے د ابن اسحاق رحمه الله په حواله سره مونږ ذکر کړی دی.چه نبی ﷺ به په رمضان کښے اعتکاف کولو.او هم د دغه اعتکاف په دوران په غارحراء کښے فرشته راغلے وه.یحیی صرصری رحمه الله هم دا اختیار کړے دے.او په خپله قصیده نونیه کښے فرمائی.

واتت علیه الوحی أربعون فأشرقت شمس النبوة منه فی رمضان[6]

دا حضرات دویم دلیل دا پیش کوی.چه په قرآن کریم کښے دی.چه ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیْٓ اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ﴾ [7]چه د قرآن کریم نزول په رمضان کښے شوے دے.

خوکوم کسان چه په ربیع الاول کښے راتلل منی.هغوی دا وئیلی شی.چه د ﴿اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ﴾ معنی دا ده.چه د لوح محفوظ نه ,,بیت العزت،، ته په رمضان کښے نازل شوے دے.اوبیا دهغه ځائے نه نجماً نجماً دضرورت مطابق زمکے ته راغلے دے.[8] یا دا معنی چه ﴿اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ﴾ «أی فی شأن رمضان وتعظیمه وفرض صومه»[9] یعنی د رمضان میاشت هغه میاشت ده.چه ددے په عظمت کښے قرآن نازل شوے دے.اوهم ددے میاشتے روژے په کښے فرض شوی دی. دحافظ ابن القیم رحمه الله رجحان هم دے طرف ته معلومیږی.چه ددوی بعثت په ربیع الاول کښے شوے وو.[10] والله سبحانه اعلم.

---

(۱) زادالمعاد فی هدی خیرالعباد لابن القیم رحمه الله (۷۷/۱)_
(۲) فتح الباری (۳۵۶/۱۲، ۳۵۷) کتاب التعبیرباب أول ما بدئ به ...الخ)_
(۳) پورتنۍ حواله)_
(۴) پورتنۍ حواله)_
(۵) فتح الباری(۳۵۶/۱۲)_
(۶) زادالمعاد(۷۵/۱)_
(۷) سورة البقرة:۱۸۵)_
(۸) پورتنۍ حواله)_
(۹) مخکنۍ حواله)_
(۱۰) پورتنۍ حواله)_

يا د بعثت په وخت كښے د نبى ﷺ عمر څومره وو؟ په دے كښے لږ اختلاف دے.
مشهوره دا ده چه ددوى عمر په دغه وخت كښے څلويښت كاله وو يا بعضے وائى چه لس ورځے زياتى وے بعضو ونيلى دى چه څلويښت ورځے زياتى وے بعضے وائى چه دوه مياشتے زياتى وے اوبعضے وائى چه دوه كاله زياتى وو يعنى دوه څلويښت كاله ددوى عمر وو بعضے حضرات وائى چه درے كاله زياتى وو يعنى د درے څلويښت كالو په عمر كښے دوى مبعوث شوى دى اوبعضے حضرات وائى چه پنځه كاله زياتى وو يعنى عمر شريف ئے پنځه څلويښت كاله وو.(١)
اوكه دا اومنلى شى چه په نبى ﷺ باندے د وحى نزول په رمضان كښے شوے وو. نو بيا خو به يا دا ونيلى كيږى چه ددوى عمر درے څلويښت اوشپږ مياشتے وو په څلويښتم كال كښے دوى داخل شوى وو يا به داسے ونيلى كيږى چه څلويښت نيم كاله وو ځكه چه د ربيع الاول نه تر رمضان پورے شپږ مياشتے وى.او په ربيع الاول كښے د نبى ﷺ ولادت شوے وو اوكه د وحى نزول په ربيع الاول كښے اومنلے شى نو د نبى ﷺ پوره عمر په دغه وخت كښے څلويښت كاله جوړيږى والعلم عندالله سبحانه وتعالى.

**قوله.** فَقَالَ اقْرَأْ: دلته دا اشكال شوے دے چه نبى ﷺ امى وو دوى ته د لوستلو حكم ولے وركړے شو.دا خو تكليف بمالايطاق دے؟
ددے جواب وركړے شوے دے چه دلته د ..اقرا.. نه مراد امرتكليفى نه دے بلكه امرتلقينى دے.(٢) لكه څنګه چه طالب علم ته استاذ وائى چه لوله.اومقصد ئے دا وى چه څنګه زه وايم نوهغه شان وايه.دلته كښے هم بلا تشبيه دحضرت جبريل ﷺ مقصد دا وو چه څنګه درته زه تلقين كوم.هغه شان لوله.لكه چه د قرات حكم نه وو.بلكه دتعلم قرات حكم وو.خو نبى ﷺ د الفاظو د ظاهر نه دا خيال اوكړلو چه د قرات حكم راكولے شى.نو په جواب كښے دوى اوفرمائيل.«ماأنابقارئ»
علامه بلقينى رحمه الله فرمائى.چه دا ټوله قصه په دے خبره باندے دلالت كوى.چه مقصود د هغه لفظ لوستل وو.كوم چه حضرت جبريل ﷺ ونيل.اوس دے ته دا هم ونيلے شى چه «قل اقرأ» خو په دے كښے دا خطره وه.چه نبى ﷺ دا اونګرى چه قل هم په كلام مقصود كښے داخل دے.اوددے هم قراءت مطلوب دے.(٣)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د ..قل.. نه ونيلو وجه دا هم كيدے شى.چه بيا به ابهام نه پاتے كيدلو.اود ..غط.. او ..ارسال.. نوبت به نه راتلو.اوهغه حكمتونه او فوائد به نه حاصليدل.كوم چه په ..غط.. او ..ارسال.. كښے پټ وو.(٤)

(١) فتح البارى (٣٥٦/١٢)_
(٢) فتح البارى(٧١٨/٨) كتاب التفسير باب تفسير سورة العلق)_
(٣) فتح البارى (٣٥٧/١٢) كتاب التعبير باب أول ما بدئ به ..إلخ)_
(٤) پورتنئ حواله)_

ابن اسحاق رحمه الله د عبيد بن عمير رحمه الله نه روايت نقل كړے دے په هغے كښے دا دى.چه هغه ټول كيفيات كوم چه په بيدارئ كښے نبى ﷺ ته راپيښ شوى وو.هغه دوى په خوب كښے ليدلى وو په هغے كښے دا وو.چه حضرت جبريل عليه السلام ورته د ريښمو يوه جامه پيش كړله.په هغے كښے يو ليكل وو.(۱) دلته ممكن ده.چه دهغے د لوستلو حكم ورته شوے وى.خو يو خيز چه په خوب كښے اوليدے شى.نو دا ضرورى نه ده.چه په بيدارئ كښے دے هم هغه وى علامه سهيلى رحمه الله په ﴿الٓمٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ ۛ﴾ كښے د «ذلك» مشار اليه د بعضے مفسرينو په حواله سره «نمط من ديباج» ګرځولے ده.(۲) والله اعلم

عالمانو دلته دا احتمال هم ذكر كړے دے.چه «اقرأ» امر تكليفى دے.(۳) په دے صورت كښے ددے نه د ،، تكليف بما لا يطاق،، جواز ثابتيږى.

**تكليف بما لايطاق جائز دى كه نه؟** خودلته دا اشكال كيږى.چه دا امرتكليفى شى.نودا تكليف بمالا يطاق دے.اودا ټيك نه دے.

په دے مقام كښے د ،،تكليف بمالايطاق،، په سلسله كښے دومره خبره ياد ساتئ.چه دا مسئله په مختلف فيه مسائلو كښے ده.

د اشاعروُ مسلك دا دے.چه تكليف بمالايطاق جائز دے.اود نورو حضراتو مسلك دا دے.چه تكليف بما لايطاق جائز نه دے.(۴) الله تعالى فرمائيلى دى.﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ﴾ (۵)

خو اشاعره ددے آيت په باره كښے دا جواب وركوى.چه ددے آيت شريفه نه خو دومره معلومه شوه.چه الله تعالى د طاقت نه زياتى چاته تكليف نه وركوى.ددے عدم تكليف نه د مكلف كولو د جواز نفى نه ثابتيږى.مطلب دا چه دا كيدے شى.چه الله تعالى مكلف نكړى.خود دے نه لازميږى.چه په مكلف كولو باندے قادر نه دے.دا دواړه خيزونه جدا جدا دى.

**قوله**: قَالَ مَا أَنَا بِقَارِئٍ: ددے ترجمه ،،زه لوستونكے نه يم،، هم كولے شى.او،، زه نشم لوستے،، ترجمه هم كيدے شى.دويمه جمله د اولنئ جملے په مقابله كښے غوره ده.

ددے وجه دا ده.چه نبى ﷺ افصح العرب والعجم وو.د دوى بلاغت او فصاحت د اعلى درجے وو.نوځكه دا خبره څه عجيبه غوندے معلوميږى.چه جبريل آمين يو څو كلمات په دوى باندے وئيل غوښتل.اودوى دے ورته اووائى.چه زه لوستونكے نه يم.ددے څو كلماتو لوستلو دپاره دا ضرورى نه ده.چه سړے دے لوستونكے وى.بيا دا چه نبى ﷺ د اعلى درجے

(۱) سيرت ابن هشام مع الروض الأنف (۱/۱۵۳، ۱۵٤)_
(۲) الروض الأنف للسهيلى(۱/۱۵٤)_
(۳) فتح البارى(۸/۷۱۸)_
(۴) تفسير قرطبى(۳/۴۳۰)_
(۵) البقرة: ۲۸۶)-

فصاحت مالك وو په فصاحت كښې د دوى نظير نه وو.دا كلمات نبى ﷺ په آسانئ سره ادا كولے شونے نودا ونيل پكار دى.چه نبى ﷺ اوونيل.چه زه لوستے نشم.[1]
ب: د نبى ﷺ د نه لوستلو وجه دا وه.چه دوى په غار حراء كښې يواځې عبادت كولو.چه ناڅاپه فرشته راغله او ددوى نه ئې د «اقرأ» مطالبه اوكړله.د دغه حالاتو د وحې نبى ﷺ متأثره شو.بل طرف ته د وحى د عظمت بوج هم وو.ددے وجوهاتو په بنا نبى ﷺ اوفرمائيل.چه زه لوستل نشم كولے.
دا داسې ده.لكه چه مونږ عام طور ګورو.چه يوطالب علم ډير ذهين وى.خوچه مشر استاذ ته د امتحان وركولو دپاره كينى.نودومره په ويره كښې شى.چه آواز ئې نه خيژى.
دغه شان په نبى ﷺ باندے د بشريت كيفيت طارى شو.اوددے وحې هغوى اوفرمائيل چه زما ذُبه كار نه كوى.زه لوستل نشم كولے.
**په ,,ماانا بقارى،، كښې ,,ما،، نافيه ده كه استفهاميه؟** قاضى عياض رحمه الله په دے كښے د عالمانو رحمهم الله اختلاف نقل كړے دے.بعضے عالمان ئې نافيه ګرځوى.اوځه ئې استفهاميه منى.[2]
علامه سهيلى رحمه الله په «الروض الأنف» كښے د ابن اسحاق رحمه الله په روايت كښے د «ماأنا بقارئ» په ځائې د «ماأقرأ» لفظ راغلے دے.فرمائى.چه په دے ,,ما،، كښے دوه احتمالات دى.يو د استفهام،، مطلب دا چه تاسو تپوس كوئ.چه څه اووايم؟ او دويم احتمال دا دے.چه ,,ما،، د نفى ده.نو مطلب به دا شى.چه «ماأحسن أن أقرأ» زه لوستل نشم كولے.[3]
تركومے پورے چه د صحيحينو د روايت تعلق دے.چه د «ما أنا بقارئ» الفاظ دى.نودا ,,ما،، نافيه ده.[4]
خوحافظ ابن حجر رحمه الله د حضرت عروه رحمه الله نه د «كيف أقرأ» الفاظ او د حضرت عبيد بن عمير رحمه الله نه د «ماذا أقرأ» الفاظ اود امام زهرى رحمه الله نه د «كيف أقرأ» الفاظ نقل كړى دى.[5] دا ټول روايتونه په «ماأنا بقارئ» كښے ددے قول تائيد كوى.چه ,,ما،، استفهاميه ده.
اګرچه ونيلې شى.چه ددے رواياتو نه تائيد ضروركيږى.خودا ټول مراسيل دى. حالانكه د صحيحينو روايت ثابت السند دے.اوكه يو كس په اختلافاتو باندے د نظر كولو نه بغير اوګورى.نوسمدستى ذهن ته دا راځى.چه دا ,,ما،، نافيه ده استفهاميه نه ده.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دا ,,ما،، نافيه ده.استفهاميه نه ده.ځكه چه ددے ,,ما،، په

---

(1) امدادالبارى (٣/٧٢)_
(2) شرح نووى على صحيح مسلم (١/٨٩) كتاب الإيمان باب بدء الوحى إلى رسول الله ﷺ_
(3) الروض الأنف (١/١٥٥)_
(4) الروض الأنف (١/١٥٥)_
(5) فتح البارى (١/٢٤)

خبر باندے ..باء.. داخله ده او ..باء زايده.. د ..ما نافيه.. په خبر داخلېږي د ..مااستفهاميه.. نه پس ..باء.. نه راځي اګرچه امام اخفش د ..ما استفهاميه.. نه پس د ..باء.. راتلل جائز ګرځولي دي خودا شاذ دي.(۱)

خو علامه عيني رحمه الله فرمائي چه ..مااستفهاميه.. ته غلط وئيل ټيک نه دي ترکومے پورے چه د ..باء.. د دخول تعلق دے نو دا خو اخفش جائز ګرځولے ده بياچه مونږ روايات هم موجود وي نود استفهاميه د غلط ګرځولوڅه مطلب؟ (۲)

**د ..«ماانا بقارئ».. جملې د مکرر راوړلو وجه** حافظ ابوشامه رحمه الله فرمائي چه په اولنی «ماانا بقارئ» کښے ..ما.. نافيه ده اونبي ﷺ د امتناع خبر ورکوی يعنی نبي ﷺ دا فرمائي چه زما دپاره لوستل ممکن نه دي.

اوپه دويم خل کښے ..ما.. هم نافيه ده خودا خل د امتناع دپاره نه بلکه د نفی محضه دپاره ده چه زه خو لوستونکے نه يم نوڅنګه اولولم؟

اوپه دريم خل ..ما.. استفهاميه ده يعنی نبي ﷺ تپوس کوی چه اوبنايه چه زه څه اولولم؟ د استفهاميه تائيد دهغه مراسيلو نه کيږي کوم چه مونږ مخکښے اوس ذکر کړل.(۳)

**په ..«ما».. نافيه او استفهاميه کښې د تطبيق صورت** دحافظ ابوشامه رحمه الله په دے تقرير سره په نفی او استفهام باندے دلالت کونکی رواياتو په مينځ کښے تطبيق هم کيږي خکه چه چونکه نبي ﷺ په خلوت کښے دالله تعالى په عبادت کښے مستغرق وو اود عبديت شان به کمال ته رسيدلے وو په داسے حالت کښے چه کله جبريل آمين «اقرأ» اووئيل نو نبي ﷺ اوفرمائيل چه «ماانا بقارئ» چه زه لوستل نشم کولے بيا چه کله جبريل آمين زور ورکړلو او دے فرمائيل چه «اقرأ» نو نبي ﷺ اوخودل چه «ماانا بقارئ» زه خو امي يم. «کيف اقرأ» چه بيا جبريل آمين زور ورکړلو او «اقرأ» ئے اووئيل نونبي ﷺ اوفرمائيل چه «ماذا اقرأ» څه اولولم داسے د نفی او استفهام په ټولو رواياتو کښے تطبيق راځي. والعلم عندالله سبحانه وتعالى.

**قوله قال فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي :** د طبراني رحمه الله په روايت کښے د ..غطني.. په ځائے ..غتني.. دے اوپه مسند ابوداود طيالسي رحمه الله کښے «فاخذ بحلقي» دے.(۴) ..غط.. او ..غت.. دواړه يوه معنی لري يعنی دباؤ کول زور ورکول او د دريم روايت مفهوم دا دے چه جبريل آمين زما حلق اونيلو

(۱) پورتني حواله)_

(۲) عمدة القاري(۱/۵۷)_

(۳) فتح الباري(۱/۲٤)_

(۴) فتح الباري(۱/۲٤)_

**قوله حَتّٰى بَلَغَ مِنِّي الْجُهْدَ:** د ..جهد.. لفظ ..بضم الجيم.. هم لوستلے شی او ..بفتح الجيم.. هم. بضم الجيم د گنجائش او طاقت په معنی کښے استعماليږی او ..جهد.. بفتح الجيم. معنی ده مشقت او تکليف.[۱]

بيا د ..الجهد.. دال مرفوع هم لوستلی شی او منصوب هم.[۲] په دے طريقه ټول څلور صورتونه شول چه تفصيل ئے دا دے.

(۱) ((حتى بلغ منى الجهد)) (بضم الجيم وضم الدال) په دے صورت کښے به ،،الجهد،، د ،،بلغ،، فاعل گرځولے شی او مطلب به دا شی چه جبريل ﷺ ماته دومره زور راکړلو چه زما طاقت خپل انتها ته اورسيدلو. يعنی زما طاقت ختم شو.

(۲) ((حتى بلغ منى الجهد)) (بضم الجيم وضم الدال) په دے صورت کښے به هم ..الجهد.. د ..بلغ.. فاعل وی او مطلب به دا وی چه د جبريل آمين په زرو راکولو سره ماته کوم تکليف او مشقت ملاؤ شو. هغه تکليف خپلے انتها ته اورسيدلو.

(۳) ((حتى بلغ منى الجهد)) (بضم الجيم وفتح الدال) په دے صورت کښے به ..الجهد.. د ..بلغ.. دپاره مفعول شی او فاعل به ئے ..غط.. شی او مطلب به دا شی. چه د جبريل ﷺ زرو راکولو سره زما طاقت انتها ته اورسيدلو او زما طاقت ختم شولو.

(۴) ((حتى بلغ منى الجهد)) (بفتح الجيم والدال) په دے صورت کښے به هم ..الجهد.. د ..بلغ.. دپاره مفعول شی او ددے فاعل به ..غط.. شی او مفهوم به دا شی چه د جبريل آمين زرو سره زما مشقت انتهاء ته اورسيدلو يعنی د مشقت انتهاء اوشوه.[۳] ددے څلورو واړو مجموعی مفهوم تقريباً يو دے.

بعضے حضراتو په آخری دواړو صورتونو کښے ..بلغ.. فاعل جبريل آمين گرځولے دے او مطلب ئے دا بيان کړے دے چه جبريل ﷺ زما طاقت يا زما د مشقت انتهاء ته اورسيدلو.[۴] علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه ..جهد.. مفعول گرځول يا خو وهم دے او يا په طريقه د احتمال دا بيان شوے دے. هغه احتمال دا دے چه په دے صورت کښے به مفهوم دا شی چه فرشتے په نبی ﷺ باندے پوره طاقت خرچ کړلو. تردے چه نور طاقت ئے باقی پاتے نشو.[۵] خو علامه توربشتی رحمه الله فرمائی چه دا احتمال هم ټيك نه دے. ځکه چه انسانی بدن د قوت ملکيه بالکيه ختمولو تقاضا نه کوی. بيا خاص کر چه دابتداء نبوت وخت وو. او په دوی باندے خوف او ويره هم راغلے وه.

---

(۱) النهاية في غريب الحديث والأثر (۳۲۰/۱)_
(۲) شرح نووی على صحيح مسلم (۸۹/۱) كتاب الإيمان باب بدء الوحی إلخ)_
(۳) عمدة القاری (۵۷/۱)_
(۴) پورتنئ حواله)_
(۵) شرح طيبی (۴۸/۱۱) كتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الوحی)_

**یواشکال او دهغې جواب** دلته چه کومو حضراتو د ‹‹بلغ›› فاعل حضرت جبریل علیه السلام گرځولے دے په هغوی باندے هم دا اشکال شوے دے چه د حضرت جبریل علیه السلام طاقت خو ډیر زیات وو نو بیا انتهاء ته د رسیدلو څه مطلب؟ بلکه په داسے صورت کښے خو د نبی ﷺ ژوندے پاتے کیدل هم ممکن نه وو.

ددے یو جواب خو هم هغه دے چه د فرشتے پوره طاقت خرچ کول مقصود نه دی.

دویم جواب علامه طیبی رحمه الله دا ورکړے دے چه په هغه وخت کښے حضرت جبریل علیه السلام په خپل اصلی صورت کښے نه وو بلکه په انسانی شکل او صورت کښے وو دلته طاقت هم ددے انسانی او بشری صورت مطابق مراد دے نوځکه انتهاء ته رسیدل ممکن دی په دے کښے مرګ واقع کیدل نه لازمیږی . (۱)

ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه په انسانی شکل اوصورت کښے کیدلو سره ملکی قوت څرنګ فناکیدے شی؟ د قالبونو او صورتونو په تبدیلئ سره په حقائقو کښے تبدیلی راتلے شی؟ یعنی د علامه طیبی جواب ټیک نه دے (۲)

خود ملاعلی قاری رحمه الله دا خبره ټیک نه معلومیږی ځکه چه د ملك الموت او حضرت موسی علیه السلام واقعه ده چه کله ملك الموت دحضرت موسی علیه السلام په خدمت کښے حاضر شو او عرض ئے اوکړلو چه زه ستا د روح قبض کولو دپاره راغلے یم نو هغوی ورته چړق ورکړلو اودهغوی سترګه راووتله.(۳)

خبره په اصل کښے دا ده چه کله څوك خپل اصلی شکل پریږدی اوبل شکل اختیار کړی نو په هغه کښے هم هغه اثرات او خواص پیدا شی ګورئ که هم دا پیریان د مار یا لړم په شکل کښے ښکاره شی اوچیچل اوکړی نوسړے مری اوکه څوك ئے په لرګی باندے اووهی نو مری خوکه دا د زمری یا هاتی په شکل کښے ښکاره شوی وو نو ددے مقابله به ګرانه وه معلومه شوه چه د شکلونو او صورتونو په بدلیدو سره اثرات هم بدلیږی اوهم هغه خواص پیدا کیږی کوم چه دا شکلونو او صورتونو وی.

**‹غط› او ‹ارسال› او په دې کښې حکمتونه** ‹‹غط›› یعنی د زور ورکولو په حکمتونو کښے عالمانو فرمائیلی دی چه ① یو حکمت دا دے چه نبی ﷺ د دنیاوی خیالاتو نه خالی شی اود دے طرف نه ددوی زړه واوړی.(۴)

② دویم حکمت دا وو چه دوی ته په دے خبره تنبیه ورکړے شوه چه په تاسو ډیره لویه ذمه ورای اچولی شی اوقول ثقیل به نازلولے شی.(۵)

---

(۱) الکاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطیبی(۱۱/٤۸) کتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الوحی)

(۲) مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح (۱۱/۱۰۸)_

(۳) صحیح مسلم (۲/۲٦۷) کتاب الفضائل باب من فضائل موسی علیه السلام)_

(۴) فتح الباری(۸/۷۱۸) کتاب التفسیر تفسیر سورة العلق)_

(۵) پورتنئ حواله)_

③ دريم حكمت دا وو.چه آيا د زور وركولو نه پس دوى دخپل طرف نه وائى او كه نه؟ معلومه شوه.چه دوى د خپل طرفه څه نشو ونيلے.نو دوى داعتماد قابل دى . اگرچه دا عندالله معلومه وه.خو نبى ﷺ ته ئے زور وركړلو.اوپه خپله دوى ته اوخودلے شوه.چه ته معتمد ئے.دخپل طرف نه څه نشے ونيلے.(١)

④ څلورم حكمت دا وو.چه دوى ته په دے خبره تنبيه وركول وو كه ته د خپل طرف نه قرات كول اوغوارے.نودا ستا د وس خبره نه ده.دالله تعالى په فضل سره په تا كښے قدرت پيدا كيدے شى.(٢)

⑤ پنځم حكمت دا وو.چه دوى ته اوخودلى شى.چه دا څه تاته ښكارى.دا د وسوسو وهمونو. اوخيالاتو د قبيلے نه نه دى.ځكه چه په وهمونو او وسوسوكښے بدن زورولے نشى. هغه خو خيالى صورت وى.(٣)

⑥ شپږم حكمت دا وو.چه دا زور وركول د نسبت پيدا كولو دپاره وو.ددے وضاحت به وړاندے راشى.

په ,,غط،، كښى د تكراروجوهات بيا دا چه په دے..غط..كښے تكرار ولے راغلو؟تو په دے كښے هم ډير حكمتونه ذكر شوى دى.

① علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى.چه داولنى ځل زور وركولو مقصد دا وو.چه د دوى خيال د دنياوى ټولو كارونو نه منقطع اوفارغ شى.اوكومه وحى چه دوى طرف ته كيږى.هغے طرف ته پوره متوجه شى.په دويم او دريم ځل ددے دتاكيد او مبالغه دپاره زور وركړے شو.(٤)

② بعضے حضراتو ونيلى دى.چه په اول ځل نبى ﷺ ته زور وركړے شو.((ليتخلى عن الدنيا)) دويم ځل زور وركړے شو.((ليتفرغ لما يوحى اليه)) او په دريم ځل د موانست يعنى وحى سره د أنس پيدا كولو دپاره ورته زور وركړے شو.

③ بعضے حضراتو يوه بله خبره كړے ده.هغه دا چه يوطرف ته الله تعالى انسانانو ته عقل وركړے دے.نو دے سره ئے درے څيزونه نور هم پيدا كړى دى.يو نفس. دويم طبع. او دريم شيطان.

④ د نفس اثر دا دے.چه شيطان خواهشاتو طرف ته مائله كيږى.د طبيعت اثر دا دے.چه انسان په غفلت او بے پرواهئ كښے پريوځى.اود شيطان اثر دا دے.چه دے په عادات مذمومه كښے اخته كيږى.

په اولنى ځل زور وركولو د نفس د اثراتو زائله كولو دپاره وو.دويم ځل د طبيعت د اثر يعنى غفلت لرے كولودپاره وو.اودريم ځل عادات مذمومۀ ته توجه نه كولو دپاره زور وركړے شو.

---

(١)پورتنئ حواله)_
(٢) پورتنئ حواله)_
(٣) پورتنئ حواله)_
(۴) ارشاد السارى للقسطلانى رحمه الله)_

③ زمونږ بعضے استاذانو فرمائیلي دي.چه په اصل کښے ددے ..غطات.. په ذریعه نبي ﷺ ته تنبیه ورکول وو.او اشاره وه هغه ازمیښتونو او امتحاناتو ته کوم چه په راراون ژوند کښے دوی ته پیښیدونکی وو.

نوپه اول ځل زور ورکولو سره دے طرف ته اشاره وه.چه د نبوت ذمه واري به ستاسو په اوږو باندے راځي.نوخلق به ستا مخالف شي.تراوسه پورے خو دوی تاته ..الصادرق الامین.. ونیل.ستا احترام به ئے کول.اوستا د اوچتو اخلاقو نه متاثره وو . خو چه کله ته د نبوت ذمه واري واخلے.او دوی ته ورشے.نود دوی محبت به په دشمنئ بدل شي.

په دویم ځل زور ورکولو کښے دے طرف ته اشاره وه.چه صرف دا به نه کیږي.چه ددوی محبت به په عداوت بدل شي.اودوی به ستا مخالف شي.بلکه دوی به تاته قسم قسم تکلیفونه رسوي.ستا په لاره کښے به ازغي اچوي.اوستا په عباداتو کښے به خلل اچوي.

او په دریم ځل زور ورکولو کښے دے طرف ته اشاره وه.چه دوی به ستا د قتل سازش هم کوي.دوی به ستا د سرسودا هم کوي.اوتاسو به آخر مکه معظمه پريخودو ته مجبوره کیږئ.نو دا درے ځله زور ورکول دے مرحله وار مشکلاتو او مسائلو طرف ته اشاره وه.(۱)

④ حضرت مولانا مرتضی حسن صاحب چاندپوري رحمه الله فرمائی.(۲)چه د عامو انسانانو خو دا حالت وي.چه یو ماشوم وي.اول هغه په مکتب کښے کینولے شي.اول ورته تختئ باندے لیکل شروع کړي.هغه دا ټول علم ګڼري.چه په نیغه تختئ لیکل ختم کړي.نو په الټه تختئ لیکل شروع کړي.او دغه شان دے په یوه نوے مرحله کښے داخل شي.بیا چه اولنئ تختئ خټمه کړي.نوهغه دا اوګڼري.چه زه بالکل اوزګار شوم.خو بیا دویمه تختئ شروع شي.بیا چه قاعده په څه طریقه ختمه کړي.نودا اوګڼري.چه زه عالم فاضل شوم.اواوس مے تعلیم مکمل کړلو.خو استاذ ورته په لاس کښے پاره ورکړي.اوبیا په یوه یوه پاره ورته دیشت پارے اووئیلي شي .اوس هغه ته یقین اوشي.چه زما تعلیم پوره شو.خو هغه دوباره په درجه کښے کینولے شي.اوکتاب ورته خودل شروع شي.اول دالفاظو په چکر کښے وو .اواوس به په معنی کښے اونخلي.اوس بیخي یوه نوے قصه شروع شي.چه ده ته دهغے څه اندازه نه وي.او د معانیو دا سلسله داسے شروع شي.چه ددے غریب ژوند ختم شي . خو علم نه ختمیږي.دا خو د عامو انسانانو خبره وه.

---

(۱) ایضاح البخاري(۷۶/۱، ۷۷)_

(۲) دوی دحضرت مولانا محمد یعقوب نانوتوی رحمه الله په بختورو شاګردانو کښے اود حضرت تهانوی رحمه الله په همعصرو کښے وو ذکی. طباع. تیزفهم عالمانو کښے وو زبردست مناظر وو ډیر وخته پورے ئے په ..دربهنګه.. او ..مراد آباد.. وغیره کښے د تدریس د صدارت فرائض سنبال کړے وو او په آخر کښے د دارالعلوم دیوبند په عهده نظامت تعلیم او بیا په نظامت تبلیغ باندے فائز شو.په دارالعلوم کښے د درس او تدریس سلسله هم جاري وه.د دوی د بدعاتو اوقادیانیت رد سره زیات شغف وو.اوپه دے باره کښے د دوی ډیر قابل قدر تانیفات هم شته کوم چه چهاپ شوی دی.د تفصیلي حالاتو دپاره اوورئ .مشاهیرعلمائے دیوبند (۵۸۳/۱، ۵۸۵)_

خو محمد رسول الله ﷺ د خپل ذهانت او فراست نه په اوله ورځ دا پیژندلی وو چه ماته خومره لویه ذمه واری په غاړه کولے شی.نوځکه دوی «ماأنابقارئ» اوفرمائیل. یعنی دا ذمه واری سنبالول اودا سر ته رسول زما غوندے ضعیف البنیان انسان دپاره ډیره مشکله او گرانه ده.نو حضرت جبریل آمین نبی ﷺ ته زور ورکړلو.یو خل بیا دوباره او بیا سه باره ئے دوی ته زور ورکړلو.چه نبی ﷺ ته دا احساس اوشی چه الله تعالی په نبی ﷺ کښے د بوج زغملو او د اوچتولوصلاحیت ایخودے دے.نو دحضرت جبریل آمین د درے خله زور ورکولو نه پس نبی ﷺ ته احساس اوشو.اودوی هغه آیاتونه تلاوت کړل کوم چه ورته ونیلی شول.(۱)

⑤ حضرت شیخ الهند رحمه الله هم دے سره نزدے نزدے خبره کړے ده.صرف عنوان بدل شوے دے.هغوی فرمائی.چه نبی ﷺ کښے عبدیت په اعلی درجه وو.اود فنائیت په اوچته مرتبه کامیاب شوے وو.نوځکه د دوی ته د خپل صلاحیت،لیاقت او کمالاتو بالکل التفات نه وو.جبریل آمین دوی ته بار بار زور ورکړلو.اود دوی خیالات ئے جمع کړل او د مقام عبدیت نه د وړاندے بوتلو کوشش ئے اوکړلو.دے دپاره چه دوی ته دخپل صلاحیت او استعداد اندازه وی.او ذمه داری علی وجه البصرة پورته کولے شی.(۲)

⑥ دا هم کیدے شی.چه په درے خله زور ورکولو کښے دے خبرے طرف ته اشاره اوشوه.چه په تاسو باندے به د قول ،عمل او نیت په اعتبار سره ډیره لویه ذمه واری اچولی شی.ځکه چه د وحي بنیاد ایمان دے.اودا درے واړه د ایمان ارکان دی .په درے خله زور ورکولو سره د ایمان د دے درے واړه ارکانو وزنیت طرف ته اشاره کړے شوه.

⑦ یو حکمت دا هم کیدے شی.چه درے خله زور ورکولو کښے دا خودل مقصود وو.چه په قرآن کریم کښے به ډیر عظیم الشان مضامین بیانولی شی.یعنی توحید ،احکام او اخبار.(۳)

⑧ یوحکمت دا هم ممکن دے.چه په دے تکرار کښے اشاره شوے وی.چه په مستقبل کښے به د درے قسمه سختو مقابله کول وی.(۴)

اوس هغه درے سختئ کومے دی؟

(الف)امام ابوالقاسم سهیلی رحمه الله فرمائی.چه اولنئ سختی په هغه وخت کښے راغله .چه نبی ﷺ په شعب ابی طالب کښے بند شو.هلته د لوږے تکلیف زغملو باندے مجبوره شو.او نور ډیرتکلیفونه ورته وریپیښ شول.ځکه چه قریشو په خپلو کښے فیصله کړے وه.چه د محمد(ﷺ) او دده د مددگارو سره دے تعلق پریخودے شی .نه به دوی سره رشته کولے شی.اونه به دوی سره د خرڅولو او اخستلو معامله کولے شی.

---

(۱) ایضاح البخاری(۸۶/۱ ،۸۷)_

(۲) ایضاح البخاری(۸۶/۱ ،۸۷)_

(۳) پورتنئ حواله)_

(۴) پورتنئ حواله)_

(ب) دويمه سختى په هغه وخت كښې راغله چه كله دوى د شعب ابى طالب نه رابهر شول اوكفرانو د قتل دهمكيانې وركولې ددې په وجه دوى دپاره حبشه ته هجرت كول پيښ شو (ج) اودريمه سختى په هغه ورځ كښې پيښه شوه. چه كله د نبى ﷺ د قتل سازش اوشو تردې چه نبى ﷺ د خپل وطن په پريخودو باندې مجبوره شو.اوهجرت ئې اوكړلو اودې خلقو دوى د وطن په پريخودو باندې مجبوره كړلو (١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه اوله سخته په شعب ابى طالب كښې محصور كيدل.دويمه سخته خپل وطن پريخودل.او دريمه سخته د احد په موقع پيښه شوه.د دوى نورانى مخ زخمى شو په هغې كښې د خود كړئ ننوتلې.اود دوى رباعيه (مخامخ غاښونه) شهيدان شول او د درې . . ارسالات. . نه درې آسانو ته اشاره وه .اوهغه دى ٥يسمى الدنيا٥يسمى البرزخ،٥او يسمى الآخرة.(٢)

⑨ بعضې علماؤ ارشاد فرمائى.چه په درې خله زور وركولو كښې درې سختو ته اشاره وه.يو دا چه ددې په يادولو كښې به شدت وى.دويم په دې باندې عمل كولو كښې به شدت وى.اودريم ددې په تبليغ كښې به شدت وى.مطلب دا چه د قرآن كريم د لوستلو دپاره به د درې سختو مقابله وى.سړى لره دې ته تياريدل دى .د لوستلو مشقت برداشت كول.اوبيا د عمل مشقت راتلل.اوبيا د تبليغ د مشقت برداشت كولو نوبت راتلل.

⑩ بعضې حضراتو فرمائيلى دى.چه په اول ځل حضرت جبريل آمين دې دپاره ورته زور وركړلو.چه دوى د عالم ناسوت نه رابهر شى.په دويم ځل ئې ددې دپاره زور وركړلو.چه دوى په عالم ملكوت كښې داخل شى.او په دوى كښې ملكوتى صفات پيدا شى.اوپه دريم ځل ئې ددې دپاره زور وركړلو.چه دوى ته ذات او صفاتو ته رسيدل حاصل شى.اونسبت حضورى او معيت مع الله دائمى حاصل شى.

⑪ حضرت شاه عبدالعزيزمحدث دهلى رحمه الله فرمائى.چه په اصل كښې دحضرت جبريل عليه السلام نبى ﷺ ته درې خله زور وركول د القاء نسبت دپاره وو.

**د توجه قسمونه** شاه صاحب رحمه الله فرمائى.د توجه څلور قسمونه دى.() توجه انعكاسى () توجه القائى () توجه اصلاحى () توجه اتحادى.

**توجه انعكاسى** په توجه انعكاسى كښې داسې وى.لكه چه يو كس دې.هغه بنه خوشبوى اولګوى.او د خوشبوئې لګولو نه پس يو مجلس ته لاړ شى اوكينى.نوهغه خوشبوئى ټول محسوسوى.خو ددغه خوشبوئى اثر په هغه وخت كښې وى.ترڅو چه دغه سړې په مجلس كښې موجود وى.چه هغه لاړ شى.نوخوشبوئى غائبه شى.

دغه شان په توجه انعكاسى كښې وى.چه مريد د شيخ مجلس ته راشى.اود شيخ په قلب باندې چه كوم انوارات نازليږى.نو په دغه مجلس د هغې نه مستفيد كيږى. خو د شيخ د

---

(١) الروض الأنف للسهيلى(١/١٥٥)_

(٢) فتح البارى (٨/٧١٨)_

جدا كيدو نه پس څه اثر نه پاتے كيږى.
يا داسے اوګنړئ چه په توجه انعكاسى كښے د شيخ د قلب نورانيت د مريد په زړه باندے منعكس كيږى.څنګه چه شيشه بلب ته مخامخ كړے شى.نو بلب په شيشه كښے منعكس كيږى. او په شيشه كښے رڼا په نظر راځى.خو دا رڼا به ترهغه وخته پورے وى.ترڅو چه بلب شيشے ته مخامخ وى.اوچه كله د هغې نه اخوا شى.نوپه شيشه كښے رڼا نه پاتے كيږى.ددے صورت دا وى.چه كله مريد په ذكر اوفكر سره خپل زړه مجلى اوصفا كړى.نود شيخ د زړه انوارات په هغې كښے منعكس كيږى . خو دا نسبت د شيخ د مجلس سره خاص وى.دمجلس نه د پاسيدو نه پس ددے څه اثر باقى نه پاتے كيږى.
**توجه القائى يا نسبت القائى** ددے صورت بيخى هم داسے دے.لكه چه يو سړے ډيوه صحيح كړى.اود بلے ډيوے نه دغه ډيوه روښانه كړى.دغه شان چه مريد په ذكر اوفكر سره خپل زړه ښه صفا كړى.نو شيخ د خپل زړه د ذكر او حضور نه يو نور د مريد په زړه باندے واچوى.چه په هغې سره د هغه د زړه ډيوه روښانه شى.اوس كه مريد د هغې حفاظت كوى.نودغه ډيوه روښانه وى.خوكه معمولى غوندے غفلت اوكړى.نو مړه شى.
دا نسبت د اولنى نسبت نه قوى وى.اود شيخ دمجلس پورے خاص نه وى.بلكه د مجلس نه پس هم نورانيت باقى وى.خو ډير ضعيف وى.چه په معمولى بے احتياطئ سره ختميږى.
**توجه اصلاحى يا نسبت اصلاحى** ددے مثال داسے اوګنړئ چه يو درياب وى.دهغې نه يو نهر اوځى.اوس د درياب نه دغه نهر ته اوبه ورځى.اوكه معمولى غوندے خاشى بيشى راشى.نو اوبه هغه بيوى.او كه څه غټ خيز حائل شى.نو اوبه اودروى.او نقصان رسوى.مثلا چه يو غټ كاڼے منفذ(د تلو لاره) باندے راشى.او اوبه اودروى.او يا په نهر كښے غټ سورے اوشى .چه په هغې سره ټول اوبه اوځى.
دغه شان چه كله مريد د ذكر اوفكر په ذريعه خپل زړه ښه صفا كړى.نو د شيخ د بحرمعارفو نه يو نهر دده زړه ته شروع شى.اودهغې نه معارف او علوم دده زړه ته راځى.
دا نسبت د اولنى او دويم نسبت نه زيات قوى دے.او معمولى غوندے لغزش ددے د ختميدو سبب نه ګرځى.لكه څنګه چه پاڼړے او ډكى د اوبو په چپو كښے بهيږى .البته كه ډير لوئے لغزش اوشى.د څه كبيره ګناه ارتكاب اوشى.نو ددے د انقطاع خطره پيدا كيږى.او د انقطاع نه مراد دا دے.چه دا نهر د لږ وخت دپاره اوچ شى .كه سړے توبه اوباسى نو دوباره شروع شى.لكه څنګه چه د سرى د نهر منفذ بند شى.او د بنديدو نه پس ئے بيا كهولاؤ كړى.يا په هغې كښے د سورى پيدا كيدو يا د هغې د ماتيدو نه پس هغه ټيك كړى.
**توجه اتحادى يا نسبت اتحادى** په دے توجه كښے دا وى.چه شيخ خپل روح د مريد د روح سره متصل كړى.او خپل كمالات د هغه طرف ته منتقل كړى.دا القاء د نسبت د ټولو نه اوچت قسم دے.
**دحضرت خواجه باقى بالله رحمه الله او يونانبائى واقعه** په دے باره كښے دخواجه باقى بالله رحمه الله اويو نانبائى واقعه مشهوره ده.يوځل خواجه صاحب ته څه ميلمانه راغلل. اتفاقى خبره وه.چه په دغه موقع شيخ سره د دهغوى د قدراو عزت دپاره څه انتظام نه وو. شيخ غمژن وو.د

ميلمنو ميلمستيا كول ئې غوښتل او په كوز كښې لوږه وه د شيخ په ګاونډ كښې يو نانبائى اوسيدلو هغه د شيخ پريشانى په څه طريقه محسوس كړله.اويو خوانچه ئې تياره كړه.اود شيخ په خدمت كښې ئې پيش كړله.حضرت ډيرزيات خوشحاله شو.اوهغه ئې قبوله كړه.او د ميلمنو قدر عزت ئې اوكړلو.او هغه نانبائى ته ئې اوونيل.غواړه څه غواړې. هغه ورته اوونيل حضرت ما دخپل ځان پشان جوړ كړه.حضرت ورته اوفرمائيل.بل څه اوغواړه .هغه ورته اووونيل.زما خو بس هم دا حاجت دے.كله چه هغه ډير اصرار اوكړلو.نو حضرت هغه خپلے حجرے ته بوتلو.اوپه هغه باندے ئې توجه اتحادى اوكړه.لږ وخت پس د حجرے نه دواړه رابهر شول.نو په هغوى كښې څه امتياز نه وو.دا نه معلوميدله.چه حضرت كوم يو دے؟اوهغه نانبائى كوم دے؟البته ددے نه فرق معلوميدلو.چه يوپه هغوى كښې په هوش اوحواس كښې وو.اوبل بے خوده او مست وو.ددے توجه اتحادى اثر دا اوشو.چه هغه مسكين د هغے تحمل نشو كولے.اوپه څو ورځو كښې هغه وفات شو.

حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمائى.چه جبريل عليه السلام چه نبى ﷺ درے ځله زورلے وو .نو دا ئې د دے آخرنو درے واړو نسبتو د القاء دپاره زور وركړے وو.(١)

حضرت شيخ الحديث صاحب نور الله مرقده فرمائى.چه اولنې نسبت يعنى نسبت انعكاسى خو سمدستى په مخامخ كيدو سره حاصل شو.څكه چه نبى كريم ﷺ په غار حراء كښې څه مودے پورے د مجاهدے خلوت نشينئ اود ذكر اوفكر په ذريعه خپل زړه مبارك مجلى او صفا كړے وو.(٢)

بهرحال سركار دوعالم ﷺ د شاه عبدالعزيز رحمه الله د رائے مطابق په دريم ځل زور وركولوسره د حضرت جبريل عليه السلام صفات ملكيه په خپل ځان كښې جذب كړل.لكه چه دوى مقام جبريل عليه السلام ته اورسيدلو.ددے نه پس نبى كريم ﷺ درے ديشت كاله ژوندے پاتے شو.په دے موده كښې به سيدالاولين والآخرين څومره زياته روحانى ترقى كړے وى.د هغے اندازه لګول زما او ستا د وس خبره نه ده.هم ددے نه څه اندازه اولګوئ.چه په شپه دمعراج كښې د نبى كريم ﷺ سره جبريل آمين روان وو.چه مقام ..سدرى.. ته اورسيدل.نوهغوى د وړاندے تلو نه معذرت پيش كړلو.او نبى ﷺ وړاندے شو.

**د علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله يوه واقعه** دصفات ملكيه د انتقال په باره كښې حضرت شيخ الاسلام علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله يوه واقعه بيان كړے ده.دوى فرمائى.چه كله زه د حيدرآباد دكن شفاخانه ته لاړم.نوهلته ډاكټر د بجلئ په ذريعه د علاج ډيرے كرشمے اوخودلے.او بيا ئې اوونيل.كه تاسو اووائې.نو مونږ به ستا په بدن كښې بجلى داخله كړو.حضرت شيخ الاسلام خو اول پريشانه شو.خوډاكټرانو ورته اوونيل چه د پريشانئ څه خبره نشته . تكليف به نه وى.

---

(١) تقرير بخارى شريف از حضرت شيخ الحديث صاحب نورالله مرقده (١/٨٣تا ٨٤)_

(٢) تقرير بخارى(١/٨٦)_

هغوى په يوه كرسئ باندے كينولے شو اود پيتلو دسته ئے ورته ورکړه او مشين ئے روان کړلو لږ وخت پس ئے ورته اووئيل چه مونږ دومره بجلى ستاسو بدن ته دراورسوله.علامه صاحب رحمه الله ډير حيران شو.هغوى ورته اووئيل ته حيرانيګه مه .اوس به تاسو ته معلومه شى په دے موقع باندے د حضرت عثمانى رحمه الله متبنى مولانا يحيى هم وو.هغه ته اووئيلى شو چه لږ ده ته لاس وراوړه.چه هغه لاس ورنزدے کړلو نود هغوى د ګوتے نه يوه شعله غوندے اووتله.هغه دا اوګنړله.چه ګوته اوسوزيدله.علامه عثمانى رحمه الله هم تکليف محسوس کړلو معلومه شوه.چه څه اجنبى څيز ئے په بدن کښے دے.بيا مولانا يحيى صاحب ته اووئيلى شو چه دے کلك اونيسه.اوس څه اثر نه وو.هغه هم دغه شان نيولے وو.چه يو دريم کس ته ئے اووئيل چه ده ته لاس وراوړه.د لاس نزدے کول وو چه بيا هم هغه کيفيت شو.اوچه بيا ئے کلك اونيولو.نوڅه اثر نه وو.

حضرت علامه عثمانى رحمه الله فرمائى.چه نن يوه لويه مسئله حل شوه.معلومه شوه چه په زور سره نيولو کښے بعضے وخت د صفاتو په انتقال کښے آسانى راځى.جبريل آمين چه لکه نبى ﷺ کلك اونيولو.نود نور د نور سره اتصال اوشو.اوهغه ملکوتى صفات ورته منتقل شول.او په نبى ﷺ کښے د وحى د تحمل او د هغے دوزن برداشت کولو استعداد پيدا شو (١)

**قوله:فَقَالَ ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ ۝ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۝ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ۝﴾:**

**د آيات مذكوره سره متعلق څو فوائد** تاسو ګورئ چه دالله تعالى پيغمبر امى دے خو اولنى وحى چه کومه راځى.نوهغه د قراءت ده.لکه چه الله تعالى د قرات په ذکر کولو کښے هغه علومو ته اشاره کوى. کوم چه خپل پيغمبر ته ورکوى.

بيا اولنى آيت کښے ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ ۝﴾ راغلى دى.تاسو ته دے معلومه وى.چه دالله تعالى د ذات او صفاتو د حقيقت نه مونږ واقف نه يو.مونږ دالله تعالى ذات او صفات دهغه د نومونو نه پيژنو.ددے نومونو مونږ ته علم شوے دے.او هم ددے نومونو په ذريعه مونږ دخالق اومخلوق. قديم اوحادث. عابد او معبود په مينځ کښے واسطه او رابطه پيژنو.هم دا وجه ده.چه دلته د ﴿اِقْرَاْ﴾ وئيلوپه ځائے ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ ئے فرمائيلى دى.او هم ددے وجے ئے په ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ کښے د ..اسم.. اضافه کړے ده.

بيا دلته د ..اسم.. د لفظ اضافت .ربك.. ته شوے دے.او اشاره دے طرف ته هغه الله چه رب دے.اوپه تدريج سره هر يو څيز خپل کمال ته رسونکے دے.هغه تا هم په څلويښت کاله کښے په تدريج سره دے کمال ته راورسولے.دکوم کمال سره چه د نبوت د ذمه وارئ تحمل ممکن دے.نوته هم دے خبرے ته توجه ورکړه.اوهم دے څيز طرف ته نظر کوه.چه ستا رب

(١) فضل البارى (١/١٦٦)_

ستا تربيت كونكے دے اوپه تدريج سره تالره كمال ته رسونكے دے.بيا ته ولے نااميده كيږے او د خپل صلاحيت په باره
كنبے ولے متفكر كيږے؟!

**قوله: الَّذِيْ خَلَقَ:** دلته د ..خلق.. مفعول نه دے ذكر شوے.ددے خودلو دپاره چه هغه دټولو مخلوقاتو خالق دے.
په دے جمله كنبے هم نبى ﷺ خپل استعداد او قابليت طرف ته متوجه كړے شوے دے.په دے طريقه چه هركله هغه د ټول كائنات خالق دے.نوستا خالق هم دے.د كائناتو په شان هغه ته دا قدرت هم حاصل دے.چه په تا كنبے د قرات طاقت پيدا كړى.نوتا ته په دے باره كنبے فكرمند كيدو ضرورت نشته.

**قوله: ﴿خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ﴾:** يعنى الله تعالى انسان د چكه وينے نه پيدا كړے دے.دلته ئے د منئ ذكر نه دے كړے.ځكه چه په دے كنبے د عالمانو ﷺ اختلاف دے.چه پاكه ده كه ناپاكه.بلكه د وينے ذكر ئے كړے دے.كومه چه په اتفاق سره ناپاكه ده.اولا يعقل او جماد هم دے.په دے كنبے في نفسه څه پوهه او استعداد هم نشته.خو الله تعالى په خپل قدرت كامله سره ددے نه يو عاقل او پوهه انسان پيدا كوى.هغه الله چه دا قدرت لرى.نوكه په تاكنبے علم پيدا كوى.اګرچه ته امى ئے.اوكه په تا كنبے د قرات صلاحيت پيدا كړى.اګرچه ته قارى نه ئے.په دے كنبے څه لرے والے دے؟

**قوله: ﴿اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ﴾:** داستفاضه او استفاده دپاره چه څنګه په طالب كنبے استعداد ضرورى وى.نودغه شان په فيض رسونكى او فائده رسونكى كنبے پكار دى.چه بخل نه وى.
دلته ئے په اولنو درے جملو كنبے د طالب استعداد يعنى د نبى ﷺ صلاحيت.او قابليت ذكر كړلو.اوپه دے آيت كنبے ئے دا بيان كړے دے.چه تاته فائده رسونكے الله تعالى دے.هغه ډيركرم خاوند دے.دهغه افاضه او افاده هميشه دپاره جارى ده.نو ستادپاره به هم جارى ده.او جارى به وى.زمونږ د طرفه به په افاضه او افاده كنبے به څه ركاوټ او مشكل نه وى.ځكه مونږ سره خوبس كرم دے.او كرم دے.دكنجوسئ نوم او نشان هم نشته.

**قوله: الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ:** په دے آيت كنبے دے طرف ته توجه وركړے شوے ده.چه تاسو غور اوكړئ.چه الله تعالى د قلم په ذريعه چه يو جماد غيرذى عقل دے.تعليم وركوى.دا صحيح بخارى كوم چه تاسو نن لولئ.هم د قلم بركت دے.دغه تاسو چه د قرآن كريم تلاوت كوئ دا هم د قلم بركت دے.نوكوم ذات چه د قلم په ذريعه علم خودلے شى.نوهغه ذات ستاپشان انسان په ذريعه چه داخلاق مجسمه ده.چه د ذكاوت. ذهانت.او فراست يوعديم المثال نمونه ده.دعلم اشاعت به اونكړے شى؟ يقينى ده. چه هغه ستاسو په ذريعه د علم اشاعت د قلم نه زيات كولے شى.
بيا دے سره سره دے خبرے ته هم اشاره ده.چه څنګه دكاتب په لاس كنبے قلم وى.اوهغه د هغے په ذريعه دعلومو اشاعت كوى.خو قلم د كاتب نه افضل نه وى . هغه خو كاتب چه څه

غوارې په هغې نې چلوى.قلم ته د انكاركولو جرات نشته.هغه د كاتب په لاس كښې ((كالميت فى يدالغسال)) پشان وى.

دغه شان دلته فرمائيلې شوى دى.چه جبريل آمين چه دهغه په ذريعه مونږ تاسو ته علوم رارسوو.ستا نه افضل نه دے.ځكه چه دهغه خو پخپله څه اختيار نشته.هغه خو په فرشتو كښې يوه فرشته ده.ددوى صفت ﴿وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ﴾ (۱) دے.هغوى ته خو چه څنګه حكم كولې شى.دهغې پابند وى.نودا شبه دے نشى كولے .چه جبريل آمين د نبى ﷺ استاذ ګرځولے شوے دے.اود نبى ﷺ نه افضل دے.

**قوله: ﴿عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾**: په دے آيت كښې هم د مخكنى آيت پشان نبى ﷺ ته اوخودلى شو.چه تاسو ته به د قرات په باره كښې څه پريشانى نه وى

تاسو غور اوكړئ.چه كله ماشوم د مور دخيټې نه پيدا شى.نوهغه عالم نه وى.څه هم نه پيژنى.نه خو ئې د وينا قدرت وى.اونه د اشارے كولو صلاحيت لرى.ددے باوجود الله تعالى دهغه نه عالم جوړ كړى.نوتاسو ته دے څه قسم فكر نه وى.ځكه چه د الله تعالى وركړه تاسو سره ده.اود هغه تربيت تاسو سره دے.دغه شان دالله تعالى مشيت او اراده هم تاسو سره ده.يقيناً تاسو عالم هم جوړيدے شى.او معلم هم.دا ده ددے آياتونو خلاصه. والعلم عندالله سبحانه وتعالى.

**ذكر شوى آياتونه د قرآن كريم خلاصه ده:** حقيقت دا دے.چه په دے پنځو آياتونو كښې ټولو مضامين قرآنيه ته اشاره ده.هغه داسې چه د قرآن كريم مضامين په درے قسمه دى.يو توحيد يعنى دذات او صفاتو سره متعلق آياتونه،دويم احكام او دريم اخبار بالغيب او قصے وغيره.

ذات او صفاتو ته اشاره ده په ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾كښې د لفظ ،،رب،، او د ،،الذى خلق،، او ،،خلق الانسان من علق،، نه راوخى.دغه شان په﴿وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ﴾ كښې د لفظ د ،،رب،، نه هم راوخى.

ددے وضاحت دا دے.چه يو دالله تعالى ذات دے.او بل د الله تعالى صفات دى.بيا د الله تعالى صفات په دوه قسمه دى.صفات ذات او صفات افعال.

صفات ذات اووه دى.() علم() قدرت () اراده () سمع () بصر() كلام () اوحيات .د دے نه علاوه باقى ټول صفات افعال دى.لكه خالق،رازق وغيره.

بيا په صفات افعال كښې د ماتريديه او اشاعره دا اختلاف دے.چه آيا دا حادث دى كه قديم. اشاعره وائى.چه دا صفات حادث دى.او په اصل كښې د قدرت او ارادے تعلق كه د څه خاص فعل سره وى.نو دهغې نه دا صفت ښكاره كيږى.مثلاً كه دتخليق سره تعلق وى.نو

---

(۱) التحريم ۶:۰۰۶)-

دالله تعالى دپاره د ..خالق.. صفت راوخى اوكه ..ترزيق.. سره تعلق وى نود رازق صفت راوخى وهكذا

خوماتريديه وائى چه د سابقه اووه صفتونو سره يو اتم صفت هم شته.كوم چه د تكوين صفت دے د صفات سبعه پشان دا هم قديم دے.او تول صفات افعال ددے مختلف شوون. احوال او صورتونه دى خلق هم دتكوين يو صورت دے.او ترزيق هم د تكوين يو صفت دے.

**په صفات ذات او صفات افعال كښې فرق** بيا په صفات ذات اوصفات افعال كښې څه فرق دے چونكه د ماتريديه په نيز تول قديم دى.ددے وجے هغوى فرق بل شان بيان كړے دے.هغه دا چه صفات ذات هغه صفات دى.چه په هغے باندے الله تعالى متصف وى.او دهغے اضداد سره متصف نه وى.الله تعالى عليم دے جاهل نه دے.قدير دے عاجز نه دے.مريد دے بے ارادے نه دے.سميع دے اصم نه دے.متكلم دے اخرس نه دے.حى دے مړے نه دے.

اوصفات افعال هغو ته وائى.چه الله تعالى په هغے باندے هم متصف وى.اودهغے په اضدادو باندے هم متصف وى.لكه احياء او امانت. قبض او بسط. نفع اوضرر وغيره.

د اشاعرو په نيز چونكه صفات سبعه ذاتيه خو دى قديم.او صفات افعال حادث دى د دے وجے هغوى بل شان تفصيل كړے دے.هغوى دا وائى.چه صفات ذات خو هغه صفات دى چه په هغے باندے الله تعالى د ازل نه تر ابد پورے متصف دے.

**په ايت كښې صفات ذات او صفات افعال طرف ته اشاره**: تاسو دا اوګڼړئ.چه په لفظ د ..رب.او لفظ د ..خلق.. كښے صفات ذات اوصفات افعال ته اشاره ده.اوپه لفظ ..رب.. سره صفات ذات ته اشاره ده.ددے وضاحت دا دے.چه رب وائى تربيت كونكى ته.اود تربيت كولو دپاره ضرورى ده.چه تربيت كونكے عالم وى.جاهل تربيت نشى كولے.د قدرت او ارادے خاوندوى.خكه چه عاجز او بے ارادے كس تربيت نشى كولى.اودسمع او بصرمالك وى. خكه چه دا د علم ذرائع دى.او په تربيت كښے ددے ضرورت پيښيږى.چه د چا تربيت كولے شى دهغه د خبرو اوريدو ضرورت وى.د هغه دحالاتو د نګرانئ ضرورت وى . دغه شان بعضے وخت په تربيت كښے د خبرو ضرورت پيښيږى.د خودلو او ورازده كولو ضرورت پيښيږى.چه دا كوه اودا مه كوه.او ددے نه بچ اوسه اوس ښكاره ده چه په چا كښے دا صفات وى.هغه به ژوندے وى.نو هم د دے ..رب.. د لفظ نه د الله تعالى تولو صفات ذاتيه ته اشاره كيږى.اوچه څوك د صفاتو مالك وى.د هغه به ذات هم وى.نو ددے نه ذات هم معلوم شو.

خلاصه دا شوه.چه د ..رب.. او ..خلق.. په صفت سره دالله تعالى صفات ذاتيه او صفات فعليه ته اشاره كيږى.نو په دے دواړو لفظونو سره ذات. صفات. او توحيد ته اشاره اوشوه.

دغه شان وړاندے ﴿عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ راغلى دى.د ..علم.. په لفظ سره دالله تعالى صفات ذاتيه ته اشاره كيدے شى.نو مونږ ونيلى شو چه په ..خلق.. او ..علم.. سره دالله تعالى ذات او صفات كمال ته اشاره شوے ده.خكه چه ..خلق.. د صفات افعال څنے دے.او ..علم.. دصفات ذات څنے دے.

دويم قرآني مضمون احكام دى دے ته اشاره په ﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ ﴾ او په ﴿ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ﴾ سره شوے ده. ځکه چه ﴿اِقْرَاْ﴾ د امر صيغه ده. ددے نه معلومه شوه چه دا کلام به په احکامو باندے مشتمل وى.

او دريم قرآني مضمون اخبار بالغيب طرف ته اشاره په ﴿عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ سره اوشوه. ځکه چه انسان د کوم څيز نه جاهل او ناواقف وو الله تعالى د هغے تعليم ورکړلو.

**دټولو نه وړاندې کوم آيتونه نازل شوى دى؟** په دے مسئله کښے اختلاف دے چه دټولو نه وړاندے کوم آيا تونه نازل شوى دى.

① دجمهورو قول دا دے چه د سورة علق ابتدائي پنځه آيا تونه د ټولو نه وړاندے نازل شوى دى. لکه چه په حديث باب کښے مذکور دى. امام نووى رحمه الله فرمائى ((وهذا هو الصواب الذى عليه الجماهير من السلف والخلف))(۱)

② دويم قول دا دے چه د ټولو نه وړاندے د سورت مدثر نزول شوے دے. دا د حضرت جابر رضى الله عنه او دهغوى د شاګرد حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله رائے ده.(۲)

**د قول اول د ترجيح وجوهات** خو قول اول د قول ثاني نه ارجح دے ځکه چه

① د ﴿اِقْرَاْ﴾ ابتدائي آيا تونو په نزول کښے قصه راغلے ده. چه فرشتے اووئيل ﴿اِقْرَاْ﴾ نو نبى صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ((ما أنا بقارئ)) که د سورة مدثر د آيا تونو نزول شوے وو نو نبى صلى الله عليه وسلم به ((ما أنا بقارئ)) ولے وئيل. بلکه هغوى به سمدستى آيا تونه شروع کړى وو.(۳)

② دويمه وجه دا ده. چه سورة ﴿اِقْرَاْ﴾ کښے د قرات حکم دے. او په سورة مدثر کښے د انذار. او د انذار درجه د قرات نه پس ده. اول به قرات باندے قدرت پيدا شوے وى او بيا به انذار وى.

③ دريمه وجه دا ده. چه حضرت جابر رضى الله عنه چه څه فرمائى. دا دهغوى خپله رائے او ګمان دے.(۴) او حضرت عائشه رضى الله عنها د نبى صلى الله عليه وسلم نه نقل کوى. چه حضرت جبريل عليه السلام راغلو. او زما نه ئے د قرات مطالبه اوکړله. او ماته ئے د قرات حکم راکړلو. ما ورته اووئيل چه ((ما أنا بقارئ))

---

(۱) شرح نووى على صحيح مسلم (۸۹/۱) كتاب الإيمان باب بدء الوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم۔

(۲) عن يحيى بن أبي كثير سألت أبا سلمة بن عبدالرحمن عن أول ما نزل من القرآن. قال يا أيها المدثر. قلت: يقولون ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ﴾ فقال ابوسلمة. سألت جابربن عبدالله رضى الله عنه عن ذلک. وقلت له مثل الذى قلت. فقال جابر رضى الله عنه لا أحدثک إلا ما حدثنا رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: جاورت بحراء فلما قضيت جوارى. هبطت فنوديت .. فأتيت خديجة فقلت: دثرونى وصبوا على ماءً بارداً قال فدثرونى وصبوا على ماء بارداً قال فنزلت ﴿يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ صحيح بخارى كتاب التفسير. سورة مدثر)۔

(۳) زادالمعاد (۱۶۹/۱) فصل فى مبعثه وأول ما نزل عليه)۔

(۴) پورتنئ حواله)۔

درے خله دا خبره را پيښه شوه.او بيا حضرت جبريل عليه السلام درے خله زور راکړلو وے ونيل چه ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ ...الخ﴾(۱)

② څلورمه وجه دا ده.چه د حضرت جابر رضی الله عنه په قصه کښے دا الفاظ راغلی دی.چه ((فرفعت رأسي فإذا الملك الذي جاءني بحراء جالس على كرسي بين السماء والأرض(۲) د دے نه معلومه شوه.چه د مدثر د نزول نه وړاندے د نبی صلی الله علیه وسلم د جبريل عليه السلام سره ملاقات شوے وو.(۳)

په دواړو رواياتو کښے تطبيق بعضے حضراتودا دواړه اقوال جمع کړی دی.چه د هغے حاصل دا ده.چه ① ((أول ما نزل على الإطلاق)) د ﴿اِقْرَاْ﴾ ابتدائی آياتونه دی.او ..مدثر.. ته د ((أول ما نزل كاملا)) خصوصيت حاصل دے.(۴) دحضرت جابر رضی الله عنه په روايت کښے سورة مدثر ته ((أول ما نزل)) په دے اعتبار سره ونيلے شوے دے.

② دويمه توجيه دا ده.چه د فترت نه پس چه کله دوباره د وحی نزول شروع شو. نود ټولو نه وړاندے سورة مدثر نازل شوے وو.په دے اعتبار سره دے ته اوليت حاصل دے.(۵)

③ دريمه توجيح دا ده.چه د ..انذار.. سره مقيد دټولو نه وړاندے سورة مدثر نازل شوے دے.(۶) ④ څلورمه توجيح دا ده.چه د ﴿اِقْرَاْ﴾ د آياتونو د نزول دپاره څه سبب نه وو.اود سبب پيښيدو نه پس د ټولو نه وړاندے سورة مدثر نازل شو.په دے وجه دے ته ((أول ما نزل)) ونيلے شوے دے.(۷)

بيا دا ټول څلور صورتونه جمع کړے شوی دی.① د اول ما نزل په مصداق کښے يو قول دا دے.چه ((بسم الرحمن الرحين)) د ټولو نه وړاندے نازل شوے دے.(۸)

خودا صحيح نه ده.ځکه چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی.چه ((كان النبي صلی الله علیه وسلم لا يعرف فصل السورة حتى تنزل عليه بسم الرحمن الرحيم(۹) د دے نه معلومه شوه .چه د ..بسم الله.. نزول روستو شوے دے.

---

(۱) شرح کرمانی (۱۶۹/۱۸) کتاب التفسير.تفسير سورة المدثر)_

(۲) صحيح بخاری کتاب التفسير.تفسير سورة المدثر)_

(۳) زادالمعاد (۸۵/۱)_

(۴) الإتقان فی علوم القرآن (۳۲/۱) النوع السابع:معرفة أول ما نزل)_

(۵) فتح الباری (۶۷۸/۸) کتاب التفسير.تفسير سورة المدثر((باب : ربک فکبر))_

(۶) پورتنئ حواله)_

(۷) پورتنئ حواله)_

(۸) الإتقان (۳۳/۱ النوع السابع: معرفة أول ما نزل)_

(۹) سنن ابی داود کتاب الصلاة باب من جهر بها (أی بالبسملة) رقم ۷۸۸)_

علامه زمحشرى رحمه الله نقل كړى دى چه د اكثرو مفسرينو رحمهم الله په نيز سورة فاتحه اول ما نزل ده.(۱)

خو دا هم ټيک نه ده.څکه چه اکثر خه چه کثير هم قائل نه دى.څکه چه ددے قائل صرف ابوميسره عمروبن شرحبيل دے.د دوى مرسل روايت امام بيهقى په دلائل النبوة کښے ذکر کړے دے.په هغے کښے دى.«فلما خلا ناداه يا محمد! قل بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ۝ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝ حتى بلغ: وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ۝»(۲)

خوامام بيهقى رحمه الله فرمائى چه «فهذا منقطع» (۳)بله دا چه دا د صحيح روايت معارض دے.(۴) نوځکه دے ته څه اعتبار نشته.

د عطاء خراسانى نه منقول دى.چه دسورة مدثرنه وړاندے ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُزَّمِّلُ ۝﴾ نازل شوے دے.(۵) خوحافظ رحمه الله فرمائى.چه عطاء ضعيف دے.(۶)

**په ﴿ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ﴾ به څنګه عمل کولې شى؟** د سورة علق په اولنى آيت کښے ﴿ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ۝﴾ راغلے دے.اوپه دے کښے حکم ورکړے شوے دے.چه د الله تعالى نوم واخله او لوله.بيا د کوم نوم نه به شروع کوى.په دے کښے ددے څه بيان نشته.

علامه ابوالقاسم سهيلى رحمه الله فرمائى.چه روستو ددے بيان په آيت کريمه ﴿بِسۡمِ ٱللَّهِ مَجۡرٜىٰهَا وَمُرۡسَىٰهَآۚ﴾ (۷)کښے راغلے دے.ددے نه پس بيا بل آيت ﴿إِنَّهُۥ مِن سُلَيۡمَٰنَ وَإِنَّهُۥ بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ۝﴾ (۸)نازل شو.او بيا ددے نه پس مستقل حضرت جبريل عليه السلام د هر سورت په اول کښے بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ وئيلو.(۹) والله اعلم.

**بسم الله د قرآن جزء دى که نه؟** : **دعالمانو مذاهب** بسم الله د قرآن جزء دے که نه؟ په دے کښے دعالمانو رحمهم الله درے مذاهب دى

(۱) تفسير كشاف (۷۷۵/٤) تفسير سورة العلق)_

(۲) دلائل النبوة للبيهقى (۱۵۸/۲) باب أول سورة نزل من القرآن)_

(۳) پورتنئ حواله)_

(۴) فتح البارى (۷۱۹/۸) كتاب الفسير.تفسير سورة العلق)_

(۵) فتح البارى(۶۷۸/۸) كتاب الفسير.تفسير سورة المدثر.باب وربک فكبر)_

(۶) پورتنئ حواله)_

(۷) هود :٤١)

(۸) النمل :۳۰)_

(۹) الروض الأنف للسهيلى(۱۵٤/۱)_

① دامام مالك او بعضے احنفو رحمهم الله قول دا دے چه په سورة نمل كښے چه كومه بسم الله راغلے ده ﴿إِنَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ (١) دا خو په اتفاق سره د قرآن جزء دے او په بل ځائے كښے جزء نه دے. دامام احمد رحمه الله بعضے ملګرو دا د امام احمد رحمه الله مذهب ګرځولے دے او يا ئے د هغوى نه د روايت په طور نقل كړے دے. (٢)

② دامام شافعي رحمه الله اود هغه د موافقينو رحمهم الله قول د دے مخالف دے چه بسم الله د هر سورة يا آيت تامه دے او يا بعضے آيت دے.

③ دريم قول چه بسم الله د قرآن جزء دے خو د يو سورت جزء نه دے. دقرآن د جزئيت په حيثيت سره دا وئيلى شى. (٣) نبى كريم ﷺ دا لوستے ده. دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دے فرمائى چه «بينا رسول الله ﷺ ذات يوم بين أظهرنا إذ اغفى إغفاءة ثم رفع رأسه متبسماً فقلنا ما أضحكك يا رسول الله؟ قال أنزلت على انفاً سورة فقرأ ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ ۝ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ۝ إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ﴾

دا د عبدالله بن مبارك، داود ظاهرى، اود دوى د متبعينو رحمهم الله قول دے. دامام احمد رحمه الله نه هم دا منصوص دى. په احنافو رحمهم الله كښے يو جماعت ددے قائلين دى. (٤) علامه زيلعي رحمه الله فرمائى. «وذكر ابوبكر الرازى رحمه الله أنه مقتضى مذهب أبي حنيفة رحمه الله وهذا قول المحققين من أهل العلم فإن فى هذا القول الجمع بين الأدلة وكتابتها سطراً مفصلاً عن السورة تؤيد ذلك» (٥)

**تسميه د سورة فاتحه جزء دي كه نه؟** بيا په دے كښے اختلاف دے چه بسم الله د سورة فاتحه جزء دے كه نه؟

① دامام شافعي رحمه الله په نيز خو تسميه ددے جزء دے او دامام مالك، امام ابوحنيفه رحمهما الله اود راجح قول مطابق د امام احمد رحمه الله په نيز ددے جزء نه دے.

② دامام احمد رحمه الله نه يو روايت كوم چه مرجوح دے. دا منقول دے چه دا د سورة فاتحه جزء دے دبل سورة نه دے. (٦)

**په مانځه كښې د تسميه دقرات حكم** په مانځه كښے ددے د قرات څه حكم دے. په دے كښے هم درے اقوال دى.

① يو قول دا دے چه واجب ده. لكه څنګه چه د سورة فاتحه لوستل واجب دى. دا د امام شافعي رحمه الله مسلك دے. اودامام احمد رحمه الله يو روايت اود محدثينو رحمهم الله ديوے ډلے قول دے.

---

(١) النمل: ٣٠)_
(٢) نصب الراية (٣٢٧/١) أقوال العلماء فى البسملة)_
(٣) پورتنۍ حواله)_
(٤) نصب الراية (٣٢٧/١)_
(٥) پورتنۍ حواله)_
(٦) نصب الراية (٣٢٧/١، ٣٢٨)_

② دویم قول دا دے چه په مانځه کښے تسمیه مکروه ده.که جهراً وی اوکه سراً دا قول د امام مالك رحمه الله نه منقول دے.

③ دریم قول دا دے چه دا جائز ده بلکه صرف جائز نه بلکه مستحب ده دا امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دے اود امام احمد رحمه الله اواکثرو محدثینو مشهور قول دے (۱)

**په تسمیه کښې جهر مسنون دې که نه؟** د تسمیه د قرات په صورت کښے جهر مسنون دے که سراً په دے کښے هم درے اقوال دی.

① د امام شافعی رحمه الله او دهغوی د موافقینو رحمهم الله مذهب دا دے چه جهر مسنون دے.

② دامام ابوحنیفه رحمه الله جمهورو فقهاؤ او د امام شافعی رحمه الله د بعضے ملګرو په نیز جهر مسنون نه دے.

③ داسحاق بن راهویه او ابن حزم رحمهما الله په نیز جهراً او سراً دواړه برابر دی چه کوم غواړے اختیار دے کړی.(۲)

دا ټول تفصیلات د «الشئ بالشئ یذکر» په تقاضا سره دلته ذکر کړے شول.اصل خبره دا روانه وه.چه د بدءالوحی د مبحوث عنه حدیث کښے د سورة علق ابتدائی آیتونه نازل شوی دی.دهغے سره تسمیه موجود نه وه.ددے نه معلومه شوه.چه تسمیه د سورة جزء نه دے.خکه چه په دے کښے د ..اسم رب.. نه د لوستلو حکم دے.خو ددے بیان روستو نازل شوے دے.
.بسم الله. د سورة فاتحه یا نورو سورتونوجزء دے که نه؟په هر صورت کښے دلائل کوم دی.د مسئلے اختلاف خو بیان شوے دے.اوس ئے دلائل واورئ.

**دلائل قائلین عدم جزئیت تسیمه**: کوم حضرات چه دا وائی.چه تسمیه نه د سورة فاتحه جزء دے اونه د بل سورة.د هغوی دلائل لاندینی دی.

۱ **اولنې دلیل**: دحضرت انس بن مالك رضی الله عنه حدیث دے.«أن النبی صلی الله علیه وسلم وأبا بکر وعمر،کانوا یفتتحون الصلاة بالحمد لله رب العلمین»(۳)

هم دا حدیث امام مسلم رحمه الله هم په خپل صحیح کښے تخریج کړے دے.د هغے الفاظ دا دی.«صلیت خلف النبی صلی الله علیه وسلم د ابی بکر،وعمر وعثمان،فکانوا یستفتحون الصلاة بالحمد لله رب العلمین،لا یذکرون ﴿بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ﴾ فی أول قراءة ولا فی آخرها»(۴)

هم د حضرت انس رضی الله عنه نه په مسلم کښے یو روایت دے.«صلیت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم وأبی بکر،وعمر،وعثمان رضی الله عنهم فلم أسمع أحداً منهم یقرأ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ»(۵)

---

(۱) نصب الرأیة (۳۲۸/۱)_
(۲) پورتنۍ حواله)_
(۳) صحیح بخاری (۱۰۳/۱) کتاب الأذان باب ما یقرأ بعد التکبیر)_
(۴) صحیح مسلم (۱۷۲/۱) کتاب الصلاة باب حجة من قال لا یجهر بالبسملة)_
(۵) پورتنۍ حواله)_

په يو سند کښې دا الفاظ راغلي دی ((فلم أسمع أحداً منهم يجهر بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ))(١)
د مسند احمد په يو روايت کښې د ((وکانوا لايجهرون ببسم الرحمن الرحيم)) الفاظ منقول دی.(٢)
طبراني په معجم کبير او اوسط کښې دا الفاظ نقل کړی دی.((أن رسول الله ﷺ کان يسر ببسم الرحمن الرحيم وابوبکر وعمر رضي الله عنهم قال الهيثمي رجاله موثوقون))(٣)
د مسند احمد په يو سند کښې دی. د((أن النبي ﷺ وابابکر وعمر وعثمان رضي الله عنهم کانوا يستفتحون القرآن بالحمد لله رب العالمين)) الفاظ دی.(٤)

په دے حديث کښې قابل توجه خبره دا ده. چه په دے کښې ((يستفتحون القرآن)) دی. حالانکه په صحيح رواياتو کښې د ((القراءة)) لفظ دے. حافظ بغدادی رحمه الله د دے آخری سند تصحيح کوی. اوفرمائی. چه دلته لفظ محکم دے اوباقی الفاظ متشابه دی. هغوی فرمائی. چه د قتاده رحمه الله حفاظو شاګردانو به هم دا نقل کولو. او دحضرت انس رضي الله عنه نه نقل کونکو. د حضرت قتاده رحمه الله ملګرو به هم دا نقل کولو. (٥)

اوهغوی د ((يستفتحون القرآن بالحمد لله)) معنی دا بيانوی. چه قرات به د سورة الحمد نه شروع کيږی. اوس د سورة الحمد نه د شروع کولو دپاره دا ضروری نه ده. چه د ..الحمد.. نه شروع اوشی. بلکه چه د کوم ځائے نه د سورة شروع کيږی. دهغه ځائے نه به قرات شروع کيږی. يعنی د شوافعو رحمهم الله په نيزد سورة ابتداء د تسميه نه ده. نو د تسميه نه به شروع کيږی.
خو علامه زيلعی رحمه الله فرمائی. چه د دے حديث باقی الفاظ چه کوم نقل کولی شی. هغه د دغه لفظ منافی نه دی. کوم چه ته محکم ګرځوے. نو د ترجيح د طريقے اختيارولو څه ضرورت نشته.(٦)
په اصل کښې حضرت انس بن مالک رضي الله عنه چه د کوم څيز نفی کوی. نو هغه جهر دے. يعنی د نفس قرات هغه نفی څنګه کولے شی. حالانکه هغوی په خپله فرمائی. حالانکه هغوی په خپله نقل کوی. ((لم أسمع أحداً منهم يقرأ بسم الرحمن الرحيم)) او په بعضے رواياتو کښې د ((فلم أسمع أحداً

---

(١) سنن نسائی (١٤٤/١) کتاب الإفتتاح باب ترک الجهر ببسم الرحمن الرحيم)_
(٢) مسند احمد (١٧٩/٣)_
(٣) مجمع الزوائد(١٠٨/٢) کتاب الصلاة باب فی بسم الرحمن الرحيم)_
(٤) مسند احمد(١٦٨/٣)_
(٥) نصب الراية (٣٣٠/١)_
(٦) نصب الراية(٣٢٠/١)_

منهم يجهر بسم الرحمن الرحيم» الفاظ دى په بعضو كښې «وكانوا لا يجهرون ببسم الرحمن الرحيم» الفاظ دى اوپه بعضو كښې صراحة د ..يسر.. لفظ راغلے دے.(۱)

ددے نه ښكاره شوه چه په دے ټولو الفاظو كښې دحضرت انس رضي الله عنه نه كومه نفى نقل كړلے شى اوحضرت انس رضي الله عنه چه د كوم څيز نفى كوى هغه جهر دے هم دجهر نه هغوى نفى كړلے شى په مستقل قرات كښې خو نفى او اثبات كيدے نشى مګردا چه د تكبير تحريمه نه پس د قرات نه وړاندے سكوت نه وى.حالانكه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې تصريح ده.چه نبى كريم ﷺ به د تكبير نه پس سكوت كولو.حضرت ابوهريره رضي الله عنه تپوس كوى.«بأبي أنت وأمي يارسول الله إسكاتك بين التكبير وبين القراءة ما تقول؟ قال: أقول...»(۲)

خطيب بغدادى رحمه الله چه دا څه فرمائى.چه ددے نه ابتداء بالسورة ده حافظ زيلعى رحمه الله دا رد كړے ده.هغوى فرمائى.چه دا خويو بديهى څيز دے.ښكاره خبره ده چه د قرات ابتداء د سورة فاتحه نه كيږى.نو ددے د ذكر كولو څه ضرورت دے دا خو داسے ده لكه چه داسے اووئيلى شى.چه د صبا مونځ دوه ركعته دى.اودماسپخين څلور.اودا چه د ركوع مقام د سجدے نه وړاندے دے.اوتشهد دجلوس نه پس ده. دا ټولے خبرے دومره بديهى دى.چه هرعام او خاص ئے پيژنى.د داسے څيزونو د نقل كولو څه فائده نشته.(۳)

اوكه ابتداء بالسورة مراد وه.نو داسے به وئيلى شو.«كانوا يفتحون القراءة بأم القرآن» يا ،،بفاتحة الكتاب،، يا بسورة الحمد،، څكه چه دا ټول ددے سورة نومونه دى.«الحمد لله رب العالمين» د دے سورت نوم نه دے.دا نوم نه خو د رسول الله ﷺ نه منقول دے.اونه دصحابو رضي الله عنهم او نه د تابعينو نه.اونه د يو داسے كس نه چه دهغه خبره قابل احتجاج وى.(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله په دے باندے اعتراض كړے دے.اوفرمائى.چه «الحمد لله رب العالمين» د سورت فاتحه په نومونو كښې يو نوم دے.هغوى ددے خبرے په دليل كښې دحضرت ابوسعيد بن المعلى رضي الله عنه روايت پيش كوى.هغوى فرمائى.«كنت أصلي في المسجد فدعاني رسول الله ﷺ فلم أجبه، فقلت يا رسول الله إني كنت أصلي، فقال ﷺ ألم يقل الله ﴿اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ﴾ ثم قال لي: لأعلمك سورة هي أعظم السور في القرآن قبل أن تخرج من المسجد، ثم أخذ بيدي، فلما أراد أن يخرج قلت له: ألم تقل: لأعلمنك سورة هي أعظم سورة في القرآن؟ قال: ﴿الحمد لله رب العالمين﴾ هي السبع المثاني والقرآن العظيم الذي أوتيته»(۵)

---

(۱) دا ټولو احاديث سره دتخريج نه وړاندے ذكر شوے دى۔
(۲) صحيح بخارى (۱۰۳/۱) كتاب الأذان باب ما يقرأ بعد التكبير.صحيح مسلم (۲۱۹/۱) كتاب المساجد باب ما يقال بين تكبيرة الإحرام والقراءة)
(۳) نصب الراية (۳۳۱/۱)۔
(۴) پورتنئ حواله۔
(۵) صحيح بخارى كتاب التفسير باب ماجآء في فاتحة الكتاب رقم. ۴۴۷۴)۔

حافظ رحمه الله فرمائی چه په دے حدیث پاك كښے سورة فاتحه ته «الحمدلله رب العالمين» ونیلے شوے دے اوپه دے سره دحضرت انس رضی الله عنه په حدیث كښے چه كوم الفاظ وارد شوی دی.چه «يفتحون الصلاة بالحمدلله رب العالمين» دی په دے كښے د . .سورة. .كوم تاویل شوے دے دهغے تائید كیږی.(١)

خو دحافظ رحمه الله په دے حدیث باندے استدلال ضعیف دے.خكه چه په دے كښے دا احتمال شته چه «الحمدلله رب العلمين» تر د سورت د آخره پورے وی.یعنی دا د «من باب تسمية السورة بالحمدلله رب العلمين» خنے دے.بلكه «من باب قراءة أول الآية والإشارة إلى باقيها» خنے دے.خكه نے ددے سره اوفرمائیل.چه «هى السبع المثانى» والله اعلم.

امام دارقطنی رحمه الله په خپل سنن كښے د حضرت انس رضی الله عنه نه یو روایت نقل كړے دے.په هغے كښے د «استفتح بأم القرآن» تصریح ده.(٢) ددے نه ددے خبرے تائید كیږی.چه دحضرت انس رضی الله عنه باقی روایات چه په هغے كښے د قرات ابتداء د «الحمد لله رب العالمين» نه راغلے ده.نو په هغے كښے هم دا سورة مراد دے.آیت ترے نه دے مراد.

خو حافظ زیلعی رحمه الله فرمائی.چه دا روایت بالمعنی دے.اوپه اصل كښے الفاظ هم هغه دی.كوم چه مونږ مخكښے دامام مسلم په حواله سره ذكر كړی دی.«فكانوا يستفتحون بالحمدلله رب العالمين لايذكرون بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ فى أول قراءة ولا فى آخرها»(٣)

**دویم دلیل** چه تسمیه جزء نه منی.نو دهغوی دویم دلیل دحضرت ابوسعید بن المعلی رضی الله عنه هغه حدیث دے.كوم چه مونږ مخكښے ذكر كړے دے.په هغے كښے هغوی د اعظم سورت نشاندهی كړے ده اوفرمائی.چه «الحمدلله رب العالمين» او بیا فرمائی.چه «هوالسبع المثانى» كه بسم الله جزء دے.نود سبع په ځائے به ثمانی ونیل پكار وو.خكه چه په سورت فاتحه كښے د بسم الله نه بغیر اووه آیاتونه دی.(٤)

**دریم دلیل** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دی.دوی فرمائی.«سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: قال الله تعالى: قسمت الصلاة بينى وبين عبدى نصفين، ولعبدى ما سأل فإذا قال العبد، الحمد لله رب العالمين، قال الله تعالى: حمدنى عبدى، وإذا قال: الرحمن الرحيم، قال الله تعالى: أثنى على عبدى، فإذا قال

---

(١) فتح البارى(١٥٨/٨) كتاب التفسير. تفسيرسورة الفاتحة باب ما جآء فى فاتحة الكتاب)_

(٢) د هغے الفاظ دا دی.((كنا نصلى خلف رسول الله ﷺ وأبى بكر وعمروعثمان رضی الله عنهم فكانوا يستفتحون بأم القرآن فيما يجهر فيه)_

(٣) نصب الراية (٣٣١/١)_

(٤) نصب الراية(٣٢٤/١)_

مالك يوم الدين، قال الله تعالى، مجدنى عبدى، وقال مرة فوض إلى عبدى، فإذا قال إياك نعبد وإياك نستعين، قال الله تعالى: هذا بينى وبين عبدى ، ولعبدى ما سأل، فإذا قال إهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم ولا الضالين، قال الله تعالى: هذا العبدى ولعبدى ما سأل..»(۱)
په دے حديث کښے الله تعالى فرمائى چه ما سورة فاتحه په خپل مينځ او د خپل بنده په مينځ کښے نيم په نيمه تقسيم کړے ده. کله چه بنده وائى.«الحمد لله رب العالمين» نو الله تعالى فرمائى.«حمدنى عبدى» معلومه شوه. چه بسم الله د سورة فاتحه جزء نه دے. ګنى په دے حديث کښے چه د تقسيم کوم تقرير شوے دے. هغه به څنګه صحيح وى که بسم الله جزء وے. نو په دے صورت کښے دا سے وئيل پکار وو.«فإذا قال العبد، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ»
حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى چه دا حديث په دے کښے صريح دے چه بسم الله د سورة فاتحه جزء نه دے. چه د څه تاويل ګنجائش په کښے نشته. په دے باب کښے د دے نه اوچت ثبوت نشته.(۲)
**په دې دليل باندې اعتراض او دهغې جواب** خو په دے حديث باندے دا اعتراض شوے دے چه ددے حديث مدار په علاء بن عبدالرحمن باندے دے. او عالمانو په ده باندے کلام کړے دے
يحيى بن معين رحمه الله فرمائى.«مضطرب الحديث ليس حديثه بحجة»(۳)
ددے جواب دا دے چه امام احمد. امام نسائى او امام ترمذى رحمهم الله وغيره ددوى توثيق کړے دے. امام احمد رحمه الله فرمائى.«ثقة لم أسمع أحداً ذكره بالسوء»(۴)
امام نسائى رحمه الله فرمائى.«ليس به بأس»(۵)
امام ترمذى رحمه الله فرمائى.«هو ثقة عند أهل الحديث»(۶)
بيا عثمان بن سعيد رحمه الله دخپل استاذ يحيى بن معين رحمه الله نه د دوى په باره کښے نقل کړى دى. چه هغوى فرمائيل«ليس به بأس» عثمان رحمه الله فرمائى. ما تپوس او کړلو. چه «هو أحب إليك أو سعيد المقبرى؟» نو هغوى او فرمائيل.«سعيد اوثق والعلاء ضعيف»(۷)

---

(۱) صحيح مسلم(۱/۱۶۹، ۱۷۰) كتاب الصلاة باب وجوب قراءة الفاتحه فى كل ركعة)_
(۲) التمهيد لمافى الموطاء من المعانى والأسانيد(۲۰/۲۱۵) حديث ثان للعلاء بن عبدالرحمن)-
(۳) تهذيب الكمال (۲۲/۵۲۲) وميزان الإعتدال (۳/۱۰۲)_
(۴) تهذيب الكمال (۲۲/۵۲۲) وميزان الإعتدال(۳/۱۰۲)_
(۵) پورتنى حواله)_
(۶) تهذيب الكمال (۸/۱۸۷)_
(۷) ميزان الإعتدال(۳/۱۰۲) وتهذيب الكمال (۸/۱۸۷)_

دلته چه علاء ضعيف گرځولې شوے دے نو ددے نه مطلقاً ضعف مراد نه دے بلکه تضعيف نسبتي مراد دے يعني د سعيد په مقابله او دهغه په نسبت کښې ضعيف دے [1] گنې چه اول ئے «ليس به بأس» اووئيل او په آخر کښې ئے ضعيف اوگرځول په دے کښې به تعارض راشي
ددے حديث په سند باندے دويم اعتراض دا شوے دے چه علاء رحمه الله مضطرب الحديث دے هم دا وجه ده چه هغوی کله خو دا حديث د خپل پلار نه نقل کوی او کله د ابوالسائب نه اوکله د دواړو نه
خو ددے اعتراض جواب دا دے چه په اصل کښې هغوی دا حديث د دواړو نه اوريدلے دے خکه کله يو ذکر کړی اوکله دواړه ذکرکړی [2] امام مسلم رحمه الله دا درے واړه صورتونه ذکر کړی دی.[3] نو دا اضطراب اضطراب قادح نه دے

**يو اشکال او دهغې حل** دلته يو اشکال دا دے چه هم ددے حديث په بعضے طرقو کښې ..بسم الله.. ذکر هم شته.د دارقطني په روايت کښې دی.«إني قسمت الصلاة بيني وبين عبدي نصفين فنصفها له،يقول عبدي: إذا افتتح الصلاة بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ،فيذ كرني عبدي،ثم يقول :الحمد لله رب العالمين»[4]
ددے جواب دا دے.چه په دے سند کښې عبدالله بن زياد بن سمعان دے.امام دارقطني رحمه الله په خپله ددے روايت نقل کولو نه پس دده په باره کښې ليکی.«متروك الحديث»او وړاندے وائي.چه د دے حديث د علاء بن عبدالرحمن نه نقل کونکو کښې امام مالك.ابن جريج.روح بن القاسم.سفيان بن عيينه ابن عجلان او حسن بن حر رحمهم الله غوندے ثقات دی.په دوی کښې هيڅ چا د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اضافه نه ده کړے.«واتفاقهم على خلاف ما رواه ابن سمعان أولى بالصواب»[5]
دا ابن سمعان په اتفاق د محدثينو رحمهم الله سره ناقابل احتجاج دے.د فن امامانو دده تکذيب کړے دے.مالك رحمه الله فرماني.«كان كذابا» امام يحيى بن معين رحمه الله فرماني.«كان كذابا»

---

(١) تهذيب التهذيب (١٨٧/٨)_
(٢) الكامل لابن عدى (٢١٨/٥) رمق الترجمة (١٣٧٢/٤٠٤)_
(٣) صحيح مسلم (١٧٠/١) كتاب الصلاة باب وجوب قراة الفاتحة فى كل ركعة)_
(٤) سنن دارقطني (٣١٢/١) كتاب الصلاة باب وجوب قراءة بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ.فى الصلاة والجهربها وإختلاف الروايات فى ذلک رقم.٤٥)_
(٥) پورتنئ حواله (حافظ زيلعي رحمه الله فرماني.چه وذكره(اى دارقطني) فى علله.وأطال فيه الكلام. و ملخصه أنه رواه عن العلاء جماعة أثبات يزيدون على العشرة ولم يذكر أحد منهم فيه البسملة وزادها ابن سمعان نصب الراية (٣٤٠/١)_

ابن حبان رحمه الله فرمائى: ((كان يروى عمن لم يره ويحدث بما لم يسمع)) امام ابوداود رحمه الله فرمائى. ((متروك الحديث، كان من الكذابين)) [1]

**څلورم دليل** امام مسلم تعليقاً په خپل صحيح كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث نقل كړے دے دوى فرمائى: ((كان رسول الله ﷺ إذا نهض من الركعة الثانية استفتح القراءة بالحمد لله رب العالمين ولم يسكت)) [2]

داحديث امام طحاوى رحمه الله په ،،شرح معاني الآثار،، [3] كښې امام حاكم په مستدرك كښې [4] او امام بيهقى رحمه الله په خپل سنن كبرى كښې [5] موصولاً په صحيح سند سره نقل كړے دے.امام حاكم دا صحيح على شرط الشيخين ګرځولے دے . اوحافظ ذهبى رحمه الله دهغه تصديق كړے دے. [6]

امام طحاوى رحمه الله فرمائى.دا حديث دد ے خبرے دليل دے.چه دا آيت د سورة فاتحه جزء نه دے كه دسورة فاتحه جزء وے.نو د سورة فاتحه په شان به ئے دد ے قراءت هم كولو. [7]

**پنځم دليل**: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى: ((كان رسول الله ﷺ يستفتح الصلاة بالتكبير والقراءة بالحمد لله رب العالمين، وكان إذا ركع لم يشخص رأسه ولم يصوبه... وكان يختم الصلاة بالتسليم)) [8]

حافظ ابن حجر رحمه الله په التلخيص الخبير كښې دحافظ ابن عبدالبر رحمه الله په خوالے سره ليكلى دى.چه هغوى فرمائى.دا حديث مرسل دے.ځكه چه ابوالجوزاء رحمه الله دا حديث د حضرت عائشے رضي الله عنها نه دے اوريدلے. [9]

حافظ زيلعى رحمه الله فرمائى.چه امام مسلم دا حديث په خپل كتاب كښے راوړے دے .دا زمونږ دپاره كافى ده.او د ابوالجوزاء نوم اوس بن عبدالله الربعى دے.دا ثقه راوى دے د حضرت عائشے رضى الله نه د دوى د سماع انكار ممكن نه دے . اصحاب اصول سته په ده باندے احتجاج كړے دے. [10]

---

(١) ددے ټولو اقوالو دپاره اوګورئ (نصب الراية(١/٣٤٠)_

(٢) (١٣٨/١) كتاب الصلاة باب ما يقال بين تكبيرة الإحرام والقراءة)_

(٣) (١٣٨/١) كتاب الصلاة باب قراءة بسم الله الرحمن الرحيم، فى الصلاة)_

(٤) (٢١٥/١، ٢١٦) كتاب الصلاة باب إذا نهض فى الثانية إستفتح بألحمد لله رب العالمين ولم يسكت)_

(٥) (١٩٦/٢) كتاب الصلاة باب فى سكتتى الإمام)_

(٦) تلخيص المستدرك للذهبى المطبوع مع المستدرك (٢١٦/١)_

(٧) شرح معانى الآثار(١٤٨)_

(٨) صحيح مسلم (١٩٤/١) كتاب الصلاة باب ما يجمع صفة الصلاة)_

(٩) التلخيص الخبير(٢١٧/١) كتاب الصلاة باب صفة الصلاة)_

(١٠) نصب الراية(٣٣٤/١)_

بيا د مصنف عبدالرزاق رحمه الله په روايت كښے د حضرت عائشے رضي الله عنها نه د دوى دسماع تصريح ده.((عن أبي الجوزاء قال: سمعت عائشة رضي الله عنها تقول: كان رسول الله ﷺ يفتتح صلاته بالتكبير ويختتمها بالتسليم))(١)نودا نشى ونيلے چه امام مسلم په خپل مسلك باندے اعتماد كوى.او صرف معاصرت ئے د اتصال دپاره كافى گنړلے دے

په دے حديث باندے دويم اعتراض دا شوے دے.چه هم د حضرت عائشے رضي الله عنها نه د جهر روايت منقول دے.نوپه دواړو حديثونو كښے تعارض راغلو.

حافظ زيلعى رحمه الله فرمائى.چه دحضرت عائشے رضي الله عنها جهربالبسمله ثابت نه دے.اوكوم روايت چه مروى دے.په هغے كښے حكم بن عبدالله بن سعد دے . ((وهوكذاب دجال لا يحل الإحتجاج به))(٢)

شپږم دليل عن قيس بن عباية عن ابن عبدالله بن مغفل رضي الله عنه قال سمعني أبي وأنا في الصلاة، بسم الرحمن الرحيم، فقال أي بني محدث، إياك والحدث، قال: ولم أر احداً من أصحاب رسول الله ﷺ كان أبغض إليه الحدث في الإسلام، يعني منه، قال: وقد صليت مع النبي ﷺ ومع أبي بكر ومع عمر ومع عثمان رضي الله عنهم، فلم أسمع أحداً منهم يقولها: فلا تقلها، إذا أنت صليت، فقل: الحمدلله رب العالمين))(٣)

امام ترمذى رحمه الله ددے حديث تحسين كړے دے.اوفرمائيلى ئے دى.د نبى كريم ﷺ اكثر اهل علم صحابو رضي الله عنهم په دے عمل باندے دے.چه په كښے خلفاء راشدين رضي الله عنهم او ډيرتابعين رحمهم الله هم دى.

امام نووى رحمه الله فرمائى.د حديث حافظانوابن خذيمه،ابن عبدالبر،اوخطيب رحمهم الله وغيره دا حديث ضعيف گرځولے دے.ځكه چه په دے كښے ابن عبدالله بن مغفل مجهول دے.اوامام ترمذى رحمه الله چه دے ته حسن ونيلى دى.نودوى په دے باندے انكار كړے دے.(٤)

---

(١) مصنف عبدالرزاق (٧٢/٢) كتاب الصلاة باب من نسى تكبيرة الإستفتاح)_

(٢) نصب الرأية (٣٤٤/١) د حكم بن عبدالله پن سعد ايلى په باره كښے امام احمد رحمه الله فرمائى ((أحاديثه كله موضوعة)) ابوحاتم رحمه الله اوسعدى فرمائى.((كذاب)) د امام نسائى،دارقطنى اويوجماعت نه منقول دى.چه (متروك الحديث)) اوگورئ ميزان الاعتدال (٥٧٢/١) رقم الترجمة (٢١٨٠) د سعدى رحمه الله نه هم منقول دى.((الحكم بن عبدالله بن سعد الايلى جاهل كذاب وأمرالحكم أوضح من ذلك)) الكامل لابن عدى (٢٠٢/٢) رقم الترجمة (٣٨٩)_

(٣) سنن ترمذى أبواب الصلاة باب ماآء فى ترك الجهر ببسم الرحمن الرحيم رقم.٢٤٤) وسنن نسائى (١٤٤/١) كتاب الإفتتاح باب ترك الجهر ببسم الرحمن الرحيم.وسنن ابن ماجه كتاب إقامة الصلاة والسنة فيهما باب إفتتاح القراءة رقم ٨١٥)_

(٤) نصب الرأية(٣٣٢/١)_

ددے جواب دا دےچه ابن عبدالله بن مغفل مجهول نه دے.په مسند احمد (١)او معجم طبراني(٢) كښے د دوى د نوم تصريح راغلے ده.دے يزيد بن عبدالله بن مغفل دے.
امام بيهقى رحمه الله د دے حديث ذكر كولونه پس دوه اعتراضونه كړى دى.يو داچه ددے حديث په راويانو كښے يو .ابونعامه قيس بن عباية متفرد دے.دويم دا چه د ابونعامه او ابن عبدالله بن مغفل نه امام بخاري رحمه الله اوامام مسلم رحمه الله څه تخريج نه دے كړے.اونه ئے په دوى باندے احتجاج كړے دے.(٣)
خوحقيقت دا دےچه دا دواړه اعتراضونه ټيك نه دى.
څكه چه په دے حديث كښے ابونعامه متفرد نه دے.بلكه طبراني رحمه الله چه په خپل معجم كښے كوم روايات نقل كړى دى.په هغے كښے عبدالله بن بريده رحمه الله او ابوسفيان بن طريف بن شهاب رحمه الله د ابو نعامه متابعت كړے دے.(٤)
په دوى كښے عبدالله بن بريده رحمه الله خو ثقه دے.اوابوسفيان اګرچه متكلم فيه دے خو د ده هغه روايات معتبر دى.د كومو چه متابعات وى(٥)
اوتركومے پورے چه د دويم اعتراض تعلق دے.چه دصحيحينومصنفينو د دوى د څه روايت تخريج نه دے كړے.نومونږ دا نه منو.چه د حديث دصحت دپاره د صحيحينوتخريج ضرورى دے.(٦)
على سبيل التسليم مونږ دا وايو.چه دا حديث حسن دے.اوحسن حديث قابل احتجاج وى.بيا خاص كر چه دهغے شواهد او متابعات هم موجود وى.والله اعلم
**اووم دليل** حضرت ابوهريره رضي الله عنه دنبى صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى.چه هغوى فرمائى:«إن سورة من القرآن ثلاثون آية شفعت لرجل حتى غفرله،وهى سورة تبارك الذى بيده الملك» رواه احمد(٧) وأصحاب السنن الأربعة(٨)والحاكم وقال:صحيح الإسناد وأقره الذهبى(٩)

---

(١) اوګورئ (٤/٨٥)_
(٢) قاله الزيلعي فى نصب الراية (١/٣٣٢)_
(٣) نصب الراية (١/٣٣٣)_
(٤) پورتنئ حواله)_ .
(٥) پورتنئ حواله)_
(٦) پورتنئ حواله)_
(٧) مسند احمد (٢/٢٩٩، ٣٢١)_
(٨) سنن ابى داود كتاب الصلاة باب عدد الآى رقم الحديث (١٤٠٠) وسنن ترمذى أبواب فضائل القرآن باب ماجاء فى فضل سورة الملك.رقم (٢٨٩١) وسنن ابن ماجة فى كتاب الأدب باب ثواب القرآن رقم ٣٧٨٦) وسنن كبرى للنسائى كتاب التفسير.وعمل اليوم والليلة(كما فى تحفة الأشراف للمزى) رحمه الله ١٠/١٢٩)
(٩) مستدرك حاكم (١/٥٦٥) كتاب فضائل القران باب ذكر فضائل سور وآى متفرقة (٢/٤٩٧، ٤٩٨) كتاب التفسير .تفسير سورة الملك)_

حافظ ابن حجر رحمه الله په..التخليص الخبير.. كښې ليكلي دى((وأعله البخارى فى التاريخ الكبير بأن عباساً الجشمي لايعرف سماعه من أبي هريرة))[1] يعنى امام بخارى رحمه الله دا حديث معلول گرځولې دے.ځکه چه د عباس جشمي سماع د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه ثابته نه ده.[2] خوحقيقت دا دے چه د عباس جشمي رحمه الله په باره كښې چا كلام نه دے كړے.[3] ابن حبان رحمه الله دوى په ثقاتو كښې ذكر كړے دے.[4]

بيا دامام بخارى رحمه الله دا اعلال د هغوى د مسلك مطابق خو ټيك دے.خو دامام مسلم رحمه الله په مسلك دا حديث متصل الاسناد دے.ځکه چه د دوى د حضرت عثمان رضي الله عنه نه سماع ثابته ده.[5] نود حضرت ابوهريره رضي الله عنه معاصرت ثابت شو.او د امام مسلم رحمه الله په نيز معاصرت كافى دے.د لقاء ثبوت ضرورى نه دے.

اوكه دا اومنلے شى چه دلته انقطاع ده.نو بيا هم څه قباحت نشته.ځکه چه د دے يو شاهد په معجم طبرانى كښې په ((ثابت عن انس رضي الله عنه)) سند سره مروى دے.[6] چه سند ئې صحيح دے.[7]

**اتم دليل** اتم دليل دحضرت عائشے رضي الله عنها مبحوث عنه حديث دے.کوم چه د نزول ..اقرء.. په سلسله كښې امام بخارى رحمه الله دلته اودغه شان په نورومقاماتو كښې تخريج كړے دے.[8] ددے نه معلومه شوه.چه تسميه د سورت جزء نه دے.

**تنبيه**: تراوسه پورے چه دلته کوم دلائل ذكر شول.په دے كښې د آخرى دوو دلائلونه سوا باقى ټول دلائل دا خبره ثابتوى.چه تسميه د سورت فاتحه جزء نه دے.اوآخرى دوه دلائلونه خبره په پوهه كښې راځى.چه تسميه دهيڅ سورت جزء نه دے.

---

(۱) التلخيص الخبير(۲۳۴/۱) رقم ۳۴۹) كتاب الصلاة باب صفة الصلاة)_

(۲) امام بخارى په تاريخ كبير په کوم ځائے كښې د دوى ذكر ليكلے دے هلته ددے خبرے څه تصريح نشته.چه ددوى د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه سماع ثابته نه ده.بلكه دا ئے ذكر كړى دى.چه دوى د حضرت عثمان رضي الله عنه نه روايت کوى.او دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په باره كښې مكمل سكوت دے آيادامام بخارى رحمه الله سكوت دعدم سماع ثبوت دے؟ اوګورئ تاريخ كبير(۴/۷) رقم الترجمة۷_

(۳) نصب الراية(۳۳۵/۱)_

(۴) كتاب الثقات(۳۵۹/۵)_

(۵) كما فى التاريخ الكبير(۴/۷) رقم الترجمة۷_

(۶) عن أنس قال:قال رسول الله ﷺ سورة من القرآن ما هى إلا ثلاثون آية.خاصمت عن صاحبها حتى أدخلته الجنة وهى سورة تبارك ..رواه الطبرانى فى الصغيروالأوسط ورجاله رجال الصحيح .كذا فى مجمع الزوائد للهيثمى رحمه الله ) ۱۲۷/۷) كتاب التفسيرسورة تبارك.. اوګورئ حافظ ابن حجر رحمه الله په تلخيص الخبير (۲۳۴/۱) كښې د ذكر شوى حديث د حواله دپاره د معجم كبير ذكر كړے دے.حالانكه د علامه هيثمى رحمه الله د تصريح مطابق دا په ..معجم صغير.. او معجم ولاوسط كښې ذكر شوے حديث دے.

(۷) التلخيص الخبير(۲۳۴/۱)_

(۸) ددے حديث پوره تخريج مونږ په ابتداء كښې كړے دے._

**د جزئيت د قائلينو دلائل** كوم حضرات چه د تسميه د جزئيت قائلين دى.هغوى په ډيرو دلائلو سره استدلال كوى.خواكثر د علت قادحه نه خالى نه دى.بلكه دا حضرات زيات تريه هغه دلائلوسره استدلال كوى چه هغه زيات تر واهيات دى.اوډير په كښې موضوعات او منكرات دى.
د دې حضراتو د ټولو نه زيات قوى دليل هغه دے كوم چه د نعيم بن مجمر رحمه الله نه مروى دے هغوى فرمائى.«صليت وراء أبى هريرة رضى الله عنه فقرأ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ثم قرأ بأم القرآن،حتى بلغ، غيرالمغضوب عليهم ولا الضالين،، فقال آمين.فقال الناس آمين،ويقول كلما سجد الله أكبر،وإذا قام من الجلوس فى الإثنتين قال: الله أكبر، وإذا سلم، قال والذى نفسى بيده إنى لأشبهكم صلاة برسول الله ﷺ»
دا حديث سنن نسائى،سنن دارقطنى،سنن كبرى بيهقى.صحيح ابن خزيمه.او مستدرك حاكم وغيره كښې موجود دے.او ټولو حضراتو ددے تصحيح كړے ده (٢)
**جواب** حقيقت دا دے.چه دا حديث د سند په اعتبار سره صحيح دے.خو ددے حضراتو ددے حديث نه په خپله مدعى باندے استدلال كول د څو وجوهاتو له كبله ټيك نه دے.
(١) اولنۍ وجه دا ده.چه دا حديث معلول دے.ځكه چه دحضرت ابوهريره رضى الله عنه اته سوه شاګردان دى.چه په هغوى كښې صحابه رضى الله عنهم هم دى.په دوى كښې د نعيم مجمر رحمه الله نه علاوه بل څوك هم د هغوى نه دا روايت نه نقل كوى.چه هغوى په مانځه كښې په جهر سره تسميه ونيله ده.(٣) (حالانكه مونځ داسے عمل دے.چه په ورځ كښې پنځه ځله كيږى.ازمترجم)
دلته څوك دا ونيلى شى.چه كه بل شاګرد نه وى روايت كړے.او دے ثقه دے او قاعده دا ده.چه «زيادة الثقة مقبولة»
ددے جواب دا دے.چه دا قاعده څه متفق عليه قاعده نه ده.بلكه په دے كښې اختلاف دے.بعضے حضرات دا قاعده مطلقاً قبلوى.او بعضے ئے نه قبلوى. (٤) خو صحيح قول دا دے.چه په دے كښې تفصيل دے.كه د زيادت كونكے راوى ثقه حافظ او اثبت وى اوچا چه زيادت نه وى كړے.هغه داولنى راوى نه كمتر وى.يا برابر وى نو په داسے صورت كښے به زيادت قبول وى.ګنى نه.دغه شان په بعضے مقاماتو كښے په مختلفو قرائنو سره زيادت قبولے شى.عام حكم لګول.چه هر زيادت قابل قبول دے.دا ټيك نه دے.بلكه دهر

---

(١) أخرجه النسائى فى سننه (١٤٤/١) كتاب الإفتتاح باب قراءة بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. والحاكم فى مستدركه (٢٣٢/١) كتاب الصلاة.أن رسول الله ﷺ قرأ فى الصلاة بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. فعدها آية.والبيهقى فى سننه الكبرى.(٥٨/٢) كتاب الصلاة باب جهر الإمام بالتامين... والدارقطنى فى سننه (٣٠٥/١، ٣٠٦) كتاب الصلاة باب وجوب قراءة بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. فى الصلاة والجهر بها واختلاف الروايات فى ذلك رقم ١٤)_
(٢) نصب الراية (٣٣٥/١) وسنن دارقطنى (٣٠٦/١)_
(٣) نصب الراية (٣٣٦)_
(٤) دتفصيل دپاره اوګورئ ..النكت على كتاب ابن الصلاح للحافظ ابن حجر) رحمه الله ٦٨٧/٢، ٧٠٢) النوع السادس عشر معرفة زيادات الثقات)_

زيادت دپاره مخصوص حكم دے كله خو داسے وى چه ددے زيادت د صحت يقين وى.اوكله ددے د صحت يقين خو نه وى.البته غالب گمان وى.اوپه بعضے وختونو كښے د زيادت په غلطئ باندے جزم وى.اوبعضے وخت د ظن غالب په اعتبار سره دغلط حكم پرے لگولے شى.او كله داسے هم كيږى.چه په دے كښے توقف كول وى.(١)

د نعيم بن مجمر رحمه الله دا زيادت هم ددے قبيلے ځنے دے.چه په دے كښے توقف كول پكار دے.بلكه غالب گمان دا دے.چه دا زيادت كمزورے دے.(٢)

(٢) دويمه وجه دا ده.كه دا حديث تيك هم اومنلے شى.نود جزئيت يا جهر بالتسميه دپاره په دے باندے استدلال بيا هم تيك نه دے.ځكه چه په دے كښے ((فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم، ثم قرأ بأم القرآن)) راغلى دى.په بعضے رواياتو كښے د ..قال.. لفظ راغلے دے.(٣) قراءت يا قول په جهر باندے دلالت نه كوى.په دے باندے خو ددے حضراتو خلاف استدلال كولے شى.كوم چه د تسميه د قراءت بالكل قائل نه دى.(٤)

په دے باندے اشكال كيږى.كه هغوى تسميه په جهر سره نه وه وئيلے.نونعيم مجمر رحمه الله به څنگه اوريدلے وه؟

ددے جواب دا دے.چه بعضے وخت په سرى مونځونو كښے هم قراءت اوريدے شى.(٥)

يو اشكال دا هم كيدے شى.كه حضرت ابوهريره رضى الله عنه سرأ د بسم الله قراءت كړے وى.اوسورت فاتحه ئے په جهر وئيلى وى.(اويقينى ده.چه سورت فاتحه به ئے په جهر وئيلى وى.ځكه چه مونځ جهرى وو.ځكه چه په حديث كښے د امام اومأموم د تامين تصريح ده) نو دواړه به ئے په اسلوب سره نه ذكر كول.بلكه داسے به وئيلى وو.((فأسر بالبسملة ثم جهر بالفاتحه))

ددے جواب دا دے.چه په دے حديث كښے د جهر څه تصريح نشته.نوداسے محتمل روايت په دغه شان نصوص صريحه باندے نشى مقدم كولے.كوم چه سرأ د تسميه تقاضا كوى.(٦)

كه په دا قسم اطلاق سره په جهر باندے استدلال كولے شى.نوپه دے حديث كښے دا هم وئيلى شى.چه تسميه دسورة فاتحه جزء نه دے.ځكه چه په دے كښے دا الفاظ دى.((فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم،ثم قرأ بأم القرآن)) يعنى د دواړو جملو په مينځ كښے ئے عطف كړے دے.اوعطف دمغايرت تقاضا كوى.نوددے نه به ثابته شى.چه بسم الله د ام القرآن جزء نه دے.(٧)

---

(١) ذكره الزيلعى ببسط وتفصيل فى نصب الراية (٣٣٦/١. ٣٣٧)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) كما فى رواية البيهقى فى سننه الكبرى (فقال بسم الله الرحمن الرحيم. ثم قرأ بأم القرآن (٥٨/٢)

(٤) نصب الراية (١/ ٣٣٧)_

(٥) پورتنئ حواله)_

(٦) پورتنئ حواله)_

(٧) پورتنئ حواله)_

دريمه وجه دا ده چه ددے حديث په آخر كښے حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى. «إلا أشهكم صلاة برسول الله ﷺ» دلته تشبيه په اصل مونخ .مقدار اوددے په هيئت كښے ده.په هريوجزء كښے تشبيه ضرورى نه ده.(١) په دے حديث كښے په اصل كښے دحضرت ابوهريره رضي الله عنه مقصود دتكبير وغيره اثبات دے.اوددے په ذريعه په هغه خلقو باندے رد مقصود دے.كوم چه ددے قائل نه دى.اوتكبير وغيره دهغه څيزونو څنے دى.كوم چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه په صحيح طريقه ثابت دى .او تركومے پورے چه د تسميه تعلق دے.نوچونكه ددے په ثبوت كښے نظر دے.نوځكه به «أشبهكم صلاة» صرف په دے افعالو پورے خاص ګڼړلى شى.كوم چه د هغوى نه په صحيح سند سره ثابت وى.(٢) والله سبحانه وتعالى اعلم

**قوله: فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** د..بها.. ضميريا خو..آيات.. طرف ته راجع كيږى.يعنى ..فرجع بالآيات.. او يا ..قصة.. طرف ته ..اى فرجع بالقصة..

(٣) يعنى رسول الله ﷺ ذكر شوى آيت سره واپس راغلو.يا ټولے قصے سره نے واپس تشريف راوړلو. او حضرت خديجه رضي الله عنها ته نے واورولوله.

**قوله: يَرْجُفُ فُؤَادُهُ:** د..فواد.. په تفسير كښے درے اقوال دى.بعضے وائى.قلب.بعضو وئيلى دى.باطن القلب او بعضے حضراتو وئيلى دى.غشاء القلب.(٤)

علامه بلقينى رحمه الله فرمائى.كه ددے تفسير په ..غشاءالقلب.. يا ..وعاءالقلب.. سره اوشى. نوددے نه زبردست درزيدل معلوميږى.څكه چه كله په ..وعاء.. يا ..غشاء.. كښے حركت وى.نو په باطن كښے خو به په درجه اولى وى.(٥)

دا روايت په بدء الوحى كښے په ..يرجف فواده.. الفاظو سره دے.او په كتاب التفسيراو كتاب التعبير كښے د ..ترجف بوادره.. الفاظ دى.

..بوادر.. د غوښے هغه ټوټے ته وائى.كومه چه د اوږے اوڅټ ترمينځه وى.(٦)

جوهرى رحمه الله فرمائى.ددے غوښے د ټوټے نوم د جمع په صيغے سره دے.(٧) خو ابن برى رحمه الله فرمائى.چه دا د ..بادرة.. جمع ده.او دا څه خاص ټوټه نه ده.بلكه د اوږے او څټ ټولے حصے ته ..بوادر.. وائى.(٨)

(١) نصب الراية (٣٣٨/١)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) فتح البارى(٢٤/١)_

(٤) عمدة القارى (٥٠/١)_

(٥) فتح البارى (٣٥٨/١٢) كتاب التعبيرباب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ_

(٦) فتح البارى(٣٥٨/١٢)_

(٧) پورتنئ حواله)_

(٨) پورتنئ حواله)_

په دے دواړو لفظونو کښې صورةً خو اختلاف دے چه ،فواد،، قلب، یا باطن قلب یا غشاء قلب ته وائی او ،،بوادر،، «مابین المنکب والعنق» ته وائی خو په حقیقت کښے په دواړو کښے په دے اعتبار سره اختلاف نشته چه کله د زړه درزیدل زیات وی او ویره زیاته وی نو ددے اثر په ،،بادره،، باندے غورځیږی او هغه هم حرکت شروع کوی.(۱)

علامه داودی رحمه الله خو تردومره پورے وئیلی دی چه ،،بوادر او ،،فواد،، دواړه مترادف دی ددے قول نه که د هغوی مراد هم هغه وی کوم چه اوس مونږ اوخودل نو صحیح ده او که د هغوی مراد دا وی چه دواړه متحد المعنی او مترادف دی نود هغوی دا خبره ټیک نه ده.(۲)

ددے جملے خلاصه دا شوه کله چه نبی کریم ﷺ دے آیاتونو سره تشریف راوړلو نو ددوی زړه درزیدلو.

**د زړه د درزیدو وجه** دا درزیدل د څه وجے وو د نبی ﷺ زړه ددے وجے درزیدلو چه په غار حراء کښے د ،،غط،، کومه واقعه پیښه شوے وه په هغے سره نبی ﷺ ته مشقت ملاؤ شوے وو د بشریت د تقاضا په وجه په دوی باندے د هغے اثر وو الله تعالی په کښے چونکه د وحی د تحمل استعداد پیدا کړے وو نوځکه ئے د زړه حرکت بند نشو خو بشریت وو نوځکه ئے زړه مضطرب وو.

یاداسے اووائے چه د نبی ﷺ زړه ددے وجے درزیدلو چه کومه ذمه واری په دوی باندے اچولے شوے وه ددغه ذمه واریٔ په پوره کولو کښے پرله پسے به مشقتونه وو چونکه ددے مشکلاتو دوی ته احساس وو نوځکه د دوی زړه درزیدلو.

**قوله: فَدَخَلَ عَلٰى خَدِيجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا:** دا خدیجه بنت خویلد بن اسد بن عبدالعزی ده د واقعه فیل (کومه چه د نبی ﷺ د پیدائش کال دے) نه پنځلس کاله وړاندے پیدا شوے وه د نبی اکرم ﷺ سره چه کله د دوی نکاح اوشوه نو په دغه وخت کښے د دے عمر څلویښت کاله وو او د نبی ﷺ عمر پنځویشت کاله وو د دوی نکاح ددوی تره عمرو بن اسد بن عبدالعزی ترلے وه ځکه چه پلار ئے مخکښے وفات شوے وو.

د یوقول مطابق په نبی ﷺ باندے د ټولو نه وړاندے ایمان راوړونکے شخصیت د دوی دے په ښځو کښے دټولو نه وړاندے ایمان راوړونکے په اتفاق سره هم دوی دی د نبی ﷺ ټول اولاد سوا د حضرت ابراهیم نه ټول هم ددوی د بطن نه وو نبی ﷺ نه د دوی نه وړاندے چا سره نکاح کړے نه وه اونه د دوی په ژوند چا سره نکاح کړے وه د نبی ﷺ دوی سره ډیره مینه وه د وفات نه پس به نبی ﷺ د هغے په ملګرو او سهیلو کښے غوښه تقسیموله دوی د دعوت اوتبلیغ په کار کښے دغه شان په هره ګرانه مرحله کښے د نبی ﷺ سره مدد کول او

(۱) پورتنئ حواله)_

(۲) پورتنئ حواله)_

دوى ته تسلى وركونكے وه. دهجرت نه درے كاله وړاندے د حضرت ابوطالب د وفات نه درے ورځے پس حضرت خديجے رضي الله عنها وفات شوه (١)

**قوله: فَقَالَ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي.** نبى ﷺ اوفرمائيل په ما څادر واچوئى په ما څادر واچوئى په بل روايت كښے .دثرونى .. دے د دواړه معنى يوه ده.

قاعده دا ده چه كله ويره راشى نوبدن رپيدل شروع شى اودے رپيدلو علاج په جامه اچولو سره كولے شى.

د سيد الطائفه حضرت حاجى امداد الله مهاجرمكى رحمه الله نه تپوس اوشو چه نبى ﷺ دا ولے اوفرمائيل چه ..زملونى زملونى.. ولے چه نبى ﷺ حضرت جبريل عليه السلام اوليدلو نو اوويريدلو؟

حضرت حاجى رحمه الله جواب وركړلو چه نبى ﷺ حضرت جبريل عليه السلام اوليدلو نو اونه ويريدلو بلكه چه جبريل عليه السلام ئے اوليدلو نوخپل حقيقت ورته په نظر راغلو هغه دومره اوچت وو چه هغه ئے اوليدلو نو نبى ﷺ ته ويره شوه اوقاعده دا ده چه په غير جنس كښے اوسيږى نوخپل حقيقت پټ وى اوچه هم جنس اوګورى نو منكشف كيږى لكه چه مشهوره ده يو كس د زمرى بچے ساتلے وو اوهغه ئے په خپلو چيلو كښے پريخودے وو زمرے چه په دغه چيلو كښے اوسيدلو نو دخپل حقيقت پته ورته نه وه هغه هم د چيلو پشان غريب وو په اتفاق سره يو ځل هغه د اوبو څكلو په دوران كښے خپل مخ اوليدلو او دخپل زړه ورتوب اودلاورئ تصور دهغه د سترګو وړاندے شو اوچه بيا ئے چيلئ اوليدلے نو وے ګنړل چه زه چيلئ نه يم څه بل څيز يم چه دا حقيقت ئے اوپيژندلو اوكله په چيلو ورګډ شو نو په ټولو چيلو كښے يو شور جوړ شو څه ئے اوشوكولے او څه ئے اوخوړلے اوڅه ئے مړے كړے.

بيا ئے اوفرمائيل كه په يوه جزيره كښے فرض كړه ټول بدشكله خلق اوسيږى كه يوه ښائسته ښاپيرئ په كښے پيدا شى نوښكاره ده چه هغه په دوى كښے اوسيږى نوخپل ځان به ورته د دوى پشان ښكارى اودخپل ښائست حقيقت به ورته دناجنسى اختلاط د وجے نه ښكاره كيږى خوكه په اتفاق سره هلته ددے پشان يو بل حسين پيدا شى چه هغه پرے نازاو ادا كوى نوښكاره ده چه هغه اوګورى نوخپل حقيقت به ورته سمدستى ښكاره شى او هغه به هم ناز او ادا شروع كړى.

دغه شان بغير دتشبيه نه نبى ﷺ هم ددے زمرى يا ددے ښائسته پشان د مكے په جاهلانو كښے اوسيدلو اودوى ته خپل حقيقت ښكاره نه وو خوكه چه كله نبى ﷺ جبريل عليه السلام اوليدلو چه هغه په دے معنى كښے د دوى هم جنس وو چه دهغوى تربيت هم صفت علم كوئ نوځكه د وحى او ايحاء خدمت دوى ته حواله شو او د انبياء عليهم السلام تربيت هم په صفت علم سره كيږى اود جبريل عليه السلام په مخ كښے نبى ﷺ ته خپل حقيقت په نظر راغلو خوهغه دومره عظيم الشان وو چه سمدستى نبى ﷺ د هغے برداشت اونكړے شو او په

---

(١) الإستيعاب فى معرفة الأصحاب (٢٧٩/٤، ٢٨٩) والإصابة فى تمييز الصحابة (٢٨١/٤، ٢٨٣)۔

..اضطراب كښے نے.. زملونى زملونى.. اوفرمائيل. دا نه چه نبى ﷺ دحضرت جبريل عليه السلام اوويريدلو.

**د مولانا روم رحمه الله توجيه** د داسے قسم واقعه يوه توجيه د مولانا رومى رحمه الله نه منقول ده قصه دا ده. چه يوځل نبى كريم ﷺ د حضرت جبريل عليه السلام نه دهغه په اصلى شكل كښے د ليدو خواهش اوكړلو. حضرت جبريل عليه السلام ورته اووئيل چه تاسو طاقت نشئ لرلے خوچه كله نبى ﷺ اصرار اوكړلو. نوحضرت جبريل عليه السلام ورته د خپل اصلى شكل خودنه اوكړله نبى ﷺ په ليدو سره بيهوشه شو. حضرت جبريل عليه السلام سمدستى راپورته كړلو او بيا دوى په هوش كښے راغلو.(١)

مولانا رومى رحمه الله فرمائى. چه په دغه وخت كښے متاثر جسدى محمدى وو. روح محمدى نه وو. روح محمدى خو دومره طاقتور او قوى دے. چه جبريل عليه السلام دهغے تحمل نشى كولے اوحقيقت دا دے. چه ددے اندازه د شب معراج د قصے نه كيږى. چه كله ..سدرة المنتهى.. ته اورسيدل. نو په دغه مقام كښے حضرت جبريل عليه السلام اودريږى اونبى كريم ﷺ چه ورته كله وړاندے تلودپاره فرمائى. نوجبريل آمين وائى. كه زه معمولى وړاندے شم. نو زما وزرے به اوسوزى. نو نبى ﷺ به نفس نفيس تن تنها يواځے تشريف يوړلو.(٢)

**يو اشكال او دهغے جواب** دلته يوكس ته دا اشكال پيدا كيدے شى. چه وړاندے په حديث كښے راغى.«لقد خشيت على نفسى» ددے نه معلوميږى. چه نبى ﷺ جبريل اوليدلو. نو اوويريدلو.

ددے اشكال جواب حضرت تهانوى رحمه الله دا وركړے دے. چه په دے حديث كښے :..خشيت.. مفعول حضرت جبريل آمين نه دے. چه تصادم راشى. بلكه معنى داده. چه «خشيت أن لا أتحمل أعباء الرسالة» ځكه چه ددے تحمل دپاره د خاص قوت ضرورت وى. اوهغه په دغه وخت كښے مغلوب وو. نو څه تصادم پاتے نشو.

**يوبل اشكال اودهغے جواب** دلته يو اشكال دا هم شوے دے. چه نبى ﷺ ..زملونى.. ولے اووئيل. حالانكه په ظاهره خطاب حضرت خديجے رضى الله عنها ته دے؟ ..زملينى.. وئيل پكار وو د دے جواب دا وركړے شوے دے. چه دحضرت خديجے رضى الله عنها غلام هم وو. او وينزے هم. په هغه وخت كښے چونكه د پردے رواج نه وو. ځكه نبى ﷺ ټولو ته خطاب اوفرمائيل. چه په هغوى كښے حضرت خديجه رضى الله عنها هم شامل وه.(٣)

دويم جواب دا دے. چه په داسے مواقع يعنى د خدمت په موقع په محاوراتو كښے د تذكير اوتانيث په اعتبار سره څه فرق نه كوى. نوځكه د مذكر صيغے استعمال شوئے.(٤)

---

(١) مسند احمد(٣٢٢/١) مسند عبدالله بن عباس رضى الله عنه)_

(٢) السيرة الحلبيه للعلامة على بن برهان الدين الحلبى (٤٠٢/١) باب ذكر الإسراء والمعراج)_

(٣) تقرير بخارى حضرت شيخ الحديث رحمه الله تعالى (٨٨/١)_

(٤) پورتنى حواله)_

دريم جواب دا هم ممکن دےچه د شان د تعظيم او تفخيم د وجے د مذکر صيغه استعمال شوے ده.«كما ورد في التنزيل في قصة موسى،﴿إِذْ رَأَىٰ نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا﴾ (١)

**قوله فقال لخديجة وأخبرها الخبر:لقد خشيت على نفسي:** يعنى نبى ﷺ حضرت خديجے رضي الله عنها ته اوفرمائيل.په داسے حال کښے چه نبى ﷺ هغے ته ټوله قصه اورولے وه.«لقد خشيت على نفسي» ماته خو دخپل ځان ويره ده.

**نبى اکرم ﷺ ته د څه وجه ويره شوه؟** نبى اکرم ﷺ ته د څه خبرے د وجے ويره شوه.په دے باره کښے حافظ ابن حجر رحمه الله دولس اقوال ذکر کړى دى.

① يو قول دا دےچه دوى ته د جنون پيدا کيدو خطره شوه.(٢)

په دے باندے اشکال دا دےچه نبى ﷺ دفرشتے مشاهده کړے وه.نو ددے نه پس نبى ﷺ ته دجنون ويره ولے کيدله.ابن عربى رحمه الله دا قول باطل ګرځولے دے.(٣)

خوامام ابوبکراسماعيلى رحمه الله ددے جواب ورکړے دےچه کيدے شى.دا ويره دوى ته په هغه وخت کښے شوے وى.چه په کوم وخت کښے دوى ته دا يقين نه وو راغلے.چه دا راتلونکے دالله تعالى فرشته ده.اوکله چه دوى ته يقين اوشو.نوبيا دا ويره لاړله.اوداسے کيږى.چه په اول کښے د يوے خبرے تحقيق نه وى.نوسړے په شك کښے وى.اوکله چه تحقيق اوشى.نو شك زائله شى.(٤)

خوپه دے کښے اشکال دا دےچه د حضرت جبريل عليه السلام راتلل اچانك نه وو.بلکه د ډيرو مقدماتو، تمهيداتواو مباديؤ نه پس شوے وو.ددے نه علاوه د بحيرا راهب سره هم د نبى ﷺ ملاقات شوے وو.نبى ﷺ ته بهرحال في الجمله د جبريل عليه السلام د راتلو علم وو.قرائن او اندازے په دے خبره باندے دلالت کوى.چه حضرت جبريل عليه السلام دوى پيژندلے وو.يعنى په اوله موقع دوى ته يقين شوے وو.د ابن اسحاق رحمه الله په بعضے رواياتو کښے جبريل عليه السلام پخپله وائى.چه «يا محمد،أنت رسول الله وأنا جبريل» (٥)ددے خبرو باوجود بهرحال دا احتمال موجود دےچه په اول وهله کښے دا ويره د نبى ﷺ په زړه باندے تيره شوے وى.او بيا هم په دے غار کښے د فرشتے په راتلو باندے يقين پيدا کيدو سره ويره تلے وى.

② دويم قول دا دےچه دا د قبيلے د هاجس ځنے وه.په دے کښے اشکال دا دے. چه د هاجس استقرار نه وى.

---

(١) طه ١٠)- قال الرازى رحمه الله.. وأيضاً فقد يخاطب الواحد بلفظ الجماعة تفخيماً قال الرازى رحمه الله.. وأيضاً فقد يخاطب الواحد بلفظ الجماعة تفخيماً

(٢) فتح البارى(١/ ٢٤)_

(٣) پورتنئ حواله)_

(٤) پورتنئ حواله)_

(٥) سيرت ابن هشام (١/١٥٥)_

③ دریم قول دا دے چه نبی ﷺ سره ویره وه چه د سخت رعب د وجے چرته مرګ واقع نشی
④ څلورم قول دا دے چه نبی ﷺ سره د بیمارئ ویره وه ابن ابی جمره رحمه الله په دے باندے جزم کړے دے.
⑤ پنځم قول دا دے چه نبی ﷺ سره د دوام مرض ویره شوه
⑥ د نبوت د لویو ذمه واریانو د تحمل نه د عاجز کیدو ویره ورته لاحقه شوے وه
⑦ اووم قول دا دے چه د رعب د وجے فرشتے ته د نظر کولونه عاجز شوے وو اودهغے ویره وه
⑧ اتم قول دا دے چه دوی سره ددے خبرے ویره پیدا شوے وه چه د قوم په ضرر رسولو به دوی صبر اونکړے شی.
⑨ نهم قول دا دے چه دوی سره د قوم د طرفه د وژلو ویره وه.
⑩ لسم قول دا دے چه د وطن مفارقت به ضروری شی.د دے ویره ورسره وه.
⑪ یوولسم قول دا دے چه دوی سره دا ویره وه.چه قوم به د دوی تکذیب اوکړی
خو په دے اقوالو کښے اکثر واهی او ضعیف دی.البته حافظ ابن حجر رحمه الله د مرض. دوام مرض.اود مرګ د واقع کیدو اقوالو ته ترجیح ورکړے ده.(۱)
③ قاضی عیاض رحمه الله د خوف وجه ذکر کړے ده.اودوه احتمالات ئے په کښے ذکر کړی دی. یودا چه دوی ته د نبوت د پیټی په تحمل کښے ویره شوه.چه کیدے شی.زه دا ذمه واری پوره نکړے شم.اوزما روح اوځی.(۲)
دویم احتمال ئے دا بیان کړے دے.چه کیدے شی.دا بالکل د ابتداء واقعه وی.د فرشتے د راتلو نه وړاندے چه کوم خوبونه لیدلی شو.یا آواز اوریدلے شو.یا رڼا په نظر ورتله.دهغه زمانے واقعه وی.په دغه وخت کښے دوی سره ویره شوے وی.چه کیدے شی.دا د شیطان د طرفه وی.خوچه کله فرشته راغله.اوپه نبوت سره مشرف
شو.ددے نه پس د هیڅ قسم شك کولو ضرورت نشته.(۳)
علامه نووی رحمه الله فرمائی.چه دا دویم احتمال ضعیف دے.ځکه چه په حدیث کښے تصریح ده.چه د ویرے واقعه د فرشتے په راتلو او د ﴿اِقْرَاْ﴾ آیاتونو د نازلیدو نه پس وه.(۴)
**طبعی ویره دمقام نبوت سره منافی نه ده** بیاچه ترڅوپورے د بارنبوت د اوچتولو د وجے بتقاضائے بشریت د ویرے راتلل دی .نودا د نبوت یا رسالت هرګز خلاف نه ده.په قرآن پاك کښے څومره واقعات دی .چه پیغمبران علیهم السلام ویره محسوسوی.خوهغوی ته دخپل نبوت یا رسالت په حقانیت باندے څه شك نه وه.

(۱) د دے ټولو اقوالو دپاره اوګورئ: فتح الباری (۲۴/۱)_
(۲) شرح نووی علی صحیح مسلم (۸۹/۱) کتاب الإیمان باب بدء الوحی إلی رسول الله ﷺ)_
(۳) پورتنئ حواله)_
(۴) پورتنئ حواله)_

په قرآن كريم كښے د حضرت ابراهيم عليه السلام واقعه ذكر ده چه فرښتے هغوى ته د ميلمنو په صورت كښے راغلے وے ابراهيم عليه السلام په جلتئ سره دهغوى د ميلمستيا انتظام اوكړلو ﴿ فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ﴾ (۱)

كله چه هغوى اوكتل چه ميلمانه روټئ نه خورى نوهغوى ته دا خبره نوے اوښنا معلومه شوه اوهغوى دميلمنو نه ويره محسوس كړه

دغه شان دحضرت موسى عليه السلام واقعه په قرآن مجيد كښے مذكور ده چه جادوګرانو كله خپلے رسئ اوهمساګانے اوغورځولے نودغه رسو او همساګانو د مارانو شكل اختيار كړل دلته موسى عليه السلام ويره محسوس كړه ﴿ فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ۝ فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَىٰ ۝ ﴾ (۲)

خلاصه دا چه حضرت موسى عليه السلام ته ويره محسوس كيدل دنبوت منافى نه دى.

حضرت ابراهيم عليه السلام ته ويره محسوس كيدل دا هم د نبوت سره منافى نه دى دغه شان چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته په غار حراء كښے كومه واقعه پيښه شوے وه.اود نبوت درون بوج په دوى باندے واچولے شو.وحى خداوندى نازل شوه.ددے د قول ثقيل ذكر الله تعالى په خپله باندے ذكركړے دے.بيا د نبوت د ذمه وارئ پوره كولو كښے چه كوم مشقتونه اوتكلفونه پيښيدونكى وو.هغه ټول د هغوى وړاندے وو.ددے ټولو امورو دوجے كه په دوى كښے ويره پيدا شوے وى.نودا خو نه د نبوت سره منافى ده اونه ددے دپاره د نظير لټولو څه ضرورت شته.چه آيا نورو پيغمبرانوعليهم السلام باندے هم د نبوت په ابتداء كښے داسے واقعات راغلى وو كه نه؟

**دحضرت شاه ولى الله رحمه الله يوه دقيق رائې** حضرت شاه انورشاه كشميرى رحمه الله په دے مقام كښے يوه ډيره نفيسه خبره كړے ده. هغوى فرمائى.چه د نبى صلى الله عليه وسلم روحانى تربيت دالله تعالى د شان ربوبيت خصوصى انداز سره شوے دے.ځكه چه نبى صلى الله عليه وسلم ئے د وحى متلو د ټولو نه د لوئے مرتبے واله وحى باندے مشرف كړے وو.كومه چه په انبياء عليهم السلام كښے د دوى د خصوصى درجے اوخاتم النبيين سره مناسب وه.خوددے عظيم وحى دپاره د خومره برداشت ضرورت وو.ددے اندازه د حديث د ذكرشوو جملو نه ښه معلوميږى. نوځكه حيرت او تعجب په دے خبره باندے بيخى نشته.چه د نبى صلى الله عليه وسلم رسول اعظم ته د ويرے، خوف .اودهشت اوګبهراهټ صورت ولے راغلو.بلكه حيرت او لويه حيرانتيا په دے باندے پكار ده.چه په دے دنيا كښے داوسيدو او د ټولو بشرى تقاضو او كمزورو باوجود يوانسان د دے عظيم وحى دنزول د عظمت بوج برداشت كړلو.كوم چه د قرآن كريم د تصريح مطابق كه په

(۱) هود ۰۷۰-

(۲) طه ۰۶۶-۰۶۷-

يو غر باندے نازل شوے وه. نو هغه به د ويرے او د الله تعالى خشيت د وجے مات شوے او ريزه ريزه شوے وو.

حضرت شاه صاحب رحمه الله قدس سره فرمائي چه په دے موقع چه بعضے حضراتو رحمهم الله د نبي ﷺ ويره دهشت وغيره دعام ضعف انساني او بشري سبب خودلے دے يا ددے اظهار ئے بطور سياست جائز ګڼړلے دے. دا د نبي ﷺ د رسالت د لوئے مرتبے مناسب نه ګڼړي. والله اعلم كومو خلقو چه دا حالت ،،تردد في النبوة،، ګڼړلے دے. هغوى خو د انبياؤ عليهم السلام د ايمان او يقين د مدارج عاليه او علوم وكمالات نبوت نه بيخي ناواقف دي.(١)

**د ورقه د تصديق فائده** بيا د ورقه په تصديق سره چه حضرت خديجے رضي الله عنها د كومو خبرو زيرے وركړے وو. دهغے تصديق كيږي. دے سره سره دا فائده هم حاصله شوه. چه نبي ﷺ ته دا خصوصيت حاصل شو. چه د دوى د دعوت كولو نه وړاندے دا اهل كتابو يو عالم د دوى تصديق كوى. عام طور داسے وى. چه انبياء عليهم السلام اول دعوت وركوى. د هغے نه پس مصدق جوړيږي. خو نبي كريم ﷺ لاتراوسه پورے خپل دعوت پش كړے هم نه وو. چه تصديق ئے اوشو.

ددے نه علاوه يوه فائده دا هم اوشوه. چه كله ورقه د دوى تصديق اوكړلو. اود نصرت وعده ئے اوكړله. نود دوى د اعلان نبوت نه وړاندے په خلقو كښے د دوى د نبوت شهرت پيدا شو. چه په دوى باندے وحي نازل شوے ده. اودا چه ورقه بن نوفل كوم چه د اهل كتابو يو ډير لوئے عالم وو. د دوى د تصديق سره سره د نصرت وعده هم اوكړله. لكه چه بغير د څه كوشش نه د دوى د نبوت اعلان او په خلقو كښے شهرت اوشو.

**قوله: فَقَالَتْ خَدِيجَةُ كَلَّا:** ،،كلا،، د نفي دپاره او د رد دپاره استعماليږي. ددے يوه معنى د ،،حقا،، هم ده. او د تنبيه دپاره هم استعماليږي. لكه چه حضرت خديجه رضي الله عنها د دے خشيت نفي كوى. چه داسے به نه كيږي.

امام بخاري رحمه الله په كتاب التفسير كښے دا روايت تخريج كړے دے. په هغے كښے دى. «كلا أبشر» په هغه روايت كښے د مبشربه څه ذكر نشته.

امام بيهقي رحمه الله په دلائل النبوة كښے هم د ابن شهاب زهري رحمه الله نه مرسلاً نقل كړى دى. چه حضرت خديجه رضي الله عنها اوفرمائيل. «أبشر، فوالله لا يفعل الله بك إلا خيراً، فأقبل الذى جاءك من عند الله عزوجل، فإنه حق، وأبشر فإنك رسول الله حقاً»(٢)

دغه شان د عبيد بن عمير رحمه الله په مرسل روايت كښے هم دى. «أبشر يا ابن عمي، واثبت، فوالذى نفس خديجة بيده، إني لأرجو أن تكون نبي هذه الأمة»(٣)

---

(١) انوارالباري (٤٩/١)_

(٢) دلائل النبوة للبيهقي (١٤٣/٢) باب مبتدء البعث والتنزيل)_

(٣) سيرت ابن هشام (١٥٥/١)_

..اول من اسلم،، څوک وو؟ په دے کښے اختلاف دے چه د ټولو نه وړاندے اسلام قبلونکے څوک دے؟

امام زهري رحمه الله فرمائي چه حضرت خديجه رضي الله عنها د ټولو نه وړاندے اسلام قبول کړے وو.(١)
بعضے فرمائي چه حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د ټولو نه وړاندے ايمان راوړونکے دے.(٢)
بعضے وائي چه حضرت علي رضي الله عنه (٣)او بعضو وئيلي دي چه حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه د ولو نه وړاندے مسلمان شوے وو.(٤)

امام ابوحنيفه رحمه الله په دے ټولو اقوالو کښے داسے تطبيق کړے دے چه په اصيلي سړو کښے د ټولو نه وړاندے حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ايمان راوړے دے او په ښځو کښے د ټولو نه وړاندے حضرت خديجه رضي الله عنها او په غلامانو کښے حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه او په ماشومانو کښے حضرت علي رضي الله عنهم اجمعين (٥)

**قوله: وَاللّٰهِ مَا يُخْزِيكَ اللّٰهُ أَبَدًا:** د حضرت خديجه رضي الله عنها کلام چه ((والله ما يخزيك الله أبدا)) په دے خبره چه الله تعالى به تا ضائع نکړي. عقلي استدلال دے چونکه کوم کس چه د دے صفاتو حامل وي. هغه نه ضائع کيږي. او بيا ورقه ته بوتلل د دے دپاره وو چه د دے عقلي استدلال تائيد په دليل نقلي سره اوشي.

..يخزي،، د باب افعال نه د مضارع صيغه ده. کومه چه د ..خزي،، نه ماخوذ ده . معنى ئے ..رسوائي،، ده. په يوه نسخه کښے ..يحزنك،، دي. يعني باب افعال دے او د ..حزن،، نه ماخوذ ده. او په يو روايت کښے ..يحزنك،، دي. يعني د باب نصر نه د .. حزن،، نه ماخوذ دے. دا دواړه هم معنى دي. د رباعي استعمال ئے د بنو تميم د لغت مطابق دے. او د مجرد نه د قبيله قريش د استعمال مطابق دے.(٦)

مطلب دا دے چه حضرت خديجه رضي الله عنها دوى ته تسلي ورکوي. چه الله تعالى به تاسو هرګز په رسوائي کښے نه اخته کوي. يا تاسو به په غم کښے نه اخته کوي. ځکه چه الله تعالى تاسو ته د نبوت او رسالت د فرائضو پوره کولو عظيم الشان منصب در کړے دے. نو داسے نشي کيدے چه تاسو د ذمه واريانو په ښه طريقه د پوره کولو نه وړاندے وفات شئ. ځکه په دے کښے رسوائي هم ده او غم هم. الله تعالى به تاسو د داسے رسوائۍ او غم نه ضرور بچ کوي.

**قوله: إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ:** ته صله رحمي کوے. او د ضعيفانو پيتے اوچتوے.

---

(١) دلائل النبوة للبيهقي (١٤٣/٢)_
(٢) البدايه والنهاية (٢٦/٢)_
(٣) پورتنئ حواله)
(٤) البدايه والنهاية (٢٨.٢٩/٢)_
(٥) البداية والنهاية (٢٩/٢)_
(٦) فتح البارى (٧٢٠/٨) كتاب التفسير. تفسير سورة العلق)_

..كل.. داسې كس ته وئيلى شى چه هغه خپل كار په خپله نشى كولے لكه ماشوم. يتيم. شنډے يا كونډے ښځې.

مطلب دا دے چه ته صله رحمى ساتے د خپلو خپلوانو او رشته دارانو سره خپلولى ساتے او ته د وړو ماشوماتو. تيمانواو كنډو ښځو خبراخلے.

دحضرت خديجې رضي الله عنها د وئيلو مقصد دا دے چه ته ددداسې صفتونو مالك ئے او د داسې صفتونو خاوند الله تعالى نه ضائع كوى.

**قوله وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ:** په ..تكسب.. كښې دوه روايتونه دى يو د ..تكسب.. بضم التاء. د باب افعال نه او دا د كشميهنى روايت دے دويم روايت ..تكسب.. بفتح التاء يعنى مجرد نه دے دا د اكثرو راويانو روايت دے.(١)

بيا په دواړو صورتونو كښې په معدوم كښې دوه احتمالات دى يا خو ددے نه مال معدوم مراد دے او مطلب دا دے چه ((تكسب غيرك المال المعدوم)) يعنى ته نورو ته هغه مال وركوے كوم چه هغوى سره نه وى يعنى په مال سره ته د نورو مدد كوے

دويم احتمال اومطلب دا دے چه ((تكسب غيرك نفائس الفوائد ومكارم الأخلاق)) (٢) يعنى ته خلقو ته ښه طريقے اوښه اخلاق ښائے.

پيا د ..تكسب.. بفتح التاء په صورت كښې بعضے حضراتو دا معنى هم بيان كړے ده چه ((تكسب المال المعدوم وتصيب منه ما يعجز غيرك عن تحصيله)) يعنى تاسودومره زيات مال كټل چه نور خلق د هغے د كټلو نه عاجز وو. عربو به زيات مال كټل سبب د تمادح كنړل او نبى ﷺ نه په سوداګرئ كښې پوره مهارت حاصل وو.(٣)

خوامام نووى رحمه الله فرمائى چه دا قول خوقاضى عياض رحمه الله د قاسم بن ثبت صاحب.. دلائل.. نه نقل كړے دے خوضعيف بلكه غلط دے خكه چه دا د نبى ﷺ داوچت مقام سره مناسب نه دے مگر دا چه دے سره دا قيد اولګولے شى چه دوى به مال كټل اود خيريه كارونو كښې به ئے خرچ كول.(٤)

بعضے حضرات وائى چه د ..معدوم.. نه مراد ..معدوم المال.. دے يعنى فقير محتاج. چه د كسب نه عاجز وى ده ته معدوم ددے وجے وئيلے شى چه دا كس د مړى پشان دے په معيشت كښې تصرف نشى كولے اومالدار پشان نشى كيدے. د ده ژوند تنګ تيريږى لكه چه دده وجود اوعدم وجود دواړه برابر دى.

علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه په دے كښې تحريف شوے دے په اصل كښې ..المعدم..

---

(١) فتح البارى (٢٤/١)_

(٢) شرح نووى على صحيح مسلم (٨٩/١) كتاب الإيمان باب بدء الوحى)_

(٣) شرح نووى على صحيح مسلم(٨٩/١)_

(٤) پورتنۍ حواله)_

دے او معدم فقير ته وائی.(۱)

خو محمد بن اسماعيل تيمی رحمه الله فرمائی چه په يو صحيح لفظ باندے د غلط حكم لګول د خطابی رحمه الله غلطی ده خكه چه د ..معدوم.. په صورت كښے هم معنی ټيك ده او هم دا راويانو په روايت او د محدثينو رحمهم الله په نيز مشهور دے.(۲)

**قوله تَقْرِي الضَّيْفَ وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ**: ته ميلمستيا كوے او په حق كارونو كښے د مصيبت زده خلقو مدد كوے.

..نوائب.. د ..نائبة.. جمع ده. حادثه او مصيبت ته وائی. چونكه په عالم كښے حوادث وار په وار راځی. خكه حادثه ته نائبه ونيلے شی.

چونكه حوادث په دواړه قسمه وی. بعضے ښه وی او بعضے بد. د يو كس مال د دے وجے ضائع شو چه هغه د فقيرانو او تنګدستو مدد كول. دا نائبة الحق ده. او يو كس خپل مال په ظلم او تعدی كښے برباد كړل. نو دا نائبه شر ده. نو حضرت خديجه رضی الله عنها نوائب د خير او حق طرف ته مضاف كړل. چه دا ورته اوښائی. چه تاسو په ښه مواقع او صحيح لارو كښے دا خرچ كوئ. په ظلم او تعدی كښے مال نه خرچ كوئ. او په ناجائزو لارو كښے خپل مال نه خرچ كوئ.(۳)

بعضے عالمان رحمهم الله فرمائی. چه د ..نوائب الحق.. نه حادثات سماويه مراد دی. لكه د باران په وجه د كورنو غورځيدل. يا د زياتے ګرمے هوا يا زياتے يخے هوا د وجے باغونه او پټی تباه كيدل وغيره وغيره.(۴)

بيا د آفات سماويه د تخصيص وجه دا ده. چه كله آفت آسمانی وی. نو سړے په ظاهره مجبور ښكاری. چه دا خو د الله تعالی د طرفه دے. د انسان په دے كښے څه اختيار نشته؟ خو په دے مقام كښے اشاره ده. چه هر كله نبی صلی الله عليه وسلم په آفات سماويه غير اختياريه كښے مدد كوی. نو په آفات ارضيه كښے خو به ضرور مدد كوی.(۵)

**د حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه د نبی صلی الله عليه وسلم سره خاص مناسبت** حضرت خديجه رضی الله عنها چه د نبی صلی الله عليه وسلم كوم صفات بيان كړل. بعينه هم دا صفات ابن الدغنه د ابوبكر صديق رضی الله عنه بيان كړی دی. دا د هغه وخت خبره وه. كله چه حضرت ابوبكر رضی الله عنه د هجرت په اراده حبشه ته روان شوے وو. چه برك الغماد مقام ته اورسيدلو. نو ابن الدغنه ورسره ملاؤ شو. هغوی ترے ته تپوس اوكړلو. چه تاسو چرته ځئ. ابوبكر صديق رضی الله عنه ورته جواب وركړلو. چه زه هجرت كوم او ځم. زما قوم ما په خپله علاقه كښے نه پريږدی. زه دالله زمكے كښے سفر كوم. د هغه عبادت به كوم. په دے باندے ابن دغنه ونيلی وو. ((فإن مثلك يا أبابكر لا يخرج ولا يخرج، إنك تكسب المعدم، وتصل

---

(۱) أعلام الحديث (۱۲۹/۱)_

(۲) شرح كرمانی (۳۷/۱)_

(۳) عمدة القاری (۵۱/۱)_

(۴) تقرير بخاری شريف (۹۰/۱)_

(۵) پورتنی حواله)_

الرحم، وتحمل الکل، وتقری الضیف، وتعین علی نوائب الحق»
بیا ابن دغنه ابوبکرصدیق رضی الله عنه واپس راوستلو اود قریشو مشرانو سره ملاو شو.او هغوی ته ئے اوونیل «إن أبابکرلایخرج مثله،ولا یخرج،أتخرجون رجلاً یکسب المعدم ، ویصل الرحم،ویحمل الکل،ویقری الضیف،ویعین علی نوائب الحق» (۱)
د دے نه معلومیږی چه د یارغار رسول الله ﷺ سره خاص طبعی مناسبت وو.اوپه دے باندے ډیرواقعات گواهی ورکوی
کله چه په جنگ بدر کښے دمکے مشرکان د مسلمانانو بندیوان جوړ شول.نومشوره اوشوه. چه دوی سره څه کول پکار دی؟حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل.د دوی څټونه دے اووهلی شی. عقیل علی رضی الله عنه ته حواله کړئ.هغه به دهغه څټ قلم کړی.اوفلانے ماته حواله کړئ.زه به دهغه څټ قلم کړم.څکه چه دا ټول د کفر امامان دی.
حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه اوفرمائیل.یارسول الله دا ټول خپل خپلوان او دخاندان خلق دی. زما رائے دا ده.چه ددوی نه فدیه واخستے شی.اودوی خلاص کړے شی.کیدے شی.چه روستو ورته الله تعالی هدایت اوکړی.
نبی ﷺ دحضرت ابوبکر رضی الله عنه رائے خوښه کړه.(۲)
دغه شان کله چه صلح حدیبیه اوشوه.اوډیرزیات په ټیټوالی سره اوشوه.کافرانو اوونیل.که زمونږ سړے مدینے ته درشی.نوتاسوبه ئے واپس کوئ.اوکه ستاسو کس راشی.نومونږ به ئے نه واپس کوو.دغه شان هغوی اوونیل چه تاسو په دے کال کښے عمره نشئ کولے.دغه شان هغوی دا هم اوونیل.چه په صلح نامه باندے به..بسم الرحمن الرحیم.. نشی لیکلے.دغه شان په صلح نامه کښے به ..محمد رسول الله.. هم نشی لیکلے.په عامو صحابو رضی الله عنهم باندے دا ډیره گرانه وه.
حضرت عمر رضی الله عنه د نبی ﷺ په خدمت کښے حاضر شو.اوتپوس ئے اوکړلو.آیا تاسو دالله تعالی رښتینے پیغمبر نه یئ؟ نبی ﷺاوفرمائیل ولے نه.مونږ په حق یو.اوزمونږ دشمن په باطل دے.نوحضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړلو.«فلم تعطی الدنیة فی دیننا»نومونږ دے د دین په خبره کښے ذلت ولے اختیار کړو.نبی ﷺ اوفرمائیل.زه دالله تعالی پیغمبر یم.دهغه نافرمانی به نه کوم.اوهغه زما مددگار دے.حضرت عمر رضی الله عنه بیا عرض اوکړلو.آیا تاسو مونږ ته نه وو وئیلی چه مونږ به بیت الله ته خو.اوطواف به کوو.نبی ﷺ اوفرمائیل.آیا ما درته دا هم وئیلی وو چه هم په دے کال کښے به کوو.حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړلو. نه. نبی ﷺ اوفرمائیل تاسو به ضرور د بیت الله طواف کوئ.

---

(۱) د پوره واقعه دپاره اوگورئ..بخاری شریف (۱/۵۵۲، ۵۵۳) بیان الکعبة باب هجرة النبی ﷺ وأصحابه إلی المدینة)۔

(۲) دپوره واقعه دپاره اوگورئ. صحیح مسلم (۲/۹۳) کتاب الجهاد باب الإمداد بالملائکة وإباحة الغنائم)۔

حضرت عمر رضی الله عنه د هغه خائے نه پاسيدلو اونيغ حضرت ابوبكر رضی الله عنه ته ورغلو. اود هغوى نه ئے هم بعينه هم هغه سوالونه اوكړل. حضرت ابوبكر رضی الله عنه هم هغه وجوابونه وركړل. او دا ئے ورته هم اووئيل. «فاستمسك بغرزه» ددوى پانيدان كلك اونيسه .(۱) مطلب د هغوى په مخ كنبے عاجزى او انكسارئ اختيار كره. اود هغوى خدمت كوه.

هم دا وجه ده. چه حضرت ابوبكر رضی الله عنه ته د نبى صلی الله علیه وسلم نه پس متصلاً خلافت ملاؤ شو كه د دوى په خائے بل څوك وو. نو د ذمه وارئ سنبالول به ګران وو. څكه چه قاعده دا ده. چه كله يو عظيم شخصيت لاړ شى. نو دهغوى په خائے د نيابت دپاره د داسے شخصيت ضرورت پيښيږى. چه د هغه په صفاتو كنبے مشاركت لرى. اوكه څو اخوا ديخوا راشى. نونظام تباه برباد يږى.

**قوله: فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ حَتَّى أَتَتْ بِهِ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْنِ أَسَدِ بْنِ عَبْدِ الْعُزَّى ابْنَ عَمِّ خَدِيجَةَ:** يعنى حضرت خديجه رضی الله عنها د نبى كريم صلی الله علیه وسلم بوتلو. اوورقه بن نوفل ته ورغللامام بيهقى رحمه الله د ابوميسره عمروبن شرحبيل رحمه الله نه مرسلاً نقل كړى دى. چه حضرت خديجه رضى الله عنها حضرت ابوبكرصديق رضی الله عنه ورقه بن نوفل ته ليږلے وو .(۲)

په فتح البارى كنبے هم دا خبره حافظ رحمه الله دعبيدبن عمير رحمه الله د مرسل روايت په حواله سره نقل كړے ده.(۳)

بهرحال كيدے شى. چه يو ځل ئے په خپله بوتلے وى. اويوځل ئے حضرت ابوبكر صديق ليږلے وى.(۴)

بيهقى په دلائل النبوة كنبے د سعيدبن مسيب رحمه الله نه يو مرسل روايت نقل كړے دے په هغے كنبے دى. چه حضرت خديجه رضی الله عنها اول عداس نومے يو نصرانى كس ته ورغله. كوم چه داهل نينوه څنے وو. اوهغه د عتبه بن ربيعه بن عبدشمس غلام وو. دهغه نه حضرت خديجه رضی الله عنها دحضرت جبرئيل علیه السلام په باره كنبے تپوس اوكړلو. چه ماته دهغه په باره كنبے خبر راكړه. نوعداس اووئيل. «قدوس، قدوس، ماشأن جبريل يذكر بهذه الأرض التى أهلها أهل الأوثان» بيا په تپوس كولو سره ئے ورته اوخودل. چه «فإنه أمين الله بينه وبين النبيين، وهو صاحب موسى وعيسى عليهما السلام» چه دهغه خائے نه واپس راغله. نوحضرت خديجه رضی الله عنها ورقه ته ورغله.(۵)

**دعلامه شبلى نعمانى رحمه الله غلط فهمى.** حافظ ابن حجر رحمه الله په كتاب التعبير كنبے دد ے حديث په شرح كنبے په محدثينو رحمهم الله باندے د اعتراض كونكو اعتراض نقل كړے دے. چه داسے ممكن ده. چه نبى صلی الله علیه وسلم ته په خپل نبوت كنبے شك وى. ګرنه چه ورقه ته دتلو ضرورت

(۱) صحيح بخارى(۳۸۰/۱) كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب)_

(۲) دلائل النبوة للبيهقى (۱۵۸/۲) باب أول سورة نزلت فى من القرآن)_

(۳) فتح البارى (۷۲۰/۸) كتاب التفسير. تفسيرسورة العلق)_

(۴) پورته حواله)_

(۵) دلائل النبوة للبيهقى (۱۴۳/۲) باب مبدأالبعث والتنزيل..)_

پیښ شو اوحضرت خدیجه رضي الله عنها ته د خپل تکلیف بیانولو حاجت شو دغه شان د غرنه د خپل ځان د راغورځولو خوائش ئے پیدا شی

امام ابوبکراسماعیلی رحمه الله ددے جواب ورکړے دے چه دالله تعالی دا عادت جاری دے چه کله هم یو عظیم الشان څیز مخلوق ته د رالیږلو اراده اوکړی نو د هغے د مقدماتو او تمهیداتو انتظام کیږی.نو نبی ﷺ چه به کوم رویائے صالحه کتل. او بیا په نبی ﷺ کښے دخلوت خواهش پیدا شوے وو.اوپه هغوی کښے د عبادت شوق پیدا شوے وو دا ټول کارونه ددے مقدمه او تمهید دقبیلے څنے دی.

بیاچه کله ناڅاپه فرشته راغله.اوخلاف عادت اوپه غیرمانوس طریقه باندے دغار حرا واقعه پیښه شوه.نونبی ﷺ بتقضائے بشریت ویره محسوس کړه.نو په دے کښے د تعجب څه خبره نشته.څکه چه روستو ددوی دا ویره په مزه مزه ختم شو.ددے نه پس ئے حضرت خدیجه رضي الله عنها ته کومه چه ددوی همدرد اوغمخواره وه.هغوی ته ټوله قصه بیان کړه.هغے ورته تسلی ورکړه.اود خپلے تسلئ د تائید دپاره ئے ورقه بن نوفل ته بوتلو.ورقه چه واقعات واوریدل.نوپه نبی ﷺ ئے پوره یقین اوکړلو.اود دوی دنبوت اعتراف ئے اوکړلو.دلته کښے دامام اسماعیلی رحمه الله جمله حافظ رحمه الله نقل کړے ده.«فلما سمع کلامه أیقن بالحق، واعترفه به» یعنی کله چه ورقه د دوی خبرے واوریدے.نود حق یقین ئے اوکړلو.اود دے اقرار ئے اوکړلو.(۱)

علامه شبلانی نعمانی رحمه الله ددے جملے ټول ضمائیرنبی ﷺ ته راجع کړی دی او ترجمه ئے کړے ده...کله چه نبی ﷺ د ورقه کلام واوریدلو.نودوی ته د حق یقین اوشو او دوی ددے اعتراف اوکړلو.،(۲)

دپوهه خبره دا ده.چه امام اسماعیلی رحمه الله دمعترضینواعتراض رد کوی.چه نبی ﷺ ته د نبوت په باره کښے څه شك او تردد وو.اودا وائی.چه نبی ﷺ باندے ویره ضرور راغلے وه.خو دا ویره د شك اوتردد په وجه نه وه.بلکه د امرعظیم په ناڅاپه راتلو باندے وو.

اوعلامه رحمه الله ددے جملے نه دا معنی اخستے ده.چه نبی ﷺ ته په خپل نبوت کښے شك وو.ددے وجے ورقه ته لاړلو.اوحقیقت حال ئے ورته بیان کړلو.نود ورقه په تسلئ سره نبی ﷺ ته دخپل نبوت یقین راغلو.

حقیقت دا دے.چه نبی ﷺ ته د اول نه علم او یقین حاصل شوے وو.چه دوی ته نبوت او رسالت ورکولے شی.اودا چه دا راتلونکے فرشته وه.اود ورقه په خبرو سره دوی ته د نبوت یقین نه وو حاصل شوے.بلکه د دوی حالات اوواقعات چه ئے واوریدل.نوورقه د دوی دنبوت تصدیق اوکړلو.څکه چه ورقه د تورات او انجیل عالم وو.اود نبوت د علاماتو نه خبر وو.(۳)

---

(۱) فتح الباری (۱۲/۳۶۰) کتاب التعبیر.باب أول ما بدئ به ...)_
(۲) سیرت النبی ﷺ(۱/۱۲۶) آفتاب رسالت کا طلوع)_
(۳) سیرت مصطفی ازمولانا محمد ادریس کاندهلوی قدس سره (۱/۱۴۰)_

علامه سندهی رحمه الله فرمائی حقیقت دا دے چه نبی ﷺ ته هډو شك راغلے نه وو خکه چه د فرښتے سره د ملاقات کولو او د وحی الهی د راتللو نه پس د شك او شبه گنجائش نه پاتے کیږی او دا کیدے شی چه د مکمل وحی نازلیدو نه وړاندے په څه څیزونو کښے شبه پیدا شوے وی خاص کرچه فرشته نه څه په راغله خود وحی مکمل کیدو نه پس بیا څه شك اوشبه نشوه پاتے کیدے البته دا ممکن ده چه نبی ﷺ خپل ابتدائی حال چه په کوم وخت کښے دوی ته د خپل نبوت تحقق نه وو شوے حضرت خدیجه رضی الله عنها ته داسے بیان کړی وی لکه چه په دغه وخت کښے هم نبی ﷺ ته شك وو او دا طریقه نبی ﷺ خکه اختیار کړه چه د حضرت خدیجه رضی الله عنها همدردی د نبی ﷺ سره شی خکه چه کیدے شوه چه نبی ﷺ په هغه وخت کښے ونیلی وو چه زه دالله نبی یم دالله فرشته ماته راغلے وه نو حضرت خدیجه رضی الله عنها انکار کړے وے او دانکار نه پس اقرار گران وو (١) والله تعالى اعلم

بیا هم په کتاب التعبیر کښے امام بخاری رحمه الله د دے حدیث په آخر کښے د فترت وحی واقعه ذکر کړے ده او په هغے کښے راغلی دی چه نبی ﷺ دومره پریشانه وو چه دوی د غر د سوکے نه د ځان راغورځولو اراده اوکړه نو جبرئیل امین راغلو دوی ته ئے تسلی ورکړه نو دوی منع شو (٢)

د حدیث د دے حصے په باره کښے دا احتمال هم شته چه دا متصل وی او دا هم چه دا د امام زهری رحمه الله د بلاغاتو څخه وی بهرحال په دے حصه کښے څه داسے خبره نشته چه د هغے نه دا معلومیږی چه دوی ته په خپله پیغمبریٔ کښے شك وی د دے وجے دوی پریشانه وو او خپل ځان ئے د غرنه راغورځول غوښتل او فرشتے دغه شك لرے کړی وی.

علامه شبلی نعمانی رحمه الله په دے مقام کښے هم د حدیث د دے حصے نه دا مطلب اخستے دے چه نبی ﷺ ته د خپلے پیغمبریٔ په باره کښے شك وو نو هغوی دا حصه معتبر نه ده گنړلے او دا ئے وئیلی دی چه دا داسے عظیم الشان واقعه دپاره دا سند کافی نه دے (٣) دامام بلاغات ته سند مقطوع وئیل او دهغه رد په هیڅ صورت کښے ټیك نه دی خکه چه د اصول حدیث عالمانو رحمهم الله چه د ..بلاغات.. په باره کښے کومه قاعده بیان کړے ده هغه دا ده «بلاغات الثقات من أهل القرون الثلاثة مقبولة عندنا مطلقاً كالإمام مالك وأبي حنيفة والشافعي ومحمد بن الحسن وأبي يوسف وأمثالهم، وبلاغات من دون هولاء إن كان يرويها الثقات كما رووا مسندة كالبخاري واحمد وغيرهما، فمقبول إتفاقاً إذا ان بصيغة الجزم وإن كان يرسل عن الثقات وغيرهم فلا يقبل إتفاقاً» ..قواعد في علوم الحديث.. للشيخ ظفر احمد العثماني (٤)

---

(١) حاشية السندي على البخاري (١/١١، ١٢)۔

(٢) بخاري كتاب التعبير باب أول ما بدئ به رسول الله ﷺ من الوحي الرويا الصالحة)۔

(٣) سيرت النبي (١/١٢٧)

(٤) ص.١٠١۔

حقيقت دا دے چه ددے عبارت نه دنبی ﷺ پريشانى ضرور معلوميږى.خودا اضطراب په نبوت كښے د څه شك شبه د وحى هرګز نه وو.بلكه داخو دفترت او انقطاع وحى د وحى وو په كوم باندے چه دحديث عبارت بالكل ښكاره دے.((وفتر الوحى فترة حتى حزن النبى ﷺ فيما بلغنا حزناً غدا منه مرارا كى يتردى من رؤوس شواهق الجبال...)) بيا وړاندے دى.((فاذا طالت عليه الوحى غدا لمثل ذلك))(١)

**ورقه بن نوفل** ورقه بن نوفل بن اسد بن عبدالعزى دحضرت خديجه رضي الله عنها د تره خوئے وو.د ورقه د نوفل بن اسد خوئے وو.اوخديجه رضي الله عنها د خويلد بن اسد لوروه.

**قوله.** ابْنَ عَمِّ خَدِيجَةَ: دا د ..ورقه.. دپاره صفت دے يا بيان دے يا بدل دے.دا مجرور ونيل لوستل ټيك نه دى.

**قوله.** وَكَانَ امْرَأً قَدْ تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ: په جاهليت كښے دوى نصرانى شوى وو په مكه كښے څه فطرتى نيكان خلق د بت پرستئ نه نفرت كونكى وو.په دوى كښے ورقه او زيدبن عمروبن نفيل هم وو.دا دواړه دحق دين په لټون كښے شام ته تلى وو.ورقه ته خو بعضے داسے راهبان ملاو شوى وو.چه هغوى دنصرانيت په اصلى دين باندے قائم وو.نودے د هغه په لاس نصرانى شو.(٢)

**زيد بن عمروبن نفيل**: اوزيدبن عمروبن نفيل اول يو يهودى عالم ته لاړلو.اوهغه ته ئے اووئيل.دخپل دين په باره كښے ماته خبر راكړه.كيدے شى چه زه ستاسو په دين كښے داخل شم. هغه ورته اووئيل.كه زمونږ په مذهب كښے داخليدل غواړے.نو دالله تعالى څه غصه به هم برداشت كوے.ده ورته اووئيل.زه خو دالله تعالى د غصے نه تختم.زه دهغه غصه نشى برداشت كولے.ماته ددے نه سوا بل دين اوښايه.هغه ورته اووئيل.بيا ته حنيف شه: هغه تپوس اوكړلو.چه حنيف څه څيز دے؟هغه ورته اووئيل.حنيف حضرت ابراهيم عليه السلام وو.هغه نه يهودى وو.اونه نصرانى وو.دهغه دين ته دين حنيف وائى.

بيا يو نصرانى عالم ته لاړلو.هغه ته ئے اووئيل زه ستاسو په دين كښے داخليدل غواړم.هغه ورته اووئيل كه زمونږ په دين كښے په حقيقت كښے داخليدل غواړے.نو دالله تعالى څه لعنت به هم برداشت كوے.دوى ورته اووئيل.د الله تعالى د لعنت نه خو زه تښتم.زه نه لعنت برداشت كولے شم او نه غضب.

بيا ورته هغه هم دا رائے وركړه.چه دين حنيف اختيار كړه.اود حضرت ابراهيم عليه السلام په دين كښے داخل شه

---

(١) صحيح بخارى كتاب التعبير باب أول ما بدئ به ...)_

(٢) فتح البارى(١/٢٥)_

زید بن عمرو بن نفیل چه کله د حضرت ابراهیم علیه السلام په باره کښے د دواړو نه دا خبرے واوریدے نولاس ئے اوچت کړلو او وے وئیل «اللهم أشهد أنی علی دین ابراهیم علیه السلام» (۱)

**قوله وَكَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعِبْرَانِيَّ فَيَكْتُبُ مِنَ الْإِنْجِيلِ بِالْعِبْرَانِيَّةِ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَكْتُبَ:** عبرانی د عبرنه ماخوذ ده په نسبت کښے خلاف قیاس ..عبرانی.. وئیلی شی وانی چه کله حضرت ابراهیم علیه السلام د نمرود نه بچ شو او دریائے فرات باندے تیر شو نو نمرود په دوی پسے خلق اولیږل او هغوی ته ئے حکم اوکړلو که تاسو ته داسے خوان ملاؤ شی چه هغه سریانی وائی نو هغه واپس راولئ خلقو حضرت ابراهیم علیه السلام اونیولو خو چه کله ئے ورسره خبرے اوکړے نو الله تعالی د دوی ژبه په عبرانئ کښے بدله کړه چونکه د دریائے فرات نه راواوړیدلے وو نو ځکه د دے ژبے نوم ..عبرانی.. شو. (۲)

په بخاری شریف کتاب التفسیر او کتاب التعبیر کښے هم دا روایت راغلے دے په دغه دواړو ځایونو کښے د «وَكَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعِبْرَانِيَّ فَيَكْتُبُ مِنَ الْإِنْجِيلِ بِالْعِبْرَانِيَّةِ» الفاظ دی.

حافظ بن حجرعسقلانی رحمه الله فرمائی چه دواړه خبرے ټیک دی ورقه بن نوفل ته په عبرانئ او عربئ دواړو ژبو باندے قدرت حاصل وو عربی ئے خپله ژبه وه او عبرانی ئے زده کړے وه انجیل به کله هغوی په عربئ کښے نقل کولو او کله په عبرانئ کښے (۳)

**د تورات او انجیل ژبه** د تورات او انجیل اصلی ژبه څه وه په دے کښے سخت اختلاف دے

علامه تیمی رحمه الله فرمائی چه د تورات انجیل او ټولو آسمانی کتابونو ژبه عبرانی ده (۴)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی د دے نه معلومه شوه چه د انجیل اصلی ژبه عبرانی وه (۵)

خو علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا خبره ټیک نه ده بلکه تورات په عبرانئ ژبه کښے وو او د انجیل ژبه سریانی وه. (۶) دلته د حدیث الفاظ «فیکتب من الانجیل بالعبرانیة» نه هم دا په پوهه کښے راځی چه د انجیل ژبه سریانی وه چه هغه به هغوی کله عربئ ته نقل کولو او کله عبرانئ ته. (۷) والله اعلم.

**دسریانئ وجه تسمیه** عالمان فرمائی سریانئ ته سریانی د دے وجے وائی چه الله تعالی آدم علیه السلام ته کله د ..اسماء.. تعلیم ورکولو نو په پټه ئے ورته تعلیم ورکړے وو ځکه د دے ژبے نوم ..سریانی.. شو. (۸)

---

(۱) صحیح بخاری (۱/۵۳۹، ۵۴۰) کتاب المناقب باب حدیث زید بن عمرو بن نفیل۔
(۲) عمدة القاری (۱/۵۱، ۵۲)۔
(۳) فتح الباری (۱/۲۵)۔
(۴) عمدة القاری (۱/۵۲)۔
(۵) شرح کرمانی (۱/۳۸)۔
(۶) عمدة القاری (۱/۵۲)۔
(۷) شرح کرمانی)۔
(۸) عمدة القاری (۱/۵۲)۔

امام العصر حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى چه سريانى په اصل كښے د ..سريا.. يعنى سوريا (شام) طرف ته منسوب دے.(١)

**د انجيل د كتابت وجه** دلته چه دا ونيلى شوى دى چه دوى به انجيل ليكلو.ددے وجه په اصل كښے دا وه .چه په قرآن كريم كښے دالله تعالى ارشاد دے.﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُوا۟ لِلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ بِمَا ٱسْتُحْفِظُوا۟ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ (٢)

ددے نه معلومه شوه. چه د تورات دحفاظت ذمه د تورات په عالمانو باندے كيخودے شوے وه چونكه په هغوى محافظين گرخولے شوى وو.څكه هغوى د حفاظت دا طريقه اختيار كړه چه د كتاب الله كتابت به ئے كولو.اودهغے په نسخو پسے به ئے نسخے تيارولے هم دا طريقه په انجيل كښے هم وه.چه علمائے ربانينو به دا ليكل او محفوظ كول.دا بيله خبره ده.چه چونكه الله تعالى دغه كتابونو د يو محدود وخت دپاره نازل كړى وو.نوددے وجے هغوى ددے په حفاظت كښے كامياب نشو.

په خلاف د قرآن كريم څكه چه د دے د حفاظت ذمه وارى الله تعالى په خپله اخستے ده.﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا ٱلذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ ۝ ﴾ (٣) الله تعالى د قرآن د حفاظت كار د داسے كسانو نه واخستلو.چه دهغوى په باره كښے عقل دا نه تسليموى.چه دوى هم د قرآن محافظ كيدے شى.واړه واړه ماشومان د اووه اووه ،اتو اتو. نهو نهو. لسو لسو كالو ماشومان چه د دنيا دهيڅ كار قابل نه وى.د دوى په باره كښے خلقو ته هم معلومه ده.چه دوى د څه كار نه دى.اوپه خپله د دوى هم دا دعوى نه ده.چه دوى څه كار كولے شى.د دوى نه ئے دا كار اخستے دے.او ددوى فوخونه ئے تيار كړى دى.او د دوى په سينو كښے ئے ټول قرآن محفوظ كړے دے.

الله سبحانه وتعالى په خپل حكمت بالغه سره داسے اوقدرت كامله سره د داسے ماشومانو انتخاب كړے دے.چه هغوى د قرآن د حفاظت خو دلا څه چه د وركوټى كتاب د حفاظت نه هم عاجز دى.نه خو د قرآن كريم معانى پيژنى.او نه ددے د حقائقواو مقاصدو نه خبر دى.چونكه دحفاظت ذمه وارى الله تعالى په خپله اخستے ده.نوددے ذمه وارى په دے طريقه پوره كوى.

كه د اتلس يا د ديرشو څلويښتوكالو كسان وو.نو ونيل به ئے چه دا زمونږ د قربانو نتيجه ده. مونږ الله تعالى ته پته ده.چه دومره ضرورى ضرورى كارونه پريخودل اوقرآن ياد كړل.گنى دا چرته محفوظ كيدے شو.

نوالله تعالى د وړو وړو ماشومانو نه داكارواخستله.اود غتو احسان ئے وانه خستل.د وړو

---

(١) فيض البارى (٣٠/١)_

(٢) المائدة ٠٤٤)-

(٣) الحجر ٠٠٩)-

معصومو ماشومانو په باره كښې دا نښى ونيلې چه دا د دوى د قربانو نتيجه ده.ګنې دوى خو فلانې فلانې كار هم كولې شو.
بهرحال خلاصه دا ده چه ورقه بن نوفل د انجيل د حفاظت په غرض دا ليكل.كله به ئې په عربئ كښې ترجمه كول اوكله په عبرانئ كښې.چونكه ددې يادول اوحفظ مقصود نه وو.دا دقرآن كريم خصوصيت دې چه يادېږى.په باقى كتابونو كښې دا خصوصيت نشته.نوځكه په دا ليكلې او محفوظ كولې شو.ددې وجې حضرت خديجه ﷺ دلته د كتابت انجيل ذكر اوكړلو.خو د حفاظت انجيل ذكرئې اونكړلو.(١)

**قوله**:وَكَانَ شَيْخًا كَبِيرًا قَدْ عَمِيَ:ورقه بوډا وو.اونابينا شوې وو.
دلته يوبچكانه غوندې سوال پيدا كيږى چه هركله ورقه نابينا شوې وو نوليكل ئې څنګه كول؟ددې جواب ښكاره دې چه اول به ئې ليكل كول.دهغې خبر وركړې شو چه ((وكان يكتب..)) روستو نابينا شوې وو.مطلب دا دې چه په يوه زمانه كښې به هغه د انجيل ترجمه عربئ او عبرانئ كښې كوله.او اوس چه د نبى ﷺ واقعه پيښه شوه .نوپه هغه وخت كښې نابينا شوې وو.
دويم جواب دا وركولې شى.چه دلته د ..عمى.. اطلاق په ..ضعف بصارت.. باندې شوې دې.يعنى د هغوى نظر كم شوې وو.اوپه ضعف بصارت اوكتابت كښې جمع ممكن ده.
دا هم ممكنه ده.چه په حقيقت كښې نابينا شوې وو.اوبل چاته به ئې حكم كولو.او ليكل به ئې كولو.په دې صورت كښې د ليكلو نسبت ورقه ته مجازاً دې.

**قوله**:فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ يَا ابْنَ عَمِّ:ورقه ته حضرت خديجه ﷺ اوفرمائيل.اې زما د تره خويه! هم دا روايت په كتاب التعبير كښې دې.په هغې كښې د ((أى ابن عم)) الفاظ دى.په كتاب التفسير كښې د ابوذر په روايت كښې خو د ((يا ابن عم)) الفاظ دى.او د نورو حضراتو په روايت كښې د ((ياعم))الفاظ دى.
بيا دمسلم شريف په روايت كښې د ((يا ابن عم)) الفاظ دى.(٢)
امام نووى رحمه الله فرمائى.چه دواړه صحيح دى.((ابن عم)) خو ددې وجه چه هغه په حقيقت كښې ((ابن عم)) يعنى د تره خوئې وو.او ..عم.. ونيل په دې اعتبار سره صحيح دى.چه هغه په عمر كښې د دې نه مشر وو.اودعربو رواج دې چه د مشرانو ته د احترام دپاره ..عم.. وائى.(٣)

---

(١) فتح البارى (٢٥/١)_
(٢) صحيح مسلم (٨٨/١) كتاب الإيمان باب بدء الوحى إلى رسول الله ﷺ_
(٣) شرح نووى على صحيح مسلم (٨٩/١)_

حافظ ابن حجر رحمه الله دا جمع نه ده تسلیم کړې خکه چه په دواړو خایونو کښې په حدیث کښې واقعه یوه ده نوبنکاره ده چه یاخو به نے ..ابن عم.. ونیلي وي اویا به ..عم.. ونیلي وي ابن عم خو بالکل تیك دے خکه چه دا په خپل حقیقت باندے دے نوخکه به هم دا راجح او قوي وي او د ..یاعم.. په باره کښې به دا ونیلي شي چه دا د راوي وهم دے

په دے باندے دا اعتراض وارديږي چه حافظ ابن حجر رحمه الله مخکښې د «العزی بالعبرانیة»

او«العبرانی بالعربیة» په اختلاف کښې فرمانیلي وو چه دواړه تیك دي خکه چه ورقه په دواړو ژبو قادر وو نوځنګه چه هلته دا احتمال جاري کیدے شو دغه شان دلته هم کیدے شي

حافظ رحمه الله ددے جواب ورکړے دے چه هلته د دغه احتمال د ممکن کیدو وجه دا ده چه

دا د راوي کلام دے کله راوي هغه ونیلي دي اوکله دا او په «ابن عم» کښې کلام دحضرت خدیجه رضي الله عنها دے اوهغوی صرف یو خل ونیلي دي (۱)

علامه زرقاني رحمه الله فرماني زما خیال دا دے چه دا لفظ په اصل کښې «ابن عم»وو یعنی په شروع کښې حرف ندا محذوف وه بیا لفظ د ..ابن.و محرف شو او ..ای.. ترے جوړ شو (۲)

د علامه زرقاني رحمه الله دا توجیه د مسلم شرف په روایت کښې کیدے شي خود بخاري شریف په روایت کښې نے جاري کول ګران دي خکه چه په کتاب التفسیر کښې د ابوذر د

روایت نه علاوه د بل په روایت کښې «یاعم» واقع دي مګر دا چه دا اوونیلي شي چه په اصل

کښې وو«أی عم» بیا راوي روایت بالمعنی اوکړلو او «یاعم» نے اوونیل

دویم صورت د ترجیح دے چه د ابوذرروایت راجح اوګرخولے شي او د نورو حضراتو روایت مرجوح اوګنړلے شي والله اعلم

**قوله** : <u>اِسْمَعْ مِنْ اِبْنِ أَخِیكَ</u>: دخپل وراره خبره واوره

نبي ﷺ ته حضرت خدیجه رضي الله عنها د ورقه د تره خونے اوونیل

ددے وجه یا خو دا ده چه ورقه په کال او عمر کښې د نبي ﷺ نه زیات مشر وو (۳)

او یا ددے وجه دا ده چه ورقه او د نبي اکرم ﷺ پلار دواړه په قصي کښې یوخانے کیږي کوم چه د دواړو نیکهٔ دے د ورقه نسب خو ورقه بن نوفل بن اسد بن عبدالعزی بن قصي دے اود حضرت عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد مناف بن قصي لکه چه قصي ته اورسیږي نودواړه یوخانے کیږي په دے لحاظ سره لکه چه ورقه د نبي ﷺ تره شو (۴)

ورقه ورته اوونیل دا هغه رازدار دے کوم چه الله تعالی موسی علیه السلام ته رالیږلے وو

---

(۱) پورتنۍ حواله

(۲) فضل الباري (۱۷۵/۱)

(۳) فتح الباري (۲۵/۱)

(۴) پورتنۍ حواله

**قوله فقال له ورقة هذا الناموس الذي نزل الله على موسى**: ناموس د ..فاعول.. په وزن دے ((نامست الرجل إذا ساررته)) يعنى د پټو خبرو كولو نه ماخوذ دے.(١)
نمس ينمس.. (باب ضرب)معنى ئے پټول راځى.(٢)
د ناموس تفسير د بخارى شريف په كتاب التفسير كښے راځى.هلته دده تفسير امام بخارى رحمه الله په ..صاحب السر.. سره كړے دے.(٣)
علامه سهيلى رحمه الله اوابن الاثير رحمه الله دد تفسير په ..صاحب سرالملك.. سره نقل كړے دے.(٤)
ددے تولو حاصل دا دے چه ..ناموس.. رازدار ته وائى.برابره خبره ده كه ..صاحب سرالخير.. وى.اوكه ..صاحب سر الشر..وى.
بعضے حضرات وائى چه.. ناموس صاحب سر الخير.. ته وائى.او..صاحب سر الشر.. ته ..جاسوس.. وائى.(٥) دا تفريق علامه سهيلى رحمه الله هم نقل كړے دے (٦) اوعلامه نووى رحمه الله فرمائى.چه هم دا د اهل لغت او غريب الحديث د صاحبانو قول دے.(٧)
خو خبره دا ده.چه اهل لغت دواړه قولونه نقل كوى.ابن الاثير رحمه الله په النهايه كښے ..صاحب سرالملك.. قول هم نقل كړے دے.او د تفريق قول هم.
نوكيدے شى.چه داسے اوونيلى شى.چه دواړه قولونه دى.اودا هم ممكن ده.چه داسے اوونيلى شى.چه د لغت په اعتبار دواړه متحد دى.اوخو په عرف كښے فرق دے.د ..ناموس.. اطلاق په ..صاحب سرالخير.. باندے كيږى.اود ..جاسوس.. اطلاق په ..صاحب سرالشر.. باندے كيږى.
بيا دلته د ناموس نه مراد په د ټولو په نيز حضرت جبرئيل عليه السلام دے.(٨) د سيرت ابن هشام په روايت كښے ..الناموس الاكبر.. راغلى دى.(٩) اهل كتابو به جبرئيل آمين ته ..ناموس اكبر.. وئيل.
**د دې باوجود چه ورقه عيسائى وو خو د عيسى عليه السلام په ځائې د موسى عليه السلام د ذكر كولو وجه** دلته د قياس تقاضا خو دا وه.چه ((الذى نزل الله على عيسى)) ئے وئيلے وو.ځكه چه ورقه بن نوفل

---

(١) اعلام الحديث للخطابى) رحمه الله (١٣٠/١)_
(٢) شرح نووى على صحيح مسلم (٨٩/١)_
(٣) صحيح بخارى (٤٨٠/١) كتاب الأنبياء باب واذكر فى الكتا بموسى إنه كان مخلصاً ...)_
(٤) الروض الأنف (١٥٦/١) او النهاية لإبن الأثير(١١٩/٥)_
(٥) فتح البارى(٢٦/١)_
(٦) الروض الأنف (٨٩/١)_
(٧) شرح نووى على صحيح مسلم (٨٩/١)_
(٨) پورتنئ حواله)_
(٩) سيرت ابن هشام (١٥٦/١)_

نصرانی وو
بعضو ونیلی دی چه چونکه د عیسی ﷺ په نبوت کنبے یهودیانو اختلاف کول او نصاری دهغه دپاره د نبوت په ځانے ابن الله (والعیاذ بالله) ثابتوی او موسی ﷺ په یهودیانو اونصارو کنبے متفق نبی وو. ځکه ورقه دلته دهغه نوم واخستلو.(۱)
**علامه شبیراحمدعثمانی** رحمه الله **فرمانی** صحیح وجه دا ده چه د قرآن کریم نه وړاندے چه څومره صحیفے او آسمانی کتابونه راغلی دی جامع ترین کتاب تورات وو کوم چه په موسی ﷺ باندے نازل شوے وو قرآن کریم هم ددے اشاره کړے ده ﴿ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ ﴾(۲) انبیاؤ اواهل علم او دین به هم په دے باندے خپلے فیصلے کولے. ددے وجه دا وه چه دهغه وخت د احکامو په اعتبار سره دا جامع ترین کتاب وو اوپه انجیل کنبے زیات احکام نه وو. دهغے زیاته حصه په نصیحتونو او واقعاتو باندے مشتمله وه. حضرت عیسی ﷺ فرمائیلی وو. خلقو زه ددے دپاره نه یم راغلے چه تورات بدل کړم. بلکه ددے دپاره راغلے یم. چه دتورات تکمیل اوکړم. دعیسی ﷺ په راتلو صرف په یو څو جزئیاتو کنبے د زمانے د مصلحت په وجه نسخ شوے وه. قرآن کریم ددے ګواه دے ﴿ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ ﴾ (۳)
باقی په کشف الظنون کنبے چه د خلقو کوم قول ذکر شوے دے. چه مونږ تورات په استیعاب سره کتلے دے. په هغے کنبے د مونځ. روژے. حج. زکاة او حشر نشر متعلق څه تفصیل نشته.(۴) نوداحال خود خلقو تحریف د وجے شوے دے. په حقیقت کنبے تورات د احکامو دپاره جامع وو ورقه ته د آسمانی کتابونو په مطالعے سره معلومه شوے وه چه نبی ﷺ ته به هم یو جامع اواکمل ترین کتاب ملاویږی. کوم چه به د تورات نه هم جامع وی. په قرآن پاک کنبے ارشاد دے ﴿ قُلْ فَأْتُوا بِكِتَابٍ مِّنْ عِندِ اللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَا ﴾ (۵) نوځکه ورقه د موسی ﷺ ذکر اوکړلو.
اود نبی ﷺ د موسی ﷺ سره په حقیقت کنبے یو خاص مناسبت وو. په قرآن کریم د نبی ﷺ رسالت ته د موسی ﷺ سره رسالت سره تشبیه ورکړے شوے ده. ﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴾ (۶) دا تشبیه دجامعیت ده.

---

(۱) تقریر بخاری (۹۱/۱)_
(۲) المائدة ٤٤۔
(۳) آل عمران ۵۰۔
(۴) كشف الظنون (۵۰٤/۱)_
(۵) القصص ٤۹۔
(۶) المزمل ۱۵۔

تورات په خپل وخت کښے جامع وو.اوقرآن د ټولو آسمانی کتابونو او د قيامته پورے د ټولو زمانو فوائدو جامع دے.خکه د قرآن کريم په توصيف کښے الله تعالى ارشاد فرمائی.

﴿وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ﴾ (١) يعنى دا قرآن د ټولو شريعتونو نګهبان اود ټولو جامع دے.

يو مناسبت دا هم دے.چه دموسى عليه السلام فرعون هلاک شو.دغه شان د نبى ﷺ د امت فرعون ابوجهل هم هلاک شو.(٢)

**يواشكال اودهغې جواب** دلته يوه شبه دا كيږى.چه حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله په حواله د دلائل ابى نعيم په حواله سره يو حسن حديث ذكر كړے دے.چه په هغې كښے دحضرت عيسى عليه السلام ذكر دے.په دے صورت كښے به هغه ټولے نكتے كومے چه بيان شوے بے فائدے شى.

ددے جواب دا دے.چه په اصل كښے حضرت خديجه رضى الله عنها ورقه بن نوفل ته دوه خله تلے وه.يو خل يواځے اوبل خل د نبى ﷺ سره.نويه كوم وخت كښے چه يواځے تلے وه.په هغه وخت كښے نے ((نزل الله على عيسى عليه السلام)) وئيلى وو.اودا د هغوى د فهم مطابق وه خكه چه هغے هم دا پيژندل.چه ورقه نصرانى دے.اودحضرت عيسى عليه السلام په منونكو كښے دے.خوچه كله هغے نبى ﷺ بوتلو.اولاړله .نو((نزل الله على موسى عليه السلام)) ئے اووئيل.چونكه نبى ﷺ هغه ټول نكات اوحقائق پيژندلى شو.نوخكه ئے دحضرت موسى عليه السلام ذكر اوكړلو.اوحضرت خديجه رضى الله عنهاچه كله يواځے وه.نوهلته د فهم د آسانئ دپاره ئے حضرت عيسى عليه السلام ذكر كړلو.(٣)

**دعلامه سهيلى رحمه الله بيان اودهغې رد** علامه ابوالقاسم سهيلى رحمه الله په ..الروض الانف.. كښے ليكلى دى.چه ورقه دحضرت موسى عليه السلام ذكرددے وجے كړے وو.چه هغه عيسائى وو.اود عيسايانو دا عقيده ده.چه الله تعالى جوهر فرد دے.اودهغه درے اقانيم دى..وجود. كلمه.. او حياة. دهغوى په اصطلاح كښے ..وجود.. ته ..اب.. او..كلمه ته ..ابن.. او حياة.. ته ..روح القدس وئيلى شى.لكه چه الله تعالى د انډه تعالى دا درے اجزائے تركيبى دى.والعياذ بالله تعالى.

هغوى دا وائى.چه په اقانيم ثلاثه كښے اقنوم كلمه په ناسوت مسيح كښے حلول كړے دے.اوكلمه وائى.دهغوى په نيز ..علم.. ته.خكه دهغوى په رائے كښے حضرت عيسى عليه السلام په غيبو پوهيږلو.اوچه صبا به څه كيږى.ددے خبر وركول.چونكه دا دهغه نصارو مذهب وو.چه هغوى دروغژن وو.اوپه پورے ئے دروغ تړونكى وو.نوخكه ئے دحضرت عيسى عليه السلام د ذكر نه عدول اوكړلو.اودحضرت موسى عليه السلام ذكرئے اوكړلو.

يادا چه دهغوى عقيده دا وه.چه حضرت جبرئيل عليه السلام به حضرت موسى عليه السلام ته راتلو.او

---

(١) المائدة ٤٨)-

(٢) فضل البارى(٣١/١٧٦، ١٧٧)_

(٣) فتح البارى (٢٦/١)او فضل البارى (١ص٠)_

حضرت عيسى ﷺ ته د راتلو ضرورت نه وو.ځکه چه هغه خو تول هرڅه پيژندل.(۱)
خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د علامه سهيلى رحمه الله دا توجيح ټيک نه ده.ځکه چه ورقه په محرف نصرانى دين کښې داخل شوے نه وو.بلکه دهغوى ملاقات د بعضے داسے راهبانوسره شوے وو.څوك چه په اصلى عيسوى شريعت په باندے قائم اوباقى وو.(۲) والله اعلم.

**قوله** يَالَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا: د ،،يا،، په باره کښې بعضے عالمان ﷭ فرمائى چه دا ،،حرف ندا،، دے.اوددے نه پس منادى محذوفه ده.يعنى «يامحمد ليتنى فيها جزعاً»(۳)
ابن مالك رحمه الله په دے باندے اشکال کړے دے.چه داسے قسم کلام بعضے وخت متکلم په کلام کښې کوى.حالانکه هغه سره څوك هم نه وى.لکه په قرآن کريم کښې دحضرت مريم عليها السلام قول دے.﴿ يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا﴾ (۴)
دلته دے ته حرف ندا وئيل ټيك نه دى.ځکه چه هغه په دغه وخت کښې يواځے وه.نودا حرف ندا نه دے.بلکه د ،،الا،، په شان حرف تنبيه دے.(۵)

ألاليت شعرى هل أبيتن ليلة بواد وحولى إذخر وجليل (۶)

خو ددے جواب دا دے.چه کوم ځائے کښې سړے يواځے وى.اوبل څوك مخاطب نه وى.نو په داسے موقع خپل نفس ته خطاب کولے شى.يعنى ﴿ يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا﴾ (۷)
په ،،فيها،، کښې ضمير يا خو «أيام الدعوة» ته راجع دے.او يا «أيام النبوة» ته.(۸)
د ،،جذع،، اعراب او ددې وجوه. «جذعاً» دلته دوه روايتونه دى.په يو روايت کښې ،،جذع،، بالرفع دے.اوپه بل روايت کښې ،،جذعاً،، بالنصب دے.د رفع په صورت کښې خو ښکاره ده.چه د ،،ليت،، خبر دے.(۹)
البته د ،،نصب،، څو وجوه ذکر شوى دى.

---

(۱) الروض الأنف(۱/۱۵۶)_
(۲) فتح البارى (۱/۲۶)_
(۳) عمدة القارى(۱/۵۸)_
(٤) مريم ۲۳)-
(۵) عمدة القارى(۱/۵۸)_
(۶) قاله سيدنا بلال ﷺ كما فى البخارى (۱/۲۵۳) كتاب فضائل المدينة باب (بلا ترجمة) بعد ذكر كراهية النبى ﷺ أن تعرى المدينة)_
(۷) عمدة القارى (۱/۵۸)_
(۸) فتح البارى(۱/۲۶) وعمدة القارى(۱/۵۸)_
(۹) پورتنۍ حواله)_

① علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه دلته ..كان.. محذوف دے يعنى ((ليت كنت جذعاً)) (١)
دامام كسائى رحمه الله ميلان هم دے طرف ته دے (٢) كوفيانو ((انتهوا خيرا لكم)) كښے هم دا تاويل كړے دے يعنى ((انتهوا يكن خيراً لكم)) (٣)
② ابن برى رحمه الله فرمائى چه دا د ..جعل.. مفعول دے تقدير د عبارت دا دے ((يا ليتنى جعلت فيها جذعاً)) (٤)
③ كوفيان وائى چه دلته ..ليت.. ته د ..تمنيت.. عمل وركړے شوے دے لكه چه شاعر په دے قول كښے چه:.. يا ليت أيام الصبا روجعاً (٥)
④ قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه دا د حال واقع كيدو د وجے منصوب دے او ..فيها.. د ..ليت.. دپاره خبر دے علامه نووى رحمه الله فرمائى چه ((وهذا الذى إختاره القاضى هو الصحيح الذى إختاره أهل التحقيق والمعرفة ممن شيوخنا وغيرهم ممن يعتمد عليه والله اعلم)) (٦)
د ,,جذع،، لغوى معنى ..جذع.. په اصل كښے نوعمر اوخوان ځناور ته وائى كوم اوښ چه څلور كاله پوره كړى اوپه پنځم كښے داخل شى اوكومه غوا چه دوه كاله پوره كړى او كومه چيلۍ چه يوكال پوره كړى هغے ته ..جذع.. وائى (٧)
مطلب دا چه ورقه دا تمنا كوله چه كاش زه د دعوت په وړخو كښے خوان او طاقتور وے نومابه ستا پوره حمايت او مدد كړے وے
**قوله**: لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ: دا په طريقے د تنزل سره دے كه زه خوان نه يم چه كم ازكم دومره خو يم چه په هغه زمانه كښے ژوندے يم كله چه تا خپل قوم اوباسى
**قوله**: أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ: يعنى رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا خلق به ما اوباسى؟
دلته سوال دادے چه حرف عطف خوپه حرف استفهام باندے مقدم وى لكه ﴿كَيْفَ تَكْفُرُونَ﴾ (٨)

---

(١) أعلام الحديث (١٣١/١)_
(٢) عمدة القارى (٥٨/١)_
(٣) فتح البارى (٢٦/١)_
(٤) فتح البارى (٢٦/١)_
(٥) عمدة القارى (٥٨/١)_
(٦) شرح نووى على صحيح مسلم (٨٩/١)_
(٧) النهاية فى غريب الحديث (٢٥٠/١) ومجمع بحارالأنوار (٣٣٥/١)_
(٨) آل عمران (١٠١)-

او ﴿فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ﴾ (۱) او ﴿فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ﴾ (۲) كښې تاسو ګورئ چه دلته حرف استفهام دحرف عطف نه مقدم دے.نو«أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ»دا څنګه ټيك شو؟
دابن مالك رحمه الله وينا ده.چه اصل قانون هم دا دے.كوم چه ذكر شو.چه حروف عطف په حروف استفهام باندے مقدم كولى شي.خوچونكه په ادوات استفهام كښې ..همزه.. اصل دے.څكه په دے كښې ګنجائش اوګڼړلے شو.چه دا په حرف عطف باندے مقدم كړے شي.(۳)
خوحقيقت دا دے چه د ابن مالك رحمه الله دا كلام ركيك دے.څكه چه اول خو دا د «إذ يخرجك قومك»جواب دے.چه دوى ته چونكه ددے اخراج په خبر باندے تعجب اوشو.نوڅكه نبى ﷺ داستبعاد او استعجاب داظهار دپاره سوال اوكړلو.چه آيا دوى به ما اوباسى؟بيا د جواب نه وړاندے د حرف عطف د راوړلو څه معنى ده؟(۴)
دويمه خبره دا ده.چه كله دا ..همزه استفهام.. دے.او په ..مخرجي.. باندے داخل دے.نوصرف د اصل بالاستفهام په وجه دا په واو عاطفه باندے خلاف قياس ولے مقدم كړے شو.بې ضرورته ددے وجے چه په كوم ځائے كښې د دے د تقديم مقام وو.هلته مقدم دے يعنى د جمله استفهاميه ابتداء.نو بيا د واو عاطفه نه وړاندے دا ولے راوړلے شو؟(۵)
حقيقت دا دے.چه دلته مضبوطه خبره دعلامه زمخشرى رحمه الله ده.هغوى فرمائى.چه په داسے مواقع كښې معطوف عليه محذوفه وى.اوتقدير د عبارت دا دے.«أمعادي ومخرجي هم»(۶)
د «أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ» اعراب: ..مخرجي.. د يا په تشديد سره دجمع صيغه ده.دا خبر مقدم دے.او ..هم.. مبتداء مؤخره ده.ددے عكس (يعنى دا چه مخرجي مبتدا اوهم خبر اوګرځولے شي) ټيك نه ده.څكه چه په ..مخرجي.. كښې اضافت ..اضافت لفظيه.. دے.اوهغه نكره ده.او هم معرفه دے.چه نكره مبتدا اومعرفه ګرځول ټيك نه دى.
دويم صورت دا دے.چه ..مخرجي.. د مبتدا قسم ثانى اوګرځولے شى.او ..هم.. ددے فاعل.كوم چه د خبر قائم مقام دے.په دے صورت كښې به دا جمله د «أكلونى البراغيث» د قبيلے څخه وى.
دريم صورت دا دے.چه ..ومخرجي.. دتقديم سره نه وى.په دے صورت كښې به دا مبتدا

---

(۱) التكوير ۰۲۶-
(۲) الأحقاف ۰۳۵-
(۳) شرح كرمانى(۴۰/۱) وعمدة القارى(۵۹/۱)_
(۴) پورتنئ حواله)_
(۵) پورتنئ حواله)_
(۶)پورتنئ حواله)_

قسم ثاني او ..هم.. فاعل سد مسد الخبر.. گرخولے شی.په آخری دواړه صورتونو کښے به د مبتدا اعتماد په همزه استفهام باندے وی.(١)

دنبی ﷺ دتعجب وجه علامه سهیلی رحمه الله فرمائی چه د نبی ﷺ په زړه کښے دخپل وطن محبت وو.خکه چه دوی ته اوونیلی شو چه ستا قوم به تا چیړی.تاته په تکلیف درکوی په هیڅ خبره باندے د نبی ﷺ په طبیعت کښے څه تاثر اوتغیر ښکاره نشو.دوی چپ وو.خوچه کله ئے د اخراج خبره واوریدله.نوسمدستی ئے وینا اوکړله.اودے خوږ وطن سره محبت کول هم پکار وو.خکه چه هلته بیت الله دے.هلته حرم دے.هلته د دوی پلار نیکونه حضرت اسماعیل علیه السلام د زمانے راسے آباد وو.(٢)

د دوی د شدت انفعال اوتاثر دا وجه هم کیدے شی.چه دوی ته دا خیال راغلی وی که زما قوم ما اوباسی.نودایمان د دولت نه به محروم شی.نو دهغوی د هدایت نه په محرومتیا باندے متاثره شو(٣) اودا هم کیدے شی.چه دواړه خیزونوسبب دتاثیروی(٤) والله سبحانه اعلم.

**قوله:** قَالَ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلَّا عُودِيَ: ورقه اوونیل آو دا دالله تعالی طریقه ده.چه تا کومه خبره راوړے ده.چه دا سے قسم خبره کله هم چا کړے ده.دهغه سره دشمنی شوے ده.اود دشمنئ انجام ترلرے پورے رسیږی.سړے د خپل وطن په پریخودو باندے هم مجبوره کیږی.

**قوله:** وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا: یعنی که ستا سو ورځے ماته ملاؤ شوے.نو زه به تاسوسره ډیر مدد کوم.

د ..یومك.. نه مراد ..یوم اخراج.. هم کیدے شی.اود جهاد زمانه هم ممکنه ده.اوکیدے شی.چه زمانه د دعوت مراد وی.(٥)

..موزراً.. د ..ازر.. نه ماخوذ دے.معنی ئے ده.قوت اوشدت.په دے صورت کښے به معنی شی.«أنصرك نصراً قوياً بليغاً»

قزار وائی.چه ..موزراً.. د ..ازر.. نه ماخوذ نه دے.خکه چه دا مهموز نه دے.بلکه د واو سره دے.اود ..وازر یوازر.. نه ماخوذ دے.چه معنی ئے معاونت دے.خکه وئیلی شی چه ..وزیرالملك.. او ..وزراء الملك..

خو په دے باندے اشکال دا دے.چه علامه جوهری رحمه الله لیکلی دی.چه د ..معاونت.. د معنی دپاره فصیح لفظ ..آزر.. دے.کوم ته چه عوام ..وازر.. وائی.(٦)

---

(١) عمدة القارى(١/٥٩)_

(٢) فتح البارى(١٢/٣٥٩) كتاب التعبير باب أول ما بدئ به ..)_

(٣) پورتنئ حواله)_

(٤) پورتنئ حواله)_

(٥) فتح البارى (٨/٧٢١) كتاب التفسير.تفسير سورة العلق)_

(٦) الفائق للزمخشرى (١/٣٩) وفتح البارى(١٢/٣٥٩) كتاب التعبيرباب أول ما بدئ به ..)_

**قوله** ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ: اى لم يتعلق ورقة بشئ من الحياة.. يعنى څه زیاته موده نه وه تیره شوې چه ورقه وفات شو دده نه دا معلومیږي چه دده واقعې نه پس سمدستي وفات شوې وي. خو ابن اسحاق رحمه الله یوه واقعه بیان کړې ده. چه حضرت بلال رضی الله عنه کله مسلمان شو اودمکې کافرانو به ورته تکلیفونه ورکول په ګرمه شګه به ئې سملول او دهغه په خیټه به ئې ګټې کیخودل اوحضرت بلال رضی الله عنه به ..احد، احد.. ونیل چه ورقه به په هغه بندې تیر شو نو ونیل به ئې «أحد احد والله یا بلال» ...أحلف بالله لئن قتلتموه لأتخذنه حنانًا» (۱).. حنان.. وائي ځائې د رحمت ته. مطلب دا چه زه به په ده سره تبرك حاصلوم او د رحمت د نازلیدو موجب به ئې ګنړم.

دې نه معلومیږي چه ورقه د روستو زمانې پورې ژوندې وو. تردې چه دحضرت بلال رضی الله عنه د ایمان اودهغه د تعذیب وخت ئې رالاندې کړلو.

حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائي چه دا روایت وهم دې صحیح نه دې. که ورقه ژوندې وې نوهغه به د حضرت عمر، حضرت حمزه رضی الله عنه پشان ضرور مدد کړې وو. حالانکه په هیڅ ځائې کښې هم د هغه د مدد اونصرت ذکر نشته. (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا اعتراض بارد دې. ځکه چه ورقه چه کوم «لأنصرك نصرًا مؤزرًا» ونیلي وو. اووعده ئې کړې وه. د هغې مطلب دا وو چه په یوم الاخراج کښې به ستا مدد کوم. کله چه ستا قوم تا د ښار نه اوباسي. اود وطن نه به دې خارجوي. نوپه هغه وخت کښې به زه ستا حمایت کوم. (۳)

خو دحافظ توجیه تیك نه معلومیږي. ځکه چه ورقه به مسلمان شوې وي. اوهغه به د دې خبرې انتظار کولو. چه دالله تعالی رسول صلی الله علیه وسلم ته به کافران تکلیفونه ورکوي. او قوت باوجود به هغه چپ وي. دحمایت کلمه به نه وائي. اوپه دې انتظار کښې به اوسي چه کله دوی د ښار نه ویستلې شي. نوهله به د دوی مدد کوي؟ دا ډیره لرې ده.

**قوله**: وَفَتَرَ الْوَحْيُ: اوپه وحی کښې فتور راغلو. ددې تسلسل ختم شو. اوددې راتلل موقوف شو.

دلته څو مباحث دي.

**اول بحث دوحی دفتور اوانقطاع وجه** دا دې چه د وحی د فتور اوانقطاع وجه څه وه؟

جواب دا دې چه ددې درې اسباب دي.

(۱) یوخو ددې وجې چه په نبی صلی الله علیه وسلم د فرشتې د ناڅاپه راتلو په وجه چه کوم بوج پریوتې وو. هغه لرې شي.

---

(۱) سیرت ابن هشام (۲۰۲/۱) ذکر عدوان المشرکین علی المستضعفین ممن أسلم بالأذی والفتنة))_

(۲) فتح الباری(۷۲۱/۸) کتاب التفسیر. تفسیر سورة العلق_

(۳) پورتنی حواله)_

(۱) دويم سبب دا وو چه دفترور نه پس د نبى ﷺ په طبيعت كښې شوق پيدا شو. څكه چه داسې قسم څيزونه چه يو خل سړے اووينى.نوطبعاً دوباره ئې زړه ليدل غواړى.اوكوم څيز چه د شوق نه پس راشى.هغه سهل اوآسان وى.

(۱) دريمه وجه دا ده.چه څه په دوى باندے نازل شوى وو.ښكاره ده چه هغه قرآن وو.نولږه غوندے موقع ورته وركړے شوه.چه په دے كښې غور او فكر اوكړى. (۱)

**دويم بحث د فترت موده** دويم بحث دا دے.چه فترت وحى څومره موده وه؟

حافظ ابن حجر رحمه الله دبعضے حضراتو قول نقل كړے دے.چه موده د فترت وحى دوه كاله وه.(۲)

علامه سهيلى رحمه الله فرمائى.چه ابن اسحاق خو دفترت وحى ذكر كړے.ليكن د مودے ذكرئې نه دے كړے.د اخبار مسنده نه معلوميږى.چه دا دوه نيم كاله وه.(۳)

د بخارى شارحين رحمهم الله فرمائى.چه دشعبى رحمه الله د مرسل روايت نه درے كاله موده معلوميږى.«أنزلت عليه النبوة وهو ابن أربعين سنة، فقرن بنبوته اسرافيل عليه السلام ثلاث سنين، فكان يعلم الكلمة والشئ ولم ينزل عليه القرآن على لسانه، فلما مضت ثلاث سنين قرن بنبوته جبريل عليه السلام فنزل عليه القرآن على لسانه عشرين سنة»(۴)

يعنى دنبى كريم ﷺ عمرچه كله څلويښت كله شو.نو دوى ته نبوت وركړے شو.او د دوى د نبوت سره حضرت اسرافيل عليه السلام مقرون شو.هغه به دوى ته كله كله د څو خبرو القاء كوله.دا سلسله درے كالو پورے وه.اوپه دے ورځو كښې د قرآن نزول نه وو شوے.ددے نه پس حضرت جبريل عليه السلام دوى سره مقرر كړے شو.اوبيا د قرآن نزول شروع شو.شل كاله قرآن نازل شو.لس كله په مكه كښې او لس كاله په مدينه طيبه كښې.

ددے پوره اثرد كتلو نه معلوميږى.چه په دے كښې د فترت وحى د مودا بيان نشته.څكه چه په دے كښې خودا دى.چه كله نبوت وركړے شو.نواول كښې ورسره حضرت اسرافيل عليه السلام مقرر شوے وو.اوبيا درے كاله پس ورسره حضرت جبرئيل عليه السلام شوے.اودقرآن نزول روستو شوے وو.ددے نه وړاندے قرآن نه وو نازل شوے.حالانكه ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ نازل شوے وو.ددے سورت اولنى پنځه آياتونه نازل شوى وو.بيا دا وينا چه قرآن بيخى نازل شوے نه وو.څنګه صحيح كيدے شى؟

دويمه خبره دا ده.چه واقدى رحمه الله ددے اثر نه انكار كوى.اوفرمائى.چه «ليس يعرف أهل العلم ببلدنا أن إسرافيل عليه السلام قرن بالنبى، وإن علماءهم وأهل السيرة منهم، يقولون لم ينزل به غير جبريل عليه السلام

---

(۱) فتح البارى(۱۲/۳۶۰) كتاب التعبير)_

(۲) البداية والنهاية (۳/۱۷) باب كيف بدء الوحى)_

(۳) الروض الأنف للسهيلى(۱/۱۶۱)_

(۴) فتح البارى (۱/۲۷) دغه شان طبقات ابن سعد(۱/۱۹۱) ذكر مبعث رسول الله ﷺ ومابعث به..)_

من حين أنزل عليه الوحي إلى أن قبض ﷺ» (۱)
خوحافظ ابن حجر رحمه الله په دے انکار باندے نکیر کړے دے.اوفرمائیلے ئے دی.چه په نفی باندے څه دلیل نشته.نومثبت ته به نافی باندے ترجیح وی.(۲) لکه چه د دوی رائے دا ده.چه په اول کښے به ورسره اسرافیل علیه السلام مقرر کړے شوے وی.
خودا واقعه د فترت بیان ګرخول ګران دی.
دلته مونږ دا ونیلی شو چه کیدے شی حضرت عائشے رضی الله عنها ته د اسرافیل علیه السلام د قصه علم نه وی شوے اودا هم ممکن ده.چه علم ورته وو.خوهغوی داختصار دوجے ذکر اونکړلو.بهرحال صورت دا شو.چه نبی ﷺ به اول خوبونه لیدل.بیا ورسره د اسرافیل علیه السلام اقتران اوشو اودرے کاله پس ورسره دحضرت جبرئیل علیه السلام اقتران اوشو که د شعبی رحمه الله اثرثابت وی نوهم دا توجیه به وی.والله اعلم.
بیا ابن سعد رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړی دی.چه فترت وحی څو ورځو پورے وه «لما نزل عليه الوحي بحراء مكث أياما لا يرى جبريل عليه السلام» (۳)
**خلاصه**: خلاصه دا چه د فترت وحی د مودے په باره کښے څلور اقوال دی.() دوه کاله () دوه نیم کاله () درے کاله () څو ورځے.
**دریم بحث**: په زمانه د فترت کښے د جبرئیل علیه السلام نزول شوے وو که نه؟
دریم بحث دا دے.چه د فترت وحی په زمانه کښے د حضرت جبرئیل علیه السلام نزول شوے وو که نه؟
صحیح دا ده.چه دفترت وحی په زمانه کښے دحضرت جبرئیل علیه السلام نزول شوے وو.څکه چه په کتاب التعبیر کښے حدیث راځی.په هغے کښے دی.چه کله د وحی فتور اوشو.نونبی ﷺ به د ډیرغم د وجے د غرونو سوکو ته ختل.اواراده به کوله.چه خپل ځان لاندے راوغورځوی او هلاك شی.نوحضرت جبرئیل علیه السلام به سمدستی ښکاره شو.اودا به ئے ونیل.«يا محمد! إنك رسول الله حقا» د نبی ﷺ په سینه کښے چه به کوم جوش پیدا شوے وو.هغه به ختم شو.بیا به نبی ﷺ واپس راتلو.
**څلورم بحث**: د فترت وحی نه پس د ټولو نه وړاندے څه نازل شوی وو؟
دصحیحین په روایت کښے دی.چه د فترت وحی نه پس د ټولونه اول د ..يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ.. اولنی آیاتونه نازل شوی وو.(۴)

(۱) طبقات ابن سعد(۱۹۱/۱)_
(۲) فتح الباری (۲۷/۱)_
(۳) طبقات ابن سعد (۱۹۶/۱) ذکر أول ما نزل علیه من القرآن وما قیل له ﷺ)_
(۴) صحیح بخاری(کتاب التفسیر. تفسیر سورة العلق وصحیح مسلم (۹۰/۱) کتاب الإیمان باب بدء الوحی إلى رسول الله ﷺ)_

خو سليمان تيمى رحمه الله بعضے آثار داسے ذکر کړی دی چه په هغے کښے د سورة ..والضحى..
او سورة ..الم نشرح.. د مکمل نزول ذکر دے.(۱) خودا ټول آثار ضعيف دی
په حقيقت کښے دلته دوه فترت ده

(۱) يوفترت هغه دے کوم چه د ابتداء وحى په زمانه کښے وو د هغے نه پس خو ..يٰٓأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ..و نازل شوے وو.

(۲) اودويم فترت هغه دے کوم چه د درے ورځو مختصره موده وه چه د هغے نه پس سورت ..والضحى.. نازل شو.ددے فترت متعلق دابولهب دښځے واقعه ده چه رسول الله ﷺ دوه درے ورځے بيمار شو.اوحضرت جبرئيل عليه السلام رانغلو.نودابولهب ښځے وئيل شروع کړل چه «يا محمد إني لأرجو أن يكون شيطانك قد تركك لم أره قربك منذ ليلتين أو ثلاث، فأنزل الله: ﴿وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ إِذَا سَجٰى ۝ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ۝﴾ (۲) والله اعلم.

# الحديث الرابع

[۴] قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَنْصَارِيَّ قَالَ وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَقَالَ فِي حَدِيثِهِ بَيْنَا أَنَا أَمْشِي إِذْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِي فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ جَالِسٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَرُعِبْتُ مِنْهُ فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى يٰٓأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ إِلَى قَوْلِهِ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ فَحَمِيَ الْوَحْيُ وَتَتَابَعَ تَابَعَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ وَأَبُو صَالِحٍ وَتَابَعَهُ هِلَالُ بْنُ رَدَّادٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ يُونُسُ وَمَعْمَرٌ بَوَادِرُهُ [۳۰۶۶، ۴۶۳۸، ۴۶۳۹، ۴۶۴۰، ۵۸۶۰]

امام بخارى رحمه الله دلته دحضرت جابر رضي الله عنه روايت بيانوى.اول ئے د ابن شهاب زهرى رحمه الله په سند سره د حضرت عائشے رضي الله عنها حديث بيان کړے دے.

علامه کرمانى رحمه الله دا تعليق ګرځولے دے.هغوى فرمائى.چه دلته د سند اولنۍ حصه ذکر نه ده.اوکله چه د سند په ابتداء کښے حذف وى.هغے ته تعليق وائى دا بيله خبره ده.چه امام بخارى رحمه الله کله د جزم صيغے استعمالوى نوهغه معلقات عام طور مسند وى.برابره که په سند متقدم سره وى يا په بل سند سره وى.بهرحال د هغوى په نيزدا تعليق دے.(۳)

---

(۱) فتح البارى(۸/۷۱۰) كتاب التفسير.تفسير سورة العلق باب ﴿وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ إِذَا سَجٰى ۝ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ۝﴾ (الضحى ۰۰۱-۰۰۳)-

(۲)صحيح بخارى (۲/۷۳۸، ۷۳۹) كتاب التفسير.تفسير سورة والضحى)_

(۳) شرح كرمانى(۱/۴۱)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا موصولاً بالسند السابق دے یعنی «حدثنا یحیی بن بکیر قال: حدثنا اللیث عن عقیل عن ابن شهاب أخبرنی أبوسلمة ...»، لکه چه دلته سند محذوف نه دے نو دا تعلیق نشو بلکه تحویل دے.(۱)

**دتحویل قسمونه** ۱) په ابتداء کښے دوه سندونه وی.اوبیا په مینځ کښے چه په مینځ کښے یو راوی ته اورسی.نودواړه سندونه یوځائے شی.وړاندے سند یو وی.هم دا عامه طریقه ده.اواکثر هم دا صورت وی.

۲) دویم صورت ددے په عکس دے.یعنی د ابتداء نه خو یو سند وی.اوچه وړاندے لاړ شی.نودوه شی.(۲) لکه څنګه چه دلته هم دا صورت دے.چه امام بخاری رحمه الله اول د «یحیی بن بکیرعن اللیث عن عقیل عن ابن شهاب» په سند سره د حضرت عائشے رضی الله عنها حدیث ذکر کوی.اوبیا هم په دے طریق سره هم د ابن شهاب په واسطه دحضرت جابر رضی الله عنه حدیث ذکر کوی.په اول کښے سند یو وو.اوچه ابن شهاب رحمه الله ته اورسیدلو.نو جدا شو.

**قوله**: قَالَ وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ: په ظاهره د ..قال.. ضمیردغه شان د ..وهو.. اود ..یحدث.. ضمیرحضرت جابر رضی الله عنه ته راجع کیږی.هم دا علامه کرمانی اوعلامه عینی$ هم ذکر کړی دی.(۳)

خوصحیح دا ده.چه دا ضمائر نبی ﷺ ته راجع کیږی.ځکه چه هم دا روایت په کتاب التفسیر کښے راځی.اودغه شان امام مسلم رحمه الله دا روایت په خپل صحیح کښے ذکرکړے دے.(۴) په هغے کښے الفاظ داسے دی.«أن جابربن عبدالله الأنصاری رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ وهو یحدث عن فترة الوحی» په دے کښے د ..قال.. فاعل خو مذکور دے.اود ..هو.. او ..یحدث.. ضمائر هم رسول الله ﷺ ته راجع دی.والله اعلم.

**قوله**: فَقَالَ فِي حَدِيثِهِ بَيْنَا أَنَا أَمْشِي إِذْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ: نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل.چه زه روان ووم.چه د آسمان د طرفه مے یو آواز واوریدلو.په دے روایت کښے دا ذکر خو شته.چه دوی روان وو.خوکوم خوا ته روان وو؟اوپه کوم مقام کښے ورته آواز واورولے شو.ددے ذکر نشته.په یوبل روایت کښے ددے وضاحت موجود دے.په هغے کښے دی.چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل.«جاورت بحراء شهراً فلما قضیت جواری، نزلت فاستبطنت بطن الوادی، فنودیت فنظرت أمامی وخلفی وعن یمینی وعن شمالی، فلم أر أحداً، ثم نودیت فنظرت فلم أر أحداً، ثم

(۱) فتح الباری (۲۸/۱)_

(۲) فیض الباری(۲۲/۱)_

(۳) شرح کرمانی (۴۲/۱) وعمدة القاری(۶۷/۱)_

(۴) صحیح مسلم (۹۰/۱) کتاب الإیمان باب بدء الوحی إلی رسول الله ﷺ-

رتيت فرفعت رأسي، فإذا هو على العرش في الهواء، يعني جبريل عليه السلام فأخذتني منه رجفة شديدة فأتيت خديجة رضي الله عنها فقلت دثروني، دثروني، فصبوا على ماء فأنزل الله تعالى: ﴿يَآأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۝ قُمْ فَأَنذِرْ ۝ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ۝ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ۝﴾ (۱) ددے روايت نه معلومه شوه چه دوی د غار حراء نه د اعتکاف نه پس تلل. اود مقام علم هم اوشو چه دوی د غر نه راکوز شوی وو. اود خوړ په مينځ کښې وو.

**قوله** فَرَفَعْتُ بَصَرِي فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ جَالِسٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ: چه ما نظر پورته کړلو. چه اومې کتل نو هغه فرشته وه. کومه چه ماته په غار حراء کښې راغلې وه. د آسمان او زمکې په مينځ کښې په يوه کرسئ باندے ناسته وه.

..کرسی.. په کاف باندے ضمه او کسره دواړه جائز دی. جمع ئې کراسی. د راء په تشديد اوتخفيف دواړو سره ټيك ده. ابن السکيت وائی چه څه په دے وزن راشی. او دهغې په مفرد کښې ياء مشدد وه. نوبه جمع کښې به ئې تشديد اوتخفيف دواړه جائز وی. (۲)

د دے حديث نه د فرشتې په کرسئ باندے ناسته ثابته شوه. بيا د صحيح مسلم او سنن نسائی د روايت نه د نبی ﷺ په کرسئ باندے ناسته ثابتيږی. ((قال ابورفاعة انتهيت إلى النبي ﷺ وهو يخطب، قال فقلت يا رسول الله! رجل غريب، جاء يسئل عن دينه، لايدری ما دينه، قال: فأقبل علي رسول الله ﷺ وترك خطبته، حتى انتهى إلي فأتي بكرسي حسبت قوائمه حديدا، قال فقعد عليه رسول الله ﷺ وجعل يعلمني مما علمه الله، ثم أتى خطبته فأتم آخرها)) (۳)

د دے نه معلومه شوه. چه په کرسئ باندے په کيناستو کښې څه قباحت نشته. کيناستے شی.

**دحضرت علامه کشميری رحمه الله يوه واقعه:** اوريدلی شوی دی. چه علامه کشميری رحمه الله په يوځائې کښې په جمات کښې ناست وو وعظ ئې کولو. سمدستی د يو کس په زړه کښې دا خيال راغلو. چه جمات اوبيا په کرسئ باندے ناسته!!

حضرت شاه صاحب رحمه الله ته ددے خطرے احساس اوشو. نوحضرت مسلم شريف راوغوښتلو اوهم دا حديث ئې اولوستلو. او واورولو. کوم چه پورته مونږ ذکر کړلو. والله اعلم.

**قوله** فَرُعِبْتُ مِنْهُ: ماچه جبرئيل عليه السلام اوليدلو نو مرعوبه شوم

..رعبت.. مجهول هم لوستلے شوے دے. او ..رعبت.. معروف هم لوستلے شوے دے.

دصحيح بخاری په يو روايت کښې دغه شان په صحيح مسلم کښې ((فجئت منه حتى هويت إلى

---

(۱) پورتنئ حواله۔

(۲) عمدة القاری (۱/۶۶)۔

(۳) صحيح مسلم (۱/۲۸۷) کتاب الجمعة دغه شان سنن نسائی (۲/۳۰۲) کتاب الزينة باب الجلوس على الكرسی)

الأرض)) الفاظ راغلي دي. ددے معنی هم ویریدل دی. مطلب دا چه زه د ویرے د وحے گهبراز شوم. تردے چه په زمکه راپریوتم.

**قوله** فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي: زه واپس راغلم اوما اوونیل چه ما په کمبل کښے پټ کړئ داصیلي اوکریمه په روایت کښے دغه شان یوکرتے دی. اوپه نورو نسخون کښے ..زملوني زملوني.. دوه کرته راغلي دی.[1] بیا په کتاب التفسیر کښے ..دثروني.. الفاظ راغلي دی.[2] په دے مناسبت سره ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۝ قُمْ فَأَنْذِرْ﴾ آیاتونه نازل شول.

د کتاب التفسیر په روایت کښے ..دثروني وصبوا علي ماء باردا)) هم راغلي دی یعنی په مابانده څادر واچوئ. اوپه مابانده یخے اوبه راواړوئ. په نبی ﷺ بانده ویره راغلے وه. اوزیدل پرے راغلي وو. په دے کښے د سکون پیدا کولو دپاره نبی ﷺ د کپړے اچولو حکم اوکړلو. اود اوبو په اړولو بانده هم په طبیعت ته څه آرام ملاویږی. نوځکه نے اوفرمائیل. چه ((صبوا علی ماءً باردا))

اودا هم ممکن ده. چه په نبی ﷺ بانده د ویرے د وحے تبه راغلي وی. اوعربیان د تبے علاج په یخو اوبو سره کوی.[4] نبی کریم ﷺ په خپله فرمائیلی دی. ((الحمی من فیح جهنم، فأبردوها بالماء))[5] یعنی د تبے اثر د جهنم د ساګانو څنے دے. دا په اوبو سره یخه کړئ.

**قوله** فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ إِلَى قَوْلِهِ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ: یعنی کله چه دوی کمبل واغوستلو. اوسملاستلو. نو دالله تعالی د طرفه ورته خطاب اوشو. ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۝﴾

دغه شان په قرآن کریم کښے دوی ته ﴿يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ۝﴾ وئیلی شوی دی. او مخاطب شوی دی. په بعضے روایاتو کښے دی. چه کافرانو په دارالندوة کښے غونډه راغوستله. اومشوره نے اوکړله. چه نبی ﷺ ته داسے نوم ورکړئ. چه خلق ترے منع شی. چا د ..کاهن.. وئیلو مشوره ورکړه. خورد شوه. چه دے کاهن نه دے. چا د لیونی وئیلو رائے ورکړه. خودا رائے هم مسترده شوه. چا د ..ساحر.. وئیلو رائے ورکړه. اګرچه هغوی رائے ورکړه چه دے ساحر نه دے. خو په دے بانده مجلس ختم شو. نبی کریم ﷺ ته چه کله ددے علم اوشو. نو هغوی غمګین

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیرب. تفسیر سورة المدثر. باب والرجز فاهجر_ دغه شان صحیح مسلم (۹۰/۱) کتاب الإیمان باب بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ_

(۲) فتح الباری (۲۸/۱)_

(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر. تفسیر سورة المدثر. باب رقم ۱۰) وباب وربک فکبر)_

(۴) زادالمعاد فی هدی خیرالعباد (۲۵/٤) فصل فی علاج الحمی)_

(۵) صحیح بخاری (٤٦٢/١) کتاب بدء الخلق باب صفة النار وأنها مخلوقة )_

شول او څادر ئې واغوستلو او سمدستلو په دې باندې حضرت جبرئیل علیه السلام د سورة مزمل آیتونو نازلولو سره تشریف راوړلو (۱)

چونکه نبی ﷺ چه جبرئیل علیه السلام لیدلے وو نو ویره پرې راغلے وه او څادر ئې اوغوستے وو نو په دې مناسبت سره ورته په ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ سره خطاب اوشو اوکله چه د قریشو د کافرانو د تکنیفونو نه غمژده شو او څادر ئې واغوستلو نو په ﴿يَاأَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ﴾ سره ورته خطاب اوشو.

**خطاب د محبت وملاطفت** بهرحال په ﴿يَاأَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ﴾ او ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ دواړو کښې د محبت وملاطفت خطاب دے مخاطب چه په کوم صفت سره متصف کولے شي نو په مینه کښې هغه صفت ذکر کولے شي لکه د حضرت علی رضی الله عنه واقعه د احادیثو په کتابونو کښې راغلے ده چه حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمه رضی الله عنها نه خفه شو نو مسجد نبوی ته راغلو او سملاستلو نو هغه شاه او خټ باندې خاورې اولګیدلے نبی ﷺ جمات ته تشریف راوړلو او د هغه د شاه نه ئې خاورې څنډلے او آواز ئې ورکوله «قم يا أبا التراب، قم يا أبا التراب» (۲) یعنی اے د خاورې خاونده! پاسه اے د خاورې خاونده! پاسه دا خطاب د محبت او مینې خطاب وو

**قوله ﴿قُمْ فَأَنْذِرْ﴾:** ته پاسه ته تیار او مستعد شه اوس په تا دعوت ورکول دي او خلقو ته توحید بیانول دي. (۳)

..انذار.. ویرولو ته وائي. خو مطلق ویرولو ته نه وائي بلکه دے ته تخویف وائي په کوم چه د بد انجام نه ویرولے شي. (۴) یعني پاسه او خلقو ته اوښایه. که توحید نه قبلوئ نو ستاسو انجام به خراب وي. او تاسو به جهنم ته اوغورځولے شئ.

نبی ﷺ چه یو طرف ته ..منذر.. ګرځولے شوے او دالیرلے شوے دے نو ..مبشر.. هم ګرځولے شوے دے ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا﴾ (۵) خو دلته صرف د ..انذار.. د دے وجې تذکره کړے شوے ده. چه په هغه وخت کښې چه کوم خلق موجود وو هغه د ..انذار.. قابل وو. ټول کافران او مشرکان وو کله چه څه مسلمانان شول نو بیا الله تعالی د دوی دپاره دواړه اوصاف ذکر کړل. (۶)

**قوله ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾:** او د خپل رب په قولاً اوفعلاً عظمت بیان کړه پخپله هم د دے عظمت

---

(۱) تفسير ابن كثير (۴/۴۳۴)_

(۲) صحيح مسلم (۲/۲۸۰) كتاب فضائل الصحابة رضی الله عنهم باب من فضائل علی بن ابی طالب رضی الله عنه )_

(۳) الكشاف للزمخشری (۴/۶۴۵) تفسير سورة المدثر)_

(۴) مجمع البحار (۴/۶۸۱)_

(۵) الأحزاب ۴۵)-

(۶) روح المعانی (۱۵/۱۳۳) تفسير سورة المدثر)_

قائل اوسه.او نورو ته هم د خلقو د عظمت سبق اولوله.(۱) دا د دے وجے چه انذار ترهغه وخته پورے نه متحقق کیږی.ترڅوچه د عظمت یقین نه وی.دالله تعالی د توحید په نه منلو چه د کوم عذاب نه ویرول کولے شی که دالله تعالی د عظمت یقین نه وی.نود دوزخ او دهغے دعذاب یقین به څنګه پیدا شی.

بعضے کسانو ونیلی دی.چه دلته د ..کبر.. نه مراد په تحریمه صلاة کنبے ..الله اکبر.. ونیل دی (۲) څکه چه په دے کنبے هم دالله تعالی عظمت بیانیږی.خو دومره ده چه په دے کنبے دالله تعالی عظمت په یوه خاص طریقه بیانیږی.

خو په دے مقام کنبے راجح اوښکاره هم دا ده.چه دا خاص معنی مراد نه ده.بلکه عام معنی یعنی مطلق تعظیم بیانول مقصود دی.څکه چه دلته د ..کبر.. مفعول به ..ربك.. مذکور دے.اوکه د ..کبر.. نه مراد ..الله اکبر.. ونیل مقصود وو.نو دے ته قصر ونیلی شی.اوپه قصر کنبے مفعول به نه ذکر کیږی.لکه ..سجل.. ..حوقل.. په خلاف د ..سبح.. چه ددے مفعول اومتعلقات ذکر کوی.(۳) دلته چونکه ..وربك فكبر.. ونیلے شوے دے.او ..ربك.. مفعول به دے.کوم چه دلته مذکور دے.نوڅکه به دلته عامه معنی مراد وی.چه ته فعلاً وقولاً واعتقاداً دالله تعالی د عظمت درس ورکوه.اوپه خپله هم په خپل زړه کنبے دالله تعالی د عظمت یقین ساته.

**قوله**: ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾: اوخپلے جامے پاکے ساته.لکه چه څنګه چه به دے وړاندے پاکے ساتلے.بعضے حضرات فرمائی.چه دلته د ..ثیاب.. نه مراد ..نفس دے.(۴) مطلب دا دے.چه خپل نفس په اخلاق حمیده باندے موصوف کړئ.او دا د اخلاق رذیله نه بچ ساتئ.لکه څنګه چه تاسود وړاندے نه داپه اخلاق حمیده باندے موصوف ساتلے اود اخلاق رذیله نه بچ ساتلے دے. د ..ثیاب.. نه بعضے حضراتو ددے ظاهری معنی یعنی هم جامے مراد اخستے دی.(۵) او مطلب ئے دا بیان کړے دے.چه تاسو خپلے جامے داسے پاکے ساتئ.لکه څنګه چه به مو وړاندے پاکے ساتلے.اوکله چه د جامو دپاره دا حکم شو.د نفس دپاره به په طریق اولی سره دا حکم وی.کله چه دظاهرد پاکولو تاکید کیږی.نود باطن د پاکولو تاکید خوبیا زیات تاکیدی وی.لکه څنګه چه نبی ﷺ فرمانیلی دی.«نظفوا أفنيتكم»(۶)خپلو کورونو ته مخامخ خاﺋونه (انګړونه) پاك ساتئ.ددے معلومه شوه.چه د دننه د کمرو او د بهر پاکول په طریق اولی سره ضروری دی.

---

(۱) پورتنئ حواله)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) د تفصیل دپاره اوګورئ. فیض الباری (۳۳/۱)_

(۴) الجامع لأحکام القرآن(۶۲/۱۹)_

(۵) پورتنئ حواله)_

(۶)أخرجه الترمذي في جامعه عن سعدبن أبي وقاص في كتاب الأدب باب ما جآء في النظافة رقم ۲۷۹۹).

**قوله ﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾:** د..رجز.. تفسير امام بخارى رحمه الله په ..اوثان.. سره كړے دے.(۱) اومطلب دا دے چه لكه څنګه تاسو د بت پرستئ نه خان ساتلو.دغه شان روستو هم ددے نه خپل خان بچ ساتئ.
ددے مطلب دا نه دے چه د نبى ﷺ والعياذبالله د ..اوثان.. سره څه تعلق وو.اودهغے د پريخودلو حكم ورته كولے شى.بلكه دا امر د استمرار دپاره دے چه لكه څنګه تاسو ..اوثان.. پريخودے دى.دغه شان ئے په آئنده كښے پريخے اوساتئ.
نبى كريم ﷺ چرته د بتانو دتعظيم دپاره نه دے تلے.يوځل د دوى د خاندان خلق داختر كولو دپاره تلل.هلته د بتانو تعظيم هم وو.نبى ﷺ نه تلو.چه دكور خلق اود كور ښځے خفه شوے.نو نبى ﷺ هلته تشريف يوړلو.خوچه هلته اورسيدلو.نوېټ شو . بيا چه كله راواپس شو.نو په ويره وو.د دوئ نه ترور يانو تپوس اوكړلو.نودوى ورته جواب وركړلو چه ماسره ويره وه.هسے نه په ما باندے د پيريانو وغيره اثر اوشى .هغوى ورته تسلى وركړه.چه ته د ښه صفاتو مالك ئے.الله تعالى به په تاسو د شيطان داثر نه محفوظ ساتى.بيا ئے ترے تپوس اوكړلو.چه تاسو هلته څه اوليدل؟ نو نبى ﷺ ورته اوفرمائيل چه هلته زه كله بت ته ورنزدے شوم.نو يو سپين د اوږد قد سړے به ماته ښكاره شو.اوونيل به ئے چه خبر دار! اے محمده! دے كوتے مه وراوړه.ددے نه پس نبى ﷺ دے خلقو سره هيڅ يو اخترته نه دى تلے.(۲)
د ..رجز.. يوبل تفسير دا هم شوے دے.چه ددے نه مراد عذاب دے.(۳) او مطلب دا دے.چه عذاب سبب جوړيدو چه څومره څيزونه دى.منكرات. معاصى او فواحش.ددے نه خپل خان په حفاظت كښے محفوظ ساته.(۴)
بهرحال كه د ..رجز.. معنى د عذاب وى.اومراد سبب دعذاب وى.نو..اوثان.. په خپله په دے كښے داخل دى.

**قوله فَحَمِيَ الْوَحْيُ وَتَتَابَعَ:** د..حمى.. معنى ګرموالے دے.ددے نه مراد د وحى په كثرت سره راتلل دى.قاعده دا ده.چه كله يو څيز په كثرت او شدت سره راځى.نو وئيلى شى.چه څيز ګرم شو.په بازار كښے چه كله دخرڅولو او اخستلو سلسله زياته شى.نووائى.چه بازار ګرم دے.

---

(۱) صحيح بخارى(۷۳۳/۲) كتاب التفسير.تفسير سورة المدثر.باب قوله:﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ وباب وقوله : ﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾ _

(۲) دلائل النبوة لأبى نعيم الاصفهانى(۱۸۷/۱) الفصل ..... الله عزوجل به من العصمة وحماه من التدين بدين الجاهلية وحراسته إياه عن مكايد الجن وإحتيالهم عليه ﷺ_

(۳) صحيح بخارى (۷۳۳/۲) كتاب التفسير.تفسير سورة المدثرباب قوله:﴿ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾ _

(۴) تفسير كبير(۱۹۳/۳۰) وتفسير قرطبى (۶۶/۱۹)_

دغه شان دلته د ..حمي الوحي.. معنی دا ده چه اوس د وحی راتلل پرله پسې او مسلسل شروع شوه په ..تتابع.. کښې دده تصریح او تاکید دے.
خو دده مطلب دا نه دے چه اوس به هر وخت وحی راتله بلکه مطلب دا دے چه لکه څنګه په اول خل انقطاع راغلې وه د کومې په باره کښې چه مونږ مخکښې د عالمانو مختلف اقوال بیان کړی دی هغه شان معتدبه انقطاع نه وه د یوے نیمے ورځے ته انقطاع نشی ونیلې څکه چه په واقعه د افك کښې څه یوه میاشت په نبی ﷺ باندے وحی نه وه راغلې خو دے موده ته چاد فترت نوم نه دے ورکړے والله سبحانه اعلم.

**قوله تَابَعَهُ عَبْدُاللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ وَأَبُوصَالِحٍ وَتَابَعَهُ هِلَالُ بْنُ رَدَّادٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ:**

د اولنی .تابع..فاعل خو ښکاره ده چه عبدالله بن یوسف او ابوصالح دی خودده د مفعول ضمیر دامام بخاری رحمہ اللہ استاذ یحیی بن بکیر طرف ته راجع کیږی (۱) مطلب دا دے چه لکه څنګه یحیی بن بکیر رحمہ اللہ دا روایت د لیث نه نقل کړ دے نودغه شان عبدالله بن یوسف اوابوصالح هم د لیث شاګردان دی اوهغوی هم دا روایت د لیث نه نقل کړے دے لکه چه دے دواړو په خپل مشترکه استاذ لیث نه دده روایت په نقل کولو کښې د یحیی بن بکیر متابعت کړے دے.
دعبدالله بن یوسف التنیسی روایت امام بخاری رحمہ اللہ په خپل صحیح کښې په کتاب الانبیاء کښې نقل کړے دے.(۲)
او د ابوصالح نه مراد دلیث کاتب عبدالله بن صالح دے.(۳)
امام بخاری رحمہ اللہ ددوی هغه روایات کوم چه هغوی د لیث نه نقل کوی.په بخاری شریف کښې په کثرت سره تعلیقاً ذکر کړی دی:(۴) یعقوب بن سفیان په خپل تاریخ کښې د ابوصالح عن اللیث روایت موصولاً ذکر کړے دے.(۵) حافظ شرف الدین دمیاطی رحمہ اللہ دا فرمائیلی دی چه دابوصالح بن مراد دلته عبدالغفار بن داود خرانی دے.(۶) خودا وهم دے.د ابوصالح کاتب اللیث روایت موجود دے.خود ابوصالح عبدالغفار بن داود د روایت چا ذکر نه دے کړے.(۷)
دابوصالح روایت رویانی رحمہ اللہ په خپل مسند کښې هم ذکر کړے دے.(۸)

---

(۱) فتح الباری(۱/۲۸)_
(۲) صحیح بخاری (۱/۴۸۰) کتاب الأنبیاء باب واذکر فی الکتاب موسی إنه کان مخلصاً)_
(۳) فتح الباری (۱/۲۸)_
(۴) پورتنئ حواله)_
(۵) پورتنئ حواله دغه شان تغلیق التعلیق (۲/۱۷)_
(۶) فتح الباری (۱/۲۸)_
(۷) پورتنئ حواله)_
(۸) تغلیق التعلیق (۲/۱۷)_

بیا په دویم ..تابعه.. کښې ضمیرد مفعول عقیل طرف ته راجع دے.کوم چه د امام زهری رحمه الله شاګرد دے.(۱) او مطلب دا دے چه لکه څنګه دا روایت عقیل د زهری رحمه الله نه نقل کوی.نودغه شان ئے هلال بن رداد رحمه الله هم د زهری رحمه الله نه نقل کوی.

د هلال بن رداد روایت امام ذهبی رحمه الله په ..زهریات.. کښې موصلا روایت کړے دے.(۲)

**متابعت** امام بخاری رحمه الله په دے مقام کښې په اول خل د متابعت ذکر کړے دے نو ددے په باره کښې څه تفصیل زده کړئ.

**دمتابعت لغوی او اصطلاحی معنی** ..متابعت.. په لغت کښې وائی چا په پسے شاه ته روانیدل. داهل اصول په اصطلاح کښې متابعت دے ته وائی چه یوراوی یو روایت د خپل استاذ نه نقل کړی.اودویم راوی هم دا روایت نقل کړی.اود اول راوی سره شریك شی.دا شرکت که په اولنی استاذ کښې وی یا په شیخ الشیخ یا دده نه پورته په چا کښې وی دغه شان دا هم ضروری نه ده.چه د دواړو روایتونو الفاظ یو شان وی. بلکه که په الفاظو کښې مشارکت وی.یا صرف په معنی کښې.په دواړو ورتونو کښې ورته متابعت وائی.(۳)

**دمتابعت قسمونه** ددے تفصیل نه به تاسوته معلومه شوے وی.چه دمتابعت دوه قسمونه دی.

() یو دا چه مشارکت په اولنی شیخ باندے اوشی.لکه څنګه چه دلته عبدالله بن یوسف اوابوصالح دواړه د لیث نه په روایت کولو کښې د امام بخاری رحمه الله داستاذ یحیی بن بکیر شریکان دی.دے ته متابعت تامه وائی.

() دویم صورت دا دے چه مشارکت په اول کښې نه وی.بلکه چه وړاندے لاړ شی.نو د شیخ الشیخ یا ددے نه هم پورته کیږی.لکه دلته چه هلال بن رداد د عقیل سره مشارکت کوی.اود دواړو شیخ امام زهری رحمه الله دے.دا اول د سند نه دے.بلکه د سند په درمیان کښې مشارکت کیږی.څکه دے ته متابعت قاصره یا ناقصه وائی.(۴)

**دشاهد تعریف** دمتابع سره نزدے نزدے یو لفظ دے..شاهد..

او..شاهد.. وائی.هغه حدیث ته کوم چه یو راوی روایت کړی اوهغه د بل راوی د روایت سره لفظاً یا معنیً مطابقت اوکړی.خو په دے شرط چه په دواړو روایتونو کښې صحابی رضی الله عنه جدا جدا وی.(۵)

---

(۱) فتح الباری(۲۸/۱)_

(۲) فتح الباری(۲۸/۱) وهدی الساری (ص.۲۰) وتغلیق التعلیق (۱۷/۲)_

(۳) شرح المنظومة البیقونیة (ص.۱۲۸)_

(۴) شرح المنظومة البیقونیة(ص.۱۲۸)_

(۵) شرح نخبة الفکرمع حاشیة لقط الدرر(ص.۶۵ ۶۶)_

په ,,متابع،، او ,,شاهد،، كښې فرق په ,,متابع،، او ,,شاهد،، كښې اصلاً فرق دا دے چه په متابع كښې صحابي ﷺ يو وى.اوپه شاهد كښې جدا جدا وى.البته بعضے وخت د يو اطلاق په بل باندے توسعاً كيدے شى.(١)

**قوله وَقَالَ يُونُسُ وَمَعْمَرٌ بَوَادِرُهُ:** دا يونس اومعمر هم د امام زهرى رحمه الله شاگردان دى.اود عقيل متابع دى.لكه څنگه چه هلال بن رداد متابع دے.خوفرق دا دے چه هلال بن رداد خو د عقيل پشان ,,فواده،، ذكر كوى.يعنى ,,ويرجف فواده،، وائى.اويونس اومعمر د ,,وفواد،، په ځائے د ,,بوادر،، لفظ ذكر كوى.او ,,ترجف بوادره،، ذكر كوى.
مخكښے مونږ د ,,فواد،، او ,,بوادر،، پوره تشريح هم كړے دے.

**دمتابعت فائده** دلته امام بخارى رحمه الله د يونس اومعمر متابعت ذكر كړلو.اوبيا ئے د دوى په حوالے سره اختلاف د روايت نقل كړلو.لكه چه دا ئے اوخودله.چه په متابعت كښے په الفاظ كښے اتحاد څه ضرورى نه دے.د مفهوم يووالے كافى دے.والله سبحانه اعلم

**دحديث باب د ترجمة الباب سره مناسبت** دا دريم حديث دے.اوهم دا يو حديث دے.كوم چه د ترجمة الباب سره بيخى په ظاهرى مطابقت لرى.څكه چه په دے حديث كښے دا خودلى شوى دى.چه د وحى شروع داسے شوے وه.اول ورته رويائے صالحه اوخودلى شول.ددے نه پس په دوى كښے دخلوت شوق پيدا شو.بيا يوه ورځ چه نبى ﷺ په غارحراء كښے وو.حضرت جبرئيل عليه السلام اولنئى وحى راوړله.اوتشريف ئے راوړلو.دا ټول تفصيلات د ((باب كيف كان بدء الوحى إلى رسول الله ﷺ)) سره بالكل موافق دى.

اود حضرت شيخ الهند رحمه الله د قول مطابق كه دا باب د عظمت وحى د بيان دپاره اوګڼړلے شى.نوبيا هم تقرير ښكاره دے.څكه چه ددے روايت نه د عظمت وحى زبردسته اندازه لګى.چه حضرت جبرئيل عليه السلام راغلو.اونبى ﷺ ئے درے څله د خپلے سينے سره اولګولو.اوبيا ئے نبى ﷺ ته زور وركړلو.اوددے زور وركولو د وجے نبى ﷺ تكليف برداشت كړلو.ددے نه ښكاره ده.چه وحى ډير عظيم الشان خيز دے.د كومے دپاره چه جبرئيل عليه السلام دآسمان نه راغلو.اونبى ﷺ ئے ددے دپاره تيار كړلو.اودوى تكليف برداشت كړلو.

دغه شان په دے كښے د ,,موحى اليه،، يعنى نبى كريم ﷺ د اوصاف عاليه ذكر هم شته.نو دوحى د مبادئ ذكرپه كښے هم راغلو.په دے لحاظ سره هم دا روايت د ترجمة الباب سره مناسب دے.والله سبحانه وتعالى اعلم

---

(١) پورتنئ حواله)_.

# الحديث الرابع

[د] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ قَالَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَبِي عَائِشَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (۱) فِي قَوْلِهِ تَعَالَى لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَالِجُ مِنَ التَّنْزِيلِ شِدَّةً وَكَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَأَنَا أُحَرِّكُهُمَا لَكُمْ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَرِّكُهُمَا وَقَالَ سَعِيدٌ أَنَا أُحَرِّكُهُمَا كَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يُحَرِّكُهُمَا فَحَرَّكَ شَفَتَيْهِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ قَالَ جَمْعُهُ لَكَ فِي صَدْرِكَ وَتَقْرَأَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ قَالَ فَاسْتَمِعْ لَهُ وَأَنْصِتْ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا أَنْ تَقْرَأَهُ فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ إِذَا أَتَاهُ جِبْرِيلُ اسْتَمَعَ فَإِذَا انْطَلَقَ جِبْرِيلُ قَرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا قَرَأَهُ [illegible]

# رجال الحديث

**قوله مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ:** دا ابوسلمه موسى بن اسماعيل التبوذكى البصرى دے. د صحاح سته په راويانو كښے دے ثقه او ثبت دے. (۲)

د دوى يوه عجيبه قصه د امام يحيى بن معين سره نقل كړے شى امام يحيى بن معين رحمه الله موسى بن اسماعيل رحمه الله ته ورغلو او دا ئے اوونيل چه اے ابوسلمه! چه دا روايت عفان او حبان روايت كوى او ستاسو په شاګردانو كښے ئے څوك نه روايت كوى او بيا ستا دا حديث ستا په كتاب كښے ملاؤ نو بلكه په شاه باند راته ملاؤ شو.

موسى بن اسماعيل تپوس اوكړلو چه ته څه غواړے؟

امام يحيى بن معين رحمه الله اوفرمائيل چه ته قسم اوخورى چه تا دا حديث د حماد نه اوريدلے دے ابوسلمه موسى بن اسماعيل اوفرمائيل ته دا وائے چه ما ستا نه شل زره احاديث ليكلى

---

(۱) احديث أخرجه البخاري أيضا في كتاب التفسير. تفسير سورة القيامة. باب لا تحرك به لسانك لتعجل به رقم. (۴۹۲۷) وباب: إن علينا جمعه وقرآنه. رقم ۴۹۲۸ وباب قوله: فإذا قرأناه فاتبع قرآنه رقم. ۴۹۲۹. وفي كتاب فضائل القرآن باب الترتيل في القراءة رقم. ۵۰۴۴ وفي كتاب التوحيد باب وقول الله تعالى: لاتحرك به لسانك رقم (۷۵۲۴ .. ومسلم في صحيحه في كتاب الصلاة باب الإستماع للقراءة رقم. ۱۰۱۲ و۱۰۱۳ والنسائي في سننه في كتاب الإفتتاح باب جامع ما جاء في القرآن رقم. ۹۳۶ والترمذي في جامعه في كتاب التفسير باب ومن سورة القيامة رقم. ۳۳۲۹ وأحمد في مسنده (۱/ ۳۴۳)_

(۲) د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (۲۹/ ۲۱. ۲۶)_

دى كه په هغې كښې زه ستا په نيز ريښتينې يم.نو تا لره پكار دى چه په يو حديث كښې زما تكذيب اونكړې اوكه زه دروژن يم نو تا لره پكار دى.چه په دغه ټولو احاديثو كښې زما تصديق اونكړې اونه زما حدث اوليكې پلكه دغه ټول احاديث اوغورځوه بيا ئې اوفرمائيل زما ښځه بره پنت ابى عاصم د په درې كانړو طلاقه وى.كه ما د همام نه دا روايت نه وى اوريدلې او په الله قسم چه زه به تاسره كله هم خپر اونكړم (١)

خو حضرات محدثين كرام ﷺ الله دې ورته جزائې خير وركړى زهغوى ته دد څيزونو څه پرواه نه وه د امام يحيى بن معين رحمه الله معمول هم دا وو چه كله به ورته د چا په روايات كښې څه شك پيدا شو.نو هلته به ئې د استاذ نه به ئې بار بار تپوسونه كول او هلته به ئې د هغه نه قسم اخستلو.

ابن خراش رحمه الله د دوى په باره كښې ونيلى دى.«تكلم الناس فيه» خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دې خبرې ته التفات نه دې كول پكار.

په كال ٢٢٣ هـ كښې وفات شو.(٢)

**قوله أَبُو عَوَانَةَ**: د دوى نوم وضاح بن عبدالله يشكرى دې.دې هم د صحح سته په راويانو كښې دې.او قه او ثبت دې.(٣)

دوى د يزيد بن عطاء بن يزيد يشكرى مولى وو.د جرجان نه په قيد كښې راغلې وو يزيد واخستلو.او دوى ته ئې اختيار وكړولزچه يا خو آزاد شه.او يا حديث ليكه دوى كتابت حديث ته په آزاديدو باندې ترجيح وركړه.(٤)

د دوى مالك دوى ته تجارتى كاروبار حواله ړولزيو ځ يو سوالگر راغلو او وې ونيل.كه ماته دې دوه درهم راكړل.نو زه به تاته فائده اورسوم.دوى ورته دوه درهم وركړل.هغه سائل د بصره مالدارانو ته ورغلو.او وې ونيل.زر كوئ يزيد بن عذاء ته ورشئ.هغوى ابوعوانه آزاد كړې دې.نوخلق يزيد ته اورسيدل.د يوې ډلې نه پس به بله ډله رسيدله.يزيد خيال اوكړلو.كه زه انكار اوكړم.نز زماد احاديثو نه به انكار اوشى نو ابوعوانه ئې حقيقة آزاد كړلو.(٥)

**قوله مُوسَى بْنُ أَبِي عَائِشَةَ**: دا موسى بن ابى انشه الهمدانى البوالحسن الكوفى دې.سفيانين يحيى بن معين او ابن حبان رحمه الله وغيره د دوى توثيق كړې دې.د هم د اصول سته په راويانو كښې دې.(٦)

---

(١) تهبيب الكمال (٢٩/ ٢٦)

(٢) تقريب التهذيب (ص.٥٤٩. رقم ٦٩٤٣)_

(٣) تهذيب الكمال (٣٠/ ٤٤٨)_

(٤) تهذيب الكمال (٣٠/ ٤٤٨)_

(٥) تهذيب الكمال (٣٠/ ٤٤٨) وسير أعلام النبلاء (٨/ ٢١٨. ٢١٩_

(٦) تفصيل دپاره اوگورئ (ت تهذيب الكمال (٢٩/ ٩٠. ٩٢)_

**قوله** سَعِیدُ بْنُ جُبَیْر: دا مشهور تابعی سعید بن جبیر بن هشام اسد رحمه الله دے. د دوی په ممت. جلالت شان. علوفي العلم او عظیم العبادة باند اجماع ده. حجاج بن یوسف ثقفی دے په کال ۹۵ھ نبے قتل کړےوو دد نه جاج هم خو ورځو پورے ژوندے پاتے شو.
دوی د ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه احادث اوریدلی دی. او د دوی ډیرو تابعینو علم حاصل کړے دے دوی د ..جهبذ العلماء..(۱) په لقب سره یادول شی (۲)

**قوله** عبدالله بن ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما: عبدالله بن عباس رضی الله عنه بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد مناف د نبی د تره خوے وو. د دوی مور ام الفل لبابة الکبری د ام المومنین حضرت میمونه رضی الله عنها خور وه.
په شعب ابی طالب کښې دهجرت نه درے کاله وړاند پیدا شو وو او په ۶۸ ھ کښې چه د دوی عمریو اویا کاله شو وفات شو. اوپه طائف کښې دفن شو په اخری عمر کښې دوی نابینا شوې وو.
دوی ته د کثرت علم د وجے د ..حبر.. او ..بحر.. په القابو سره یادولے شی. د خلفائے عباسیه پلاردے. او په ..عبادله اربعه.. کښې شمار وو.(۳) د قرآن کریم په تفسیر او تاویل کښې ورته ډیر مهارت حاصل وو. نبی اکرم ﷺ د دوی دپاره دعا کړے وه. «**اللهم فقهه فی الدین وعلمه التأویل**» (۴) هم دا وجه ده چه دوی ته د ..رئیس المفسرین ونیلی شی. اود ..ترجمان القرآن.. (۵) عظیم لقب ورته ملاؤ شو.
«**عبادله اربعه**» مخکښې د ..عبادله اربعه.. ذکر راغلو. نو پوهه شئ چه د ..عبادله اربعه.. نه څلور صحابه کرام رضی الله عنهم مراد دی. چه نومونه ئے دا دی. ① عبدالله بن عباس رضی الله عنه ② عبدالله بن عمر رضی الله عنه ③ عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ④ عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه (۶)
علامه نووی رحمه الله فرمائی. اوعلامه عینی رحمه الله هم ددوی اتباع کړے ده. چه جوهری رحمه الله په صحاح کښې د عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه په ځائے ..عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په

---

(۱) بکسر جیم وباء الفائق فی تمییز جید الدرام من ردیها کذا فی مجمع بحارالأنوار (۱/۴۱۸) والمراد النقاد الجبیر ابعوامض الأمورج جهابذة. انظرالمعم الوسیط (۱/۱۴۱)_
(۲) عمدة القاری (۱/۷۰) دغه د تفیصلی حلاتو دپاره اوګورئ: تهیب الکمال (۱۰/۳۵۸. ۳۷۶) وسیر أعلام النبلاء (۴. ۳۲۱. ۳۴۳)_
(۳) عمدة القاری (۱/۷۰) د تفصیلی حالاتو دپاره اوګورئ: سیر أعلام النبلاء (۳/۳۳۱. ۳۵۹) وتذکرة الحفاظ (۱/۴۰. ۴۱) وتهذب الکمال (۱۵/۱۵۴. ۱۶۲)_
(۴) مسند احمد (۱/۲۶۶. ۳۱۴. ۳۲۸. ۳۳۵)_
(۵) طبقات ابن سعد (۲/۳۶۶) ترجمة ابن عباس رضی الله عنه)_
(۶) تهذیب الأسماء واللغات (۱/۲۶۷) ترجمة عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه)_

..عبادله.. کښې ذکر کړې دې خو دا د لويو محدثينو ﷺ امام احمد رحمه الله وغيره دتصريح نه خلاف ده.(١)

خوحقيقت دا دے چه جوهري رحمه الله په ..صحاح.. کښې دوه خايه د ..عبادله.. ذکر کړے دے يو خل د (..ع. ب.د.) دمادے لاندے ذکر کړے دے په هغے کښې عبدالله بن عباس () عبدالله بن عمر() عبدالله () عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه نومونه ذکر دی.اوپه بل خل د (..الف لينه.) په ..باب.. کښې د ..ها.. د قسمونو په بيانولو کښې په ..عبادله کښې ذکر کړی دی په دے مقام باندے هم ددرے حضراتو نومونه ذکر دی.خوچه دلته رارسيدلے دے نو عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه ځائے د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نوم ذکر کړے دے په دے دواړو مقاماتو کښې په يوځائے کښې هم د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نوم نشته.(٢)

امام بيهقي رحمه الله فرمائي.چه چونکه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وړاندے وفات شوے وو.او باقي څلور واړه حضرات د ډيرے مودے پورے ژوندی وو.(٣)خلقو ته د دوی دعلومو حاجت پيدا شو.کله چه دا څلور واړه په يو قول باندے متفق شي.نو ونيلی شي.((هذا قول العبادلة))(٤)

**دابن عباس رضي الله عنهما مرويات:** دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ټول يو زرشپږ سوه شپيته احاديث مروی دی.په دے کښې متفق عليه پنځه نوی احاديث دی.اوصرف په صحيح بخاری کښې يوسل شل اوصرف په صحيح مسلم کښې يوکم پنځوس احاديث مروی دی.لکه چه په بخاری شريف کښې د دوی ټول روايات دوه سوه پنځلس اوپه صحيح مسلم کښې يوسل څلويښت روايات دی.(٥)

**تنبيه:** دمتفق عليه پنځه نوی احاديثو او د بخاری د يوسل شل انفرادی احاديثومجموعه ۲۱۵ جوړيږی.هم دا مجموعه علامه کرمانی رحمه الله ذکر کړےده.(٦)خو حافظ ابن حجر رحمه الله په صحيح بخاری کښې د دوی د احاديثو ټول شمار ۲۱۷(دوه سوه اوولس) ذکر کړے دے.(٧)فليحرر.

(١) تهذيب الأسماء واللغات(٢٦٧/١) وعمدة القاري (٧٠/١)_

(٢) مختار الصحاح(ص.٤٠٨، ٦٨٨)_

(٣) دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د وفات کال ۳۲ھ دے اودعبدالله بن عمرو رضي الله عنه .وفات په ۶۵ھ کښې د عبدالله بن الزبير رضي الله عنه او عبدالله بن عمر رضي الله عنه وفات په ۷۳ھ کښې اود عبدالله بن عباس رضي الله عنه وفات په ۶۸ھ کښې شوے دے.تهذيب الأسماء واللغات (٢٦٧/١، ٢٧٥، ٢٨١، ٢٨٢) دغه شان تهذيب الكمال (١٢٦/١٦) د عبادله په باره کښګا د زيات تفصيل دپاره اوګورئ. مقدمة السعاية (ص.٢٧)_

(٤) تهذيب الأسماء واللغات (٢٦٧/١)_

(٥)عمدة القاري(٧٠/١) وتهذيب الأسماء واللغات (٢٧٥/١) ترجمة عبدالله بن عباس رضي الله عنهما)_

(٦) شرح کرمانی(٤٦/١)_

(٧)هدى الساري مقدمة فتح الباري(ص.٤٧٥) ذكر عدة مالكل صحابى فى صحيح البخاري)_

**قوله**: فِي قَوْلِهِ تَعَالَى لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَالِجُ مِنَ التَّنْزِيلِ شِدَّةً: يعني حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د الله تعالى د ارشاد ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ دتفسير په باره كښې فرمائي چه رسول الله ﷺ به د قرآن د نزول په وخت كښې تكليف زغملو اوتكليف اومشقت به ئې برداشت كولو.

معالجه واني. يوځيز په مشقت سره كول.

**د شدت سبب** ① د دے شدت يوه وجه خو پخپله ددے كلام ثقل او ددے وزن او بوجهـ دے كوم چه په دوى باندے نازليدلو.د دے

② دويم سبب د فرشتے سره ملاقات دے.دخپل هم جنس په ملاقات سره په سړى باندے بوجهـ نه وى.اودغير هم جنس په ملاقات سره په طبيعت باندے ضرور بوجهـ راځي اګرچه ملاويدل ورسره ډير وى.بيا د جسد بشرى اوجسد ملكى فرق هم كول دى.چه جسد بشرى د جسد ملكى نه كمزورے وى.

③ دريمه وجه دا ده.چه نبى كريم ﷺ به د قرآن دنزول سره ددے وحے د قرآن لوستل شروع كولو.چه ياد شى ورته.اوهيرنشى.اوڅه جمله په كښې پاتے نشى.اوبنكاره ده.چه په ورسره ورسره وئيلو كښې ډيرمشقت وى.ځكه چه په يووخت كښې لوستلوته ،اوريدو ته او بيا يادولو ته ذهن متوجه كول وى.نوپه دے طريقه په ذهن باندے زيات بوجهـ وى.

**قوله**: وَكَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ: اونبى ﷺ به خپلو شونډو ته زيات حركت وركولو.

نبى ﷺ به خپلو شونډوته زيات حركت ولے وركولو.دا كثرت حركت ددے وجے وو چه نبى ﷺ به غوستل چه قرآن پاك د حضرت جبرئيل ﷺ چه داسے اونشى چه جبرئيل ﷺ نے اولولى لاړ شى.اوقرآن ياد نه وى.اوڅه حصه پاتے شى.ځكه چه دا دالله تعالى كلام دے د شهنشاه كلام دے.دمحبوب كلام دے.د دوى په زړه كښې د دے عظمت هم وو.اومحبت هم وو.ددے وجے دوى داول نه دهغے د يادولو په شوق كښے وو.اودحضرت جبرئيل ﷺ سره به نے لوستل.خو ورسره ورسره لوستل او يادول ډيرګران وو.كه د اول نه چا ته ياد وى اويوكس د اول نه حافظ وى.نو د بل حافظ سره په وئيلو كښې څه مشكل نه وى.خوچه يوكس حافظ وى.اوبل كس لا حافظ نه وى.اوغيرحافظ دحافظ سره يوشان وائى.دا ګرانه ده.

بيا خاص كرچه يولوستونكے فرشته وى.اوبل انسان.فرشته چونكه نورى محض دے.ځكه په كښے لطافت وى.اودهغے په لوستلو كښے تيزى اوعجلت وى.اونبى ﷺ اګرچه د خپل روح په اعتبار سره نورى وو.خودجسد په اعتبار سره خاكى وو .نوځكه په دوى كښے هغه تيزى او عجلت نشو كيدے.بهرحال نبى ﷺ د يادولو دپاره زر زر وئيل چه څه څه پاتے نشى.وړاندے هم د بخارى په روايت كښے دى.((يريد أن يحفظه))(١)

---

(١) صحيح بخارى كتاب التفسير.تفسير سورة القيامة باب لا تحرك به لسانك لتعجل به.. رقم ٤٩٢٧)_

په يو بل روايت کښې دى.((يخشى أن ينفلت منه))(١)
د ,,مما،، معنى ثابت سرقسطى رحمه الله فرمائى چه د ..مما.. معنى ..كثراما.. ده.(٢) لكه چه په حديث کښې دى.((أن رسول الله ﷺ كان مما يقول لأصحابه: من رأى منكم رويا فليقصها))(٣) أى كثيرا مايقول لأصحابه)) يعنى رسول الله ﷺ به په اکثرو وختونو کښې دخپلو صحابوٌ نه تپوس کولو چه په تاسو کښې چا څه خوب ليدلے وى.هغه دے بيان کړى.
په دے معنى کښې د شاعر يو شعر دے.

وإنا لمما تضرب الكبش ضربة على وجهه يلقى اللسان من الفم (٤)

مونږ بعضے وخت د لوئے خلق په مخونو باندے داسے وهو.چه دخولے نه ئے ژبه بهرته راوځى.
بعضے عالمان ﷺ فرمائى چه ..مما.. د ..ربما.. په معنى ده.كوم چه د قلت اوكثرت دواړو دپاره استعماليږى.(٥)
علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه ..كان.. ضمير.. علاج.. طرف ته راجع دے.كوم چه: ..يعالج.. نه معلوميږى.اومطلب دا دے چه ((كان العلاج ناشئا من تحريك الشفتين)) علاج يعنى د شدت برداشت كول د تحريك شفتين نه پيدا كيدلو.لكه چه د اعلاج مبتدا خودلے شى.چه د تحريك شفتين سره به وه.(٦)
خو په دے باندے اشكال دا دے.چه هم دا روايت وړاندے په كتاب التفسير کښې راځى.په هغے کښې دى.((كان رسول الله ﷺ إذا نزل جبريل عليه السلام عليه بالوحى وكان مما يحرك به لسانه وشفتيه)) (٧)
دلته هيڅ دعلاج ذكر نشته.كوم ته چه علامه كرمانى رحمه الله د ..كان.. ضمير راجع كړے وو.
دويمه معنى علامه كرمانى رحمه الله دا بيان كړے ده.چه .ما.. د ..من.. په معنى ده.څكه چه ..ما.. كله د عاقلانو دپاره هم استعماليږى.(٨)
يعنى نبى ﷺ په هغه كسانو کښې وو.چه خپلو شونډو ته حركت وركوى.
دا معنى خو بيخى كمزورے ده.څكه چه ددے معنى خو دا شوه.چه ډير خلق شونډو ته داسے حركت وركوى.اونبى ﷺ هم حركت وركول.

---

(١) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة القيامة باب إن علينا جمعه وقرآنه.. رقم ٤٩٢٨)_
(٢) فتح البارى(١/ ٢٩)_
(٣) صحيح مسلم(٢/ ٢٤٤)كتاب الرويا)_
(٤) فتح البارى(١/ ٢٩)_
(٥) پورتنئ حواله)_
(٦) شرح كرمانى(١/ ٤٦)_
(٧) صحيح بخارى كتاب التفسير.سورة القيامة باب: فإذا قرأناه فاتبع قرآنه رقم.٤٩٢٩)_
(٨) شرح كرمانى(١/ ٤٧.٤٦)_

په دے خلورو واړه معانیو کښے اولنئ دوه معانی راجح دی اوبیا په دے دواړو کښے هم اولنئ ارجح ده. اود علامه کرمانی رحمه الله دواړه ذکر کړے معانی مرجوح دی والله اعلم

**قوله فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَأَنَا أُحَرِّكُهُمَا لَكُمْ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَرِّكُهُمَا:**

حضرت ابن عباس رضی الله عنه سعید بن جبیر رحمه الله ته خطاب کوی. اوفرمائی چه زه ستا وړاندے خپلو شونډو ته داسے حرکت ورکوم لکه څنګه چه نبی ﷺ حرکت ورکول

دلته حضرت ابن عباس رضی الله عنه داسے فرمائی. چه ((کماکان رسول الله ﷺ یحرکهما)) داسے ئے نه دی فرمائیلی چه ((کما رأیت رسول الله ﷺ یحرکهما)) ددے وجه دا ده چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه د نبوت په لسم کال یعنی د نه درے کاله وړاندے پیدا شوے وو. اودا قصه بیخی د نبوت د شروع ده. لکه څنګه چه د امام بخاری رحمه الله ترجمه په دے باندے دلالت کوی چونکه په دغه وخت کښے حضرت ابن عباس رضی الله عنه پیدا شوے نه وو. نوهغه به څنګه تحریک شفتین لیدلی وو؟ نوځکه هغوی ..رؤیت.. اونه ونیل بلکه ((کماکان یحرکهما)) ئے اوفرمائیل. (۱)

خواوس سوال دا دے. چه ابن عباس رضی الله عنه ته دتحریک شفتین اوددے د کیفیت علم څنګه اوشو؟

ددے جواب دا دے. چه دلته یواحتمال خو دا دے. چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه دا واقعه روستو اوریدلے ده. (۲)

په دے صورت کښے به دا روایت د مرسل صحابو څخه وی. او د مراسیل صحابو په باره کښے مخکښے بیان شوے دے. چه د جمهورو عالمانو رحمهم الله په نیز حجت دے (۳)

دویم احتمال دا دے. چه نبی ﷺ ابن عباس رضی الله عنه ته روستو دا واقعه اوروئے وی اوپه هغه وخت کښے دوی ددے کیفیت مشاهده کړے وی. په دے صورت کښے به دا روایت مرسل نه وی بلکه متصل به وی. (۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه هم دویم احتمال صحیح دے ځکه چه د ابوداود طیالسی رحمه الله په روایت کښے ددے صراحت موجود دے. (۵)

**قوله. وَقَالَ سَعِيدٌ أَنَا أُحَرِّكُهُمَا كَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يُحَرِّكُهُمَا فَحَرَّكَ شَفَتَيْهِ:**

سعید بن جبیر رحمه الله خپل شاګرد ته اوفرمائیل. چه ستا په مخامخ خپلے شونډو ته داسے حرکت ورکوم. لکه څنګه چه ما ابن عباس رضی الله عنه په حرکت ورکولو باندے لیدلے وو. ددے نه پس

---

(۱) فتح الباری(۱/۲۹)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) تقریب انووی مع شرحه تدریب الراوی (۱/۲۰۷) النوع التاسع:المرسل)_

(۴) فتح الباری (۱/۲۹)_

(۵) پورتنئ حواله)_

سعيد خپلو شونډو ته حرکت ورکړل ددے نه پس دا سلسله روانه شوه.چه هراستاذ خپل شاگرد ته دا حديث بيانوی نوخپلو شونډو ته حرکت ورکوی.خکه دا حديث د محدثينو ﷺ په نيز((المسلسل بتحريك الشفتين)) دے.(۱)
خودا تسلسل په دے کښے باقی پاتےنشو.بلکه په مينځ کښے مات شو.(۲)اواکثر په مسلسل روايا تو کښے په يو نه يوځائے کښے تسلسل ماتيږی.دټولو نه زيات صحيح روايت په مسلسلاتو کښے((المسلسل بقراءة سورة الصف))دے.(۳)

**قوله فَأَنزَلَ اللَّهُ تَعَالَى ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ﴾:**
الله تعالی په دے باندے دا آيت کريمه نازل کړلو.دا د آيت شان نزول دے.
خو په دے باندے اشکال دا دے چه نبی ﷺ به د قراءت په وخت شونډو ته حرکت ورکول او نبی ﷺ خو په قرآن کريم کښے د تحريك لسان نه منع شوے دے.
د دے جواب دا دے چه دا دواړه د ..من باب الاکتفاء..نه دی.اود((كان ممايحرك شفتيه)) معنی ده.((كان ممايحرك شفيته ولسانه)) دغه شان په آيت کښے د ((لاتحرك به لسانك)) ددے مطلب دے چه ((لاتحرك به لسانك وشفتيك)) خکه چه ټول حروف شفوی نه دی.بلکه په بعضے حروفو کښے دتحريف شفتين ضرورت راځی.اوپه بعضے کښے نه راځی.نوکله خو به صرف ژبه حرکت کوی.اوکله شونډے حرکت کوی.اوس د نبی ﷺ متعلق چه په حديث کښے صرف د تحريك شفتين ذکر شوے دے.هلته تحريك د لسان هم مقصود دے.خو د تحريف شفتين په ذکر باندے اکتفاء اوکړے شوه.دغه شان آيت کښے تحريف شفتين هم مقصود دی.خود تحريك لسان په ذکر باندے اکتفاء اوکړے شوه.لکه چه په قرآن کريم کښے دی.﴿سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ باندے اکتفا شوے ده.(۴)
دويم جواب دا دے.چه په اصل کښے مونږ خلقوته خو تحريك شفتين په نظرراځی . خو الله تعالی عالم الغيب والخفيات دے.هغه هرڅيز ته گوری.هغه ته د ژبے حرکت هم په نظرراځی.نوخکه په حديث کښے صرف د تحريك شفتين ذکر دے.اوقرآن پاك کښے د تحريك لسان ذکر دے.
دريم جواب دا دے.چه په اصل کښے په تلفظ کښے د ژبے دخل وو.نوالله تعالی د اصل اعتبار اوکړلو.اوراوی چه د نبی ﷺ کوم ذکر کړے دے.چه هغه د ظاهر په اعتبار سره دے. خکه چه ويونکے شونډے په ظاهره متحرك وی.(۵)

---

(۱) ارشادالساری للقسطلانی(۶۹/۱)_
(۲) پورتنئ حواله)_
(۳) تدريب الراوی (۱۸۹/۲)النوع الثالث والثلاثون:المسلسل)_
(۴)عمدة القاری (۷۲/۲)_
(۵) فتح الباری(۲۹،۳۰/۱)و ارشاد الساری (۷۰/۱)_

خلورم جواب دا دے چه دا د ((من باب اختصار الرواة)) ځنے دے په اصل کښے موسی بن ابی عائشه په دے روایت کښے لسان او شفتین دواړو ذکر کړے وو خو د دوی په شاګردانو کښے ابوعوانه رحمه الله او اسرائیل رحمه الله د تحریك شفتین په ذکر اکتفا اوکړله [1] او سفیان صرف تحریك لسان ذکر کړے دے [2] او جریر رحمه الله دواړه ذکر کړی دی [3].

پنځم جواب علامه کرمانی رحمه الله دا ورکړے دے چه دواړه حرکتونه د یوبل سره لازم دی. [4]

شپږم جواب هغوی دا ورکړے دے چه مراد تحریك د ,,فم،، دے کوم چه په لسان او شفتین دواړو باندے مشتمل دے. [5]

حافظ رحمه الله هم دا دواړه جوابونه نقل کړی دی [6] خو علامه عینی رحمه الله دا دواړه جوابونه تکلف، تعسف او مستبعد ګرځولی دی. [7]

**قوله: قَالَ جَمْعُهُ لَكَ فِي صَدْرِكَ وَتَقْرَأَهُ:** یعنی زمونږ کار دا ستا په زړه کښے جمع کول اوبیا ددے لوستول دی. یعنی ستا په ژبه باندے ددے جاری کول زمونږ ذمه ده

,,جمع،، فعل ماضی هم مروی دے او مصدر هم ونیلی شی چه اضافت ئے ضمیر طرفته کیږی ,,صدرك،، کښے په راء باندے رفع هم ونیلی شی په دے صورت کښے به دا ,,جمع،، (فعل یامصدر) فاعل وی. اوپه دے باندے بناء بر ظرفیت نصب هم ونیلی شی. یعنی الله تعالی به دا ستا په سینه کښے جمع کړی. د کریمه او حموی په روایت کښے ((جمعه لك فی صدرك)) راغلی دی. [8]

بیا د ,,جمع،، اسناد کوم چه ,,مصدر،، طرف ته شوے دے دا مجازی دے لکه ((أنبت الربیع البقل)) وائی. او مقصود دا وی چه ((أنبت الله البقل فی الربیع)) دغه شان دلته د جمع نسبت اګرچه ,,صدر،، ته شوے دے خو مطلب دے ((جمع الله لك فی صدرك)) [9]

و ((وتقرأه)) دا د ((قرآنه)) تفسیر دے ددے نه ئے دا اوخودله چه لفظ د ,,قرآن،، د قراءت په

---

(۱) حدیث باب ،او کتاب التفسیر ،سورة القیامة،باب إن علینا جمعه وقرآنه )_

(۲) کتاب التفسیر باب فإذا قرأناه فاتبع قرآنه دغه شان صحیح مسلم (۱۸۳/۱، ۱۸٤) کتاب الصلاة باب الإستماع للقراءة)_

(۳) شرح کرمانی(٤٧/١)_

(٤) پورتنئ حواله)_

(۵) پورتنئ حواله)_

(٦) فتح الباری(٦٨٢/٨) کتاب التفسیر سورة المدثر باب ﴿فإذا قرأناه فاتبع قرآنه﴾)_

(۷) عمدة القاری(٧٣/١)_

(۸) ارشاد الساری للقسطلانی(٧٠/١)_

(۹) فتح الباری(٣٠/١)_

معنى كښې دے او مطلب لکه چه مخکښې بيان شوے دے دا دے چه د دے لوستول هم زمونږ په ذمه دى

**قوله فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ قَالَ فَاسْتَمِعْ لَهُ وَأَنْصِتْ:** کله چه مونږ اولولو نو ته د دے لوستلو اتباع کوه.

دلته د قراءت اضافت الله تعالى خپل خان طرف ته کړے دے خکه چه په حقيقت کښې الله تعالى لولى صورة چه فرشته لولى دا يوه واسطه ده

بيا حضرت ابن عباس رضي الله عنه د «فاتبع قرآنه» تفسير په «فاستمع له وأنصت» سره کړے دے استماع او انصات دواړه جدا جدا لفظونه دى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دے دواړو کښې فرق دے ..انصات.. ونيلى شى سکوت ته برابره ده که هلته ..اصغاء.. يعنى آواز طرف ته متوجه کيدل وى يا نه وى نو سړے چه کله چپ وى او په څه خيال کښې ډوب وى نو دے ته انصت واني او استماع ونيلى شى ..اصغاء.. يعنى غوږ کيخودلو ته لکه چه په قرآن پاک کښې دى ﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا ﴾(١)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله چه دلته د کومه تنبيه ورکړے ده چه د ..استماع.. معنى ..اصغاء.. ده او د ..انصات.. معنى مطلق سکوت ده او دا د خپل عموم د وجے اصغاء او عدم اصغاء دواړو ته شامل دے په دے باندے اشکال دا دے چه اهل لغت د ..انصات.. معنى مطلق سکوت نه ده بيان کړے بلکه داسے سکوت چرته چه استماع وى د ..انصات.. تفسير کوى ...سکوت مستمع.. يعنى د داسے کس سکوت چا چه د بل طرف ته غوږ کيخودے وى مطلقاً سکوت نه (٢)

او ..استماع.. واني غوږ کيخودلو ته (٣) او د غوږ کيخودو دپاره سکوت ضرورى نه وى کيدے شى چه يو سړے چپ وى او بل چا خبرے ته ئے غوږ کيخودے وى او کيدے شى چه چپ نه وى په يو کار کښې مصروف وى چا سره خبرے کوى خو غوږ ئے د بل خبرے ته کيخودے وى نو چه په کوم ځائے کښې ..انصات.. وى هلته به د ..استماع.. تحقق ضرور وى خو چه په کوم ځائے کښې ..استماع.. وى هلته د ..انصات.. وجود ضرورى نه وى خکه چه د استماع دپاره سکوت ضرورى نه دے صرف غوږ کيخودل ضرورى دے او د ..انصات.. دپاره د سکوت سره غوږ کيخودل ضرورى دى.

**دقراءت خلف الامام په مسئله کښې د احنافو رحمهم الله تائيد** حضرت ابن عباس رضي الله عنه د ..فاتبع.. تفسير په ..فاستمع له وانصت.. سره کړے دے بل طرف ته ئے په حديث کښې «انما

---

(١) فتح البارى (٨/ ٦٨٣)_
(٢) النهاية فى غريب الحديث والأثر (٥/ ٦٢) ومجمع الزوائد بحار الأنوار (٤/ ٧١١)_
(٣) مختار الصحاح (ص. ٣١٤)_

جعل الإمام ليأتم به» فرمائیلی دی.(١) د ..لیوتم به.. په باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله تسلیم کړی دی چه د ..ائتمام.. معنی ..اتباع.. ده (٢) اود ..اتباع.. تفسیرابن عباس رضي الله عنه په «فاستمع له وأنصت» سره کړے دے.نو نتیجه دا راوزتله چه د اتباع امام مطلب به دا وی چه ته هغه اورے اوچپ نے.

په مسلم شریف کښې دحضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه یو روایت کښې دی.«وإذا قرأ فأنصتوا» (٣)چه کله امام قرات کوی.نوتاسو چپ نے.او اوری.دا روایت په خپل ځانے صحیح او ټیک دے.خو به حال مخالفین په دے کښې کلام کوی.

خو په «إنما جعل الإمام ليؤتم به» کښې خو څه اشکال نشته.دا خو ټول تسلیموی. او د ..ائتمام.. معنی هم ..اتباع.. ده.او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د ..اتباع.. مطلب «فاستمع له وأنصت» بیانوی.نومعلومه شوه.چه امام د دے دپاره مقرر کولے شی.چه هغه کله قرات کوی.نو مقتدیانو ته پکار دی.چه اوری.اودهغه د قرات په وخت کښے چپ وی.

داحنافو رحمهم الله مسلك د «وإذا قرأ فأنصتوا» نه ثابتیږی.خو د «إنما جعل الإمام ليؤتم به» نه هم د دوی مسلك ثابتیږی.اودحضرت ابن عباس رضي الله عنه دا تفسیر«فاستمع له وأنصت» د احنافو رحمهم الله پوره پوره تائید کوی.والله اعلم.

**د اتباع یو بل تفسیر اوپه دواړو کښې تطبیق** دد ے نه پس په دے پوهه شه.چه د ..فاتبع قرآنه..تفسیر دلته خو په ..استماع وانصات.. سره شوے دے.خو په کتاب التفسیر کښې امام بخاری رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د قراءت.. تفسیر په ..بیان سره اود ..اتباع.. تفسیر په ..عمل.. سره کړے دے.«قال ابن عباس رضي الله عنه: قرأناه: بيناه فاتبع عمل به»

کیدے شی.چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه په دے کښې دواړه تفسیرونه منقول وی.او دا هم کیدے شی.چه اووئیلی شی.چه استماع او انصات دواړه ابتداء وی.او عمل انتها وی.کوم چه په دے باندے مرتب کیږی.

خلاصه دا چه صرف اوریدل او غوږ کیخودل مقصود نه دی.بلکه په دے باندے عمل مقصود دے.بعضے وخت حضرت ابن عباس رضي الله عنه په تفسیر کښې ذریعه د عمل ذکر کے ده.او ذریعه د عمل استماع او انصات ده.ځکه چه دد ے نه علم حاصلیږی.او بعضے وخت نے مقصود د اتباع بیان کړے دے.او دا نے خودلی دی.چه ..فاعمل به.. په دے باندے عمل اوکړه.د قرآن اتباع دا ده.چه سړے په دے باندے عمل اکړی.والله سبحانه وتعالی اعلم.

(١) صحيح البخاري (٩٥/١) كتاب الأذان باب إنما جعل الإمام ليؤتم به)۔
(٢) فتح الباري(١٧٨/٢) كتاب الأذان باب إنما جعل الإمام ليؤتم به)۔
(٣) صحيح مسلم (١٧٤/١) كتاب الصلاة باب التشهد في الصلاة)۔

**قوله** ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا أَنْ تَقْرَأَهُ: بيا زمونږ په مه دی د دے بيانول بيا زمونږ په ذمه دی چه ته دا اولولے.

دلته اشکال دا دے چه دلته په تفسير کښ تکرار راغلے دے «إن علينا جمعه وقرآنه» تفسير وو «جمعه لك صدرك وتقرأه» او بيا د «إن علينا بيانه» تفسير په «إن علينا أن تقرأه» سره کوی نو په دواړو ځايونو کښے «تقرأه» «تقرأه» سره کوی او دا تکرار دے.

**ددې څو جوابونه دی**.

() اولنے جواب دا دے چه د اولنی ..تقرؤه.. نه مراد «قرأت لنفسه» دے او د دويم «تقرأه» نه مراد «قرأت لغيره» دے او مطب دا دے چه ته خپلے ژبے ته حرکت مه ورکوه په چپوالی سره اوريدل کوه مونږ به دا ستا په سينه کښے جمع کړو او تا ته به په لوستلو قدرت درکړو ته به ئے په خپله هم لوستلے شے او د «إن علينا بيانه» سره ئے دا خودلی دی چه ته به دا د نورو په وړاندے هم لوستلے شے. يعنی ددے د الفاظو تعليم او تبليغ به کوے او ددے د مطالبو تفهيم او تعليم به ورکوے.(١)

() دويم جواب دا هم ممکن دے چ اولنی ځائے کښے د «تقرأه» نه مراد مطلقاً «قدرة على القراءة» وی او په دويم ځائے کښے «إن علينا أن تقرأه» سره دا بيان شوی وی چه ته به په بيا بيا وئيلو باندے قادر شے دا نه چ صرف يو ځل به ئے اولولے او ددے نه پس به قدرت ختم شی نه بلکه بار بار به تاته د لوستلو قدرت در کړے شی.

() دريم جواب بعضے حضراتو دا ورکړے دے چه په اصل کښے دا تفسير وهم دے.(٢) دد اصلی تفسير هغه دے کوم چه امام بخای رحمه الله په کتاب التفسير کښے نقل کړے دے «ثم إن علينا بيانه: علينا أن نبينه بلسانك» يعنی ستا په ژبه به مونږ دا بيان کړو يعنی ددے د مطالبو او معنيو تفهيم او ددے توضيح به اوکړو.

خو په دے جواب باندے اشکال دا دے ترخو پورے د رايت صحيح معنی کيدے شی نو تر هغه وخته پورے د سهو يا وهم دعوی کولو ته ضرورت نشته د «إن علينا بيانه» تفسير د ابن عباس رضی الله عنه دلته «إن علينا أن تقرأه» نقل شوے دے او په کتاب التفسير کښے په «أن نبينه بلسانك» سره شوے دے په دواړو کښ څه فرق نشته د «أن نبينه بلسانك» معنی دا ده چه مونږ به ستا ژبے ته قدرت ورکړو او ستا په ژبه به د قرآن الفاظ جاری کړو ته به دا په خپله ژبه باندے ظاهروے دا اظهار به علی وجه القراءة وی د دے نه دلته په «إن علينا أن تقرأه» سره

---

(١) لامع الدراری (١/٥٠٩، ٥١)_
(٢) فيض الباری (١/٣٥)_

تعبير كړے شوے دے

په تفسير درمنثور كښے د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ددے په تفسير كښے دواړه خبرے منقول دى.[1] خو يو روايت ته وهم وئيل ټيك نه معلوميږى

ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ يو بل تفسير بيا بعضے عالمانو رحمهم الله د «ثم ان علينا بيانه» تفسير په بيان مجملات او توضيح مشكلات سره كړے دے.لكه چه «ان علينا جمعه وقرآنه» كښے خو دا بيان شوى دى چه الله تعالى به قرآن كريم د نبى ﷺ په سينه كښے محفوظ كړى او په وئيلو به ورته قدرت وركړى.اوپه «ثم ان علينا بيانه» سره دا خودلى شوى دى چه ددے د مجملاتو بيان او د دے د مشكلاتو توضيح او تفصيل به تا ته روستو دركړے شى.[2]

**قوله: تأخيرالبيان عن وقت الخطاب:** كه دا معنى شى.نوپه دے سره يوے اختلافى مسئلے ته اشاره ملاويږى.او هغه دا چه «تاخيرالبيان عن وقت الخطاب» جائز دے اودا مسئله مختلف فيها ده.چه الله تعالى په يو وخت كښے په يو حكم سره بنده ته خطاب اوكړى نوپه هغه وخت كښے د هغے وضاحت ضرورى دے.كه په هغے كښے تاخير كيدے شى؟

دجمهور اهل سنت مذهب دا دے.چه تاخير كيدے شى.اود امام شافعى رحمه الله نه منصوص دى. په دے آيت باندے د ټولو نه وړاندے قاضى ابوبكربن الطيب په «تاخيرالبيان عن وقت الخطاب» سره استدلال كړے دے.[3]

خودا استدلال ضعيف دے.خكه ..بيان.. په الفاظ مشتركه كښے دے.ددے اطلاق په ..بيان اجمالى.. باندے هم كيږى.او په ..بيان تفصيلى..باندے هم.او مطلقاً د اظهار په معنى كښے هم راخى.كه ته دلته يوه خاص معنى مراد اخلے.نو بل كس دا وئيلى شى چه نه ددے بله معنى ده.

ابوالحسين بصرى وائى.چه ممكن ده.دلته د بيان نه ..بيان تفصيلى.. مراد وى.[4] او مختلف فيه مسئله د تاخيربيان اجمالى.. ده.چه بيان اجمالى موخر كولى شى كه نه؟په دے كښے اختلاف دے.او په بيان تفصيلى كښے د چا اختلاف نشته ټول وائى چه د بيان تفصيلى تاخير د خطاب د وخت نه جائزنه دے.

علامه آمدى فرمائى.ممكن ده چه دلته د ..بيان.. نه مراد ..اظهار.. وى وئيلى شى «بان الكوكب اذا ظهر» نودلته مراد اظهاردے اوهغه بيان مراد نه دے په كوم كښے چه اختلاف دے خكه چه ټول قرآن مجمل نه دے چه محتاج د بيان وى حالانكه دلته د ټول قرآن ذكر كيږى.

---

(١) الدرالمنثور(٦/٢٨٩) تفسير سورة القيامة)_
(٢) فتح البارى(١/٣٠) وارشاد السارى(١/٧٠)_
(٣) فتح البارى(٨/٦٨٣) كتاب التفسير.تفسير سورة القيامة باب:فاذا قرأناه فاتبع قرآنه)_
(٤) پورتنئ حواله)_

خکه چه دلته د بیان اضافت قرآن ته شوے دے.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په مسئله باندے استدلال صحیح دے.هغه داسے چه مونږ د ..بیان.. د لفظ نه ددے ټولے معانی مراد واخلو.نولکه څنګه چه په دے کښے ..بیان تفصیلی.. داخل دے.دغه شان اظهارهم داخل دے.او بیان اجمالی هم داخل دے.(٢)

خودا استدلال دهغه خلقو په مسلك باندے صحیح کیږی.څوك چه د عموم مشترك قائل وی.لکه شوافع.اوڅوك چه د عموم مشترك قائل نه وی.لکه احناف رحمهم الله نو د دوی په نیز دا استدلال صحیح نه دے.البته دا چه عموم مجاز اختیار کړے شی.والله سبحانه وتعالى اعلم.

**قوله** فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ إِذَا أَتَاهُ جِبْرِيلُ اسْتَمَعَ فَإِذَا انْطَلَقَ جِبْرِيلُ قَرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا قَرَأَهُ: دنبی کریم ﷺ ددے نه پس معمول جوړ شوے وو.چه کله به حضرت جبریل راغلو. او قران به لوستلو.نو دوی به چپ وو.او اوریدل به ئے.اوچه کله به هغه لاړلو.نو بیا به نبی ﷺ قرآن پاك لوستلو.بالکل هم هغه شان څنګه چه حضرت جبریل علیه السلام لوستل.

حضرت علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.دا هم یوه معجزه شوه.چه ټول قرآن به ئے اوریدل.په هغه وخت کښے به ئے په یو ټکی هم ژبه نه ګرخوله.او د فرشتے د تلو نه ورته ټوله وحی ټکے په ټکے په پوره ترتیب سره بغیر د یو زور یا زیر د تبدیلئ نه په فرفر اوږول او خودل.(٣)

**قوله** جبریل علیه السلام: پیغمبرانو علیهم السلام ته د وحی راوړونکے او په مختلفو قومونو عذاب نازلونکے فرشتے نوم جبریل دے.ددے معنی په سریانئ کښے ..عبدالله.. ده.د ..جبر..معنی بنده ده.او ..ایل.. دالله تعالی په نومونو کښے یو نوم دے.(٤)

عبدبن حمید په خپل تفسیر کښے د حضرت عکرمه رحمه الله نه نقل کړی دی.چه دحضرت جبریل علیه السلام نوم عبدالله او دحضرت میکائیل نوم عبیدالله دے.(٥)

علامه سهیلی رحمه الله فرمائی.چه جبریل د سریانئ لفظ دے.اود دے معنی عبدالرحمن یا عبدالعزیزده.دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دا معنی موقوفاً او مرفوعاً په دواړه طریقو باندے منقول ده.خو موقوف روایت اصح دے.بعضے حضرات فرمائی.چه په دے نومونو کښے اضافت اضافت مقلوبی دے.لکه چه د ..ایل.. معنی د بنده ده.او د اول جزء دالله تعالی په نومونو کښے یو نوم دے.د عجمیانو په نیز د ..جبر.. معنی ..اصلاح ما فسد.. ده.په دے

---

(١) پورتنئ حواله)_

(٢) فتح البارى(٦٨٣/٨)_

(٣) فضل البارى(١٩٠/١)_

(٤) عمدة القارى(١٧/١)_

(٥) پورتنئ حواله)_

حیثیت سره د حضرت جبریل علیه السلام په نوم کښې د عربیت سره مناسبت هم پیدا شو خکه چه په عربۍ کښې هم ,,جبر,, ,,اصلاح ما وهی,, ته وائی (۱)

دا نوم دعربو په زمکه کښې مشهور نه وو هم دا وجه ده چه حضرت خدیجه رضی الله عنها کله د عداس نوم نصرانی نه د حضرت جبریل علیه السلام په باره کښې تپوس اوکړلو نوهغه ورته اووئیل.

((قدوس قدوس ما شأن جبريل يذكر بهذا الأرض التي أهلها أهل الأوثان)) (۲)

علامه عینی رحمه الله فرمائی ما د یو کتاب دمطالعه په وخت کښې لیدلی وو چه دحضرت جبریل علیه السلام نوم عبدالجلیل دے او کنیت ابوالفتوح. دحضرت میکائیل نوم عبدالرزاق دے. اودهغه کنیت ابوالغنائم دے. دحضرت اسرافیل علیه السلام نوم عبدالخالق دے او کنیت ئے ابوالمنافخ دے اودحضرت عزرائیل علیه السلام نوم عبدالجبار دے او کنیت ئے ابویحیی دے. (۳)

بیا په جبریل کښې د پنځلسو نه زیات لغات دی. (۴)

**د ترجمة الباب سره مناسبت** د روایت د ترجمة الباب سره مناسبت د ظاهری عنوان نه ښکاره دے. خکه چه په دے کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دتحریك شفتین واقعه ذکر کړے ده. اودا بیخی د د وحی دنزول واقعه ده. خکه چه دا بعیده ده. چه الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوے مودے پورے د حضرت جبریل علیه السلام سره د ونیلو په مشقت برداشت کولو باندے اووینی. اود خپل طرف نه د حفاظت او یادولو ذمه واری وانخلی. نوپه اول کښې الله تعالی د حفظ او قراءت او بیان ذمه واری واخستله په دے طریقه دا روایت د بدء الوحی سره مطابقت خوری.

اوکه چرته د حضرت شیخ الهند رحمه الله د قول مطابق مقصود د ترجمه عظمت وحی اوګرخولے شی. نودا هم مناسب ده. دا په دے طریقے سره چه د الله تعالی د طرفه دا ذمه واری اخستل چه ستا په زړه کښې به مونږ وحی محفوظ کوو. اوستا په ژبه به مونږ ددے تلاوت کوو. اوستا په ذریعه به مونږ ددے معانی هم بیانوو. دا ټولے خبرے په عظمت وحی باندے دلالت کوی.

بیا دا حکم چه کله وحی نازلیږی. نوته استماع او انصات کوه. نودا په عظمت وحی باندے دال دی. والله اعلم.

**دحدیث باب نه مستنبط مسائل** د حدیث باب نه ډیرفوائد مستنبط شوی دی. چه څو په کښې دا دی. ① داستاذ دپاره مناسبت دی. که د یوے خبرے په تشریح کښې په فعل سره زیات وضاحت کیدے شی. نوپه فعل سره دے طالب علم ته دهغے وضاحت اوکړی.

② دویمه فائده دا په ذهن کښې راغله. چه د قرآن پاك حفظ کول دالله تعالی د مدد نه بغیر دچا په وس کښې نه ده. ③ د دے حدیث نه د ((تأخير البيان عن وقت الخطاب)) جواز هم په پوهه کښې راغلو. ((كما هو مذهب جمهور أهل السنة والجماعة وقد مر تفصيله)) (۵) والله اعلم

(۱) الروض الأنف (۱/۱۵۵، ۱۵۶)_
(۲) دلائل النبوة للبیهقی (۲/۱٤۳) باب مبتدء البعث والتنزيل)_
(۳) عمدة القاری (۱/۷۲)_
(۴) راجع تاج العروس للزبیدی (۳/۸٤) مادة ج ب ر)_
(۵) عمدة القاری (۱/۷۳)_

**يو اشكال او دهغې جوابونه** دلته يوه مسئله ذكركولې شي اګرچه دا مسئله د دې ځائے نه ده. بلكه د كتب التفسير ده خوچونكه استاذانو دلته ذكركوي نوځكه ئے مونږ هم دلته ذكر كوو مسئله دا ده چه ددې آيت د ماقبل او مابعد سره څه ربط نشته ځكه چه په ماقبل كښې د قيامت تذكره ده ﴿ لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ...... بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ وَّلَوْ اَلْقٰى مَعَاذِيْرَهٗ﴾

اوروستو هم د قيامت ذكر دے ﴿كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ﴾ په مينځ كښې دا آيتونه دي په كومو كښې چه نبي ﷺ د تحريك لسان نه منع شوے دے.

ددې اشكال د وجې نه خو روافضو دا وئيلي دي چه دا ددې خبرې دليل دے چه قرآن پاك بجنسه محفوظ نه دے. ددې څه حصه ضائع شوې ده. دا د روافضو د باطلو دعاويو ځني ده. دوي واني چه د قرآن كريم څلويښت پارې وې. عثمان ديرش پارې كړلې. اولس پارې په كومو كښې چه د اهل بيتو فضائل. د... ائمه.. تصريح او د اهل بيت نبوي د امامت د استحقاق تذكره وه. هغه ټول ئے حذف كړے.

خود روافضو دا خبره صراحة د قرآن او دالله تعالى د وعدے تكذيب دے. الله تعالى فرمائي. ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ﴾ مونږ قرآن پاك نازل كړے دے. او هم مونږ ددې حفاظت كونكي يو. هركله چه الله تعالى چه دهغه قدرت قاهره او اراده باهره ټول مخلوقات په خپل اختيار كښې اخستي دي. دا وعده كړې ده چه مونږ به ددې كتاب حفاظت كوو. نو ددې لس پارې به څه ضائع شي. ددې يو نقطه يا معمولي حصه هم نشي ضائع كيدے.

تر كومې پورې چه د مناسبت او ربط تعلق دے. نو ددې ډير جوابونه وركړے شوي دي.

(۱) **اول جواب.** د ټولو نه اولنے او بنيادي جواب دا دے چه مناسبت ته د انسانانو په كلام كښې د ټولو ضرورت وي. ځكه چه د دوي ځكه چه ددوي د عقل او نقل دائره محدوده وي. او د دوي مقاصد محدود وي. نو هم په دغه حدودو كښې اوسيږي. او وئيل كولې شي. او ليكل كولې شي. او څه كولې شي. هلته خو د مناسبت لټولو ضرورت شته. او د الله تعالى علم ټولو موجوداتو او معدوماتو ته محيط دے. هلته ددې مناسبت لټولو ضرورت نشته. بلكه هلته خو دا ګڼړلې شي. چه دے حكيم مطلق د خپل حكمت مطابق چه كومه موقع مناسبت وه. هغه بيان كړے دے

دهغه په كلام كښې ربط لټول دا انسان د حيثيت نه پورته خبره ده. دده دا مقام نه دے. د خپل علم او عقل په اعتبار سره ددې لائق نه دے. چه دالله تعالى په كلام كښې ربط اولټوي. لكه څنګه چه په محسوسات كونيه كښې بے شميره څيزونه موجود دي. په دې كښې تاسو ربط نشئ خودلے. او نه ددې په مينځ كښې په ربط تاسو پوهيدے شئ. مثلاً دا چه دلته كراچئ ده. او دومره ميله لرے حيدر آباد واقع دے او په دومره مسافت لاهور دے. څوك دا خودلې شي چه د فاصلو دا مقدار ولې دے؟ دغه شان يو عالم په دے زمانه كښې موجود دے. او فلانے عالم د نن نه څه څلور سوه كاله وړاندے تير شوے دے آيا څوك خودلې شي. چه دهغه دپاره د څلور سوه كاله وړاندے موده ولې مقرر شوے دے او دده دپاره دا زمانه ولې او نټاكلے شوه. على هذا القياس څومره څيزونه چه د محسوساتو د باب ځنې دي. او په دې عالم كښې موجود

دى.ددے په مینځ کښے د ربط پیژندل دانسان د وس کار نه دے.نودغه شان دالله تعالی په کلام کښے ربط پیژندل دانسان په وس کښے څنګه کیدے شی.نو د ربط لټون فضول دے.

**دويم جواب** امام رازی رحمه الله فرمائی چه دا د جمله معترضه پشان دے.او مدرس د تنبیه د باب څنے دے.لکه څنګه چه مدرس سبق ښائی.او د طالب علم بے توجهی اووینی.نوپه مینځ کښے د هغه د رټولو او هغه ته د تنبیه ورکولو ضرورت پیښ شی.نوهغه ورته تنبیه ورکړی.په ماقبل کښے هم سبق وی.او په ما بعد کښے هم هغه سبق وی.په مینځ کښے د تنبیه جمله راشی.اوس که یو کس درس لیکی.اودا په مینځ کښے جمله هم اولیکی.نوچاته چه سبب معلوم وی.هغه به دا حذف واقعه یا غیرمربوط نه ګنړی.خوچه چاته د سبب علم نه وی.هغه به دا غیرمربوط ګنړی.

دلته کښے هم دا صورت راپیښ شوے دے.چه کله په قرآن پاک کښے د سورت قیامت ابتدائی آیاتونه نازل شو.نونبی ﷺ د یادولو په نیت لوستل شروع کړل.نوپه دغه وخت کښے ورته سمدستی تنبیه ورکړے شوه.چه ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ۝ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ ۝ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ۝ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ۝﴾ یعنی تاسو د یادولو په غرض قرآن پاک زر زر مه یادوئ.کومه چه ددے وخت کار دے.یعنی استماع او انصات،نودا اختیار کړئ.او روستو چه کار دے.یعنی قراءت مونږ ددے ذمه واری اخلو.مونږ به دا لولوو.(١)

**دريم جواب:** علامه زمخشری رحمه الله فرمائی.چه په ماقبل کښے د قیامت ذکر وو ددے: فکر او اهتمام ترغیب وو.لکه چه ضمناً د ،،عاجله،، مذمت وو.او په ما بعد کښے د ،،عاجله،، مذمت صراحةً راځی.چه .﴿كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ﴾ چونکه نبی ﷺ به هم په لوستلو کښے او ضبط کولو کښے عجلت کولو.نوځکه ئے ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ﴾...الخ» اوفرمائیل اونبی ﷺ د عجلت نه منع کړے شو.دغه شان د﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ﴾...الخ» دماقبل او ما بعد دواړو کښے ربط راځی.(٢)

**څلورم جواب:** امام قفال رحمه الله فرمائی چه ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ﴾...الخ» سره خطاب نبی ﷺ ته نه دے.بلکه په ﴿يُنَبَّأُ الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ کښے چه کوم ،،الإنسان،، دے هغه ته خطاب دے.یعنی دده په وړاندے او روستو اعمالو به ده ته خبر ورکړے شی.ددے صورت به دا وی.چه عمل نامه به ورته ورکړے شی.او ورته به اوونیلی شی.﴿اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا﴾ (٣)چه دخپل حساب کتاب دپاره نن ته په خپله کافی ئے.دا خپله عمل نامه

---

(١) تفسیر کبیرامام رازی) رحمه الله ٣٠/٢٢٢، ٢٢٣)_
(٢) الکشاف عن حقائق غوامض التنزیل (٤/٦٦٢)_
(٣) الإسراء ١٤)-

اولوله کله چه هغه خپله عمل نامه لوستل شروع کړي.نوپه هغه وخت کښې به ئې ژبه د زياتې ويرې د وجې به ئې ژبه ېې اختياره شي.اوزر زر لوستل به شروع کړي.نو په هغه وخت کښې به الله تعالى اوفرمائي. ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴾ خپلې ژبې ته زر زر حرکت مه ورکوه.چه عمل نامه زر ختمه کړې.﴿اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ﴾ مونږ ستا عملونه جمع کړي دي.اوپه دې عمل نامه کښې مو ليکلي دي.اوس دا زمونږ په ذمه دي.چه مونږ دا اولولو.يعنى چه هرڅيز ستا وړاندې پش کړو.﴿فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ﴾ کله چه مونږ دا عمل نامه په تفصيل سره اولولو.نوهره يوه خبره کومه چه تا کړې وي.دهغې اقرار به اوکړې.اوهغه به تسليم کړې.﴿ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ﴾ بيا زمونږ په ذمه ده.چه مونږ ددې عقوبت او سزا بيان کړو.

حضرت ابن قفال رحمه الله چه کوم مناسبت بيان کړلو.په دې صورت کښې د ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴾ آيتونو د ماقبل او مابعد آيتونو سره بيخى مربوط کيږي.خو دحضرت ابن عباس رضي الله عنه د بيان کړي شان نزول سره ددې څه مناسبت نشته.(١)

**پنځم جواب:** يوجواب دا ورکړې شوې دې.چه ددې آياتونو د ماقبل سره ربط دې.هغه دا دې چه دقرآن کريم دا عادت دې.چه کله دې د نامه اعمال يا د کتاب اعمال ذکر کوي.نوهلته د نامه احکام يا کتاب احکام ذکر هم کوي.اوګورئ په سورة اسراء کښې دي.﴿ فَمَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَاُولٰٓئِكَ يَقْرَءُوْنَ كِتٰبَهُمْ ﴾(٢) داد کتاب اعمال ذکر دې.اوددې نه لږ غوندې وړاندې دي.

﴿ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ﴾ (٣) په دې کښې د قرآن کريم يعنى د کتاب احکام ذکر دې.

دغه شان په قرآن کريم کښې دي.﴿ وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ ﴾ (٤)دا هم کتاب اعمال دې.ددې نه پس ذکر دې د کتاب احکام.﴿ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ﴾(٥)

---

(١) تفسير كبير(٣٠/٢٢٣، ٢٢٤)_
(٢) الإسراء ٧١)-
(٣) الإسراء ٨٩)-
(٤) الكهف ٤٩)-
(٥) الكهف ٥٤)-

دغه شان په يوبل ځائے کښے د قيامت اود دے د هيبتونو ذکر دے.﴿ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴾(١) او ددے نه پس د قرآن کريم تذکره ده.﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا وَصَرَّفْنَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ أَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ۝ فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۗ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْآنِ مِن قَبْلِ أَن يُقْضَىٰ إِلَيْكَ وَحْيُهُ ۖ وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ﴾ (٢)

نودلته هم اول راغلے دے.﴿يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ چه انسان به دخپل وړاندے او روستو عملونو نه خبردار کړے شي.ښکاره خبره ده.چه دا خبردارے ورکول به د عمل نامه په ذريعه وي.لکه چه اول د کتاب اعمال ذکر اوشو.او ددے نه پس په ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ﴾...الخ» کښے د قرآن کريم يعني احکاموذکر اوشو.(٣)

**شپږم جواب**: امام العصرحضرت کشميري رحمه الله فرمائي.چه بعضے وخت کښے د قرآن کريم دوه مرادونه وي.يو مراد معلوميږي د نظم قرآن او سياق کلام نه.دا مراد اولي دے.او يو مراد دخارج نه يعني د شان نزول نه په پوهه کښے راځي.دا مراد ثانوي وي.مثلاً لفظ د ،،خمر،، دے.ددے يوه معنى خو هغه ده.کومه چه احناف رحمهم الله بيانوي.«النئ من ماء العنب إذا اشتد وقذف بالزبد»(٤)_ دويمه معنى «الخمرما خامرالعقل» ده.(٥) د تلويح يو محشي ليکلي دي.چه د ،،خمر،، اولنۍ معنى مراد اولي دے.اودويمه معنى مراد ثانوي دے.

دغه شان که په نظم قرآن کښے دا صورت پيښ شي.چه د عبارت د سياق نه ددے يو کلام په فهم کښے راځي.او د شان نزول نه دويم.نو په داسے صورت کښے به څه کولے شي؟

حضرت کشميري رحمه الله فرمائي.په داسے صورت کښے چه د نظم قران نه کومه مفهوم معلوميږي.هغه به مراد اولي ګرځولے شي. لکه چه په قرآن کريم کښے دي. ﴿الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ ۖ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ ﴾ (٦)ددے «تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ»تفسير په منصف عبدالرزاق کښے دابورزين نه مرسلاً په طلاق ثالث سره نقل شوے دے.«جاء رجل فقال: يارسول الله أسمع الله يقول: الطلاق مرتان،، فأين الثالثة؟قال: «التَّسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ» (٧)

---

(١) طه ١٠٢)-

(٢) طه ١١٣-١١٤)-

(٣) فتح الباري(٦٨٠/٨) کتاب التفسير.سورة القيامة باب لا تحرک به لسانک لتعجل به)

(٤) المغرب (٢٧١/١)مادة خمر)

(٥) پورتنۍ حواله دغه شان اوګورئ. مختار الصحاح(ص.١٨٩)_

(٦) البقرة ٢٢٩)-

(٧) مصنف عبدالرزاق(٣٣٨/٦) کتاب الطلاق باب ..الطلاق مرتان..)_

شوافع ﷭ فرمائی چه وړاندې ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ...الخ﴾ د دې آیت تعلق هم د «اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ» سره دې څکه چه دا وړاندې جدا طلاق اوګرځولې شي. نو طلاقونه به څلور شي.

خو احناف حضرات ﷭ فرمائی چه د «تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ» نه مراد ترک رجعت دې او وړاندې د «فَاِنْ طَلَّقَهَا» نه مستقل طلاق مراد دې کوم چه د ترک رجعت یو صورت دې که «تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ» په خپل ظاهر یعنی ترک رجعت باندې پریخودلې شي او «فَاِنْ طَلَّقَهَا» د ترک رجعت بیان اوګرځولې شي نو تکرار نه لازمیږی (۱)

حضرت شاه صاحب ﷬ فرمائی چه د «تسریح باحسان» یو مراد اولی دې او دا هغه دې کوم چه احنافو ﷭ ګرځولې دې یعنی ترک رجعت او دویم مراد ثانوی دې او هغه دې طلاق کوم چه د شان نزول نه په پوهه کښې راځي.

دغه شان دلته کښې هم اوګنړئ چه په آیات مبحوث عنها کښې یو مراد اولی دې او یو ثانوی دې مراد اولی دا دې چه کله الله تعالی د قیامت او د دې حالاتو ذکر اوکړلو نو مشرکانو به تعنتاً د دې په باره کښې تپوسونه کول کله به ئې وئیل ﴿اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ﴾ (۲) کله به ئې وئیل ﴿اَيَّانَ مُرْسٰهَا﴾ (۳) او کله به ئې تپوس کول چه ﴿اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ﴾ نو په دې مقام کښې دی.

﴿بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ يَسْـَٔلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ﴾ (۴) الله تعالی په دې باره کښې د اول وهله نه نبی ﷺ ته فرمائی چه. ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ﴾ د قیامت د ورځې په تعین کښې ته بیخی خبره مه کوه. ﴿اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ﴾ د وعدې مطابق د محشر په ورځ هم مونږ به د عالم ټول منتشر اجزاء جمع کړو. او د قرآن کریم په ذریعه مونږ په خپله د محشر احوال اواهوال د ضرورت او مصلحت مطابق بیانونکی یو ﴿فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ﴾ کله چه مونږ په قرآن کښې د قیامت متعلق آیاتونه اولولو. نو دد دې په مقتضی باندې عمل کوئ. او نورو ته هم دد دې د تیارئ تاکید کوئ ﴿ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ﴾ بیا د وعدې مطابق زمونږ په ذمه دی. د نفخ صور وغیره په ذریعه دد دې اظهار.

دا خو مدلول اولی دې. کوم چه د سیاق او سباق نه متعین کیږی. په دې سره دد دې د ماقبل

---

(۱) فیض الباری (۳۵/۱)_
(۲) الذاریات ۰۱۲)-
(۳) النازعات ۰۴۲)-
(۴) القیامة ۰۰۵-۰۰۶)-

اومابعد سره مطابقت راغلو او مدلول ثانوی اګرچه په دویمه درجه کښې ملحوظ دے خود ربط بین الآیات دپاره ددے خیال ساتل ضروری نه دے [1] والله اعلم

**اووم جواب** حضرت مولانا عبدالرحمن صاحب امروهوی رحمه الله یو لوئے عالم او مفسرتیر شوے دے په دارالعلوم دیوبند ته نے په هغه زمانه کښے چه حضرت شیخ الاسلام رحمه الله په جیل کښے وو د بخاری شریف لوستلو دپاره تشریف راوړے وو دوی د دحضرت نانوتوی رحمه الله شاګرد رشید مولانا احمد صاحب امروهوی رحمه الله شاګرد وو په اصل کښے دوی د ګجرات اوسیدونکی وو خوچونکه دوی خپل مستقل قیام په امروهه کښے اختیار کړے وو نو خکه ورته ..امروهوی.. وائی.

دوی فرمائی چه په اصل کښے په ما قبل کښے وو ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾[2] په قیامت کښے به دا تپوس کیږی چه کوم ځیز د روستو کولو وو تاسو هغه ولے وړاندے کړلو؟ اوکوم ځیز چه د مقدم کولو وو هغه مو ولے مؤخر کړلو؟

مثلا دا چا سوداګری د روستو کولو ځیز دے او مونځ د وړاندے کولو تاسو سوداګری مقدم کړه او مونځ مو روستو کړلو دغه شان د حج سفر مقدم وو او نور دنیوی اسفار مؤخر وو خوتاسو نورو سفرونه مقدم کړل اود حج سفر مو روستو کړلو.

دلته کښے هم دا تقدیم او تاخیرجاری وو چه په نبی ﷺ به وحی نازلیدله دلته د مقدم کولو ځیز دا وو چه دوی اوریدل او چپ وے او ددے لوستل. تحریك لسان وشفتین د روستو کولو ځیزونه وو کوم چه مؤخر کول وو نبی ﷺ هغه وړاندے کړل اوخه چه مقدم کول وو هغه نے مؤخر کړل نوخکه اوونیلی شو چه ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ یعنی ستاسو وړاندے لوستل د مقدم کولو ځیز نه دے بلکه د مؤخر کولو ځیز دے کله چه مونږ لوستل کوو نو ته په خاموشئ سره هغه اوره په دے طریقه ددے آیاتونو ربط سره ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ ښیخی ښکاره کیږی.[3]

**اتم جواب**: حضرت شیخ الاسلام علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه د ربط آیات دپاره ددے خبرے ضرورت وی چه د یو آیت مضمون د بل آیت دمضمون سره مناسبت لری د سبب نزول سره مناسبت لرل ضروری نه دی.[4]

دمؤخر الذکر آیت شان نزول کوم چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دے هغه دا چه په بعضے مسلمانانو د حیا د حد نه زیات دومره غلبه وه چه هغوی به داستنجاء جماع وغیره په

---

(۱) فیض الباری (۳۵/۱، ۳۶)_

(۲) القیامة ۱۳۰)-

(۳) ایضاح البخاری (۹۸/۱)_

(۴) تفسیرعثمانی(ص.۲۹۳) بذیل آیت ﴿أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ.....﴾ سورة هود آیت ٥)-

وخت کښې د بدن د څه حصې بربنډولو نه شرمیدل چه دآسمان خاوند موږ وینی.اوکه بربنډیدو ته به ضرورت شو نودحیا د وجې به تېتیدل.او د شرمګاه د پټولو دپاره به ئې پلنه کړې وه.(۱)

چونکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم داسې علو او تعمق د آئنده دپاره امت په تنګئ کښې واقع کولې شو نوځکه قرآن پاك په ﴿اَلَا حِیْنَ یَسْتَغْشُوْنَ ثِیَابَهُمْ ...الخ﴾ سره دهغوی اصلاح اوکړله.یعنی که د ضرورت په وخت کښې د بدن په بربنډولو دالله تعالی نه حیا راځی.او ددې وجې تیتېدئ نوغور اوکړئ چه د جامو بدلولو په وخت کښې ستاسو ظاهراو باطن الله تعالی ته ښکاره نه وی څه؟ کله چه انسان دهغه نه په هیڅ وخت کښې نشی پټیدلې.نود ضروریات بشریه سره متعلق د دومره غلو نه کار اخستل ټکي نه دی.(۲)

**یوه شبه او دهغې ازاله** دا شبه دې نشی کولې.چه هرکله الله تعالی ظاهر او پټ هرڅه پیژنی.اوددې وجې د قضائے حاجت په وخت کښې په خپل خان باندې څادر اچول.سینه ښکته کول او د پردې د تکلف نه منع شوې ده.نو په عاموحالاتو کښې اود تنهائی او خلوت په وخت کښې هم پردنه نه دی کول پکار.ځکه چه دالله تعالی نه خو یوڅیز د پټولو باوجود پټ نه دې. دا ونیل به غلط وی.ځکه چه په دې وخت کښې حکم هم دا دې.چه پرده دې اوکړې شی.د

نبی ﷺ ارشاد دې.چه ((إن الله عزوجل حیی ستیر یحب الحیاء والستر))(۳)نوچه په کوم ځائے کښې مجبوری نه وی.هلته هم پرده کول پکار دی.او چه په کوم ځائے کښې مجبوری وی.او د عورت ښکاره کولو ضرورت وی.نوهلته ددې تکلف نه منع شوې ده.

بهرحال کوم شان نزول چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دې.هغه په خپل ځائے ټیك دې.خو ددې شان نزول په اعتبار سره د آیت ﴿اَلَاۤ اِنَّهُمْ یَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ﴾ ربط د ماقبل آیت ﴿وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ.....﴾ سره بیخی نه جوړیږی.خو د دواړو د مضامینو په اعتبار سره دا آیاتونه مربوط دی.

اودا په دې طریقه چه دلته دا خودلی شی.که تاسو د پیغمبرتابعداری اونکړله.بغاوت او سرکشی مو خپل شعار جوړ کړلو.نوپه قیامت کښې به تاسو ته سزا درکړې شی.لکه چه د ﴿وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ عَذَابَ یَوْمٍ كَبِیْرٍ﴾

نه ښکاره ده.اوس یو مجرم ته د سزا ورکولو دپاره د درې خبرو ضرورت وی.

یوه دا چه مجرم په قابو کښې وی دقابونه بهر نه وی.ښکاره ده چه د یو حکومت مجرم دهغه حکومت د حدودو نه بهر شی.نوحکومت هغه ته په سزا ورکولو قادر نه وی.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر،تفسیر سورة هود: باب :﴿اَلَاۤ اِنَّهُمْ یَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ لِیَسْتَخْفُوْا مِنْهُ﴾_

(۲) تفسیر عثمانی(ص،۲۹۳) تفسیر سورة هود)_

(۳) سنن نسائی (۷۰/۱) کتاب الغسل باب الإستتار عندالغسل)_

دويمه خبره دا ده.چه حاكم ته مجرم ته د سزا وركولو قدرت حاصل وى.هغه كمزورے نه وى.گنى كه حاكم د مجرم په مقابله كښے كمزورے وى.نوهغه به ورته څه سزا وركړے شى.
دريمه خبره دا ده.چه حاكم ته د مجرم د جرم علم وى كه يو سړے جرم كوى.او حاكم ته د جرم پته نه وى.نو بيا به ورته هغه څنگه سزا وركړى.؟!

اوس په قرآن كريم كښے فرمائيلے شوى دى.چه﴿وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ﴾(١)

په سركشئ او بغاوت كولو د قيامت د عذاب نه ويرولے شى.﴿إِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ﴾ مجرم نشى بچ كيدے.الله تعالى ته دده پيشى ضرورى ده.دا اولنئ خبره شوه.چه مجرم د عذاب نه بچ كيدے نشى.الله تعالى ته به خامخا پيش كيږى.
دويمه خبره چه حاكم د مجرم نه طاقتور وى.هغه د مجرم نه كمزورے نه وى دے طرف ته په ﴿أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ ۚ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ سره اشاره شوے ده.ددے خلاصه دا ده.چه دالله تعالى نه د چا هيڅ يو حالت پټ نه دے.نو د يو مجرم جرم هم د الله تعالى نه پټ نه دے.
نو دشان نزول چه كومه واقعه بيان شوے ده.ددے د اجزاؤ سره د ماقبل آياتونو ربط نشته.خود دے د مضمون او ماحصل سره ئے ربط دے.او اشاره ده دے خبرے ته چه مجرم خپل جرم دالله تعالى نه نشى پټولے.الله تعالى خو عليم بذات الصدور دے.دهغه نه خو دانه جامو لاندے هم څه څيز پټ نه دے.نودچا جرم به دالله تعالى نه څنگه پټ پاتے شى.
په سورة قيامت كښے چه مولانا د آياتونو د ربط په باره كښے كوم تقرير كړے دے ددے ماحصل دادے.چه دلته ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ د نه وړاندے د درے ..جمع.. كولو ذكر دے.

() يوه جمع د ..عظام اوبنان.. ده.﴿أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَلَّنْ نَجْمَعَ عِظَامَهُ ۝ بَلَىٰ قَادِرِينَ عَلَىٰٓ أَنْ نُسَوِّيَ بَنَانَهُ﴾
() دويمه جمع ﴿وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ﴾ يعنى شمس او قمر به جمع كړى.او بے نوره به شى.
() دريمه جمع دانسان داعمالو ده.﴿يُنَبَّأُ الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾

وړاندے په ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ۝ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ ۝ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ۝ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ كښے دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت مطابق خو واقعه هغه ده.كومه چه مونږ ذكر كړه.چه نبى ﷺ به د يادولو او حفظ په نيت تحريك لسان اوشفتين كول.نو د دے نه دوى منع شو.
ددے د شان نزول واقعه ماحصل دا دى.چه رسول الله ﷺ ددے باوجود چه امى وو.په قراءت او كتابت نه پوهيدلو.په دوى باندے قرآن نازليدلو.كله كله به په يوځل خو خو ركوع گانے نازلے كړے.دوى د حضرت جبريل عليه السلام سره د قراءت لوستلو نه منع شوى وو.خو الله سبحانه وتعالى د جبريل عليه السلام د تلو نه پس دا آياتونه د نبى ﷺ په سينه كښے جمع كول.نه يواځے دا چه

(١) هود ٣٠٠-.

اخانو به نې جمع کول بلکه به دوی باندې به نې دهغې تلاوت هم کول او به دې کښې به د هیڅ زور او زبر فرق به وو او نه بواځې دا چه د دوی په سینه کښې به نې جمع کول او د دوی په ژبه به نې ددې تلاوت کول بلکه ددې مضامین او حقائق به نې د دوی په ژبه باندې بیانول. لکه چه دا خودلې شي چه الله سبحانه وتعالی کله چه محمد رسول الله ﷺ په زړه کښې دا آخرت جمع کولے شي نو دغه شان ... جمع عظام وبنان، جمع شمس وقمر، او بیا جمع اعمال في كتاب الاعمال. دالله تعالى دپاره څه ګران نه دی[1] په دې طریقه به د ماقبل سره ربط راشي

**نهم جواب** یو مناسبت بعضې عالمانو ﷭ دلته دا بیان کړے دے چه الله تعالی اول د نفس انسانی تذکره کړے ده اوفرمائی چه ﴿وَلَآ أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ﴾ کله چه ددې متعلق بیان اوشو نو بیا نې د اشرف النفوس او اکمل النفوس د رسول الله ﷺ د نفس تذکره اوکړه ورته اوونیلې شو چه ستاسو نفس د ټولو نه اشرف او اکمل دے نو ستا دپاره د ټولو نه اکمل و افضل صورت اختیارول پکار دی. دجبریل ﷤ د لوستلو په وخت کښې پوره متوجه کیدل پکار دی خکه چه هغه زمونږ کلام لولی نو د زړه په حضور سره په پوره توجه سره ددې په اوریدو کښې مشغول شه. اوچه کله هغه فارغ شي نو بیا زمونږ په ذمه ده. چه مونږ به ستا په ذریعه لولو.[2]

**لسم جواب** یومناسبت حضرت حکیم الامت مجدد الملة مولانا اشرف علي تهانوی قدس سره بیان کړے دے. ددے حاصل دا دے چه الله تعالی ددے نه وړاندے ﴿يُنَبَّأُ الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ فرمائیلي دي. ددے نه دوه خبرے معلومے شوے یوه دا چه دالله تعالی ټول څیزونه په خپله احاطه کښې اخستې دي. هیڅ یو ورکوټې او لوئ څیز دالله تعالی دعلم د دائرے نه بهر نه دے. که داشخاصو وي. او که د اجسامو وي. یا داعراضو وي. که افعال وي اوکه د اعمال. دالله تعالی ته د ټولو علم محیط حاصل دے.

دویمه څیز دامعلوم شو. چه الله تعالی کله اوغواړي. نو ډیر امور غائبه اوعلوم غائبه کثیره دانسان په ذهن کښې راولی. اوګورئ دا انسان معلومه نه ده. چه په ژوند کښې څومره کارونه کوی. صبا ته د قیامت په ورځ به دده ټول کارونه ده ته مخامخ کړے شي.

اوس الله تعالی خپل پیغمبر ﷺ ته خطاب کوی. چه کله تاسو ته معلومه شوه. چه زمونږ علم محیط دے. اومونږ علوم غائبه چه کله اوغواړو. نو حاضرولے شو. نوخامخا تاسو خپل ځان ولے په مشقت کښې اچوئ. چه دحضرت جبریل ﷤ سره په لوستلو کښې مشغول کیږئ. یوطرف ته اوریدو ته توجه کوئ. بل طرف ته یادولو ته توجه ورکوئ. او دغه شان مضامینو طرف ته متوجه نې. بلکه تاسو صرف کار کوئ چه کله جبریل امین لوستل کوی. نوته اوره. او وړاندے ددے حفظ کول او اورول او بیانول زمونږ په ذمه واری ده.[3]

---

(۱) تفسیرعثمانی(ص.۷۶۷) تفسیرسورة القیامة)_

(۲) فتح الباری(۶۸۱/۸) کتاب التفسیر.سورة القیامة ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾_

(۳) بیان القرآن (۶۱/۱۲) تفسیر سورة القیامة)_

# الحديث الخامس

[٥] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وحَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنَا يُونُسُ وَمَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ نَحْوَهُ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ وَكَانَ أَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ حِينَ يَلْقَاهُ جِبْرِيلُ وَكَانَ يَلْقَاهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْآنَ فَلَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ [۴۷۱۱،۳۳۶۱،۳۰۴۸،۱۸۰۳]

## رجال الحديث

**قوله: عَبْدَانُ:** دا د دوی لقب دے.نوم ئے عبدالله بن عثمان بن جبله دے.بعضے شارحینو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه دا د ((من باب تغيير الأسماء)) خنے دے.قاعده داده.چه کله مسمی معلوم وی.نو بعضے وخت دهغه نوم گډوډ کړے شی.لکه علی ته چه علان. احمد بن یوسف سلمی ته حمدان، او وهب بن بقیة واسطی ته وهیان وئیلی شی.دغه شان عبدالله بن عثمان ته ،،عبدان،، وئیلی شی.

خوعلامه عینی رحمه الله د حافظ بن طاهر رحمه الله نه نقل کړی دی.چه ددی نوم عبدالله او کنیت عبدالرحمن دے.نوم او کنیت ئے ملاؤ شوی دی.نوعبدان ترے جوړ شوے دے.خلك ورته عبدان وئیل شروع شو.لکه چه دا غلط نوم نه دے.بلکه په علم او کنیت کښے ئے دوه ..عبد..ملاؤ کړی دی.او تثنیه ترے جوړه شوے ده.

علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه دا اوجه صورت دے.(۱) خکه چه کله صحیح توجیه ممکنه وی.نوخامخا د گډوډ کیدو قائل کیدل مناسب نه دے.

عبدان ثقه او حافظ دے.په ۲۲۱ھ کښے د ۷۶ کالو په عمر کښے وفات شو.(۲)

**قوله: قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ:** یاد ساتئ چه د عبدان نه پس چه کله هم عبدالله علی الاطلاق راشی.نو ددے نه به حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله مراد وی.(۳)

**عبدالله بن مبارک:** داعبدالله بن المبارك خنظلی دے.د دوی کنیت ابوعبدالرحمن دے.د مرو اوسیدونکے وو.خکه ورته مروزی وائی.

(۱) دپوره تفصیل دپاره اوگورئ: عمدة القاری(۱/۷٤)_

(۲) د دوی د حالاتو دپاره اوگورئ: تهذیب الکمال(۱۵/۲۷۶، ۲۷۹)_

(۳) هدی الساری (ص.۲٤۹)الفصل السابع کتاب بدء الوحی )_

دامام ابوحنیفه.سفیان بن عیینه.او د دوی پشان عالمانو ﷺ نه ئے علم حاصل کړے دے بیا سفیان ثوری رحمہ اللہ او سفیان بن عیینه رحمہ اللہ هم ددوی نه روایتونه اخستی دی.د دوی په جلالت شان او ثقاهت باندے اتفاق دے.دوی ته دعلم حدیث سره سره په علم فقه کښے هم مهارت حاصل وو.ډیرسخي وو.دوی سره لوئے لوئے مجاهدین هم وو.ترآخری عمره پورے د دے خبرے پابند وو چه یوکال به حج ته تلو.او یو کال به جهاد ته تلو.د دوی ولادت په ۱۱۸ھ او وفات په ۱۸۱ھ کښے شوے وو.(۱) رحمه الله تعالی.

**قوله يُونُسُ**:دا یونس بن یزیدبن ابی النجاد ایلی دے.ثقه دے.دحضرت معاویه بن ابی سفیان رضی اللہ عنہ مولی دے.د قاسم.عکرمه.سالم.نافع.اوزهری پشان ډیروتابعینو ﷺ نه روایت کوی.په ۱۵۹ھ کښے وفات شوی وو.(۲) دلته هم یاد ساتئ:چه په کوم ځائے کښے علی الاطلاق یونس راشي.نوددے نه به هم دا یونس مراد وی.(۳)

**قوله الزُّهْرِيِّ**:داامام ابن شهاب زهری رحمہ اللہ حالات وړاندے تیر شوی دی.

**قوله ح وحَدَّثَنَا**:دا اولنئ موقع ده.چه دلته په بخاری شریف کښے ..حاء.. واقع شوے ده.دا په صحاح سته کښے واقع ده.دغه شان په مسند احمد کښے هم شته.خو په ابوداود او مسلم کښے په کثرت سره واقع شوے ده.

دقدماؤ ددے لفظ متعلق کلام نه دے کړے.د تولو نه وړاندے په دے مسئله کښے اختلافات حافظ ابن الصلاح رحمہ اللہ جمع کړی دی.(۴) بهرحال ددے لفظ په باره کښے اختلاف دے.اوپه دے کښے د عالمانو ﷺ دوه رائیګانے دے.بعضے حضرات دا حاء مهمله ګرځوی.او دویمه رائے دا ده.چه دا خاء معجمه ده.

بیا د حاء مهمله د قائلینوپنځه اقوال دی.

(۱)د تولو نه زیاته مشهوره دا ده.چه دا د ..تحویل.. نه ماخوذ ده.تحویل وئیلي شي بدلولو ته .منصف سند لیکي اوپه لیکلو کښے خپل طرف بل سند ته واړوی.دے طرف ته د اشارے دپاره ..حاء مهمله.. لیکی.(۵)

داسے وی.چه د یو حدیث څو سندونه وی.که دا چرته جدا جدا بیان کړے شي.نو تطویل هم دے.اوګرانه هم.نوځکه دا حضرات داسے کوی.چه د شیخ مشترک پورے هرسند جدا جدا بیان کړی.اودشیخ مشترک نه پس چه کله سند یو شي.نود تولو دپاره یو سند ذکر کوی.د شروع

(۱) د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ. حلية الأولياء(۱۶۲/۸. ۱۹۰) وسيرأعلام النبلاء (۳۷۸/۸. ۴۲۱) وبستان المحدثين (ص.۱۴۷. ۱۶۰) وتهذيب الكمال(۵/۱۶. ۲۴)_

(۲) عمدة القاری(۶۸/۱) وتقريب التهذيب (ص.۶۱۴)_

(۳) هدی الساری (ص.۲۴۹)_

(۴) مقدمة ابن الصلاح(ص.۹۹) النوح الخامس والعشرون كتابة الحديث وضبطه وتقييده.بيان أمور مفيدة (الأمر الخامس عشر)_

(۵) پورتنئ حواله وشرح قسطلانی (۷۱/۱)

نه يوسند د شيخ مشترك پورے وي او ددے نه پس بل سند د دغه شيخ مشترك پورے ذكر كولے شي او ددے دواړو سندونو په مينځ كښے د فصل دپاره ..حاء..ليكي چه په جدا جدا سندونو باندے د يو سند كيدو گمان نه راځي.

مثلاً دلته دامام بخاري رحمه الله استاذ عبدان دے او د دوي سند دے.((قال أخبرنا عبدالله قال أخبرنا يونس عن الزهري)) دا زهري رحمه الله شيخ مشترك دے.دعبدان سند نے د زهري رحمه الله پورے يوړلو او پرے نے خودلو.او د دے نه پس د امام بخاري رحمه الله دويم استاذ دے.بشربن محمد.د دوي سند جدا دے.هغه دا دے ((حدثنا بشر بن محمد قال أخبرنا عبدالله قال أخبرنا يونس ومعمر عن الزهري نحوه)) دبشربن محمد دا سند هم د شيخ مشترك يعني امام زهري پورے راورسيدلو.د زهري رحمه الله نه پس د دواړو سند يو دے.((قال أخبرني عبيدالله بن عبدالله عن ابن عباس)) د زهري رحمه الله پورے دعبدان سند جدا وو.اود بشربن محمد سند جدا.د عبدان په سند كښے د عبدالله بن مبارك رحمه الله يو استاذ دے.اود بشربن محمد په سند كښے د ده دوه استاذان دي. دا دواړه سندونه نے جدا جدا اوليكل.او د دواړو په مينځ كښے نے د فصل دپاره ..حاء.. اوليكله.ددے دپاره چه معلومه شي.چه د ..حاء.. نه وړاندے يو سند دے.او د دے نه پس دويم سند دے.اود ..حاء.. نه وړاندے چه متصل كوم شيخ مذكور دے.هغه په دواړو سندونو كښے مشترك دے.

بهرحال د جمهور متقدمينواومتاخرينو رحمهم الله هم دا طريقه ده.چه دلته راورسي نو..حاء مفرده.. اولولي.اووړاندے ځي.(١)

(٢) دويم قول دا دے.چه دا ..حاء.. دحائل نه ماخوذ ده.چه قاري دلته راورسي نو څه به نه لولي.بلكه د سند اول نه پس به سند ثاني شروع كړي.حافظ عبدالقادر رهاوي رحمه الله دخپلو مشائخو نه هم دا نقل كړي دي.(٢)

(٣) دريم قول دا دے.چه دا خو هم د ..حائل.. نه ماخوذ ده.خوقاري به د ..حائل.. تلفظ هم كوي.دحافظ شرف الدين دمياطي رحمه الله نه هم دا منقول دي.(٣)

(٤) څلورم قول دا دے.چه دا د ..الحديث.. مخفف دے.عام طور چه مغاربه كله دا لولي.نود ..حاء.. په ځائے ..الحديث.. لولي.او وړاندے سند شروع كوي.

(٥) پنځم قول دا دے.چه دا د ..صح.. نه مخفف دے.اودا ددے وجے ليكلي شي.چه څوك دا اونه گڼړي.چه مؤلف يا كاتب ته وهم شوے دے د سند څه پاتے شوے ده.يا د سند متن ساقط شوے دے.حافظ ابوعثماني صابوني رحمه الله حافظ ابومسلم عمربن علي ليثي بخاري رحمه الله

---

(١) مقدمة ابن الصلاح (ص.١٠٠) ومقدمة شرح نووي على صحيح مسلم (ص.١٩)_

(٢) مقدمة ابن الصلاح (ص.١٠٠) وارشاد الساري(٧١/١)_

(٣) ارشاد الساري(٧١/١)_

او محدث ابوسعد خليلي رحمه الله د قلم نه د په داسے مقاماتو کښے د ..حاء.. په ځائے د ..صح.. کتابت موندلی شی.(۱)

دا ټول پنځه اقوال شو په دے کښے اولنے قول راجح دے.((کما ذکرہ ابن الصلاح والنووی رحمهما الله))(۲) بیا کوم حضرات چه د ..خاء معجمه.. قائل دی.په هغوی کښے هم دوه اقوال مشهور دی.

() یو دا چه دا ((آخرالحدیث)) طرف ته اشاره ده.(۳)

() دویم قول دا دے چه دا ((بسند آخر)) طرف ته اشاره ده.(۴)

دلته د ..حا.. دلفظ نه پس چه کوم ..واو.. دے دے ته واو تحویل وائی.(۵)

**قوله**: بِشْرُبْنُ مُحَمَّدٍ: دا بشربن محمد سختیانی دے.ابومحمد ئے کنیت دے.په صحاح سته کښے صرف امام بخاری رحمه الله ددوی نه روایات نقل کړی دی.بل چا نه دی نقل کړے.ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښے ذکر کړی دی.اودا ئے هم وئیلی دی.چه دے په مرجئو کښے دے.۲۲۴ھ کښے وفات شوے وو.(۶)

**قوله**: مَعْمَرٌ: معمر بن راشد ازدی ابوعروه بصری دے.په یمن کښے ئے ستوګنه اختیار کړے وه.د هغه ځائے عالم بللی شی.حافظ عبدالرزاق صنعانی رحمه الله فرمائی.چه ما د دوی نه لس زره احادیث اوریدلی دی.

د ډیروتابعینو رحمهم الله نه ئے په خپله هم احادیث اخستے دی.او ډیرو تابعینو رحمهم الله د دوی نه هم احادیث اخستے دی.

هسے دے ثقه دے.خو د ثابت، اعمش، او هشام بن عروه نه چه کوم احادیث دوی نقل کوی.په هغے کښے کلام دے.دغه شان په بصره کښے چه ئے کوم احادیث نقل کړی دی.په هغے باندے هم کلام شوے دے.

د اته پنځوس کالو په عمر کښے ۱۵۴ھ کښے وفات شوے دے.(۷)

**قوله**: عَنْ الزُّهْرِيِّ نَحْوَهُ: ددے مطلب دا دے چه عبدالله بن مبارک رحمه الله دا حدیث د یونس او معمر دواړو نه نقل کوی.خوالفاظ د یونس دی.اود معمر الفاظ ئے نه دی ذکر کړے.بلکه دهغه الفاظ د یونس دالفاظو هم معنی دی په لفظونو کښے اتحاد نشته.(۸)

---

(۱) مقدمة ابن الصلاح(ص.۹۹)_

(۲) مقدمة (ص.۱۰۰) ومقدمة نووی علی صحیح مسلم (ص.۱۹)_

(۳) مقدمة أوجزالمسالک (ص ۱۱۳) الباب الخامس فی توضیح ألفاظ کثر استعمالها فی کتب الحدیث)_

(۴) پورتنئ حواله)_

(۵) عمدة القاری (۷۵/۱)_

(۶) تهذیب الکمال (۱۴۵/۴، ۱۴۶) وعمدة القاری (۷۴/۱)_

(۷) تقریب التهذیب (ص.۵۴۱) رقم الترجمة (۶۸۰۹) وعمدة القاری (۶۸/۱، ۶۹)_

(۸) فتح الباری(۳۰/۱)_

په مثله او نحوه کښې فرق په دے سره به په دے دواړو لفظونو يعنى ..مثله.. او ..نحوه.. کښے فرق هم په پوهه کښے راغلے وى په کوم ځائے کښے چه په الفاظو کښے هم اتحاد وى.هلته د ..مثله.. اطلاق کيږى او په کوم ځائے کښے چه په الفاظو کښے اتحاد نه وى.بلکه صرف معنى يوه وى.نو هلته ..نحوه.. استعماليږى.(١)

قوله عُبَيْدُاللّٰهِ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ: دا عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود دے.دمدينے په مشهورو اووه فقهاؤ کښے يو دے.د ډيروصحابه کرامو رضي الله عنهم حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه، حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وحضرت ابوهريره رضي الله عنه غوندے حضراتو نه ئے احاديث اوريدلی دی.د دوی نه د تابعينو رحمهم الله يوے لوئے ډلے علم حاصل کړے دے.دحضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله معلم وو.دوی روستو نابينا شوی وو.دوی په ٩٩ھ ٩٨ھ يا ٩٤ھ کښے وفات شوی دی.(٢)

رسول الله صلى الله عليه وسلم په ټولو انسانانو کښے د ټولو نه زيات د جود او سخا خاوند وو.

د ..جود.. معنى ده.بغيرد سوال نه ورکول.ددے دپاره چه سائل د ذلت نه بچ شى.دغه شان د ..جود.. معنى زيات ورکول هم ده.هم دا وجه ده.چه موسمى باران ته ..جود.. ونيلی شى.(٣)

علامه کرمانى رحمه الله فرمائى.جود وائى ((اعطاء ماينبغى لمن ينبغى)) يعنى څه چه مناسب وى.اوچاته چه مناسب وى.هغه ته ورکولو ته ..جود.. وائى.(٤)

علامه محمد اعلى تهانوى رحمه الله فرمائى.((افادة ماينبغى لالعوض)) يعنى څه چه مناسب وى.هغه بغير دڅه عوض او بدلے نه ورکول.دے ته ..جود.. وائى.(٥)

ياد ساتئ چه د جود دپاره د مال اودولت کثرت ضرورى نه دے.رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د مال او دولت کثرت نه وو.خوددوی چه کوم قلبى کيفيت وو.اوبيا چه دهغے څه اثر ښکاره کيدلو.نود هغے نظير نه ملاويږى.

ددے تعريفاتو نه دا هم معلومه شوه.چه په ..جود.. کښے بے غرضى وى.کوم سړے چه ..جواد.. وى.هغه په څه لالچ باندے ورکړه نه کوى.

بيا د سخاوت تعلق د مال سره وى.او ..جود.. وائى ((اعطاء ماينبغى)) ته.ددے نه معلومه شوه.چه دا د مال سره مخصوص نه ده.دعلم تقسيم، دمعارف تقسيم، د اخلاقو تقسيم، اودغه شان هدايت وغيره ټول په ..جود.. کښے داخل دی.

دلته داهم معلومه شوه.چه په ..جود.. کښے اعطاء د حال مناسب وى.چه يو سړے اوږے وى.

(١) عمدة القاري(٧٥/١)وارشادالساري للقسطلاني(٧١/١)

(٢) عمدة القاري(٧٢/١) وتهذيب الكمال(٧٣/١٩، ٧٦)_

(٣) تاج العروس(٣٢٧/٢)

(٤) شرح کرماني(٥٠/١)_

(٥) كشاف اصطلاحات الفنون(١٩٦/١)_ دغه شان تفسير كبير(١۶۶/١) لا رحمن إلا الله)_

هغه ته جامے ورکړی یا یو سړے بربنډ وی په هغه باندے روتی اوخوری. دا ..جود.. نه دے. دغه شان دا هم معلومه شوه چه مستحق ته مناسب څیز ورکړی.دا ..جود.. دے.غیر مستحق ته ورکول ..جود.. نه دے.

دلته دا هم پیژندل پکار دی چه ..جود.. یوه ملکه فاضله ده.او سخا دهغے اثر دے.نو ..جود.. او سخا ته یو نښې ونیلے.رسول الله ﷺ د ملکات فاضله په اعتبار سره په هرڅا باندے فوقیت لرلو.دا بیله خبره ده.چه د بعضے عوارضو د وجے په بعضے ځایونوکښے د هغوی دملکاتو پوره پوره اظهارنه دے شوے.بهرحال د ..جود.. مدار د نفس په غنا دے.د زیات مال په تقسیم باندے نه دے.چه یو کس سره سل روپئ وی.اوهغه لس روپئ خیرات کړی.نو عشر سره به سخاوت وی.او بل سره صرف یوه روپئ وی.اوهغه دغه هم خیرات کړی.نودا سل فیصده خیرات دے.«کمافی قصة أبی بکر وعمر رضی الله عنهما» (١) رسول الله ﷺ چه دخلقو سره د ..جود.. کومه معامله کړے ده.حقیقت دا دے.چه دهغے مثال نه ملاویږی.

**دنبی ﷺ د ..جود، څو مثالونه** نبی کریم ﷺ ته یو ځل د بحرین نه یو لاکھ درهم راغلل.دوی هغه تقسیمول تردے چه یو درهم هم باقی پاتے نشو.(٢)

یوځل یوے ښځے دنبی کریم ﷺ په خدمت کښے یو نقش دار څادر پیش کړلو.اوعرض ئے اوکړلو.چه دا ما خاص کرستاسو دپاره تیار کړے دے.نبی ﷺ ته ضرورت هم وو.دوی کورته تشریف یوړلو.اودغه څادر دوی د لنګ دپاره استعمال کړلو.

یوصحابی رضی الله عنه هغه مس کړلو.او وے کتل.دهغه خوښ شو.هغوی عرض اوکړلو.یا رسول الله دا خومره ښکلے څادر دے.ماته ئے راکړئ.نبی ﷺ هغه ته ورکړلو.نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم په هغه نکیر اوکړلو.چه د رسول الله ﷺ ورته ضرورت وو.خکه هغوی واچولو.اوتاته معلومه هم ده.چه دوی د سائل سوال نه رد کوی.خو تا ترے بیا هم واخستلو.هغوی اوونیل.په اصل کښے دا څادرزه په خپل کفن کښے استعمالول غوارم.نوځکه مے ترے اوغوستلو.(٣)

دغه شان چه کله دوی د غزوه حنین نه واپس تشریف راوړلو.نو یو اعرابی راغلو.او د دوی نه ئے په اصرار سره غوستل کول.تردے چه دوی ئے په روستو کیدو باندے مجبوره کړلو.د کیکر د یوے وونے سره د دوی څادر اونختلو.اودغه شان څادر د دوی د لاس نه لاړلو.دوی اودریدلو.او وے ونیل.زما څادر ماته راکړه.که ماسره په دے ځنګل کښے چه څومره د کیکر وونے دی ددے په برابر څاروی وو.نو مابه به تاسو کښے تقسیم کړے وے.اوزه به مو بخیل.دروغژن اوبزدله نه وے موندلے.(٤) رخو په هغه وخت کښے ورسره څه څیز باقی نه وو پاتے شوے)

---

(١) سنن ترمذی کتاب المناقب باب فی مناقب أبی بکر وعمررضی الله عنهما کلیهما رقم (٣٦٧٥)_

(٢) صحیح بخاری(١/٦٠)کتاب الصلاة باب القسمة وتعلیق القنو فی المسجد)_

(٣) صحیح بخاری کتاب الجنائزباب من استعد الکفن فی زمن النبی ﷺ فلم ینکرعلیه)_

(٤) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الشجاعة فی الحرب والجبن رقم (٢٨٢٠) وکتاب فرض الخمس باب ما کان النبی ﷺ یعطی المؤلفة قلوبهم وغیرهم من الخمس ونحوه رقم (٣١٤٨)_

رسول الله ﷺ يو خل روان وو. د دوى په بدن باندے نجرانى څادر وو. يو باندو يحى دوى يعنى ددوى څادر اونيولو.او ډير په زور سره ئے راښكلو.تردے چه د دوى په څټ مبارك باندے د راښكلو اثار ښكاره شو.او بيا ئے اووئيل.ماته د څه راكولو حكم اوكړه.دوى هغه طرف ته متوجه شو.او وے خندل.اوهغه ته ئے د وركولو حكم اوكړلو (١)

حضرت بلال رضي الله عنه فرمائى.چه رسول الله ﷺ به كله څوك حاجتمند او ليدلو نو ماته به ئے حكم اوكړلو.ما به دچا نه قرض واخستلو.هغه ته به مے جامے واغوستلے اوروټئ به مے پرے اوخوړله.يوخل يو مشرك ماته راغلو.او وئيل.ماسره ډيرزيات مال دے ته د بل چانه قرض مه اخله.زه به درته دركوم.

يوه ورځ ما اودس اوكړلو.او د اذان تيارے مے كولو.چه هغه مشرك د خپلو پيشورو سوداګرو يوے ډلے سره راغلو.اودهمكى ئے راكوله.اوبه چغه ئے اووئيل اے حبشى!اوبيا ئے راته په ډيره سخته لهجه كښے اووئيل.معلومه ده درته.چه د مياشتے په پوره كيدو كښے څومره ورځے دى؟ما ورته اووئيل.بس يو څو ورځے دى.هغه اووئيل.صرف څلور ورځے دى كه په دے ورځو كښے دے زما قرض ادا نكړلو.نوزه به تا خپل غلام جوړ كړم.او بيا به د اولنى پشان چيلئ څروے.حضرت بلال رضي الله عنه فرمائى.ماسره ډير غم شو.په څه طريقه مے د ماسخوتن مونځ اوكړلو.اود نبى ﷺ په خدمت كښے حاضر شوم.او واقعه مے ورته بيان كړه او عرض مے اوكړلو.زما مور پلار دے په تاسو قربان وى.تاسو سره په دے وخت كښے څه نشته.چه قرض پرے خلاص كړئ.اونه ماسره څه شته.اوهغه به ما رسوا كړى.ماته اجازت اوكړئ.چه زه د څو ورځو دپاره پټ شم.تردےچه الله تعالى تاسوته څه مال راولى.

دا مے ورته اووئيل.چه كور ته راغلم تيارى مے اوكړله.د صبا راختو په انتظار كښے وم.چه يو كس په منډه منډه راغلو.او وے وئيل.اے بلال!رسول الله ﷺ دے غواړى.چه زه حاضر شوم.چه مے اوكتل.نو څلور اوښے د سامان ډكے ناستے دى.نبى ﷺ ماته زيرے واورولو.اووے فرمائيل.چه دا څلور اوښے د سامان سره د شاه فدك د طرفه هديه ده.اوس چه دے سره دے څه خوښه وى.اوكړه.

حضرت بلال رضي الله عنه قرض وركړلو.او چه بيا جمات ته راغلو.نو رسول الله ﷺ تشريف فرما وو.نبى ﷺ د مال په باره كښے تپوس اوكړلو.نوهغوى عرض اوكړلو الله تعالى ټول قرض خلاص كړلو.اوس قرض باقى نشته.نبى ﷺ تپوس اوكړلو.آيا څه باقى پاتے شوى دى.هغه عرض اوكړلو.اوڅه باقى دى.نبى ﷺ اوفرمائيل.باقى مال تقسيم كړه.او ما ته فكره كړه.څكه چه ترڅو پورے ټول مال تقسيم شوے نه وى.اوماته آرام رانكړے.نو زه به خپلو بيبيانو ته نه ورځم.

بيا د ماسخوتن دمانځه نه پس نبى ﷺ هغه راوغوستلو.اوتپوس ئے اوكړلو.نوهغه ورته عرض اوكړلو.تراوسه پورے مال موجود دے.څوك مستحق نه دے راغلے.نبى ﷺ كور ته لانړلو.بلكه په جمات كښے ئے شپه تيره كړه.په دويمه ورځ ئے د ماسخوتن په وخت كښے زه

(١) صحيح بخارى كتاب فرض الخمس باب ما كان النبى ﷺ يعطى المؤلفة قلوبهم وغيره رقم (٣١٤٩)_

راوغوستلم او تپوس ئې اوکړلو مّا عرض اوکړلو يارسول الله ټول مال تقسيم شو. الله تعالى تاسو ته فکره کړئ نبي ﷺ خوشحاله شو او تکبير ئې اوونيلو او دالله تعالى تعريف ئې اوکړلو دوي سره ويره وه چه هسې نه دا مال موجود وي او مرګ راشي.(١)

بوخل نبي ﷺ د مازيګر مونځ اوکړلو او ډير په جلتئ سره ئې حجرې ته تشريف يوړلو. خلق پريشانه شول چه څه واقعه پيښه شوه؟ نبي ﷺ واپس تشريف راوړلو. خلقو د پريشانئ په حالت کښې وو نبي ﷺ اوفرمائيل حقيقت کښې خبره دا وه چه مونږ سره څه سره زر پراته وو او ما سره ويره شوه چه هسې نه هغه رانه هير شي. څکه مې دهغې د تقسيم حکم ورکړلو.(٢)

نبي ﷺ سره په مرض الوفات کښې څو اشرفئ وې. دوي ته ترهغه وخته پورې آرام نه ملاويدو ترڅوچه ئې هغه تقسيم کړې نه وې.(٣)

يعني رسول الله ﷺ په جود او سخا کښې د ټولو انسانانو نه اوچت وو. او په رمضان کښې چه به ورسره جبريل عليه السلام ملاو شو. نو دوي به د نور کله نه زيات جواد او سخي شو. اوحضرت جبريل عليه السلام به به رمضان کښې هره شپه د دوي سره ملاقات کولو. او دوي سره به ئې د قرآن کريم دور کولو. الغرض نبي ﷺ به په نفع رسولو کښې دتيزې سيلئ نه زيات جواد او سخي وو.

**دحديث دجملو ربط** علامه طيبي رحمه الله فرمائي. چه دلته د دوي مطلق جود ته د ټولو خلقو په جود باندې فضيلت ورکړې شوې دې. بيا د دوي هغه جود کوم چه به په رمضان کښې وو. هغې ته د باقي ټولووختونو په جود باندې فضيلت ورکړې شوې دې. بيا د جبريل عليه السلام د ملاقات په موقع چه د رمضان په شپو کښې کوم جود وو. هغې ته د رمضان په باقي ټولووختونو باندې فضيلت ورکړې شوې دې. اوبيا د دوي د سخاوت د ريح مرسله سره تشبيه ورکړې شوې دې. چه ددوي سخاوت د دې نه هم زيات وو.(٤)

**دنبي ﷺ په دې موقع باندې د جود او سخا سبب** بيا خاص کر په رمضان کښې به د دوي په جود او سخا کښې زيادت کيدلو. ددې څو اسباب دي.

() دټولو نه بنيادي سبب خو دا دې. چه په دې مياشت کښې الله تعالى ذوالجلال والاکرام په خپله جود کوي. د جنتونو دروازې پرانستې شي. د جهنم دروازې بندولې شي. شيطانان تړلې شي. بيا زياتي دا چه د فرض ثواب اويا درجې زياتيږي. اود نفلو ثواب د فرضو سره برابريږي. دغه شان د افطار صائم ترغيب ورکړې شوې دې. او انبياء عليهم السلام د الله تعالى د صفاتواتم مظهر وي. نو هر کله چه الله تعالى په رمضان کښې په جود او سخا کښې زيادت کوي. نو نبي ﷺ چه د الله تعالى آخري پيغمبر او د الله تعالى د صفاتو اتم مظهر دې. هغوي به ولې جود نه کوي. څکه ددوي په جود کښې زيادت اوشو.

() دويمه وجه دا ده. چه په خپله د رمضان مياشت د خير اونيکو مياشت ده. دا د انسان په

(١) سنن ابي داود كتاب الخراج والإمارة با ب في الإمام يقبل هدايا المشركين رقم.٣٠٥٥)_

(٢) صحيح بخاري(١/١١٧، ١١٨) كتاب الأذان باب من صلى بالناس فذكر حاجته فتخطاهم)_

(٣) طبقات ابن سعد(٢/٢٣٧، ٢٣٩) ذكر الدنانير التي قسمها رسول الله ﷺ في مرضه الذي مات فيه)_

(٤) شرح طيبي(٤/٢٠٩)كتاب الصوم باب الإعتكاف)_

طبيعت کښې نيکئ ته رغبت پيدا کوى.جود او سخا يوه لويه نيکى ده.د نبى کريم ﷺ په طبيعت به د رمضان په راتلو سره نور زيات اثر کيدلو.او د ددوى دورکړے او بخشش سمندر به د مستئ څپے وهلے.

۲) دريمه وجه دا ده.چه دحضرت جبريل عليه السلام سره به ملاقات کيدلو.اوهغه دالله تعالى فرشته ده.چه په کښې هوس اوخواهش معمولى حصه نشته.اوقاعده دا ده.چه د صحبت اثر کيږى.نود جبريل عليه السلام په ملاقات سره به په نبى ﷺ کښې د مال او متاع خرچ کولو زياته تقاضا پيدا کيدله.

۳) څلورمه وجه دا ده.چه په رمضان کښې به د جبريل عليه السلام سره د قرآن پاک دور کيدلو.دا قرآن پاك دالله تعالى کلام دے.ددے په لوستلو سره الله تعالى سره تعلق پيدا کيږى.اودا دغناء نفس سبب دے.دانسان په نفس کښې د غناء صفت پيدا کيږى.اوپه چا کښې چه څومره د نفس غناء وى.هغه هم هغه هومره زيات جود او سخا کوى.دا ټو اسباب ملاؤ شو او دنبى کريم ﷺ په جود او سخا کښې ئے ډيره زياته اضافه کوله.

هسے هم راتلونکے جبريل آمين وو.راوړنکے کتاب افضل الکتب وو.چاته چه ئے راوړلو هغه سيدالمرسيلين وو.کله چه دخير او برکت دومره خيزونه جمع وى.نو ددوى د باطنى فيوضاتو سمندر او د علوموا ومعارفو چينے به ولے نه راوتلے؟!

د «وَكَانَ أَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ» اعرابى کيفيت په أَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ کښې دوه روايتونه دى.په رفع سره او په نصب سره.که دا مرفوع شى.نو په دے کښې دوه احتمالات دى.

يو دا چه د «أَجْوَدُ مَا يَكُونُ» دكان اسم او «فى رمضان» د«حاصلاً» سره متعلق شى اوحال قائم مقام خبر شى.لکه چه وئيلى شى.«أخطب مايكون الأمير فى يوم الجمعة أى كائناً فى يوم الجمعة»

دويم احتمال دا دے.چه«أجود مايكون»مبتدا وى.او«فى رمضان» ددے خبر شى.مبتدء اوخبرملاؤ شو.اودواړه پوره جمله شوه د «کان» دپاره.اود «کان» ضمير د رسول اکريم ﷺ ذات طرف ته راجع وى.کوم چه د «کان» اسم دے.تقدير د عبارت به داشى «كان رسول الله ﷺ أجود أكوانه حاصل فى رمضان» دامام بخارى رحمه الله رجحان هم دے طرف ته دے.ځکه چه دوى په کتاب الصوم کښې ترجمه قائمه کړے ده.«باب أجود ما كان النبى ﷺ يكون فى رمضان».

اوکه دا منصوب شى.نوبيا د «کان» ضميررسول الله ﷺ ته راجع دے او«أجود مايكون فى رمضان» به ددے خبر شى.په دے کښې به «ما» مصدريه ظرفيه شى.اوتقدير د عبارت به داشى.«كان رسول الله ﷺ مدة كونه فى رمضان:أجود منه فى غيره» يعنى رسول الله ﷺ به په رمضان کښې د نورو مياشتو په نسبت زيات اجود وو.(۱)

---

(۱) فتح البارى(۳۰/۱، ۳۱)_

**قوله** وَكَانَ يَلْقَاهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْآنَ:

حضرت جبريل ﷺ به ورسره په رمضان کښې هره شپه ملاويدلو.اود نبی ﷺ سره به ئې د.قرآن كريم دور كولو.

**آيا د ټول قرآن پاک دور به کيدلو؟** دلته دحضرت جبريل ﷺ او نبی ﷺ د دور ذکر دے.سوال دا دے چه آيا د ټول قرآن كريم دور به کيدلواوکه صرف د نازل شوے حصے؟دواړه اقوال شته. بعضے حضرات فرمائی.چه د ټول قرآن دور به وو.دحضرت جبريل ﷺ په ونيلو سره به دوی ته ياديدل.اودوی به ورته هم اورول.خوروستوبه الله تعالی د دوی د حافظه نه غيرنازل شوے حصه لرے کوله.دويم قول دا دے.چه صرف د نازل شوے حصے دور به کيدل.والله اعلم.(١)

**د شپې د انتخاب وجه** دشپې د انتخاب وجه په ظاهره هم دا ده.چه د ورځې دنبی كريم ﷺ نور هم ډيركارونه وو.امت ته تبليغ اودهغوی اصلاح ئې د نظرونه وړاندے وه.د شپې وخت د تنهائۍ او خلوت وو.ددے وجے به په دے کښې نبی ﷺ د حضرت جبريل ﷺ سره دور كولو.(٢)

**د مدارست حكمت** بيا ددے مدارست يو حكمت خو هغه وو.چه نبی كريم ﷺ د حضرت جبريل ﷺ نه د قرآن پاك ادا كول اوتجويد زده كړی.

دويم حكمت دا وو.چه د آياتونو او سورتونو ترتيب معلوم شی.ځكه چه په نبی ﷺ باندے قرآن پاك په يوځل نه وو نازل شوے.بلكه نجماً نجماً د ضرورت مطابق نازل شوے وو.نودحضرت جبريل ﷺ سره چه كله دور كيدلو.اوهغه به لوستلو.نو د يوسورت ټول آيتونه به ئې مرتب لوستل.نو په دے سره به معلوميدله.چه كوم آيت د كوم سورة سره متعلق دے.اګرچه نبی ﷺ ته د وړاندے نه دا معلومه وه.ځكه چه حضرت جبريل ﷺ به ورته خودل. دريمه فائده دا وه.چه په دے سره نبی ﷺ ته دا معلوميدله.چه كوم آيت منسوخ شوے دے.او كوم باقی دے.

څلورمه فائده دا وه.چه روستو د دوی په امت كښې د مدارست سنت شروع شو.ددے وجے امت د نبی كريم ﷺ نه دا سنت قبول كړلو.اوهميشه دپاره ئې دخپلے سينے سره اولګولو.ا په دے باندے عمل كوی.

**قوله** فَلَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ:

,,خير،، مال ته هم وائی.اومطلق نفع رسولو ته هم وائی.كه په مال سره وی اوكه په بل څه سره وی. كه دخير نه مراد مال وی.نومطلب به دا شی.چه دوی د مال په ذريعه كومه نفع رسوله. او سخاوت ئې كولو.هغه د تيزے چيلدونكے سيلۍ نه هم تيز وو.

اوكه په خير كښې تعميم اوكړے شی.نو،،جود بالمال،، او ،،جود بالدين،، دواړه به په كښې شامل شی.لكه چه دا اوخودلی شو.چه څنګه هوا چليږی.نوهرځائے ته رسی.او هركس ته

---

(١) فتح البارى (٤٥/٩) كتاب فضائل القرآن باب كان جبريل ﷺ يعرض القرآن على النبى ﷺ وإيضاح البخارى (١٠٥/١) وتقريربخارى شريف (٩٧/١)_

(٢) فتح البارى(٤٥/٩) كتاب فضائل القرآن باب كان جبريل ﷺ يعرض القرآن على النبى ﷺ)_

د نسیم رسوی دغه شان د نبی کریم ﷺ د جود او سخا اثر هر ځائے او هر کس ته رسیدلو ... ریح مرسله... دا هغه دے کوم ته چه قرآن کریم ﴿وَمَن يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ﴾ (١) ونیلی دی ددے نفع عامه ده هر کوټ ته رسی او ډیر په سرعت سره چلیږی دا تشبیه په عموم او سرعت کښے ده

بیا د ... جود ... د لفظ نه دا معلومیږی چه د دوی جود د ریح مرسله د ریح نه وسیع او زیات وو ددے وجه دا معلومیږی چه په هوا سره صرف اشباح او جسمونو ته حیات ملاویږی جسمانی فائده رسی او جسمانی ژوند ملاویږی او نبی کریم ﷺ چه د کومو خیزونو سخاوت کولو په هغے سره حیات جسمانی او حیات روحانی دواړه حاصلیږی لکه چه څنګه چه دوی په مال او متاع سره خلقو ته فائده رسونه دغه شان ئے علوم او معارف هم تقسیمول

ددے نه علاوه یو فرق دا هم په پوهه کښے راځی چه کله هوا چلیږی نو هر کس ته برابر نفع نه رسی بعضو ته د نفع سره نقصان هم رسی مثلاً چه یخه هوا اوچلیږی نو چه د چا مزاج یخ وی هغه ته پرے تکلیف رسی یا تیزه هوا اوچلیږی نو د کمزوری طبیعت کس ته تکلیف ملاویږی او د نبی کریم ﷺ په جود سره صرف نفع رسیدله چا ته تکلیف نه رسیدلو و الله سبحانه اعلم

**د زمان او مکان د فضیلت په سلسله کښے د متکلمینو او محققینو اختلاف:** متکلمین رحمهم الله په نیز ټول زمانے او مکانونه د خپل ذات په اعتبار سره برابر دی دیوے اهم واقعه په دے کښے وقوع کیدو سره فضیلت راځی.

د شیخ اکبر رحمه الله او ابن قیم رحمه الله وغیره محققینو رحمهم الله په نیز خلقة د فطری استعداد په وجه کوم چه په علم ازلی قدیم کښے ثابت وی په هغے کښے زمان او مکان ته فضیلت حاصل دے
د متکلمینو رحمهم الله په نیز یوم عاشوراء ته فضیلت د نوح علیه السلام د نجات او مشرکانو غرقیدو. ابراهیم علیه السلام ته د نمرود د اور نه په نجات. د موسی علیه السلام په نجات او د فرعون په غرقیدو حاصل دے لیلة القدر د قرآن کریم په نزول او د آسمانی کتابونو په نزول سره د فضیلت خاونده ده. بیت الله ته فضیلت د حج د وجے ملاؤ شوے دے
او د محققینو رحمهم الله نقطه نظر دا دے چه دے زمانو او مکانونو ته ذاتی فضیلت حاصل وو نو الله تعالی ددے اهمو کارونو دپاره ددے انتخاب او کړل (٢)
ابن قیم رحمه الله په زادالمعاد کښے د متکلمینو رحمهم الله مذهب په بسط او تفصیل سره بیان کړے دے (٣) او د متکلمینو رحمهم الله د قول په باره کښے فرمائی «وهذه الأقاويل وأمثالها من الجنايات التي جناها المتكلمون على الشريعة ونسبوها إليها وهي بريئة منها» (٤)

(١) سورة النمل (٦٣)_
(٢) فضل الباری (١/٢٠٣)_
(٣) زادالمعاد (١/٣٩، ٧٠)_
(٤) زادالمعاد (١/٥٣)_

په متاخرينو ﷺ كښې د شاه ولى الله رحمه الله اوحضرت نانوتوى رحمه الله هم دا مسلك دے.او هم دا صحيح دے.ځكه چه دالله تعالى ارشاد دے.﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ﴾[1] دغه شان الله تعالى حكيم دے.اود حكمت معنى ده.((وضع الشئ فى محله)) نوكه د يو مكان يا زمان انتخاب د يو عظيم كار دپاره اوشى.نوخامخا به ضرور په هغے كښے څه خاص لياقت د وړاندے موجود وى.كوم چه به په بل زمان اومكان كښے نه وى.د ګلاب اوبو ته د بويولوپه شيشه كښے د كيخودو د وجے فضيلت نه دے حاصل.بلكه په دے كښے فضيلت وو.ځكه دا بويولى شى.اوپه شيشه كښے كيخودلے شى.دغه شان دحرم په زمكه كښے فضيلت وو.نوپه دے كښے بيت الله جوړ كړے شو.او نور شعائر هلته قائم كړے شول.اوحضرت ابراهيم عليه السلام ته حكم اوشو.چه حضرت اسماعيل عليه السلام اوحضرت هاجره عليها السلام هلته اورسوه.([2])

**ترجمة الباب سره مناسبت** په ظاهره د روايت د ترجمه سره څه مناسبت نشته.ځكه چه په دے كښے د بدء الوحى ذكر نشته.خو پوهه شئ:چه دلته د موحى اليه د ملكات فاضله ذكر چه كومه مبادى وحى ده.په هغے كښے د يوے اهم مبدء او اهم صفت جود بيان دے.

ددے نه علاوه وړاندے دا بيان شوے دے.چه د بعضے حضراتو په نيز په ..بدء.. كښے عموم دے.برابره خبره ده كه دا د زمان په اعتبار سره وى.اوكه د مكان په اعتبار سره وى.برابره ده كه د حالاتو او كيفياتو په اعتبار سره وى.په دے حديث پاك نه ابتداء زمانى معلوميږى.ځكه چه په دے كښے په رمضان كښے د قرآن پاك د دور تذكره ده.او په رواياتو كښے تصريح ده.چه قرآن پاك په رمضان كښے نازل شوے دے.لكه چه امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته راوړلو.اودے خبرے ته ئے اشاره اوكړله.چه د قرآن كريم نزول په رمضان شريف كښے شوے دے.ددے نه د بدء زمانى علم راځى.

دحضرت شيخ الهند رحمه الله د رائے مطابق به داسے وئيلى شى.چه د مكان او زمان انتخاب دڅه معمولى څيز دپاره نه كيږى.دحضرت جبريل عليه السلام افضل الملائكه په هر رمضان كښے د دور دپاره راتلل.د نبى كريم ﷺ افضل الكائنات دهغه سره د قرآن د نازل شوے حصے دور كول.اودے سره د جود او سخا مناسب اعمال اختيارول دا د وحى الهى د عظمت لوئے دليل دے.والله سبحانه وتعالى اعلم.

**دحديث باب نه مستنبط مسائل او څو فوائد** ① په رمضان كښے اوخاص كر چه كله د نيكانو اجتماع وى.نو په داسے موقع كښے د جود او سخا ترغيب اوتحريض خوښ عمل دے.

② دنيكانو زيارت مسلسل اوبالتكرار كول پكار دے.

③ په رمضان كښے د قرآن پاك تلاوت ښه زيات كول پكار دے.

④ په رمضان كښے د قرآن دور كول سنت دے.

---

(۱) سورة قصص:۶۸)_

(۲) فضل البارى(۱/۲۰۳،۲۰٤)_

⑤ د ..رمضان.. د لفظ اطلاق د ..شهر.. يوځائے کولو نه بغير هم ټيک دے بعضے حضرات ډهغه مياشتو په شروع کښے د ..شهر.. لفظ راوړلو ته ضروري واني

⑥ تلاوت د تسبيح او نورو ذکرونو نه افضل دے خکه که چرته ذکر د تلاوت نه افضل يا دے سره برابر وے نودوارو حضراتو به يا هميشه دپاره ذکر کولو ياپه بعضے وختونو کښے به ئے ذکر کولو حالانکه د هغوی اجتماع به مسلسل کيدله (خو بيوخل هم د ذکر د دور ثبوت نشته) والله سبحانه وتعالى اعلم

# الحديث السّادس

[١] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ (١) أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فِي رَكْبٍ مِنْ قُرَيْشٍ وَكَانُوا تِجَارًا بِالشَّامِ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَادَّ فِيهَا أَبَا سُفْيَانَ وَكُفَّارَ قُرَيْشٍ فَأَتَوْهُ وَهُمْ بِإِيلِيَاءَ فَدَعَاهُمْ فِي مَجْلِسِهِ وَحَوْلَهُ عُظَمَاءُ الرُّومِ ثُمَّ دَعَاهُمْ وَدَعَا بِتَرْجُمَانِهِ فَقَالَ أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا بِهَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ فَقُلْتُ أَنَا أَقْرَبُهُمْ نَسَبًا فَقَالَ أَدْنُوهُ مِنِّي وَقَرِّبُوا أَصْحَابَهُ فَاجْعَلُوهُمْ عِنْدَ ظَهْرِهِ ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ قُلْ لَهُمْ إِنِّي سَائِلٌ هَذَا عَنْ هَذَا الرَّجُلِ فَإِنْ كَذَبَنِي فَكَذِّبُوهُ فَوَاللَّهِ لَوْلَا الْحَيَاءُ مِنْ أَنْ يَأْثِرُوا عَلَيَّ كَذِبًا لَكَذَبْتُ عَنْهُ ثُمَّ كَانَ أَوَّلَ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَنْ قَالَ كَيْفَ نَسَبُهُ فِيكُمْ قُلْتُ هُوَ فِينَا ذُو نَسَبٍ قَالَ فَهَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ مِنْكُمْ أَحَدٌ قَطُّ قَبْلَهُ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ قُلْتُ لَا قَالَ فَأَشْرَافُ النَّاسِ يَتَّبِعُونَهُ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ فَقُلْتُ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ قَالَ أَيَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ

---

(١) الحديث أخرجه البخاری فی كتاب الأيمان .باب (بلاترجمة بعد باب سوال جبريل النبیﷺ عن الإيمان والإسلام والإحسان...رقم٥١. وفی كتاب الشهادات باب من أمربإنجازالوعدرقم.(٢٦٨١)وفی كتاب الجهادباب قول الله عزوجل:﴿قل هل تربصون بنا إلا إحدى الحسنيين.والحرب سجال رقم.(٢٨٠٤) وباب دعاء النبیﷺ الناس إلى الإسلام والنبوة..رقم(٢٩٤١)وباب ما قيل فی لواء النبیﷺ رقم.(٢٩٧٨) وفی كتاب الجزية والموادعة باب فضل الوفاء بالعهدرقم(٣١٧٤) وفی كتاب التفسيرباب ﴿قل ياأهل الكتاب تعالوا إلى كلمة سواء بيننا وبينكم أن لا نعبد إلاالله رقم.(٤٥٥٣) وفی كتاب الأدب باب صلة المرأة أمها وهل يجوز ترجمان واحد رقم(٧١٩٦) وفی كتاب الجهاد باب ما يجوز من تفسيرالتوراة وغيرها من كتب الله بالعربية وغيرها ...رقم(٧٥٤١) ومسلم فی صحيحه (٩٧/٢) كتاب الجهاد والسيرباب كتب النبیﷺ إلى هرقل ملك الشام يدعوه إلى الإسلام وأبوداود فی سننه فی كتاب الأدب باب كيف يكتب إلى الذمی رقم.(٥١٣٦) والترمذی فی جامعه فی كتاب الإيمان باب ما جآء كيف يكتب إلى أهل الشرك رقم(٢٧١٧)_

قلت بل يزيدون قال فهل يرتد أحد منهم سخطة لدينه بعد أن يدخل فيه قلت لا قال
فهل كنتم تتهمونه بالكذب قبل أن يقول ما قال قلت لا قال فهل يغدر قلت لا
ونحن منه في مدة لا ندري ما هو فاعل فيها قال ولم تمكني كلمة أدخل فيها شيئا غير
هذه الكلمة قال فهل قاتلتموه قلت نعم قال فكيف كان قتالكم إياه قلت الحرب
بيننا وبينه سجال ينال منا وننال منه قال ماذا يأمركم قلت يقول اعبدوا الله وحده
ولا تشركوا به شيئا واتركوا ما يقول آباؤكم ويأمرنا بالصلاة والصدق والعفاف والصلة
فقال للترجمان قل له سألتك عن نسبه فذكرت أنه فيكم ذو نسب فكذلك الرسل تبعث
في نسب قومها وسألتك هل قال أحد منكم هذا القول فذكرت أن لا فقلت لو كان
أحد قال هذا القول قبله لقلت رجل يأتي بقول قيل قبله وسألتك هل كان من
آبائه من ملك فذكرت أن لا قلت فلو كان من آبائه من ملك قلت رجل يطلب ملك أبيه
وسألتك هل كنتم تتهمونه بالكذب قبل أن يقول ما قال فذكرت أن لا فقد أعرف أنه
لم يكن ليذر الكذب على الناس ويكذب على الله وسألتك أشراف الناس اتبعوه أم
ضعفاؤهم فذكرت أن ضعفاءهم اتبعوه وهم أتباع الرسل وسألتك أيزيدون أم ينقصون
فذكرت أنهم يزيدون وكذلك أمر الإيمان حتى يتم وسألتك أيرتد أحد سخطة لدينه بعد
أن يدخل فيه فذكرت أن لا وكذلك الإيمان حين تخالط بشاشته القلوب وسألتك هل
يغدر فذكرت أن لا وكذلك الرسل لا تغدر وسألتك بما يأمركم فذكرت أنه يأمركم أن
تعبدوا الله ولا تشركوا به شيئا وينهاكم عن عبادة الأوثان ويأمركم بالصلاة والصدق
والعفاف فإن كان ما تقول حقا فسيملك موضع قدمي هاتين وقد كنت أعلم أنه
خارج لم أكن أظن أنه منكم فلو أني أعلم أني أخلص إليه لتجشمت لقاءه ولو كنت
عنده لغسلت عن قدمه ثم دعا بكتاب رسول الله صلى الله عليه وسلم الذي بعث به دحية
إلى عظيم بصرى فدفعه إلى هرقل فقرأه فإذا فيه بسم الله الرحمن الرحيم من محمد عبد الله
ورسوله إلى هرقل عظيم الروم سلام على من اتبع الهدى أما بعد فإني أدعوك بدعاية
الإسلام أسلم تسلم يؤتك الله أجرك مرتين فإن توليت فإن عليك إثم الأريسيين ويا أهل
الكتاب تعالوا إلى كلمة سواء بيننا وبينكم أن لا نعبد إلا الله ولا نشرك به شيئا ولا يتخذ
بعضنا بعضا أربابا من دون الله فإن تولوا فقولوا اشهدوا بأنا مسلمون قال أبو سفيان فلما
قال ما قال وفرغ من قراءة الكتاب كثر عنده الصخب وارتفعت الأصوات وأخرجنا فقلت

بِأَصْحَابِي حِينَ أُخْرِجْنَا لَقَدْ أَمِرَ أَمْرُ ابْنِ أَبِي كَبْشَةَ إِنَّهُ يَخَافُهُ مَلِكُ بَنِي الْأَصْفَرِ فَمَا زِلْتُ مُوقِنًا أَنَّهُ سَيَظْهَرُ حَتَّى أَدْخَلَ اللَّهُ عَلَيَّ الْإِسْلَامَ وَكَانَ ابْنُ النَّاظُورِ صَاحِبُ إِيلِيَاءَ وَهِرَقْلَ سُقُفًّا عَلَى نَصَارَى الشَّامِ يُحَدِّثُ أَنَّ هِرَقْلَ حِينَ قَدِمَ إِيلِيَاءَ أَصْبَحَ يَوْمًا خَبِيثَ النَّفْسِ فَقَالَ بَعْضُ بَطَارِقَتِهِ قَدِ اسْتَنْكَرْنَا هَيْئَتَكَ قَالَ ابْنُ النَّاظُورِ وَكَانَ هِرَقْلُ حَزَّاءً يَنْظُرُ فِي النُّجُومِ فَقَالَ لَهُمْ حِينَ سَأَلُوهُ إِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ حِينَ نَظَرْتُ فِي النُّجُومِ مَلِكَ الْخِتَانِ قَدْ ظَهَرَ فَمَنْ يَخْتَتِنُ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ قَالُوا لَيْسَ يَخْتَتِنُ إِلَّا الْيَهُودُ فَلَا يُهِمَّنَّكَ شَأْنُهُمْ وَاكْتُبْ إِلَى مَدَايِنِ مُلْكِكَ فَيَقْتُلُوا مَنْ فِيهِمْ مِنَ الْيَهُودِ فَبَيْنَمَا هُمْ عَلَى أَمْرِهِمْ أُتِيَ هِرَقْلُ بِرَجُلٍ أَرْسَلَ بِهِ مَلِكُ غَسَّانَ يُخْبِرُ عَنْ خَبَرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اسْتَخْبَرَهُ هِرَقْلُ قَالَ اذْهَبُوا فَانْظُرُوا أَمُخْتَتِنٌ هُوَ أَمْ لَا فَنَظَرُوا إِلَيْهِ فَحَدَّثُوهُ أَنَّهُ مُخْتَتِنٌ وَسَأَلَهُ عَنِ الْعَرَبِ فَقَالَ هُمْ يَخْتَتِنُونَ فَقَالَ هِرَقْلُ هَذَا مُلْكُ هَذِهِ الْأُمَّةِ قَدْ ظَهَرَ ثُمَّ كَتَبَ هِرَقْلُ إِلَى صَاحِبٍ لَهُ بِرُومِيَةَ وَكَانَ نَظِيرَهُ فِي الْعِلْمِ وَسَارَ هِرَقْلُ إِلَى حِمْصَ فَلَمْ يَرِمْ حِمْصَ حَتَّى أَتَاهُ كِتَابٌ مِنْ صَاحِبِهِ يُوَافِقُ رَأْيَ هِرَقْلَ عَلَى خُرُوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَّهُ نَبِيٌّ فَأَذِنَ هِرَقْلُ لِعُظَمَاءِ الرُّومِ فِي دَسْكَرَةٍ لَهُ بِحِمْصَ ثُمَّ أَمَرَ بِأَبْوَابِهَا فَغُلِّقَتْ ثُمَّ اطَّلَعَ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الرُّومِ هَلْ لَكُمْ فِي الْفَلَاحِ وَالرُّشْدِ وَأَنْ يَثْبُتَ مُلْكُكُمْ فَتُبَايِعُوا هَذَا النَّبِيَّ فَحَاصُوا حَيْصَةَ حُمُرِ الْوَحْشِ إِلَى الْأَبْوَابِ فَوَجَدُوهَا قَدْ غُلِّقَتْ فَلَمَّا رَأَى هِرَقْلُ نَفْرَتَهُمْ وَأَيِسَ مِنَ الْإِيمَانِ قَالَ رُدُّوهُمْ عَلَيَّ وَقَالَ إِنِّي قُلْتُ مَقَالَتِي آنِفًا أَخْتَبِرُ بِهَا شِدَّتَكُمْ عَلَى دِينِكُمْ فَقَدْ رَأَيْتُ فَسَجَدُوا لَهُ وَرَضُوا عَنْهُ فَكَانَ ذَلِكَ آخِرَ شَأْنِ هِرَقْلَ رَوَاهُ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ وَيُونُسُ وَمَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ

[۵۱، ۲۵۳۵، ۲۶۵۰، ۲۷۳۸، ۲۷۷۸، ۲۷۸۲، ۲۸۶۱، ۳۰۰۳، ۴۲۷۸، ۴۵۵۳، ۵۹۰۵، ۶۷۷۱]_

## رجال الحديث

**قوله**: أَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ: دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى دے.د يو بهرانى نوم ښځے مولى وو.ثقه او ثبت وو.دوى به د اسماعيل بن عياش.شعيب بن ابى حمزه رضى الله عنهم او د دوى نه علاوه د نورو ډيرواهل علمو نه روايت كوى.او ددوى په شاګردانو كښے امام بخارى امام احمد .امام يحيى بن معين.ابوحاتم او امام ذهلى رحمهم الله غوندے د علم ستنے دى.(١)

---

(١) تهذيب الكمال (١٤٦/٧. ١٥٥) وعمدة القارى (٧٩/١) وتقريب التهذيب(١٧٦)_

دلته دا خبره دیادولو ده.چه دوی د خپل استاذ شعیب بن ابی حمزه رحمه الله نه کوم روایات نقل کوی.هغه دوی اکثرسماعاً نه دی حاصل کړے.بلکه دوی ته د هغے اجازت وو.اودوی د داسے روایاتو دپاره هم د ..سماع.. لفظ یعنی ((أخبرنا)) استعمالوی.(۱)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.که یو کس د شعیب بن ابی حمزه رحمه الله نه اجازةً د حدیث روایت کوی.او مُجازله راوی ثقه وی.نوداسے روایت حجت دے.خو په دے شرط چه مُجاز د کتاب اتقان او ضبط په صفت موصوف وی.شعیب بن ابی حمزة رحمه الله کتاب هم داسے وو.نوځکه د ابوالیمان د شعیب بن ابی حمزه نه روایت کړے مرویات د محققینو رحمهم الله په نیز حجت دی.(۲)
ابوالیمان رحمه الله په ۱۳۸ھ کښے پیداشوے وو.اوپه ۲۲۲ھ کښے وفات شوے وو.(۳)

**قوله**: شعیب: دا ابوالبشر شعیب بن ابی حمزه القرشی الاموی دے.د دوی د پلار ابوحمزه نوم دینار وو.ثقه حافظ او متقن دے.دتابعینو رحمهم الله نه ئے کسب علم کړے دے.په دوی کښے ئے د ټولو نه زیاته استفاده د امام زهری رحمه الله نه کړے ده.

() تردے چه امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی.((شعیب أثبت الناس فی الزهری رحمه الله ))(۴)

() امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.((رأیت کتب شعیب بن ابی حمزة رحمه الله ،فرأیت کتبها مضبوطة مقیدة)) او بنه تعریف ئے کړے دے.(۵)
په ۱۶۲ھ یا ۱۶۳ھ کښے دوی وفات شوی دی.عمر ئے د اویا (۷۰) کالونه زیات وو.(۶)

**قوله**: ابوسفیان: دا مشهور صحابی صخربن حرب بن امیه بن عبد شمس بن عبدمناف الاموی دے.ابوسفیان او ابوحنظله دواړه ئے کنیتونه دی.اولنے کنیت زیات مشهور دے.
دعام الفیل نه لس کاله وړاندے پیدا شوے وو.دے د ام المؤمنین حضرت ام حبیبه رضی الله عنها او حضرت معاویه رضی الله عنه پلار دے.دابوجهل نه پس همیشه دپاره داهل مکه سردار او د غزوه بدر نه پس په ټولو غزاګانو کښے د قریشو علمبردار پاتے شوے دے.تردے چه په لیلة الفتح کښے بلکه د فتح مکه په ورځ د صبا په وخت کښے په اسلام مشرف شو.د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ئے په غزه حنین او طائف کښے شرکت کړے وو.نبی صلی الله علیه وسلم دوی ته د حنین په غزا کښے سل اوښان

---

(۱) تهذیب التهذیب (۱۷۶) دغه شان (مقدمة فتح الباری(ص.۳۹۹) الفصل التاسع سیاق أسماء من طعن فیه من رجال هذا الکتاب)_
(۲) سیرأعلام النبلاء (۱۹۰/۷، ۱۹۱) تذکرة شعیب بن أبی حمزه رحمه الله)_
(۳) تهذیب الکمال (۱۵٤/۷) وعمدة القاری(۷۹/۱)_
(۴) عمدة القاری(۷۹/۱) وتهذیب الکمال (۱۲/۵۱۶، ۵۲۰)_
(۵) تهذیب الکمال(۵۱۷/۱۲)_
(۶)تقریب التهذیب (۲۶۷ وتهذیب الکمال (۵۲۰/۱۲ وعمدة القاری (۷۹/۱)_

اوخلويښت اوقيه سپين زر ورکړي وو.د دوي يوه سترګه د طائف په غزا کښې شيهدشوے وه.او دويمه سترګه ئے د يرموك په غزا کښې د خپل ځوی يزيد په قيادت کښې په جنګيدو کښې شهيد شوه.(١)

په مدينه منوره کښې دوی ستوګنه اختيار کړے وه.او په ٣١. ٣٤. کښې د اته اتيا کالو په عمر کښې په مدينه کښې وفات شو.حضرت عثمان رضي الله عنه د دوی جنازه اوکړله.(٢)

**تاريخي تجزيه اوتفصيل** دلته کښې د ټولو نه وړاندے به مونږ تاريخي تجزيه ذکر کوو.ددے دپاره چه د حضرت دحيه رضي الله عنه،ابوسفيان رضي الله عنه او هرقل په خائے کښې دجمع کيدو راز هم معلوم شي.او تاريخي اشکال هم رفع شي.ددے نه پس به د حديث د واقعے تشريح کيږي.

نبي کريم ﷺ چه څه وخت دنيا ته تشريف راوړلو.نو په دنيا کښې په هغه وخت کښې دوه غټ حکومتونه وو.يو روم اوبل فارس يا ايران.دا دواړه حکومتونه دومره وسيع وو چه دخپلو خپلو علاقو نه راوتلي وو.اود عربو په بعضے حصو کښې رانښوتي وو.عراق او يمن ئے پريخے وو.اومصر او شام د روم زيراثر وو.د فارس خلق آتش پرست مجوسيان او روميان عيسايان اهل کتاب وو.دفارس بادشاه ته به ئے کسرى وئيل.اود روم بادشاه ته قيصر.د قصر معنى د هغوى په ژبه کښې ځيرولوو.ددوى يو لوئے بادشاه د مور د مرګ نه پس د خيټے په ځيرولو سره راويستے شوے وو.ددے نه ئے اخذ اوکړلو.اود هغه وخت نه د دوى د بادشاهانو لقب قيصر شو.

د روم او فارس په مينځ کښې به هميشه دپاره جنګ وو.د ٦٠٢ء نه تر ٦١٠ء پورے د دوى د دشمنئ جنګونه شروع وو.

په ٥٧٠ء کښې د نبي ﷺ ولادت باسعادت اوشو.او په ٦١٠ء کښې يعنى څلويښت کاله پس پيغمبر شو.دمکے خلقو ته به د روم او فارس د جنګونو خبرونه رارسيدل.څکه ددے اثرات د عربو حدودو ته رارسيدلي وو.اودا خبرونه به ډير په شوق سره اوريدے شول.مشرکانو به فارسيان خان ته نزدے ګنړل.اومسلمانانو روميان،څکه چه هغوى اهل کتاب وو.کله چه به د فارس د غلبه خبر راغلو.نومشرکان به خوشحاله کيدل.اومسلمانان به خفه کيدل.د روم د فتح په صورت کښې به معامله ددے په عکس وه.په ٦١٤ء کښې چه په قمرى حساب سره د ولادت باسعادت پنځه څلويښت کاله شوى وو.او د بعثت پنځه کاله تير شوى وو.شاه فارس خسرو پرويز روميانو ته يو فيصله کن شکست ورکړلو.اوپه مصر،شام او ايشاء کوچك باندے ئے قبضه اوکړله.هرقل ايرانى لښکر په قسطنطنيه کښې په پناه اخستلو باندے مجبور کړلو.لوئے لوئے پادريان قتل يا قيديان کړے شول.د بيت المقدس نه د ټولو نه مقدس ترين

(١) دعلامه شبلى نعمانى رحمه الله په سيرت (٢٩٦/١) کښې دى په طائف کښې د دوى يوه سترګه زخمي شوے وه.اوپه جنګ يرموك کښې هغه هم لاړله ددے نه معلوميږى چه هم يوه سترګه شهيد شوے وه. اوحافظ ابن عبدالبر رحمه الله په ((الاستيعاب)) کښے بهامش الاصابة (٢/ ١٩٠. ١٩١) کښے ليکى. ((وشهد الطائف ورمى ففقئت عينه الواحدة ..إنه فقئت عينه الأخرى يوم اليرموك))

(٢)عمدة القارى(٧٩/١) وتقريب التهذيب (ص.٢٧٥)

صليب ايرانى فاتحينو يوړلو.په ظاهره د روميانو دوباره د راپاسيدو څه صورت پاتے نه وو.مشركان بنه خوشحاله شول.او وئيل ئے چه لکه څنګه فارس روم ختم كړل.دغه شان به اوس مونږ تاسو ختم كوو.

په داسے موقع باندے قرآن كريم د ظاهرى اسبابو نه بالكل خلاف او دخپل عادت نه خلاف د موډے تعين اوكړلو او پيشنګوئى ئے اوكړله ﴿ الٓمٓ ۝ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۝ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۝ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۝ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ ۭ وَيَوْمَىِٕذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ بِنَصْرِ اللّٰهِ ۭ﴾(١)د آيت د نزول نه پس حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه د بعضے مشركانو سره شرط اولګولو.(تردغه وخته پورے ددے حرمت نه وو راغلے) چه روميانو ته به دوباره په فارسيانو باندے غلبه حاصليږى.اول ئے څه موده مقرر كړے وه.د نبى ﷺ په ارشاد باندے ئے نهه كاله مقرر كړل.مشركان خو مطمئن وو.چه روميان په نهه كاله كنبے خو لاڅه چه په سل كاله كنبے هم نشى پاسيدے.ځكه هغوى شرط اومنلو.او دنهه كالو شرط ئے قبول كړلو.ټيك نهه كاله پس كله چه مسلمانانو د بدر د فتح خوشحالى كوله.د قيصر د فتح خبر راغلو.د مسلمانانوخوشحالى دوچنده شوه.اود مشركانو غم يوپه دوه شو.ډيرخلق د قرآن كريم د پيشنګوئ د صداقت نه متاثره شو.او مسلمانان شول.حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه سل اوبنان واخستل.اونبى ﷺ د هغے د صدقه كولو حكم اوكړلو.

ددے نه پس د جنګونو سلسله شروع شوه.په ۶ﻫ كنبے صلح حديبيه اوشوه.ددے په نتيجه كنبے څه امن راغے.نو ابوسفيان يوه قافله واخستله.اود تجارت په غرض شام ته روان شو.بل طرف ته نبى كريم ﷺ كوم كوم خائے ته چه په آسانتيا سره ممكن وه.د دنيا بادشاهانو ته د اسلام ددعوت خطونه اوليكل.په محرم ۷ﻫ كنبے حضرت دحيه رضي الله عنه د هرقل دپاره خط واخستلو.اولاړلو.

بل طرف ته هرقل دا نذر منلے وو.كه په فارسيانوباندے غلبه حاصله شى.نوزه به د حمص نه ايلياء يعنى بيت المقدس ته پيدل سفر كوم.نوهم ددے نذر په سلسله كنبے هرقل بيت المقدس ته اورسيدلو.حضرت دحيه رضي الله عنه د نبى اكرم ﷺ مكتوب مبارك واخستلو.او والى د بصرى ته اورسيدلو.چه هرقل ته نامه مبارك (خط)اورسوى.خود بصرى والى حضرت دحيه رضي الله عنه بيت المقدس ته اوليږلو.ځكه چه هرقل هلته رسيدلے وو.

**يواشكال اودهغې جواب** دلته يو اشكال دے.چه فتح په ۲ﻫ كنبے شوے وه.نوبيا نذر په څلور كاله پس ولے پوره كولے شى؟

ددے جواب دا دے.چه د نذر مطلق على الفور پوره كول ضرورى نه وى.نوځكه په تاخير كنبے څه قباحت نشته.يا دا هم ممكن ده.چه اصل فتح خو په ۲ﻫ كنبے شوے وه.خولړه غوندے سلسله باقى وه.اوپه څلورو كالوكنبے د ټول انتظام اطمينان او فتح تكميل اوشو.

(١)الروم :٥)_

**دهرقل د واقعې تمهيد** نبي کريم ﷺ هرقل ته دوه ځله خط ليږلے وو. يوځل په ٧ﻫ کښې او دويم ځل د غزوه تبوك په موقع باندے.په دواړو کښې چونکه ګډ وډے راځي.نوځکه به مونږ په ترتيب سره دواړه جدا جدا ذکر کړو.

**په اول ځل دعوت اسلام:** هرقل چه کله بيت المقدس ته اورسيدلو.نوهغه د علم نجوم په ذريعه سره معلومه کړه چه ملك الختان غالب کيدونکے دے.چه د ملك سردارانو سره خبرے اوشوے .نوهغوی ورته اووئيل.چه ختنه کونکي يو يهوديان دی.دهغوی د طرفه څه خطره کيدے شي.نوهغوی د يهودو د قتلولو مشوره ورکړه.په دغه وخت کښې حضرت دحيه ﷺ خط په لاس بيت المقدس ته اورسيدلو.يا خودحضرت دحيه ﷺد خط د پورتني عبارت نه پته اولګيدله.چه خط دعربو نه راغلے دے.اومدعی د نبوت راليږلے دے.دقاصد په باره کښې معلومه شوه.چه مختون دے.او اهل عربو کښې د ختنه رواج دے.ددے نه پس د عربو د قافلے لټون اوشو.چه د خط راليږنکي حالات معلوم کړے شي.په دے طريقه ابوسفيان هرقل ته اورسيدلو.دابوسفيان سره د خبرو اترونه پس هرقل ډيره په زور داره طريقه د نبي ﷺ د صداقت اعلان اوکړلو.او د ملاقات شوق ئے هم ښکاره کړلو.ددے نه پس خط اولوستلے شو.اوچه شور جوړ شو.نوابوسفيان ئے رخصت کړلو.

روميه کوم چه داتلی دارالحکومت دے.دا هميشه دپاره د نصاریٰ مرکز پاتے شوے دے.هلته ضغاطرنومے يو الاټ پادري وو.ټولو نصاریٰ هغه منل.هرقل دا خط ضغاطر ته اوليږلو.اودا ئے هم اوليکل.چه ما ددے خط د رارسيدو نه وړاندے د ستورو په ذريعه دا معلومه کړے وه.چه دا خلق غلبه موندونکي دی.ځکه چه هم دوی ختنه کونکي دی.په دے واقعه کښې په تعين سره څه نشي وئيلے.چه خط راوړونکي څوك وو؟هرقل د بيت المقدس نه حمص ته لاړلو.اوډيره شو.کله چه د هرقل سره د خط مبارك روميه ته اورسيدلو.نو لوئے پادري تصديق اوکړلو.پادري تصديق اوکړلو.او جواب ئے اوليکلو.چه مونږ ته هم معلومه وه.چه دخاتم النبيين وخت رانزدے شوے دے.معلوميږي.چه دا هم هغه وی.خو په دے وخت کښې ضغاطر د خپل اسلام اظهار اونکړلو.صرف د خط په جواب کښې ئے د هرقل د رائے سره موافقت اوکړلو . اوتصديق ئے اوکړلو.او وے ليږلو.هرقل لاپه حمص کښے وو.چه جواب راورسيدلو

کله چه هغه اوکتل.چه لوئے پادري موافقت اوکړلو.نودهغه اميد پيدا شو.چه اوس به زمونږ قوم اومني.اود نبي ﷺ د رسالت تصديق به اوکړی.ځکه چه د دنيا د ټولو نه لوئے بادشاه هم وائي.اود دين د ټولو نه لوئے عالم هم دا وائي.په دے اميد باندے هغه د روم لوئے لوئے خلق راوغوښتل.هغه يو ځل ددوی تنفر اوجوش ليدلے وو.هغه دا تدبير اوکړلو.چه ټول ئے راوغوښتلو.اود بهر ټولے دروازے ئے بندے کړے.اوپه خپله يوے بالاخانے ته اوختلو.اودهغه خانے نه ئے تقرير اوکړلو.چه د لاس وراوړلو په نيت ورته څوك نه رسي.اوپه آسانئ سره ورته نه رسي.اوپه جوش کښے دا خلق بهرته نشي تلے چه فساد اوکړي.اوټول جوش ئے دلته ختم شي.

هغه اووئيل.«يامعشرالروم،هل لكم في الفلاح والرشد؟» کله چه خلقو ددوی دا تقرير واوريدلو.نو وے وئيل.دے زمونږ نه د عربو غلامان جوړوی.

هرقل چه دا کیفیت اوکتلو.نو خیال ئے اوکړلو.که د رسول الله ﷺ اطاعت مے قبول کړلو.نو زما بادشاهی به لاړه شي.نوهرقل د مال اوجاه د زوال د وجے اسلام قبول نکړلو.اوپه آخر کښے ئے هم هغه تدبیر اوکړلو.دکوم چه په حدیث کښے ذکر دے.یعنی وے وئیل.چه ما دا خبرے ستاسو دامتحان اخستلو دپاره اوکړے.زما مقصد دا نه وو.چه مونږ خپل دین پریږدو.چه دا ئے واوریدلو.نوخلقو بیا دده تعظیم شروع کړلو.

خوهرقل د خط مبارك بے حرمتی اونکړله.لکه څنګه چه کسری کړے وه بلکه په ریښمو کښے ئے اونغښتلو او وے وئیل.چه ترڅو پورے دا زمونږ سره وی.نو ډیر د خیر اوبرکت څیز به راسره وی.(۱)

**په دویم ځل دعوت اسلام** بیا په دویم ځل چه کله دوی دیشت زره لښکر واخستلو.اوتبوك ته ئے تشریف یوړلو.نوهم دا هرقل قیصر روم وو.په دے موقعه باندے بیا نبی ﷺ دعوت نامه د حضرت دحیه رضی الله عنه په لاس باندے اولیږله.نوهغه اووئیل.زه څه اوکړم زما قوم نه منی.په رومیه کښے ډیر لوئے پادری دے.هغه ټول نصاری منی.هلته کښے دا خط یوسه.نوپه خپله دحیه رضی الله عنه هغه خط یوړلو.اورومیه ته اورسیدلو.دلته دا خبره معلومه ده.چه هم حضرت دحیه رضی الله عنه تلے وو. خودلته دا متعین نه ده.چه د رومیه لوئے پادری هم هغه ضغاطر وو.اوکه بل پادری وو. بهرحال چه څوك هم وو.دحیه رضی الله عنه لاړلو.اوهغه تصدیق اوکړلو.چه بیشکه دا نبی آخرالزمان دے. زه په ده باندے ایمان راوړم.اوحضرت دحیه رضی الله عنه ته ئے دا هم اووئیل.چه نبی ﷺ ته زما سلام اووایه.اودا ورته اوښایه.چه ما ایمان قبول کړلو.بیا ئے غسل اوکړلو.جامے ئے بدلے کړے.اوپه عامه مجمع کښے ئے د ایمان اعلان اوکړلو.اود ټولو په مخکښے ئے کلمه شهادت اووئیله.خلقو هغه هم په دغه مجلس کښے شهید کړلو.

چه دا واقعه ئے اولیدله.نوحضرت دحیه رضی الله عنه د دغه مجلس نه راووتلو.اوهرقل ته راغلو.نوټوله قصه ئے ورته واوروله.نوهغه اووئیل.هرکله چه هغه سره داسے اوشو.نو ته اندازه اوکړه.چه ما سره به څه کیږی.غرض دا چه هغه ایمان راونړلو.ځکه چه صرف د صداقت په اعلان کولواوشوق ښکاره کولو باندے ایمان نه راځی.د غزوه تبوك په موقعه هغه په جواب کښے لیکلی وو.«انی مسلم» نو نبی ﷺ اوفرمائیل.«کذب بل هوعلی نصرانیته» دا ټول زبانی جمع خرچ دے.انقیاد او تسلیم هغه نه دے اختیار کړے.(۲)

**تنبیه** دلته کښے دے دا خبره په ذهن کښے وی.چه په دے کښے اختلاف دے.چه دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دور خلافت کښے چه کوم جنګ د رومیانو سره شوے وو.اوبیا د یرموك په موقعه باندے هغوی ته تباه کن شکست ورکړے شو.نوپه هغه وخت کښے قیصر روم څوك وو؟آیا هم دا هرقل وو.اوکه دده خوئے؟دواړه اقوال شته.البته دعلامه عینی رحمه الله تحقیق دا دے.چه د نبی ﷺ مکاتبت چه د کوم سره شوے وو.هغه هرقل وو.دهغه د مرګ نه پس دهغه خوئے ..مورق.. په تخت باندے کیناستلو.اودا د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په خلافت کښے

---

(۱) عمدة القاری(۱/۷۹، ۹۹) والبدایة والنهایة (٤/۲۶۲، ۲۶۸)_

(۲) فتح الباری(۱/۳۷) وعمدة القاری(۱/۹۸)_

وو.بيا دهغه نه پس دهغه ځوئے ..هرقل بن قيصر.. يعنى د هرقل نمسے بادشاه جوړ شو.او دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه په دوړ كښے هغه سره جنګونه شوى دى.اودحضرت ابوعبيده رضي الله عنه او خالدبن وليد رضي الله عنه په لاس ورته شكست ملاؤ شو.دشام نه قسطنطنيه ته اوتښتيدلو.(١)

**د روم اطلاق** د روم اطلاق صرف په هغه حصه باندے كيږى.كوم ته چه نن ..رومة الكبرى.. وانى كوم ځائے كښے چه نن صبا د اټلى دارالحكومت دے.ددے نوم روميه هم دے.خو په اوله زمانه كښے د روم اطلاق په روميه.قسطنطنيه او ايشيائے كوچك اود يونان د ټوله په مجموعه باندے كيدلو.ځكه چه مركز او دارالسلطنت په روميه كښے وو.كوم چه په حقيقت كښے روم وو.اودا ټول ملكونه د دے ماتحت وو.ددے په بنا ټولو ته روم ونيلے شو.

د روميه مركزيت په اول كښے وو.بيا په خپلو كښے د دوى څه اختلافات پيدا شول.او په قسطنطنيه كښے يوبل مركز قائم كړے شو.نو د هرقل په دوړ كښے د روم دارالسلطنت هم په قسطنطنيه كښے وو.حمص هم د شام يو لوئے ښار وو.د قسطنطنيه نه بيت المقدس ته چه خى نو په لار كښے پروت وو.والله اعلم

تردے ځائے پورے ټولے خبرے چه هركله ستاسو په ذهن كښے كيناستلے نواوس وړاندے د حديث دالفاظو تشريح باندے پوهه شئ:

## دحديث الفاظ اوفوائد

**قوله:** أَنَّ أَبَاسُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ: يعنى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ته ابوسفيان رضي الله عنه دا واقعه واوروله.دا خبره دے ښكاره وى.چه په كوم وخت كښے دا واقعه پيښه شوے وه.په هغه وخت كښے ابوسفيان مسلمان شوے نه وو.په حالت د كفر كښے وو.لكه چه ددے روايت تحمل په حالت د كفر كښے او ادا په حالت د اسلام كښے وه.

**قوله:** أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ: ..هرقل.. د .هاء. په كسره او.راء. په فتحه او .قاف. په سكون سره دے.هم دا مشهوره دے.

بعضو .هاء. په كسره او.راء. په سكون او .قاف. په كسره سره ددے ضبط كړے دے.

دجواليقى وينا ده.چه دا عجمى لفظ دے.دكومو چه عربيانو تكلم كړے دے.اودا اسم علم دے.د عجمه او علميت د وجے غيرمنصرف دے.

هرقل يوديرش كالو پورے حكومت كړے وو.هم ددوى په زمانه كښے د نبى كريم ﷺ وفات شوے وو.

دهرقل لقب قيصر وو.بلكه قيصر(لكه څنګه چه مونږ وړاندے اشاره كړے ده) د روميانو دهربادشاه لقب وو.دغه شان د فارس د بادشاه .كسرى. د تركى .خاقان. د حبشه .نجاشى د .قبط. فرعون. د مصر .عزيز. د حمير او يمن .تبع. د هندوستان .دهيمى. د چين .فغفور. د زنج .غانه. د يونان .بطليموس. د يهود .قيطون. يا .ماتح د بربر .جالوت. د صابئه .نمرود او د فرغانه .اخشيد. لقبونه وو.(٢)

(١) عمدة القارى(١/٩٩)_

(٢) عمدة القارى(١/٨٠)_

هرقل د تولو نه وړاندے دینارپه ټاپه کښے جوړ کړے وو.اود بیعت اجراء ئے کړے وه.

دبخاری شریف په حدیث کښے دی ((إذا هلك كسرى فلا كسرى بعده، وإذا هلك قيصر فلا قيصر بعده))(١)

دامام شافعي رحمه الله نه ددے دا معنیٰ منقول ده.چه کله په شام کښے قیصر هلاك شی.نوبیا به دوباره قیصر نه وی.اودغه شان چه کله په عراق کښے کسری هلاك شی.نوبیا به بل کسری نه راپاسی.(٢)

ددے حدیث شان ورود بیانولے شی.د قریشو خلقو به د جاهلیت په دور کښے د عراق او شام طرف ته د تجارت دپاره سفر کولو.کله چه دا خلق مسلمانان شول.نو دوی سره ویره شوه.چه اوس به زمونږ تجارتی سفر بند شی.ځکه چه د اسلام په وجه به د هغه ځائے خلق دشمنان شی.نبی ﷺ خلقو ته تسلی ورکړه.چه تاسو ته به څه نقصان نه وی.بلکه د قیصر او کسری د مرګ نه پس به هلته داسے څوك پیدا نشی.(٣)

**قوله**: فِي رَكْبٍ مِنْ قُرَيْشٍ: ..رکب.. د راکب جمع ده.لس یا دلسو نه په زیاتو کسانو باندے مشتملے ډلے ته وائی.دا کسان څومره وو؟په ..اکلیل.. کښے دی.چه درے وو.اود ابن السکن په روایت کښے دی.چه شلو ته نزدے وو.(٤)

**قوله**: وَكَانُوا تِجَارًا بِالشَّامِ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَادَّ فِيهَا أَبَا سُفْيَانَ وَكُفَّارَ قُرَيْشٍ: دا خلق شام ته د تجارت په غرض تلی وو.په دغه زمانه کښے په کومه کښے چه رسول الله ﷺ ابوسفیان او د قریشو کافرانو سره د صلح یوه موده مقرر کړے وه.

**قوله**: تجار: بضم التاء وتشديد الجيم،او بكسرالتاء وتخفيف الجيم، دواړه ټیك دی.دا د ..تاجر.. جمع ده.

د مودے نه مراد د صلح حدیبیه موده مراد ده.نبی کریم ﷺ چه د مکے کافرانو سره کومه صلح کړے وه.په هغے کښے دا فیصله شوے وه.چه لس کالو پورے به جنګ بند وی.ددے لسو صراحت د ابن اسحاق رحمه الله په روایت کښے دے.(٥) ابوداود د ابن عمر رضی الله عنهما نه هم دا نقل کړی دی.(٦)

(١) صحيح بخاري كتاب أحاديث الأنبياء باب علامات النبوة في الإسلام رقم.٣٦١٨)_
(٢) عمدة القارى)_
(٣) پورتنئ حواله)_
(٤) فتح البارى(٣٣/١)
(٥) سيرت ابن هشام مع الروض الأنف (٢/ ٢٣٠) الهدانة)_
(٦) فتح البارى(٣٤/١)_

البته ابونعيم رحمه الله د عبدالله بن دينار رحمه الله په مسند كښې دغه شان حاكم رحمه الله په مستدرك كښې دصلح موده څلور كاله ذكر كړې ده.(١)

**قوله: فَأَتَوْهُ وَهُمْ بِإِيلِيَاءَ:** يعني ابوسفيان اود ده ملګرى هرقل ته ورغلل په داسې حال كښې چه هغه خلق يعني هرقل اودهغه ملګرى په ايلياء كښې وو.

..ايلياء.. د بيت المقدس د مشهور ښار نوم دے.

په ايلياء كښې څلور لغات دى.

○ بهمزة مكسورة ثم ياء مثناة من تحت ساكنة، ثم لام مكسورة، ثم ياء أخرى، ثم ألف ممدودة هم دا ضبط مشهور دے.

() دويم لغت بغير د الف ممدوده يعني قصر سره دے.

() دريم لغت دا دے چه د اولنۍ ياء په حذف كولو سره اولوستلے شى يعنى د همزه مكسوره نه پس لام ساكن او ددے نه پس .ياء. او ددے نه پس الف ممدوده.

() په يو لغت كښې ..ايلاء.. هم منقول دے.(٢)

بعضے حضرات فرمائى چه ..ايل.. الله ته وائى.او ..ياء.. بيت ته نو د ايلياء معنى شوه ..بيت الله..

**قوله: فَدَعَاهُمْ فِي مَجْلِسِهِ وَحَوْلَهُ عُظَمَاءُ الرُّومِ:** بيا هرقل دغه قريشيان خپل مجلس ته راوبلل.په دغه وخت كښې دهغه نه ګيرچاپيره دحكومت اراكين اولوئے لوئے خلق موجودوو.

**قوله: ثُمَّ دَعَاهُمْ وَدَعَا بِتَرْجُمَانِهِ:** بيا ئے دوى راوبلل.اوخپل ترجمان ئے هم راوبللو.

داولنى ځل رابللو نه مراد دا دے چه دوى ئے په انتظار ګاه كښې كينول.اوبيا ئے خپل ځان ته مخامخ كړل.اوبيا دا مراد دے چه اول دوى حاضر كړے شول.او بيا ئے دوى نور هم نزدے كړل.والله اعلم.

**ترجمان:** د تاء په فتحه او جيم په ضمه سره.هم دا د امام نووى رحمه الله په نيز راجح دے په دے كښې د تاء اوجيم دواړو ضمه هم تيك ده.او په دواړو باندے فتح ونيل هم منقول دى.البته د تاء د ضمه او دجيم د فتح قول د چا نه دے.(٣)

ترجمان وائى.د يوے ژبے نه بلے ژبے ته ترجمه كونكى ته.(٤)

ددے لفظ په باره كښې اختلاف دے چه عربى دے كه معرب دے.(٥) بيا جوهرى رحمه الله په دے

---

(١) پورتنۍ حواله)_

(٢) تهذيب الأسماء واللغات (٣/٢٠) وفتح البارى(١/٣٤) ومعجم البلدان(١/٢٩٣. ٢٩٤)_

(٣) شرح نووى على صحيح مسلم (٢/٩٧) كتاب الجهاد باب كتب النبى ﷺ إلى هرقل .. وعمدة القارى (١/٨٤. ٨٥) وفتح البارى(١/٣٤)_

(٤) پورتنۍ حواله)_

(٥) عمدة القارى(١/٨٥)_

كنيے تاء زياتى گرخولے ده.اوصاحب د نهايه د ده اتباع كړے ده.خو د جوهرى رحمه الله دا خبره جمهورو نه ده منلے.(١)

**قوله** : فَقَالَ أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا بِهَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ : هغه تپوس اوكړلو.ددے كس سره څوك چه د نبوت دعوى كوى.دنسب په اعتبار په تاسو كښے څوك زيات نزدے دى.د ټولونه د زيات قريب النسب په باره كښے ئے ځكه تپوس اوكړلو.چه څوك قريب النسب وى.هغه به د نبى كريم ﷺ د حالاتو نه زيات خبر وى.اود نسب په باره كښے به غلط بيانى نه كوى.ځكه چه په خپله به هغه سره ويره وى.كه زه د هغه په نسب باندے څه عيب اولګوم.نوزما په نسب به عيب اولګى.(٢)

**قوله** : فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ فَقُلْتُ أَنَا أَقْرَبُهُمْ نَسَبًا : ابوسفيان رحمه الله وائى چه ما اووئيل.زه په دے ټولو كښے د نسب په اعتبار سره دغه كس ته زيات نزدے يم.ددے وجه ښكاره ده.ځكه چه ابوسفيان رضي الله عنه د نبى كريم ﷺ سره په عبد مناف كښے يوځائے كيږى.د نبى اكرم ﷺ سلسله نسب ده.محمد رسول الله ﷺ ابن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد مناف او د ابوسفيان رضي الله عنه سلسله نسب ده.ابوسفيان بن صخربن حرب بن اميه بن عبد شمس بن عبد مناف(٣)

**قوله** : فَقَالَ أَدْنُوهُ مِنِّي وَقَرِّبُوا أَصْحَابَهُ فَاجْعَلُوهُمْ عِنْدَ ظَهْرِهِ : هرقل اووئيل.دا كس ماته رانزدے كړئ.اودده ملګرى هم رانزدے كړئ.لوهغوى دده شاه ته كړئ.يعنى چه ابوسفيان رضي الله عنه وړاندے وى.اودهغه ملګرى روستو وى.

دا ئے ددے وجے اوكړلو.ځكه چه بعضے وخت داسے كيږى.چه كله مواجهه وى.اوسړے مخامخ په مخامخ وى.نوتكذيب نشى كولے.سترګے چه كله ځلور وى.نو شرم راځى.ددے وجے ئے هغوى د ابوسفيان رضي الله عنه نه شاه ته كينول.ددے دپاره كه هغوى د ابوسفيان رضي الله عنه ترديد كول غواړى.نو چه تكلف په كښے نه وى.او خاموش نه اوسى.(٤)

**قوله** : ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ قُلْ لَهُمْ إِنِّي سَائِلٌ هَذَا عَنْ هَذَا الرَّجُلِ فَإِنْ كَذَبَنِي فَكَذِّبُوهُ : بيا هرقل ترجمان ته اووئيل.دے خلقو ته اووايه.چه زه ددے كس يعنى ابوسفيان رضي الله عنه نه د رسول اكرم ﷺ په باره كښے څه تپوسونه كوم.كه دے غلط بيانى كوى. نو سمدستى وائے.اودده تكذيب كوئ.

په ،،كَذَبَنِي،، كښے ..كَذَبَ.. مجرد دے.دا لفظ كه د مجرد نه وى.نو متعدى به وى دوؤ مفعولينو ته. اوكه مزيد وى.نومتعدى به وى يومفعول ته.

---

(١) عمدة القارى (٨٥/١) وتهذيب الأسماء واللغات(٤١/٣)_

(٢) فتح البارى(٣٥/١)_

(٣) فتح البارى(٣٤/١، ٣٥)_

(٤) پورتنئ حواله)_

هم دا كيفيت په ..صَدَّقَ،، او ،،صَدَّقَ،، كښې دے دا په غريبو الفاظو كښې شمارلے شوے دے.ځكه چه قاعده دا ده چه د حروفو په زيادت د هغې په معنى كښې زيادت راځى اودلته ددے په عكس ده.(۱)

**قوله: فَوَاللّٰهِ لَوْلَا الْحَيَاءُ مِنْ أَنْ يَأْثِرُوا عَلَيَّ كَذِبًا لَكَذَبْتُ عَنْهُ:** ابوسفيان رضي الله عنه وائى.كه ماسره ددے شرم نه وو چه دا خلق به ددے خائے نه د وتلو نه پس زما دروغ نقل كوى اودا به وائى.چه ابوسفيان هرقل ته دروغ اووئيل.نوما به ضرور د نبى كريم ﷺ په خبر وركولو كښې د دروغو نه كار اخستے وو.

دلته د ابوسفيان رضي الله عنه الفاظ دى.((يأثروا على كذبا)) يعنى دوى به زما دروغ نقل كړى.دا ئے نے اونه وئيل.چه ((يكذبوا)) چه دا خلق به زما تكذيب اوكړى اوما به دروغژن كړى لكه چه ابوسفيان رضي الله عنه ته سل فيصده اطمينان وو چه زما كسان به د هرقل وړاندے مادروغژن نكړى.خودا ويره ورسره وه.كه زه دروغ اووايم.نو چه دوى مكے ته لاړ شى نو وائى به چه ابوسفيان د هرقل په دربار كښې غلط بيانى كړے وه.او په دے سره به زما نه د قوم اعتماد اوچت شى.اوقوم به دا اووائى.چه ابوسفيان دروغ وائى.نود قوم د اعتماد مجروح كيدو د ويرے ابوسفيان دلته دروغ اونه وئيل.ابن اسحاق رحمه الله تصريح كړے ده.چه ((فوالله لوقد كذبته ماردوا على،ولكنى كنت إمرء اً سيداً أتكرم عن الكذب،وعلمت أن أيسر ما فى ذلك إن أنا كذبته أن يحفظوا ذلك عنى ثم يتحدثوا به))(۲)

د يوے بلے خبرے احتمال هم شته.چه ابوسفيان ته دا خيال راغلے وى.چه دا خلق اګرچه زما تكذيب به اونكړى.خوچه مكے ته لاړ شى.اودا اوبنائى.چه ما دروغ وئيلى دى.نودا خبره به خوره شى.اوزمونږ خلقو د تجارت په غرض شام ته تګ راتګ دے.نوزما دروغ به دلته هم راورسى.دغه شان كيدے شى.چه هرقل ته هم پته اولګى.نودا به معمولى دروغ نه وى.بلكه دالله تعالى د پيغمبر په باره كښې به دروغ وى.نوځكه ممكن ده چه مونږ ګرفتار كړى.يا كم ازكم په داخله باندے پابندى اولګوى.(۳)

بهرحال ددے نه معلومه شوه.چه دروغ وئيل لكه څنګه چه په اسلام كښې بد ګڼړلى شى.دغه شان كافرانو به هم دا بد اوكم ازكم ناخوښه ګڼړل.

**آيا په څيزونو كښې حسن او قبح عقلى ده؟** ددے نه معتزلو وغيره په دے خبره استدلال كړے دے.چه په څيزونو كښې حسن او قبح عقلى ده.هم عقل د څيزونو دحسن اوقبح فيصله كوى.(۴)

---

(۱) عمدة القارى(۸۵/۱)_

(۲) فتح البارى(۳۵/۱)_

(۳) فضل البارى(۲۱٤/۱)_

(۴) عمدة القارى(۸۵/۱)_

داهل سنت د طرفه ددے جواب دا ورکړے شوے دے چه کیدے شی ددے مذموم کیدل د پخوانی شریعتونو مثلاً د شریعت ابراهیمی نه ماخوذ وی.اودا هم کیدے شی چه ددے بدوالے د عرف او عهد نه ماخوذ وی.(١)

خومناسب معلومیږی چه لږ غوندے توسع اختیار کړے شی.اودا اووئیلی شی چه په اصل کښے د تحسین او تقبیح تعلق د شریعت سره دے.الله تعالی چه څه حسن اوګرځوی هغه به حسن وی.اوڅه چه قبیح اوګرځوی.هغه به قبیح وی.خو عقل هم په حسن اوقبح کښے فرق کوی خوچه په کوم ځائے کښے په عقل او شرع کښے تعارض راشی.نود شارع تحسین اوتقبیح ته به د عقل په تحسین او تقبیح باندے ترجیح حاصل وی.(٢)

بلکه حقیقت دا دے چه هیڅ یو انسانی عقل داسے یوکارته قبیح وئیلے نشی.کوم ته چه شریعت مطهره حسن وئیلی وی.اوڅه ته چه شریعت قبیح اووانی.هغے ته انسانی عقل حسن نشی وئیلے.

مطلب دا دے.چه چاته الله تعالی عقل سلیم ورکړے وی.نوهغه به شرعی حسن اوقبیح حسن او قبیح ګنړی.ددے په خلاف نشی وئیلے.اوچه په کوم ځائے کښے ددے خلاف کیږی هلته د انسان په عقل کښے څه فتوروی.یادمقدماتوپه پوهیدلو کښے ورته مشکلات وی.یا چه بل څه تعارض راشی.چه دهغے په وجه عقل سلیم صحیح فیصله نشی کولے.والله تعالیٰ أعلم بحقیقة الأمر

**قوله: لکذبت عنه:** په اصل کښے ددے په صله کښے ..علی.. استعمالیږی.کله چه چاته د غلطے خبرے نسبت اوشی.نو وئیلی شی.«کذب علیه»یعنی د ..عن..صله ئے راوړله. څکه چه دلته معنی د ..اخبار.. متضمن ده.لکه چه عبارت دا شو.«لکذبت مخبراً عنه» یعنی زه د رسول الله ﷺ په باره کښے غلط بیانی کړے وه.

**قوله: ثُمَّ كَانَ أَوَّلَ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَنْ قَالَ كَيْفَ نَسَبُهُ فِيكُمْ:** بیا چه د ټولو نه وړاندے هغه زما نه د نبی ﷺ په باره کښے تپوس اوکړلو.نو هغه دا وو چه په تاسو کښے دده نسب څنګه دے؟

لفظ د ..اول.. د ..کان.. د خبر د وجه منصوب دے.روایت هم دا دے.البته چه اسم اوګرځولے شی.نومرفوع هم لوستلے شی.(٣)

**قوله: قُلْتُ هُوَ فِينَا ذُو نَسَبٍ:** ماجواب ورکړلو چه هغه په مونږ کښے د اوچت نسب مالك دے.په ..نسب.. کښے تنوین د تعظیم دپاره دے.دابن اسحاق رحمه الله په روایت کښے د«کیف

(١) شرک کرمانی(٥٥/١) وفتح الباری(٣٥/١)_
(٢) اشار إلی هذا الکلام العینی فی العمدة (٨٥/١)_
(٣) فتح الباری(٣٥/١)_

نسبه فيكم» په جواب كښې دى.«هى الذروة»[1] هغه خود غر د سر نسب لرى.بلكه د بزار رحمه الله په روايت كښې دى.«حدثنى من هذا الذى خرج بأرضكم ما هو؟ قال: شاب قال: كيف حسبه فيكم؟ قال: هو فى حسب ما لا يفضل عليه أحد، قال: هذه آية النبوة»[2]

**قوله** قَالَ فَهَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ مِنْكُمْ أَحَدٌ قَطُّ قَبْلَهُ: دا دويم سوال دے.هرقل تپوس اوكړلو چه ايا دا خبره په تاسو كښې دده نه وړاندے چرته چا كړے ده؟

قط په دے كښے مشهور لغت «فتح القاف وتشديد الطاء المضمومة» دے.بعضے حضرات وانى په دواړو حرفونو ضمه ده.بعضے حضراتو د قاف فتحه او دطاء د تخفيف سره ضبط كړے دے.اوځه حضرات د قاف ضمه اود طاء په تخيف سره ددے نطق كوى.[3]

دا د ماضى منفى سره مختص دے.دلته هم دا اشكال دے.چه په كلام مثبت كښے ددے استعمال شوے دے.

ددے جواب دادے.چه دا قاعده ده.چه دا د ماضى منفى سره مختص دے.خو دا قاعده كليه نه ده.بلكه اكثريه ده.كله كله د مثبت سره هم ددے استعمال كيږى.[4]

دا هم ممكن ده.چه دا كلام د نفى په حكم كښے وى.اوتقدير دعبارت دا وى «هل قال هذا القول أحد أولم يقله أحد قط»[5]

**قوله**: قُلْتُ لَا: ما اوونيل نه.

يعنى چا ددوى نه وړاندے داسے دعوى نه ده كړے.ابوسفيان ددے انكار زرخكه اوكړلو چه هرقل دا اوګنړى.چه هغه دا يوه نوے خبره ايجاد كړے ده.اونوے خبره او نوے دعوى قبل قبول نه وى.(معاذالله) هغه باندے ليونتوب يا سحر راغلے دے لكه څنګه چه اهل مكه ګمان وو.[6]

**قوله**: قَالَ فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ: دا دريم سوال دے يعنى آيا دده په پلارانو او مشرانو كښے څوك سلطان او بادشاه تير شوے دے؟

---

(1) فتح البارى(٢١٧/٨) كتاب التفسير.سورة آل عمران.باب «قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ» (آل عمران: ٦٤)_

(2) كشف الأستار عن زوائد البزار(١١٧/٣) ذكر نبينا محمد ﷺ باب فيما كان عند أهل الكتاب من علامات نبوته)

(3) شرح كرمانى(٥٥/١، ٥٦)_

(4) فتح البارى(٣٥/١)_

(5) پورتنئ حواله دغه شان شرح كرمانى (٥٦/١)_

(6) فضل البارى(٢١٤/١)_

دلته په ..من ملك.. كښې ..من.. جاره دے او ..ملك.. د لام په كسره سره په معنیٰ د بادشاه دے هم دا راجح دے او په بعضے رواياتو كښې ..من ملك.. يعنى .من. موصوله او ددے نه پس فعل ماضى دے مفهوم د دواړو يو دے.(١)

**قوله** قُلْتُ لَا: ما اووئيل نه.

دلته هم ابوسفيان زر انكار اوكړلو ددے تاثر وركولو دپاره چه دا څه لوئے سړے نه دے د بادشاهت سره دده يا دده د خاندان څه تعلق نشته.(٢)

**قوله** قَالَ فَأَشْرَافُ النَّاسِ يَتَّبِعُونَهُ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ: دا څلورم سوال دے يعنى په خلقو كښې معزز د دوى تابعدارى كوى او كه ضعيفان د دوى تابعدارى كوى؟

داشرافو نه مراد هغه خلق دى كوم چه د اوچتے مرتبے ګڼړلى شى د لوئيے اوتكبر خاوندان او دضعفاؤ نه مراد كمزورے او مسكينان دى كوم چه د كمے درجے ګڼړلى شى.(٣)

**قوله** فَقُلْتُ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ: ما ورته اووئيل لوئے خلق دهغه تابعدارى نه كوى بلكه لاندے خلق ئے دهغه سره ملګرى كيږى ددے مقصد هم نبى ﷺ ے عزته ثابتول وو حالانكه ترهغه وخته پورے د حضرت ابوبكرصديق حضرت عمرفاروق حضرت عثمان غنى حضرت على بن ابى طالب ﷺ نه سوا ے شميره د حسب ونسب او جاه اوجلال خاوندانو اسلام راوړے وو دهغوى استثناء ترے كولے شوه.

البته دا وئيلى شى چه ابوسفيان د اكثريت اعتبار كړے وو اوجواب ئے وركړے وو چه د دوى په تابعدارو كښې په حقيقت كښې اكثريت د ضعفاؤ او كمزورو خلقو دے.

حقيقت دا دے چه كله په معاشره كښې خرابے راځى نوكوم كسان چه د مرتبے او اثرخاوندان وى هغوى د عيش پرستئ ښكار شى اوپه خپلومزو چرچو كښې مست وى او په خبره اګرچه په حقيقت مبنى وى كله هغوى ته وړاندے كړے شى نوپه خپله نشه كښې پرے هغوى غوږ نه ګروى اوتوجه ورته نه كوى اوچه كوم خلق كمزورے وى اودهغوى د زور زياتى ښكار وى اوپه معاشره كښې لاندے وى په هغوى كښې ددے خبرے هروخت لټون موجود وى اوفكرمند وى چه په كومه طريقه ددے عذاب او مصيبت نه مونږ ته نجات ملاؤ شى نوچه كله هم هغوى ته څه مضبوطه آسره په نظر راشى نوهغوى خپل ټول قوت هغے ته حواله كړى اونتيجه دا راوځى چه انقلاب راشى اود انقلاب نه پس لاندے اوچت كمزورے خلق مضبوط شى او د اثر خاوندان او مضبوط خلق چه په عيش او عشرت كښې به اوسيدل په ګرفت او نيولو كښې راشى نودلته هم داسے اوشو چه د ضعيفانو اكثريت د نبى ﷺ سره وو كوم چه په دے معاشره كښے دعذاب او مصيبت ښكار وو نوابوسفيان ددے اكثريت ذكر اوكړلو چه د كمزورو او ضعفاؤ اكثريت دهغه تابعدار دى.

---

(١) فتح البارى(٣٥/١)_

(٢) فضل البارى(٢١٤/١)_

(٣) فتح البارى(٣٥/١)_

**قوله** قَالَ أَيَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ: دا پنځم سوال دے یعنی هرقل تپوس اوکړلو چه دا خلق زیاتیږی که کمیږی؟

**قوله** قُلْتُ بَلْ يَزِيدُونَ: ماورته اووئیل هغوی کمیږی نه بلکه زیاتیږی.

**قوله** قَالَ فَهَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِنْهُمْ سَخْطَةً لِدِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ: دا شپږم سوال دے تپوس ئے اوکړلو چه آیا په دوی کښے یو کس په دین کښے د داخلیدو نه پس د دین د ناخوښئ اوبد ګڼړلو د وجے اوړیدلے دے؟

د «سخطة لدينه» قید هغه ددے وجے اولګولو چه د دین نه اوړیدل کله خو د دین د نا خوښئ د وجے وی اوکله ددے د وجے وی چه سړے د مال اومتاع په لالچ کښے مرتد شی اوکله ددے وجے مرتد کیږی چه سړے پوره په زړه سره مسلمان شوے نه وی.دغه شان په لیدو د څه وجے مسلمان شوے وی.قادح په دے صورتونو کښے هغه صورت دے چه سړے خفه شی اودین ناخوښه اوګڼړی.او مرتد شی.باقی صورتونه قادح نه دی.(۱)

تنبیه **سخطة**: چه کله په تاء سره وی.نو په سین به فتحه وئیلی شی.اوکه بغیر دتاء نه وی.نوپه سین فتحه اوضمه دواړه جائز دی.البته د فتحه وئیلو په صورت کښے به په ..خاء.. باندے فتحه وئیلی شی.اود ضمه په صورت کښے په ..خاء.. باندے سکون اوضمه دواړه جائز دی.(۲)

**قوله**: قُلْتُ لَا: ابوسفیان وائی.ما جواب ورکړلو.چه داسے نه کیږی.چه په دوی کښے یو کس خفه شی.اوواړی.

ابوسفیان ته معلومه وه.چه د دنیا د متاع په لالچ کښے مرتد کیدل یا بغیر د انشراح صدر نه اسلام راوړلو نه پس اوړیدل دا د دین نقصان نه دے.هم دا وجه ده.چه عبیدالله بن جحش کوم چه د حضرت ام حبیبه رضی الله عنها خاوند او د ابوسفیان زوم وو.حبشه ته د هجرت کولو نه پس په لالچ کښے د نصرانیت دین قبول کړے وو.د هغه ارتداد د دنیاوی متاع د لالچ د وجے وو.«سخطة لدين الإسلام» نه وو.نوځکه ئے په جواب کښے نفی اوکړله.چه یو کس د دین نه د ناراضئ د وجے نه دے اوړیدلے.(۳)

دا هم ممکن ده.اګرچه لرے ده.چه ابوسفیان ته د عبیدالله بن جحش د ارتداد علم نه وو.لرے ددے وجے ده.چه قریشو خپل کسان حبشه ته لیږلی وو.اوبنکاره ده.چه هغوی به پوره تحقیقات کړی وو.نوآیا هغوی ته به دومره هم پته نه وه.چه عبیدالله بن جحش مرتد شوے

---

(۱) فتح البارى(۳۵/۱)_

(۲) عمدة القارى(۸۵/۱)_

(۳) فتح البارى(۲۱۸/۸) کتاب التفسیر،سورة آل عمران باب«قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا» ( آل عمران: ۶۴)_

دے (١) اوكيدے شي چه ددے ارتداد نه اولنى دين ته اوړيدل مراد وى. عبيدالله بن جحش نوے دين اختيار كړے وو. اولنى دين ته نه وو اوړيدلے. (٢)

**قوله** قَالَ فَهَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ: دا اووم سوال دے آياتاسو هغه د نبوت ددے خبرے نه وړاندے په دروغو باندے متهم كولو؟

دا سوال د ډيرجامعيت حامل دے. هرقل دا تپوس اونكړلو چه آيا هغه چرته دروغ وئيلى دى. يا دروغ ئے وئيل؟ بلكه د تهمت كذب په باره كښے ئے تپوس اوكړلو. او كذب د تهمت كذب سبب وى. هركله چه تهمت منتفى وى. نو كذب به په طريقه اولى سره منتفى وى. (٣)

دا سوال په دے اعتبارسره هم اهم اوجامع دے. چه د مدعى نبوت مشهور بالصدق كيدل دهغه د صداقت لوئے دليل وى. د دعوت په اول كښے چه كله په كوه صفا باندے نبى ﷺ «ياصباحاه» اووئيل. او اهل مكه ته ئے چغه كړله. اوټول راجمع شول. نو نبى ﷺ د هغوى نه تپوس اوكړلو. كه زه تاسو ته دا خبر دركړم. چه د دشمن لښكرد غر هغه طرف ته راجمع شوے دے. اوپه تاسو باندے حمله كونكے دے. نو تاسو به زما تصديق اوكړئ؟ ټولو په يو آواز اووئيل. خامخا به دے تصديق كوو. ځكه چه «ماجربنا عليك كذبا» مونږ كله هم ستا نه دروغ خبره نه ده اوريدلے. نبى ﷺ اوفرمائيل. «فإني نذير لكم بين يدي عذاب شديد» په دے باندے ابولهب ګستاخي اوكړله. اووے وئيل. «تبالك، أما جمعتنا إلا لهذا؟» او ددے په نتيجه كښے سورة «تبت يدا أبي لهب» نازل شو. چونكه نبى ﷺ په اتفاق سره د عربو په نيز صادق او امين وو. نوځكه هغه هم دوى ته د كذب نسبت اونكړے شو. (٤)

**قوله** قُلْتُ لَا: ما اووئيل نه.

**قوله** قَالَ فَهَلْ يَغْدِرُ: دا اتم سوال دے. تپوس ئے اوكړلو. چه هغه وعده خلافى كوى؟

**قوله** قُلْتُ لَا وَنَحْنُ مِنْهُ فِي مُدَّةٍ لَا نَدْرِي مَا هُوَ فَاعِلٌ فِيهَا: يعنى ماورته اووئيل. نه هغه وعده خلافى نه كوى. البته زمونږ اودهغوى په مينځ كښے يوه موده روانه ده. معلومه نه ده. چه په دے كښے به هغه څه كوى.

---

(١) پورتنئ حواله)-

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) فتح البارى(١/٣٥)_

(٤) الكامل لابن الأثير(٢/٤٠) ذكر أمر الله نبيه ﷺ بإظهار دعوته .. او البداية والنهاية لابن كثير(٣/٣٨) باب الأمر بإبلاغ الرسالة دغه شان السيرة النبوية والآثار المحمدية للسيد احمد بزيني دحلان بهامش السيرة الحلبية (١/١٩٤)_

**قوله** وَلَمْ تُمْكِنِّي كَلِمَةٌ أُدْخِلُ فِيهَا شَيْئًا غَيْرَ هَذِهِ الْكَلِمَةِ: ابوسفيان وائي چه ماته دے خبرو دا موقع رانکړله چه زه په دے کښے څه داخل کړم سوا د دے يوے خبرے نه. يعنى د ټولو خبرو په صفا جوابونو ورکولو باندے زه مجبوره وم او د نبى ﷺ د فضائلو اواو شمائلو په اقرار کولو زه مجبوره ووم خو دا خبره چونکه د مستقبل سره متعلق وه په دے کښے د روغږن کول ممکن نه وو نوخکه ما اوونيل چه «ونحن منه في مدة لا ندري ما هو فاعل فيها» مطلب دا دے چه زما زړه خو بيخى مطمئن وو چه رسول الله ﷺ به معاهده نه ماتوى په دے باندے مے شرح صدر وو خو بهرحال زه يو فريق مخالف ووم نوچه دے ته مے اوکتل چه دا خبره د مستقبل ده ما د خپل يقين او اطمينان په خلاف د شك اظهار اوکړلو چه معلومه نه ده په راروان وخت کښے به هغه څه کوى معاهده به ماتوى اوکه په معاهده به وفا کوى؟

چونکه ابوسفيان د يو يے موقعه تردد اظهار کړے وو نوهرقل خکه دے ته څه توجه ورنکړله دابن اسحاق رحمه الله په روايت کښے تصريح ده «فوالله ما التفت إليها مني» (١)

دغه شان دحضرت عروه رحمه الله په مرسل روايت کښے دى چه د «فهل يغدر إذا عاهد؟» په جواب کښے ابوسفيان اوونيل «لا، إلا أن يغدر في هدنته هذه» چه هغه معاهده نه ماتوى البته کيدے شى چه په موجوده صلح کښے معاهده ماته کړى په دے باندے هرقل تپوس اوکړو په دے صلح کښے ولے ويره ده؟ نو ابوسفيان اوونيل چه زما قوم دهغه د حليفانو خلاف د خپل حليفانو مدد کړے دے په دے باندے هرقل اوونيل «إن كنتم بدأتم فأنتم أغدر» که تاسو ابتداء کړى وى نوهم تاسو زيات معاهده ماتونکى ئے (٢)

**قوله** قَالَ فَهَلْ قَاتَلْتُمُوهُ: دا نهم سوال دے تپوس ئے اوکړلو آيا تاسو هغوى سره جنګ کړے دے؟

دلته هرقل دقتال نسبت کافرانو ته کړے دے نبى کريم ﷺ ته ئے نسبت نه دے کړے چه داسے ئے ونيلى وو «فهل قاتلكم»

د دے وجے ياخو د نبى ﷺ تعظيم اواحترام دے يا د دے وجے چه نبى د خپل قوم سره په جنګ کولو کښے ابتداء نه کوى يا د دے وجے چه قتال خو هغه څوك کوى چه د چا ډله ختميږى اوکميږى د چا جمعيت چه زياتيږى دهغه جنګ ته څه ضرورت دے د نبى کريم ﷺ متبعين زياتيدل اود قريشو ډله ختميدله اوکميدله نوقريشو ته د منازعت او ابتداء بالقتال ضرورت وو نبى کريم ﷺ ته هډو ضرورت نه وو (٣)

---

(١) فتح البارى (١/٣٦)_

(٢) فتح البارى (١/٣٦)_

(٣) فتح البارى (٨/٢١٨) كتاب التفسير سورة آل عمران باب ﴿قل ..وبينكم﴾_

**قوله** قُلْتُ نَعَمْ: ما اووئيل: آو مونږ هغوی سره جنگ کړے دے.

**قوله** قَالَ فَكَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ: دا لسم سوال دے. هغه تپوس اوکړلو. نو بیا ستاسو دهغوی سره جنگ څنګه وو؟

**قوله** قُلْتُ الْحَرْبُ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ سِجَالٌ يَنَالُ مِنَّا وَنَنَالُ مِنْهُ: ما اووئيل. جنگ زمونږ اودهغوی په مینځ کښے د ډولونو د راښکلو پشان دے. (د اړخ د منګوټوپشان دی) هغوی زمونږ نقصان کوی. اومونږ دهغوی نقصان کوو. نه هغوی همیشه دپاره کامیاب وی. اونه مونږ. اړخ بدلیږی رابدلیږی.

ددے تشبیه مفهوم دا دے. چه څنګه په کوهی باندے ډول وی. چه د یو کس په لاس کښے وی. نو بل کس انتظار کوی. اودغه شان په عکس. کله په کوهی باندے اړخ وی. په هغے کښے تړلی شوی ډولونه په یوخاص ترتیب سره څی راځی. د اوبو نه ډك ډولونه چه کله پورته شی. نوخالی ښکته شی. دجنگ معامله هم د سجال پشان ده. هغه په یو صورت برقرار نه پاتے کیږی. (١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه ..الحرب. اسم جنس دے. او ..سجال.. اسم جمع ده. (٢)

علامه عینی رحمه الله فرمائی. ..سجال.. اسم جمع نه ده. بلکه جمع ده. چونکه ..الحرب.. اسم جنس دے. نوځکه د ..سجال.. په جمع راوړلو کښے څه حرج نشته. (٣)

علامه عینی رحمه الله یو بل احتمال دا هم ذکر کړے دے. چه دا د ..سجل.. جمع نه ده. بلکه د ..مساجلة.. په معنی کښے ده. په دے صورت کښے د مبتداء اوخبر په مینځ کښے د افراد او جمع اشکال هم باقی نه پاتے کیږی. (٤)

علامه سراج الدین بلقینی رحمه الله فرمائی. چه ابوسفیان دلته کښے غلط بیانی کړے ده. په جنگ بدر کښے خو مسلمانانو ته فتح ملاؤ شوے وه. په جنگ احد کښے په اول کښے فتح وه. او روستو د تیراندازو د مرکز په پریخودلو په وجه صورة لږ غوندے شکست ملاؤ شوے وو. ګنی په حقیقت کښے الله اودهغه رسول ته غلبه حاصله شوے وه. (٥)

خوحافظ ابن حجر رحمه الله دا نه دی تسلیم کړے. هغوی فرمائی. چه دلته ابوسفیان څه غلط بیانی نه ده کړے. بلکه صورت حال دا وو. چه ترهغه وخته پورے د مسلمانانو او کافرانو په مینځ کښے درے جنګونه شوی وو. بدر، احد او خندق. په بدر کښے خو مسلمانان فاتح اوکامیاب پاتے شوی وو. په احد کښے اګرچه په اول کښے مسلمانان کامیاب وو. خوپه آخر کښے کافرانو ته غلبه حاصله شوے وه. اوددے نه پس په جنگ خندق کښے څه کسان د اخوا نه مړی

---

(١) فتح الباری (١/ ٢٦)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) عمدة القاری (١/ ٩٢) بیان الإعراب)_

(٤) پورتنئ حواله)-

(٥) ارشادالساری للقسطلانی (١/ ٧٦)_

شوی وو.اوڅه ددیخوا نه.خبره برابر په برابر پاتې شوې وه.نود ابوسفیان «الحرب سجال» ونیل بالکل ټیک دی.په دې کښې څه غلط بیاني نشته.په خپله د رسول الله ﷺ نه داسې الفاظ منقول دی.(۱) دحضرت اوس بن حذیفه ثقفي رضي الله عنه په حدیث کښې دی.«فلما خرجنا إلى المدينة كانت سجال الحرب بيننا وبينهم ندال عليهم ويدالون علينا» (۲)

**قوله. قَالَ مَاذَا يَأْمُرُكُمْ:** دا یوولسم سوال دې.هرقل تپوس اوکړلو چه هغه تاسو ته د څه حکم کوی؟

چونکه تراوسه پورې چه کوم تپوسونه اوشول.هغه دشخصي حالاتو متعلق وو اوس دده د تعلیماتو په باره کښې تپوس کوی.ځکه چه رسول دالله تعالی د طرفه امر کونکې او منع کونکې راځي.

**قوله. قُلْتُ يَقُولُ اعْبُدُوا اللَّهَ وَحْدَهُ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَاتْرُكُوا مَا يَقُولُ آبَاؤُكُمْ....:**
ابوسفیان وائي.چه هغوی فرمائي.دالله تعالی عبادت کوئ.دهغه سره څوک شریک مه جوړوئ.اوستاسو پلار نیکه چه به څه ونیل.هغه پریږدئ.په هغې باندې ټینګ مه اوسئ.

دلته ابوسفیان دخپل دې جواب په ذریعه هرقل غصه کول غواړی.ځکه چه هغه نصراني وو.اونصاری د حضرت عیسی علیه السلام د نبوت قائل وو.لکه چه ددې خودلو کوشش نې اوکړلو.چه دهغوی عقیده ستاسو د عقیدې نه خلاف ده.دهغوی په نیز ستاسو د عقیدې څه ګنجائش نشته.(۳)

**دعبادت معنی اود سجدې د مسئلې تحقیق** دځه کسانو خیال دې چه غیرالله ته سجده که تعظیماً وی اوکه تعبداً وی.شرک جلي دې.او ددې حکم په دنیا کښې وجوب قتل او په آخرت کښې دائمي عذاب دې.دا د دوی په نیز په بت پرستئ کښې داخل ده.

ددوی وینا دا ده.چه د عبادت معنی دا «غاية التذلل» او په سجده کښې د ټولو نه زیات «غاية التذلل» موجود دې.د دې حضراتو په نیز په سجده کښې د تعظیماً او تعبداً تقسیم صحیح نه دې.ځکه چه سجده په خپله تعبد دې.د عبادت معنی علی حد الکمال په دې کښې موجود ده.امام شوکاني رحمه الله په دې باره کښې یوه مستقله رساله «الدر النضيد في إخلاص كلمة التوحيد» لیکلې ده.(۴)

(۱) فتح الباري(۲۱۸/۸) کتاب التفسير.سورة آل عمران)_

(۲) سنن ابی داود کتاب الصلاة أبواب قراءة القرآن وتحزيبه وترتيله باب تحزيب القرآن رقم (۱۳۹۳) وسنن ابن ماجه کتاب إقامة الصلاة باب في كم يستحب ختم القرآن رقم .(۱۳۴۵)_

(۳) فضل الباري(۲۱۶/۱)_

(۴) فضل الباري(۲۱۶/۱، ۲۱۷)_

خومحققين عالمان ﷺ په سجده كنبے دتعبداً او تعظيماً فرق كوى تعبدا سجده شرك جلى دے د بت پرستئ په حكم كنبے داخل ده خو تعظيمى سجده د مړو او ژوندو دپاره شرك جلى نه دے البته په شريعت محمديه كنبے حرامه ده او د شرك شعبه او گناه كبيره ده دد ے مرتكب مستحق د تعزير او د جهنم د عذاب دے (١)

خكه چه دا خومعلومه ده چه په مختلفو شريعتونو كنبے د حلال او حرام او د نورو احكامو نسخ او تبديلى شوے ده بعضے څيزونه چه په دے امت باندے حرام دى په وړاندے څه امت دپاره حلال وو يا ددے په عكس بلكه داسے قسم نسخ او تبديلى خو هم په يو شريعت كنبے په مختلفو زمانو كنبے شوے ده لكه د شرابو په باره كنبے چه په اسلام كنبے شوے ده خودا متفق عليه او يقينى ده چه دحضرت آدم ﷺ نه واخله تر نن ورځے پورے د هيڅ نبى په شريعت كنبے د يوے لمحه دپاره هم شرك جلى جائز نه دے گرځولے شوے اونه په يو امت كنبے د يو سكنډ دپاره د غيرالله عبادت برداشت كړے شوے دے ﴿وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ﴾ (٢) په فروعاتو كنبے خو اختلاف پاتے شوے دے خو په اصل الاصول ..توحيد.. كنبے كله هم په شريعتونو كنبے اختلاف نه دے راغلے.

اوس اوگورئ په قرآن كريم كنبے دحضرت يوسف ﷺ د ابوين او رونړو په باره كنبے راغلى دى ﴿وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا﴾ (٣) حالانكه پخپله په جيل كنبے هغه د شرك نه براءت كوى ﴿مَا كَانَ لَنَآ اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ﴾ (٤) او ﴿اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ﴾ نومعاذالله آيا د الله نبى حضرت يعقوب ﷺ شرك كړے وو بيا سجده دلته په مطلق انحناء باندے هم نشى حمل كيدے خكه چه په قرآن مجيد كنبے د ﴿وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا﴾ الفاظ دى.

دغه شان حضرت آدم ﷺ ته د فرشتو سجده په قرآن پاك كنبے مذكور ده دا په خپله دالله تعالى حكم وو چه په انكار باندے ترے ابليس ملعون اوگرځولے شو نوآيا الله تعالى د شرك جلى حكم وركړے وو؟ دلته هم ﴿فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ﴾ الفاظ راغلى دى په دے كنبے هم د انحناء تاويل نشى چليدے په دواړو مقاماتو كنبے به تاسو منلو ته مجبوريږئ چه سجده تعظيمى وه تعبدى نه وه اوپه دواړو كنبے به فرق كوئ چه سجده تعبدى شرك جلى دے اوسجده تعظيمى د بت پرستئ اوشرك جلى په حكم كنبے نه ده او زمونږ په شريعت كنبے حرام ده دحضرت يوسف ﷺ په شريعت كنبے جائز وه (٥)

كه د انصاف په نظر سره اوكتلے شى نومطلق سجدے ته هرگز شرك جلى نشى وئيلے كله كله عاشق خپل محبوب ته په زمكه باندے سر كيږدى حالانكه كه دهغه زړه اولټولے شى نوهلته

(١) فضل البارى(٢١٧/١)_

(٢) البينة:٥)_

(٣) يوسف:٩٩)_

(٤) يوسف:٢٨)_

(٥) تفسيرابن كثير(٤٩١/٢) سورة يوسف)_

د شرك شائبه هم نه وي.بلكه د محبت يوه دلي جذبه وي.كومه چه د جهالت اوحماقت د وجې دا صورت اختيار كړي.اومقصد د محبوب راضي كول وي دا شرك جلي هركز نه دے.(١) دا خو وو الزامي جواب

**تحقيقي جواب** تركومے پورے چه ددے اشكال تعلق دے.چه عبادت غايت تذلل ته وائي. نو مطلق سجده به عبادت شمارلے شي.په دے كښې به د تعظيم او تعبد تقسيم نه جاري كيږي.

نوددے تحقيقي جواب حضرت شاه ولي الله رحمه الله په حجة الله البالغة كښې وركړے دے.چه عبادت اقصي تذلل ته وائي.اوددے دوه حيثيتونه دي.يوصورة مثلاً چه كله په زمكه باندے تندے كيږدي.اويو نية و ارادة.اعتقاداً وقلباً كله چه په دواړو حيثيتونو سره تذلل جمع شي.نوپه دغه وخت كښې به حقيقي غايت تذلل متحقق كيږي.اوهم ددے نوم عبادت دے.اوكه دا نه وي.نوعبادت به متحقق نه وي.سجده تعظيمي اوسجده تعبدي په ظاهر كښې دواړه برابردي.دواړه په غايت تذلل باندے دلالت كوي.خو د نيت اواعتقاد په لحاظ سره په دواړو كښې ډير فرق دے.هرسړے چه غور اوكړي.نو پوهيدلے شي.چه دخپل خان پشان انسان چه هغه د احتياج .حدوث.اوامكان په شوائبو كښې ملوث وي.اوپه هيڅ حيثيت سره هغه د ممكناتو د دائرے نه اوچت نه كنړي.اومعبوديت د شان هيڅ يو صفت دهغه دپاره نه ثابتوي.خود څه جذبے نه متاثره شي.اودجهالت او حماقت په وجه هغه ته سجده اوكړي.اوتعظيم ئے مقصد وي.لكه رعيت چه بادشاهانو ته سجده اوكړي.ياشاگرد استاذ ته اومريد پير ته سجده اوكړي.يا د تعظيم نه علاوه څه بله جذبه وي.لكه چه عاشق محبوب ته سجده اوكړي.نودا په عبادت او شرك جلي كښې داخل نه ده.ددے سجدے په مقدار تذلل اودهغه سجدے په مقدار تذلل كښې فرق يقيني دے.څكه چه په يوه كښې مسجود د عيبونو نه پاك.منزه.اود شان معبوديت لائق كنړلے شي.په يو خاص صفت كښې تيك ده اوپه دويمه كښې مسجود داسے نشي كنړلے.اولنے صورت د شرك جلي دے.اود بت پرستۍ په حكم كښې دے.اودويم صورت داسے نه دے.(٢)

**تنبيه** خوياد ساتئ چه دا فرق به په هغه وخت كښې وي.چه كله څه داسے څيز ته سجده اوكړي.چه هغه د كفر اوشرك شعار نه وي.اوهغه څيز د مشركانو معبود نشي شمارلے كنې صنم او بت ته سجده كول كوم چه د كفر او شرك شعار دے.مطلقاً شرك جلي دے.اگرچه هغه په ژبه باندے وائي.چه زما نيت د تعبد نه بلكه د تعظيم دے.(٣)

**د شرك قسمونه** د شرك څو قسمونه دي.

① يودا چه د تعدد آله عقيده وي.لكه د مجوسيانو په نيز چه يزدان او اهرمن دي.

② دويم صورت دا دے.چه دالله تعالى په خاص صفت كښې څوك په څه درجه كښې شريك او مختار اوكنړي.اگرچه صرف په اختيار او نفاذ كښې وي.مثلاً اعتقاد ساتي.چه په اصل كښې

(١) فضل الباري(١/٢١٧، ٢١٨)_

(٢) فضل الباري(١/٢١٨، ٢١٩)_

(٣) پورتنئ حواله)_

خو خدائي يو دے.خوخه فرشتے او روحونه داسے دى.چه په دنيا كښے د بندګانو كارونه (اعطائے مال واولاد وغيره) هغوى ته حواله دى.دا اختيار دوى ته هم الله تعالى وركړے دے.خوددے اختياراتو په استعمال كښے دوى اوس آزاد دى.اوس دوى ته مزيد چاته د رجوع كولو ضرورت نشته.لكه په دنيا كښے چه حاكمانو ته د بادشاه د طرفه اختيار ملاؤ شوے وى.هغه بياد هغے په استعمال كښے بااختيار وى.نوكله هغوى خپل دا اختيار استعمالوى.اوبادشاه ته خبر نه وى.د مكے د مشركانو هم دا عقيده وه.

﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ﴾ (١) او ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللّٰهِ زُلْفَىٰ﴾ (٢) د دوى وينا وه.چه ﴿هٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللّٰهِ﴾ په حج كښے د دوى تلبيه وه.«لبيك لا شريك لك،إلا شريكاً هولك تملكه وما ملك» (٣) دوى به الله تعالى د ټولو نه لوئے اوقادر مطلق منلو.دخپلو معبودانو اختيارات ئے د الله تعالى وركړه ګڼړله.اومعبودان به ئے دالله تعالى مملوكان ګڼړل.صرف دومره به ئے وئيل.چه ددے اختياراتو د ملاويدو نه پس دوى ددے په نفاذ كښے بااختياره اومستقل دى.

**د مشركانو عقائد:** شاه ولى الله رحمه الله تصريح كړے ده.چه دنبى ﷺ په زمانه كښے اهل جاهليت دا منله.چه آسمان او زمكه او چه كوم جواهر د دوى په مينځ كښے دى.ددے په پيدا كولو كښے دالله تعالى سره څوك شريك نشته.د لويو لويو كارونو په تدبير كښے دهغه سره څوك شريك نشته.دهغه حكم څوك رد كولے نشى.اوچه قضاء مبرم او قطعى وى.نوهغه څوك ايسارولے نشى.(٤)

شاه صاحب رحمه الله فرمائى.«لكن كان من زندقتهم قولهم إن هنالك أشخاصاً من الملائكة والأرواح تدبر أهل الأرض فيما دون الأمور العظام من إصلاح العابد فيما يرجع إلى خويصة نفسه وأولاده وأمواله وشبهوهم بحال الملوك بالنسبة إلى ملك الملوك وبحال الشفعاء والندماء بالنسبة إلى السلطان المتصرف بالجبروت ومنشأ ذلك ما نطقت به الشرائع من تفويض الأمور إلى الملائكة واستجابة دعاء المقربين من الناس،فظنوا ذلك تصرفاً منهم،كتصرف الملوك قياساً للغائب على الشاهد وهو الفساد»(٥)

دحضرت شاه صاحب رحمه الله په دے تقرير سره ډيرلوئے فرق ښكاره شو.هغه دا چه د مسلمانانو هم عقيده ده.اود نصوصو نه هم ثابت دى.چه ډير انتظامات فرشتو ته حواله

---

(١) لقمان:٢٥)_

(٢) الزمراء:٢)-

(٣) صحيح مسلم (٣٧٦/١) كتاب الحج باب التلبية وصفتها ووقتها)_

(٤) حجة الله البالغة (١٢٥/١) المبحث السادس باب بيان ما كان عليه أهل الجاهلية فأصلحه النبى ﷺ)_

(٥) پورتنئ حواله)_

دی باران چاته حواله دے.د مرګ معامله چاته حواله ده.(١) مشرکان هم د زمانے حوادث فرشتو ته حواله کوی.خوفرق دا دے چه مشرکان خپل معبودان د اختیار په استعمال کښے خود مختار او مستقل بالذات ګنړی.دهغوی دخوشحاله کولو دپاره د هغوی عبادت کوی چه دوی خفه نشی.اوپه مصیبت کښے مو اخته نکړی.لکه څنګه چه حاکمان وی.هغوی خپل اختیارات څنګه چه مناسب ګنړی. استعمالوی.خود مسلمانانو په نیز فرشتے خود مختارے نه دی.چه څنګه غواړی . اختیارات استعمالوی.د دوی په نیز د آسمان دپاسه. د زمکے په ویخ کښے اود سمندر په تل کښے چه څه کیږی.تردے که په یوخائے کښے پاڼړه هم غورځیږی .نوهغه هم الله تعالی پیژنی.اود هغه په حکم سره راغورځیږی.ارشاد رباني دے.

﴿وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ﴾ (٢) او ﴿إِنَّ اللَّهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ ۖ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ۚ﴾ (٣) دغه شان فرمائی. ﴿اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنْثَىٰ وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ۖ﴾ (٤) په حدیث کښے د نبی کریم ﷺ ارشاد دے.«إن الله قد وكل بالرحم ملكاً فيقول: أى رب نطفة أى رب علقة، أى رب مضغة، فإذا أراد الله أن يقضي خلقاً قال: قال الملك أى رب ذكر أو أنثى؟ شقي أو سعيد؟ فما الرزق فما الأجل؟ فيكتب كذلك في بطن أمه» (٥)

تردے چه نمر کوم چه بعضے خلقو معبود جوړ کړے دے.د مسلمانانو په نیز ددے طلوع او غروب هم د پروردیګار د اجازت نه بغیر نه کیږی.(٦)

په اسلام کښے دالله تعالی نه سوا چاته په څه خبره کښے د اوری د دانے برابر مستقل اختیار ثابت نه دے.بعضے جاهلان چه د غیرالله سره د مشرکانو پشان سلوك کوی.دا صورة ضرور شرك سره مشابه دے.خود زړه په اعتقاد کښے ډیر فرق دے.د مشرکانو په عکس.څکه چه هغوی دخپلو معبودانو لره مستقل اختیارات ثابتوی .هغوی د عبادت مستحق ګنړی.د

---

(١) عن عبدالرحمن بن سابط قال:يدبر أمرالدنيا أربعة جبريل وميكائيل. وملك الموت.وإسرافيل.فأما جبريل فوكل بالرياح والجنود وأما ميكائيل فوكل بالقطروالنبات وأما ملك الموت فوكل بقبض الأرواح وأما إسرافيل فهو ينزل الأمر عليهم.شعب الإيمان للبيهقي (١٧٧/١) باب في الإيمان بالملائكة فصل في معرفة الملائكة)_

(٢) سورة الأنعام:٥٩)_

(٣) الأنعام:٩٥)_

(٤) الرعد:٨)_

(٥) صحيح مسلم (٣٣٢/٢) كتاب القدر.باب كيفية خلق الآدمي في بطن أمه...)_

(٦) عن ابي ذر قال: قال النبي ﷺ لأبي ذر حين غربت الشمس:أتدري أين تذهب ؟قلت؟ الله ورسوله أعلم.قال فإنها تذهب حتى تسجد تحت العرش فتستأذن فيؤذن لها.ويوشك أن تسجد فلا يقبل منها.وتستأذن فلا يؤذن لها. يقال لها:ارجعي من حيث جئت فتطلع من مغربها صحيح بخاری(٤٥٤/١) كتاب بدء الخلق باب صفة الشمس والقمر بحسبان)_

راضی کولو دپاره هغوی ته سجدے کوی. اودا گنړی. که مونږ دوی راؤنه بللي. د دوی عبادت مو اونکړلو. د دوی په نومونو باندے مو نذرونه اونکړل. نو دوی به مونږ ته نقصان اورسوی. دا د ((شرك في التكوين)) صورت دے.

**شرک في التشريع** يوشرك في التشريع دے. چه په احکامو کښے د حلالو او حرامو اختيار مستقل د چا دپاره ثابت کړے شی. لکه چه د نصارؤ چه دخپلو پادريانو په باره کښے عقيده ده ابن الاثير رحمه الله په ..الكامل.. کښے تاريخ وار ليکلی دی. چه په فلانی فلانی کال کښے لوئے لوئے پادريان راجمع شوی وو. اوهغوی د تحليل او تحريم فيصلے کړے وے.(١) هم دا عقيده د يهوديانو د خپلو احبارو او عالمانو په باره کښے وه. ﴿اتَّخَذُوٓا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ﴾ (٢)

کله چه دا آيت نازل شو. نوحضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه چه وړاندے نصرانی وو. تپوس اوکړلو يارسول الله هغوی خو د دوی عبادت نه کوی. نو بيا ئے ارباب ونيلے اوفرمائيل؟ نو نبی ﷺ ورته جواب ورکړلو. ((أما إنهم لم يكونوا يعبدونهم، لكنهم كانوا إذا أحلوا شيأ استحلوه وإذا حرموا عليهم شيأ حرموه))(٣)

**شرک في التشريع او تقليد** په شرك في التشريع او تقليد کښے لوئے فرق دے. په شرك في التشريع کښے د تحليل او تحريم اختيار احبار او رهبانو ته حاصل وی. اوپه تقليد کښے د ائمه مجتهدينو رحمهم الله دپاره د اوری د دانے برابر هم اختيار تشريع نه دے منلے شوے ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ د پيغمبر ﷺ بيان چونکه دالله تعالى د طرفه په حلال او حرام باندے دليل قطعی وی. خکه د هغے اتباع کولے شی. او په تقليد کښے په ((راسخون في العلم)) باندے د هغوی د بصيرت په اعتبار سره د هغوی په استنباط او فتاوو باندے اعتماد کولے شی.

حضرت شاه ولی الله رحمه الله څه ښکاره او قطعی خبره کړے ده. ((ومن ذلك أن التحليل والتحريم عبارة عن تكوين نافذ في الملكوت أن الشئ الفلاني يؤاخذ به، أولا يؤاخذ به، فيكون هذا التكوين سبباً للمؤاخذة وتركها، وهذا من صفات الله تعالى، وأما نسبة التحليل والتحريم إلى النبي ﷺ فبمعنى أن قوله أمارة قطعية لتحليل الله وتحريمه، وأما نسبتها إلى المجتهدين من أمته فبمعنى روايتهم ذلك عن الشرع من نص الشارع أو استنباط معنى من كلامه))(٤)

---

(١) الكامل في التاريخ لابن الأثير(١/١٨٩. ١٩١) الطبقة الثانية من ملوك الروم المتنصرة)_
(٢) التوبة:٣١)_
(٣)سنن ترمذی كتاب التفسير باب ومن سورة التوبة رقم.٣٠٩٥)_
(٤) حجة الله البالغة (١/٦٢) المبحث السادس باب أقسام الشرك)_

په تحليل او تحريم كښے مختار كنړل د ..رب.. سره د دے وجے مرادف دى چه په تحليل اوتحريم سره په حكومت كښے يو حكم نافذ كيږى.چه په فلانى څيز باندے مواخذه شته او په فلانى باندے نشته.اوصرف دومره وئيل د نيولو او نه نيولو سبب جوړيږى.اودا د الله تعالى په صفاتو كښے دے.رسول اكرم ﷺ او مجتهدينو ﷺ ته د تحليل او تحريم نسبت په دے معنى هرگز نه دے.

خلاصه د كلام دا شوه.چه دالله تعالى په صفت كښے څوك په څه درجه كښے شريك جوړل او مختار گنړل برابره ده كه په نفاذ كښے ورته مستقل اختيار وركړى يا په تشريع كښے د چا دپاره مستقل اختيار ثابت كړى.دا ټول شرك دے.او داسے قسم عقيده ساتل اوچاته سجده كول عبادت لغير الله اوشرك جلى دے.اود بت پرستئ په حكم كښے دے.بغير د توبه نه په دنيا كښے د ارتداد د وجے واجب القتل دے.اوپه آخرت كښے مخلد في النار دے.او دداسے قسم اعتقاد نه بغير چاته صرف د تعظيم دپاره دجهالت او ضلالت د وجے سجده كول په شريعت محمديه كښے فسق او حرام ده.بدعت اوگناه ده.ددے مرتكب فاسق اومستحق التعزير دے.هرڅه دى.خو شرك جلى او بيخى د بت پرستئ په حكم كښے نه ده.((هذا هو مذهب المحققين ومسلك أهل التحقيق من المتأخرين))(١)

**قوله: وَيَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ وَالصِّلَةِ:** اوهغه مونږ ته د مونځ رښتيا وينا ،پاكدامنئ او خپلوئ ساتلو حكم كوى.

دلته كښے ،صدق،، واقع شوے دے.خو په بل روايت كښے د ،صدقة،لفظ راغلے دے.(٢)

علامه سراج الدين بلقينى رحمه الله هم دا راجح گرځولے ده.يوځو ددے وجے چه هم دا روايت وړاندے راغلى.په هغے كښے د ..صلاة..سره د زكواة ذكر دے.(٣)

دويمه وجه دا ده.چه ..صلاة.. او ..زكواة.. په كتاب الله كښے مقرون ذكر شوى دى.او دريمه وجه دا ده.چه عربيان راست بازى اورښتيا وينا ډيره ښه گنړى.نوځكه ددے د ذكر ضرورت نشته.(٤)

خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د رښتيا وينا ښه گنړلو نه دا چرته لازميږى.چه دوى د دے حكم اونكړى.گورئ خلق وفاء بالعهد ښه گنړى.دغه شان امانت ښه گنړى.نبى اكرم ﷺ ددے امر هم كړے دے.(٥)

---

(١) د دے ټول بحث د تفصيل دپاره اوورئ فضل البارى(١/٢١٦.٢٢٣) دغه شان درس بخارى شريف از شيخ الاسلام علامه عثمانى رحمه الله ضبط وتحرير مولانا عبدالوحيد صديقى فتح پورى(ص،٩٠.٩٢)

(٢) كتاب الجهاد باب دعاء النبي ﷺ الناس إلى الإسلام والنبوة رقم.(٢٩٤١)_

(٣) كتاب التفسير.تفسير سورة آل عمران باب (قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ) رقم (٤٥٥٣)_

(٤) فتح البارى(١/٢٦)_

(٥) سابقه حواله)_

خو حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی چه راجح هم د ..صدق..لفظ دے د ..صدقة.. نه دے خکه چه ترکومے پورے د صدقه او زکواة تعلق دے نودا د ..صله.. په عموم کښے داخل دے او ..صدق.. کښے زیاتی فائده ده.باقی پاتے شوه دا خبره چه په کتاب الله کښے ..صلواة.. او ..زکواة.. مقرون ذکر شوی دی نودا د ترجیح دلیل نه دے خکه چه ابوسفیان په هغه وخت کښے د دے دواړو د اقتران علم نه لرلو.[1]

خوراجح هم دامعلومیږی چه په اصل کښے دلته د ..صدق.. او ..صدقة.. دواړه الفاظ وی.د راویانو د تصرف د وجے په څه ځائے کښے صرف ..صدق.. ذکر دے اوپه څه ځائے کښے صرف ..صدقة.. مذکور دے اوپه څه ځائے کښے د ..صدقة.. په ځائے د ..زکواة.. لفظ ذکر دے.ددے ترجیح داسے معلومیږی چه د کشمیهنی او سرخسی رحمهما الله په روایت کښے دواړه الفاظ جمع کړے شوی دی.((بالصلاة والصدق والصدقة))[2] والله اعلم

**قوله**: فَقَالَ لِلتَّرْجُمَانِ قُلْ لَهُ سَأَلْتُكَ عَنْ نَسَبِهِ فَذَكَرْتَ أَنَّهُ فِيكُمْ ذُو نَسَبٍ فَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي نَسَبِ قَوْمِهَا: هرقل ترجمان ته اووئيل چه دوی ته اووایه چه ماستاسو نه دهغه د نسب په باره کښے تپوس اوکړلو.تاسو اوخودل چه هغه په تاسو کښے د اوچت نسب خاوند دے.هم داسے ده.چه پیغمبران علیهم السلام په خپل قوم کښے د ټولو نه په اوچت خاندان کښے رالیږلی شی.

کله چه هرقل د ترجمان په ذریعه د ابوسفیان نه د نبی ﷺ ابتدائی حالات معلوم کړل او د دوی اخلاق او صفات ئے ترے معلوم کړل.نو ددے نه پس هغه د ابوسفیان په جوابونو باندے تبصره اوکړله.دا تبصره په دے خبره دلالت کوی.چه هرقل د ذهانت او فطانت خاوند وو د مذاهبو او ملتونو نه واقف وو.او د پیغمبرانو علیهم السلام د حالاتو نه بنه واقف وو د هغوئ دصفاتو علم اود هغوی سره چه د قوم څه معامله پیښیږی.د هغے ټولو ورته علم وو.[3]

د سوالونو په جوابونو باندے چه د هرقل کومه تبصره دلته کښے ذکر شوے ده.دا د سوالونو د ترتیب مطابق نه ده.بلکه تقدیم او تاخیر په کښے شوے دے بیا د لسم او یوولسم سوال متعلق دلته څه تبصره هم ذکر نه ده دا د راوی د طرفه دی.هم دا روایت په کتاب الجهاد کښے په کامله طریقه باندے راځی.هلته د سوالونو د ترتیب مطابق د هرقل تبصره موجود ده.

دلته کښے دا اولنے سوال دے او په دے باندے تبصره هم په اول نمبر ده.اوددے مطلب دا دے چه حضرات انبیاء علیهم السلام په خپل قوم کښے د ټولو نه په غوره خاندان کښے رالیږلی شی خکه چه کوم کس د اوچت خاندان سره تعلق ساتی.هغه خامخا غلطه خبره نه

---

(۱) عمدة القاری(۱/۸۸)_

(۲) فتح الباری(۱/۳۶) وعمدة القاری(۱/۸۸)_

(۳) فتح الباری(۱/۳۶)_

كوى.اونور خلق دهغه په تابعدارئ اوانقياط كښے شرم نه محسوسوى.اوكه د كمزورى خاندان كس وى.نوكوم كسان چه د اوچت خاندان وى.هغوى دښكته خاندان په تابعدارئ كښے شرم محسوسوى.

ددے نه معلومه شوه.چه د اوچت نسب په شريعت كښے لحاظ ساتلى شى.اوحقيقت هم دا دے.په دے خبره داهل حق اتفاق دے.چه خلافت د قريشو دے.خكه چه دا په دنيا كښے دټولو نه اوچت قوم دے.

خودا اوپيژنئ.چه دا نسب په هغه وخت كښے فائده مند وى.كله چه ورسره دين او تقوى وى.نبى كريم ﷺ حضرت فاطمه ﷞ ته فرمائيلى وو.((يافاطمة أنقذى نفسك من النار فإنى لا أملك لكم من الله شيأ))[1]خپل خان د اور نه بچ كړه.زه تا ته څه فائده نشم دركولے كه الله تعالى تا رانيسى.نوزه څه نشم كولے.اوپه قرآن كريم كښے ښكاره وائى.﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ﴾[2]دالله تعالى په نيز د ټولو نه معزز اوقدرمند كس هغه دے.څوك چه د ټولو نه زيات پرهيزگار وى.نواصلى څيز پرهيزگارى ده.خوددے پرهيزگارئ سره كه شرافت نسبى هم شامل شى.نوبيا مرتبه نوره هم اوچتيږى.كه يو كس پرهيزگار وى.اوكم نسبه وى.اوبل كس فاسق او فاجر وى.اوعالى النسب وى.نودهغه نه دغه پرهيزگار په قرآنى نص سره په مرتبه كښے اوچت دے.خوكه څوك عالى النسب وى.او ورسره ورسره پرهيزگار هم وى نو دخپل اوچت نسب په وجه دے دهغه كس نه چه اوچت نسب نه لرى.اوچتيږى خكه چه كوم د اوچت خاندان خلق وى.په هغوى كښے د فضائلو او كمالاتو جوهر زيات مضبوط وى.نوچه كله هغه دين ته تيټ شى.نو دهغه تيتيدل به د اوچتے درجے وى.اود استعداد د اوچتوالى د وجے دهغه ترقى زر او زياته كيږى.

اوگورئ يوطالب علم كه غبى وى.خوهروخت محنت كوى.اوبل ذهين دے خو آزاد اوفضول گرځى.نودے غبى ته به په دے ذهين باندے فضيلت حاصليږى.خكه چه هغه سره دعلم پنگه ده.اودغه ذهين سره د ذهانت باوجود څه نشته.خوكه دغه ذهين په علم كښے اولگى.نودخپل ذهانت په وجه به د دغه غبى كس نه په علم او فضيلت كښے په څوچنده زيات شى.

بعضے خلقو ددے جملے مطلب دا اخستے دے.چه نبى هم په خپل قوم كښے مبعوث كيږى.داسے نه ده.چه خپل نسبى قوم پريږدى.او نورو ته پيغمبر شى.بيا دے خلقو ددے قانون نه دحضرت لوط ﷺ استثناء كړے ده.خكه چه هغه نبى وو.خوپه خپل قوم كښے مبعوث شوے نه وو.خودا غلطه ده.دهرقل تبصره د ابوسفيان په جواب كښے ((هو فينا ذونسب)) باندے ده.اوپه دے كښے تنوين دتعظيم دپاره دے.نو ددے مطابق هم دا معنى كول پكار دى.يعنى څنگه چه تاسو اووئيل.هم دغه شان كيږى.چه نبى ﷺ په خپل قوم كښے د ټولو نه د اعلى

---

(١) صحيح مسلم (١/١١٤) كتاب الإيمان باب بيان أن من مات على الكفر فهو فى النار)۔

(٢) الحجرات:١٣)۔

او اشرف نسب سره تعلق ساتي لفظ د ..كذلك.. دلته د دے معنی په صحت باندے ښكاره دلالت كوي. (١)

**قوله** وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَالَ أَحَدٌ مِنْكُمْ هَذَا الْقَوْلَ فَذَكَرْتَ أَنْ لَا: دا د سوالونو په ترتيب كښے په دويم نمبر باندے دے او دلته په تبصره كښے هم په دويم نمبر دے. يعنى ما ستا نه سوال كړے وو. چه په دوى كښے چا د ده نه وړاندے د نبوت دعوى كړے وه نو تا اووئيل چه نه.

**قوله** فَقُلْتُ لَوْ كَانَ أَحَدٌ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ قَبْلَهُ لَقُلْتُ رَجُلٌ يَأْتَسِي بِقَوْلٍ قِيلَ قَبْلَهُ: نوما په زړه كښے اووئيل. كه چا د ده نه وړاندے دا دعوى كړے وه. نوما به وئيلى وو چه دا سړے دهغے قول اتباع كوي. كومه چه د ده نه وړاندے وئيلے شوے وه.

مطلب دا چه هرقل دا وائي. چه كه چا وړاندے دا دعوى كړے وه. نو دا به ګنړلى شو چه دے هم دهغه اقتداء كوي. خو هر كله چه چا د وړاندے دعوى كړے نه ده. نو بيا به څنګه ګنړلى شي. چه دے د بل په تابعدارئ كښے دعوى كوي. د دے نه خو معلوميږي. چه دے په حقيقت كښے پيغمبر دے. نو ځكه ئے د نبوت اعلان كړے دے.

حقيقت هم دا دے. چه شپږ سوه كاله تير شوى وو. او په دے كښے چا هم د ده نه وړاندے د نبوت دعوى نه وه كړے. او نبى ﷺ د نبوت دعوى اوكړله. نو څو كسان راپاسيدل. او د دوى په ژوند كښے څو كسان مدعيان د نبوت شول. او د نبى ﷺ د وفات نه پس هم څو كسانو د نبوت دعوے اوكړلے. خود حضرت عيسى عليه السلام نه پس تر د نبى اكرم ﷺ پورے څوك هم مدعى د نبوت نه دے ښكاره شوے. د دے نه معلوميږي. چه نبى ﷺ د چا په اقتداء او اتباع كښے د نبوت دعوى نه ده كړے. بلكه الله تعالى دوى پيغمبر جوړ كړى وو. نو ځكه دوى د نبوت اعلان اوكړلو.

په دے جمله كښے اولنے ..قلت.. د ..قلت في نفسي.. په معنى كښے دے. او د دويم ..قلت.. نه قول لساني مراد دے. روستو د ترجمه او تشريح نه دا خبره ښه په ذهن كښے پريوتونكے راروانه ده.

**قوله** وَسَأَلْتُكَ هَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ فَذَكَرْتَ أَنْ لَا: دا د سوالونو په ترتيب كښے په دريم نمبر باندے دے. او په تبصره كښے هم په دريم نمبر دے. مطلب دا دے چه هرقل اووئيل. ما ستا نه تپوس اوكړلو. چه د ده په پلارانو او مشرانو كښے څوك بادشاه تير شوے دے. نو تا اووئيل چه نه.

**قوله** قُلْتُ فَلَوْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ قُلْتُ رَجُلٌ يَطْلُبُ مُلْكَ أَبِيهِ: مطلب دا دے. كه د ده په خاندان كښے څوك بادشاه تير شوے وے نوما به وئيلى وو. چه دا كس د نبوت دعوى صرف د بادشاهئ د پاره كوي.

---

(١) فضل البارى(١/٢٢٤)_

په ذکر شوی دواړو سوالونو کښې اولنې سوال «هل قال أحد منكم هذا القول» عزت باطنى سره متعلق دے.اودویم سوال «هل كان من آبائه من ملك» د دنیوی جاه او مرتبې سره متعلق دے.
دلته کښې دا خبره هم قابل غور ده.چه هرقل د دویم او دریم سوال په جواب باندے کله تبصره کوله.نووے ونیل چه ..قلت.. د باقی سوالونو په جواب باندے چه ئے تبصره کوله نو..قلت.. ئے نه دی ونیلی.ددے وجه دا ده.چه دا دواړه څیزونه د فکر او نظرمحتاج دی.اودباقی کومو څیزونو په باره کښې چه هرقل تپوسونه کړی وو او هغه ته جوابونه ملاؤ شوی وو.هغه د فکر اوغور محتاج نه وو.(١) ښکاره ده.چه دهغې متعلق هرقل څه ونیلی وو.هغه ئے د آسمانی کتابونو د معلوماتو په رڼا کښې ونیلی وو.

**قوله**:وَسَأَلْتُكَ هَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ فَذَكَرْتَ أَنْ لَا فَقَدْ أَعْرِفُ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ لِيَذَرَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ وَيَكْذِبَ عَلَى اللَّهِ: هرقل اوونیل.ماستا نه دا تپوس اوکړلو.چه د نبوت د دعوی نه وړاندے تاسو په هغه باندے د دروغو الزام خو نه دے لګولے.نوتا جواب راکړلو.چه نه.زه پوهیږم چه هغه به داسے نه وی چه دخلقو په معاملاتو کښې دروغ او افتراء کوی.اوپه الله تعالی به دومره لوئے بهتان تړی.
مطلب دا دے.چه کوم کس په خپل پوره ژوند کښې څه قسم دروغ نه وی ونیلے.هغه به یکدم د نبوت غوندے لویه دعوی څنګه کولے شی.څوك چه دمخلوق په باره کښې دومره محتاط وی.هغه دالله تعالی په باره کښې داسے قسم بیباکی څنګه کولے شی؟!
دهرقل مقصد دا وو.چه پیغمبر ته د الله تعالی دجواب ورکولو او تپوس کولو یقین وی.نوځکه هغه د انسانانو په باره کښې هیڅ قسم غلط بیانی نه کوی.نو بیا دالله تعالی په باره کښې داسے دعوی ،دهوکه او فریب څنګه کولے شی.
دهرقل ددے خبرے نه دا هم معلومه شوه.چه دے اهل کتاب وو. نوځکه د پخوانو کتابونو نه د نبی ﷺ د حالاتو نه واقف وو.نوځکه د زړه خبره اوس په ژبه باندے راخی.اودا هم مقصد دے.چه په دے سوال او جواب سره د ملك نورو کسانو ته د نبی ﷺ صداقت او د نبوت د دعوے صداقت ښکاره شی.اوپه خپله د هرقل دپاره د ایمان اعلان کولو لاره همواره شی.

**قوله**:وَسَأَلْتُكَ أَشْرَافُ النَّاسِ اتَّبَعُوهُ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ فَذَكَرْتَ أَنَّ ضُعَفَاءَهُمُ اتَّبَعُوهُ وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ:
دا د سوالونو په ترتیب کښې څلورم سوال دے.اودلته په پنځم نمبردے.یعنی ما ستا نه تپوس کړے وو.چه لوئے خلق دده تابعداری کوی.که کمزوری او ضعیفان؟ نو تا اوخودل.چه کمزورے د ده تابعداری کوی.او حقیقت دا دے.چه د انبیاؤ او مرسلینو تابعدار اکثر کمزوری خلق وی.ددے نه هم د دوی د نبوت تصدیق کیږی.

(١) فتح البارى(٣٦/١)_

مراد دا دے چه اول اول ضعيف او كمزورى خلق چه سپك گنړلى شى.هغوى د حضرات انبياؤ په دعوت باندے لبيك وائى.گنى په آخر كښے خو چه الله تعالى بو پيغمبرته ترقى وركړى.نوټول دهغه تابعدار جوړ شى.نبى اكرم ﷺ چه كله د دعوت او تبليغ كار شروع كړلو.نوعام طور كمزورے او ضعيفان خلق د دوى په دعوت په اسلام كښے داخل شول.اوبيا په آخر كښے ټول معزز او لوئے لوئے خلق داخل شول.

دهرقل قول چه «وهم أتباع الرسل» ددے مطلب دا نه دے.چه په اول كښے صرف كمزورى خلق وى.اوهيڅ څوك معزز د دوى تابعدارى نه كوى.بلكه مطلب دا دے.چه عام طور ضعفاء د دوى تابعدارى كوى.گنى نبى كريم ﷺ چه كله د تبليغ كار شروع كړلو.نوحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه او حضرت حمزه رضي الله عنه وغيره هم مسلمانان شوى وو.

**قوله**: وَسَأَلْتُكَ أَيَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ فَذَكَرْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ: دا د سوالونو په ترتيب كښے پنځم سوال دے.او په تبصره كښے په شپږم نمبر كښے ذكر دے.
ما ستانه تپوس كړے وو.چه دوى زياتيږى كه كميږى.نوتا اووئيل.چه هغوى زياتيږى

**قوله**: وَكَذَلِكَ أَمْرُ الْإِيمَانِ حَتَّى يَتِمَّ: دايمان هم دا شان وى.تردے چه پايه تكميل ته اورسى.يعنى هغه ترقى كوى.او د هغے دائره وسيع كيږى.په دے كښے خلق ډلے ډلے داخليږى.او ددوى ډله زياتيږى.

**قوله**: وَسَأَلْتُكَ أَيَرْتَدُّ أَحَدٌ سَخْطَةً لِدِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ فَذَكَرْتَ أَنْ لَا: دا د سوالونو په ترتيب كښے په شپږم نمبر دے.اودلته په اووم نمبر دے.يعنى ما تپوس كړے وو.چه په دوى كښے څوك په اسلام كښے د داخليدو نه پس خپل دين نه د ناخوښئ اود بد گنړلو د وجے مرتد كيږى.نوتا جواب راكړلو.چه نه.څوك نه اوړى.

**قوله**: وَكَذَلِكَ الْإِيمَانُ حِينَ تُخَالِطُ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوبَ: اودايمان هم دا شان وى.چه كله د ايمان حلاوت زړه ته وركوز شى.اود هغے انشراح په زړه كښے دننه تمام شى.نوبيا هيڅ كس نه مرتد كيږى.مرتد كيږى هغه كس چه د اسلام په باره كښے ورته انشراح نه وى حاصل شوے.اودهغه په زړه كښے د هغے حلاوت نه وى گډ شوے.
بشاشت په اصل كښے هغه حالت ته وائى.دكوم چه د راتلونكى ميلمه سره په ملاقات كولو د انسان په مخ باندے ښكاره كيږى.اودلته د زړه انشراح او اطمينان مراد دے.(١)
دلته په ..بشاشة.. كښے دوه روايتونه دى.
يو روايت خو د ..بشاشة..دے.يعنى ..بشاشة.. مضاف دے.اومضاف اليه ضمير دے.كوم چه..ايمان..طرف ته راجع دے.په دے صورت كښے ..بشاشة.. د .. تخالط .. فاعل دے.او..القلوب.. مفعول دے.

---

(١) عمدة القارى(١/٨٦)_

دويم روايت «حين يخالط بشاشة القلوب» دے يعنى ..بشاشة.. مضاف دے او ..القلوب.. مضاف اليه دے په دے صورت كښے ضمير نښته په ..يخالط.. كښے ضمير دفاعل ..ايمان.. طرف ته راجع دے او ..بشاشة القلوب.. مفعول دے.(١)

**قوله** وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَذَكَرْتَ أَنْ لَا: دا دسوالونو په ترتيب كښے په اتم نمبر دے اوپه تبصره كښے هم په اتم نمبر دے . يعنى هرقل اوونيل چه ما ستانه تپوس كړے وو چه هغه وعده اوكړى.نوهغه ماتوى هم؟ نو تابيان اوكړلو چه نه.هغه معاهده نه ماتوى.

**قوله** وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ لَا تَغْدِرُ: حضرات پيغمبران عليهم الصلاة والسلام بے وفائى نه كوى.چه معاهده اوكړى.نو هغه نه ماتوى.څكه چه عهد هغه كس ماتوى چه د دنيا د حصے طالب وى.دهغه مقصود دنيا وى.نودخپل دے مقصد دپاره هغه هره لاره اختيارروى كه هغه دا اوګورى.چه عهد ماتولو كښے دنياوى فائده شته.نود عهد ماتولو پرواه نه كوى او د چا مقصود چه دين اود الله تعالى رضا حاصلول وى.هغه د عهد كولو نه پس هغه پوره كوى.(٢)

**قوله** وَسَأَلْتُكَ بِمَا يَأْمُرُكُمْ فَذَكَرْتَ أَنَّهُ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَيَنْهَاكُمْ عَنْ عِبَادَةِ الْأَوْثَانِ وَيَأْمُرُكُمْ بِالصَّلَاةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ: دا د سوالونو په ترتيب كښے په يوولسم نمبر دے.اودلته په نهم نمبر دے.هرقل اوونيل.چه ماستا نه تپوس اوكړلو.چه هغه تاسو ته دكومے خبرے حكم كوى.نوتا اوونيل چه هغه تاسو ته حكم دركوى.چه دالله تعالى عبادت كوئ.اودهغه سره څوك شريك مه جوړوئ.اودا چه هغه تاسو د بت پرستئ نه منع كوى.اوتاسو ته د مونځ ريښتيا ونيلواو پاكبازئ حكم كوى.
دلته سوال كيږى.چه ابوسفيان خو په خپل جواب كښے د ..عبادة الاوثان.. ذكر خو نه وو كړے.نو بيا هرقل د ..نهى عن عبادة الاوثان.. ذكر څنګه اوكړلو؟
ددے جواب دا دے.چه په اصل كښے ابوسفيان «اعبدوا الله ولا تشركوا به شيأ واتركوا مايقول آباءكم» ونيلى وو.په دے جملو سره د ..عبادة الاوثان.. نه نهى معلوميدله.نوځكه ئے ددے ذكر اوكړلو.
بيا دلته هرقل د ..صلاة. صدق.او عفاف.. ذكر اوكړلو.خود ..صله.. ذكر ئے اونكړلو.دغه شان د هرقل په تبصرو كښے هم هغه ترتيب موجود نه دے كوم چه په سوالونو كښے وو.دغه شان دوه سوالونه يعنى سوال نمبر نهم او سوال نمبر لسم هم نشته
ددے ټولواشكالاتو اصل جواب هم دا دے چه په حقيقت كښے دلته راوى تصرف كړے دے. اود اختصار نه ئے كاراخستے دے.په بخارى كښے وړاندے په كتاب الجهاد كښے هم دا حديث دهرقل ذكر دے.په هغے كښے په تپوسونو اودهغے په تبصرو كښے ترتيب هم شته.دغه شان هغه دواړه تپوسونه هم هلته مذكور دى كوم چه دلته نه دى ذكر

---

(١) فتح البارى(١/٣٦، ٣٧)_

(٢) فتح البارى(١/٣٧)_

وترکومې پورې چه د ..صله.. دعدم ذکر تعلق دے نواصل جواب هم دا دے چه دا د راوي تصرف دے خودا هم وئیلی شي چه دا په ..صدق وعفاف.. کښې داخل ده

**قوله** فَإِنْ كَانَ مَا تَقُولُ حَقًّا فَسَيَمْلِكُ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ لَمْ أَكُنْ أَظُنُّ أَنَّهُ مِنْكُمْ: یعنې څه چه تا اوخودل که دا رښتیا وي نوهغه به ددے ځائے مالك شي په کوم ځائے کښې چه زما دا دواړه قدمونه دي زما دا یقین وو چه هغه بنکاره کیدونکے دے خودا ګمان مې نه وو چه هغه به په تاسو کښې وي

هم دا روایت په کتاب الجهاد کښې راځي په هغې کښې هرقل په صفاتو باندے تبصره کوي او وائي ((وهذا صفة نبي)) چه دا د نبي صفات دي اود کتاب التفسیر په روایت کښې دي ((إن يك ما تقول فيه حقاً فإنه نبي))

دلته یوسوال دا کیږي چه د نبي ﷺ کوم صفات دلته بیان شوي دي دے ته د نبوت علامات خو بیشکه وئیلی شي خودا د نبوت دلائل قطعیه خو نه دي نو بیا د هرقل په یقین سره دا وئیل چه ..هغه به زما ددے ځائے مالك شي.. اودا چه هغه ..پیغمبر دے.. دا به څنګه ټیك شي؟په علاماتو خودا سے حکم نشي لګولے

د دےجواب دا دے چه په اصل کښې هرقل په اهل کتابو کښې وو نوځکه هغه د نبي ﷺ په باره کښې په سابقه کتابونو کښې پیشنګوئیانې پیژندلے ددغه پیشنګوئیانو په رڼرا کښې کله دا علامات د هغه مخے ته راغلل نو دهغه یقین راغلو نوپه دے باندے ئے په قطعیت سره حکم اولګولو

وړاندے وائي چه ما پیژندل چه هغه به تشریف راوړي خودا راته معلومه نه وه چه هغه به په تاسو کښې وي دهرقل خیال دا وو چه هغه به په څه لوئے قوم کښې وي چه هغه متمدن او ترقي یافته وي دهغه دا توقع نه وه چه هغه به د عربو په غیرمتمدن او جاهل قوم کښې تشریف راوړي دا داسے ده لکه چه مشرکانو وئیل ﴿لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾ (الزخرف: ۳۱)_

دلته دا سوال کیږي چه په کتب سابقو کښې خو تصریح وه چه اوس کوم پیغمبر راځي هغه به په بني اسماعیل کښې وي او بني اسماعیل خو هم عربیان دي نوته اووایه چه هرقل ته دا خبره یاده نه وه اویا دنبي ﷺ د خبرونومعلومیدو نه پس هغه بدحواسه شو اوهغه سره د خپل حکومت دپاره ویره پیدا شوه نوځکه هغه غلطه خبره اوکړله بلکه په بعضے روایاتو کښې دي چه کله ..خط مبارك اولوستے شو نو هغه د خولې نه ډك شو اودهغه په تندي باندے خوله راغله.. (۱)هغه سره ویره شوه چه اوس به زما حکومت باقي پاتے نشي ددے ویرے او بدحواسۍ په حالت کښې هغه دا غلطه خبره اوکړله

---

(۱) کما في فتح الباري (۱/۳۷) وعمدة القاري (۱/۸۸)_

**قوله فَلَوْأَنِّي أَعْلَمُ أَنِّي أَخْلُصُ إِلَيْهِ لَتَجَشَّمْتُ لِقَاءَهُ وَلَوْكُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمِهِ:** که ماته دا یقین وے چه زه به د هغه خدمت عالی ته اورسم او په لاره کښې به زه قتل نکړے شم نوما به د هغه د ملاقات دپاره ضرور تکلیف برداشت کړے وو او که زه هغه سره وم نو د هغه پښے مبارکے به مې وینځلے وے

د دے نه معلومه شوه چه د هرقل دا یقین وو چه که دے د خپل سلطنت نه اوځی او د نبی ﷺ په خدمت کښې د حاضریدو اراده اوکړی نو د هغه قوم به هغه ژوندے پرے نږدی خو هغه غور اوفکر اونکړلو که هغه د رسول الله ﷺ په خط مبارك باندے غور کړے وو او د نبی ﷺ د ارشاد عالی ((اسلم تسلم)) په عموم ئے غور کړے وو نو یقیناً د نبی ﷺ په خدمت کښې به هم حاضر شوے وو او سالم به هم پاتے شوے وو او د دنیا او آخرت دواړو سلامتیا به ورته حاصل شوے وه.

د وېمه جمله ((ولوكنت عنده لغسلت عن قدميه)) نه معلومیږی چه هرقل چه نبی ﷺ ته د رسیدلو تمنا ئے کوله د هغه مقصد څه دنیوی جاه او مرتبه نه وه بلکه د هغه مقصد د نبی ﷺ وړاندے په خادمانه انداز کښې حاضریدل وو او د دے نه دا هم معلومیږی چه هرقل ته د نبی ﷺ د حقانیت یقین شوے وو.

**دهرقل اسلام** په دے حقانیت باندے د یقین کولو نه پس هم آیا هغه مسلمان شو او که نه؟ حافظ ابن عبدالبر رحمہ اللہ خو لیکی دی چه هغه مسلمان شوے وو (۱)

خو لکه څنګه چه مونږ وړاندے ذکر کړی دی چه په دلائلو سره دا خبره ثابته ده چه هغه مسلمان شوے نه وو هغه چه کله د خپل قوم نفرت اولیدلو نو وے وئیل ((انی قلت مقالتی آنفاً اختبربها شدتكم على دينكم فقد رأيت)) (۲) یعنی ما خو په تاسو امتحان کونو چه تاسو په خپل دین باندے څومره کلك ئے په دے باندے د هغه قوم هغه ته خپل مخونه ښه کړل بیا په ۸ھ کښې په جنګ موته کښې د ده د مسلمانانو خلاف لښکر راوستے وو (۳) او بیا په غزوه تبوك کښې د ده د جنګ تیارے کړے وو (۴) رسول الله ﷺ هغه ته د اسلام دعوت ورکړلو او هغه هم قبولو ته نزدے شوے وو خو مسلمان شوے نه وو په مسند احمد کښې دی چه هغه اووئیل ((انی مسلم)) په دے باندے رسول الله ﷺ اوفرمائیل ((كذب بل هو على نصرانيته)) (۵)

(۱) هغوی د حضرت دحیه کلبی رضی اللہ عنہ په حالاتو کښې لیکی ((وهوالذی بعثه رسول الله ﷺ الی قیصر فی الهدنة وذلك فی سنة ست من الهجرة فآمن به قیصر وأبت بطارقته أن تؤمن)) (الاستيعاب (۱/ ۴۷۳))۔
(۲) دا جمله د حدیث مبحوث عنه په آخر کښې راځی۔
(۳) البداية والنهاية (۴/ ۲۴۱، ۲۵۳) غزوة موته)۔
(۴) الكامل لابن الأثير (۲/ ۱۸۹) ذكر غزوة تبوك)۔
(۵) فتح البارى (۱/ ۳۷)۔

دے دلائلو په رنړا کښے د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله قول ((فآمن به)) معنی دا کیدے شی چه ((أظهر التصدیق)) یعنی هغه د نبی ﷺ تصدیق اوکړلو اودهغه په زړه کښے د نبی ﷺ حقانیت کیناستلو خو په دے باندے هغه قائم پاتے نشو .اونه ئے د هغے په مقتضا باندے عمل اوکړلو لکه چه د اسلام طرف ته ئے صرف خپل رجحان ښکاره کړلو .هغه د خپل حکومت بچ کولو فکر اوکړلو .اوفانی دنیا ته ئے په باقی پاتے کیدونکے آخرت باندے ترجیح ورکړله (۱) والله اعلم.

**قوله ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي بَعَثَ بِهِ دِحْيَةُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى:** بیا هغه د نبی کریم ﷺ خط مبارك راوغوښتلو .کوم چه نبی ﷺ د حضرت دحیه رضی الله عنه په واسطه عظیم بصری ته او بیا عظیم بصری هرقل ته رالیږلے وو.

**دحیه رضی الله عنه** حضرت دحیه بن خلیفه بن فضالة بن زید الکلبی رحمه الله قدیم الاسلام وو.(۲) دغزوه بدر نه سوا په باقی ټولو غزاګانو کښے د نبی ﷺ سره شریك شوے وو.(۳)

د حضرت معاویه رضی الله عنه ترخلافته پورے ژوندے وو (۴)

دے ډیر حسین اوښکلے وو.تردے چه په روایاتو کښے راځی.چه کله دے د مدینے کوڅو ته راووتلو.نوښځو به د درواوز وغیره نه سرونه راویستل اوکتل به ئے ورته.(۵) نو دے به په پرده کښے راوتلو.

وړاندے دا خبره تیره شوے ده.چه حضرت جبریل علیه السلام چه به عام طور په انسانی شکل کښے راتلو.نود دوی په صورت کښے به راتلو.(۶)

په حضرت جبریل آمین او حضرت دحیه رضی الله عنه کښے مناسبت دا دے.چه فرشتے حسن صورت خوښوی.هغوی چه کله انسانی صورت اختیاروی.نود ښکلی سړی شکل اختیاروی.په حدیث جبریل علیه السلام کښے تاسو لوستی دی.((إذ طلع علینا رجل شدید بیاض الثیاب، وشدید سواد الشعر)) (٭)چه یوسړے راښکاره شو.دهغه جامے ډیرے سپینے وے.او ویخته ئے تك تور وو.دا ټولے خبرے په حسن باندے دلالت کوی.نوځکه حضرت جبریل علیه السلام دا ښکلے صورت اختیار کړلو.

---

(۱) پورتنئ حواله)_

(۲) طبقات ابن سعد(۴/۲۵۱) دحیه بن خلیفة)_

(۳) قاله ابن سعد فی الطبقات (۴/۲۵۱) وقال الحافظ فی الإصابة (۱/۴۷۳. ۴۷۴) أول مشاهده الخندق،وقیل أحد ولم یشهد بدرا..وقد شهد دحیة الیرموک)_

(۴) طبقات ابن سعد(۴/۲۵۰)_

(۵) الإصابة(۱/۴۷۳)_

(۶) طبقات ابن سعد(۳۴/۲۵۰)_

(٭) انظر لحدیث جبریل علیه السلام الصحیح لمسلم .فاتحة کتاب الإیمان)_

دے نه علاوه دا نکته هم کیدے شی چه الله تعالی حضرت جبریل ﷺ خپل سفیر جوړ کړلو. او نبی ﷺ ته ئے رالیږلو او رسول الله ﷺ حضرت دحیه ﷺ د دنیا دټولو نه لوئے بادشاه ته خپل سفیر جوړ کړلو چه دحضرت جبریل ﷺ سره مشابه وو. اوهغه سره مناسبت لرونکے وو.

**فائده** په ،،دحیه،، کښے په دال باندے کسره او فتحه دواړه صورتونه ټیك دی. ددے معنی داهل یمن په ژبه کښے ،،رئیس،، ده.(١)

**قوله: عظیم بُصریٰ:** د دے نه مراد حارث بن ابی شمرغسانی دے.(٢)

نبی کریم ﷺ چه کله حضرت دحلیه کلبی ﷺ هرقل ته اولیږلو نوبراه راست ئے ورته نه وو لیږلے بلکه د بصری دگورنر حارث بن ابی شمر په واسطه ئے ورته لیږلے وو. ځکه چه په شاهی آدابو کښے دا خبره وه. چه هغوی ته به براه راست پیغام نشو لیږلے. د بادشاهانو دربار ته به رسیدل درجه په درجه کیدل. اوهیڅ څیز به د واسطے نه بغیر نشو قبلولے. نوځکه نبی کریم ﷺ دعوت نامه د ،،عظیم بصری،، په واسطه اولیږله.(٣)

**بصری** بصری د باء په ضمه او الف مقصوره سره دے. دا په شام کښے د حوران ښار یوه علاقه ده. حضرت خالد بن ولید ﷺ چه کله د عراق نه شام ته دهغه مسلمانانو د مدد دپاره راغلو. کوم چه دلته په جهاد کښے مصروف وو. نوپه هغه وخت کښے مسلمانان په دے ځنے کښے وو. د هغه ځائے خلق په صلح باندے مجبور کړے شو. او په دے طریقه په ١٣ھ کښے د حوران په ټول ښارد مسلمانانو قبضه راغله. د شام په علاقو کښے د مسلمانانو په لاس فتح شوو ځایونو کښے دا د ټولو نه اولنے ښار دے.(٤)

نبی کریم ﷺ د نبوت نه وړاندے دلته ته دوه ځله تشریف وړے وو.(٥) یو ځل د دولس کالو په عمر کښے د خپل تره سره شام ته د تجارتی سفر په موقع. هم په دے مقام کښے بحیرا راهب نبی ﷺ لیدلے وو. او د نبی ﷺ تره ئے په تاکید سره د حفاظت دپاره د واپس کولو ونیلی وو.(٦) او په دویم ځل د پنځه ویشتو کالو په عمرکښے نبی ﷺ د حضرت خدیجه ﷺ تجارتی سامان اوړے وو. بصری ته لاړو او قیام ئے اوکړلو. اوهلته د ،،نسطورا،، نوم راهب سره ئے ملاقات اوشو.(٧)

---

(١) فتح الباری(١/٣٧، ٣٨)_
(٢) فتح الباری(١/٣٨)_
(٣) فضل الباری(١/٢٢٦)_
(٤) د تفصیل دپاره اوګورئ معجم البلدان (١/٤٤١) او تهذیب الأسماء واللغات (٣/٣٧)_
(٥) تهذیب الأسماء واللغات(٣/٣٧)_
(٦) طبقات ابن سعد (١/١٢١) ذکرابی طالب وعمه رسول الله ﷺ إلیه وخروجه معه إلى الشام فی المرة الأولى)_
(٧) طبقات ابن سعد(١/١٢٩)_

**قوله** فَدَفَعَهُ إِلَى هِرَقْلَ: بیا هغه خط هرقل ته پیش کړلو. یعنی کله چه هرقل د نبی ﷺ د حالاتو معلوملو نه فارغ شو اودا ورته معلومه شوه چه دا خط اهم دے او د لوستلو قابل دے نواوس ئے خط هغه ته پیش کړے شو.

**قوله** فَقَرَأَهُ: هرقل هغه اولوستلو. دد ے نه مراد یا خو دا دے چه په خپله هغه خط اولوستلو اودا هم ممکن ده چه ترجمان خط لوستلے وی او ورته ئے ونیلی وی. لکه څنګه چه د کتاب الجهاد په روایت کښے دی.. فقرئ.. چونکه دهرقل په حکم سره لوستلے شوے وو. خکه ئے هغه طرف ته نسبت اوشو.

فَإِذَا فِيهِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ أَسْلِمْ تَسْلَمْ يُؤْتِكَ اللهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ فَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَإِنَّ عَلَيْكَ إِثْمَ الْأَرِيسِيِّينَ ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾

نو په هغے کښے لیکلی شوی وو. ((بسم الله الرحمن الرحیم)) دالله تعالی بنده اودهغه د رسول محمد (ﷺ) د طرفه د روم سردار هرقل په نوم. په هغه کس دے سلامتیا وی چه د هدایت تابعداری کوی. زه تاته د اسلام دعوت درکوم. اسلام قبول کړه. نو سالم به پاتے شے. اوالله تعالی به تاته دوچنده ثواب درکړی. اوکه تا مخ واړولو. نود قوم سزا به هم په تا وی. اے اهل کتابو! یوے داسے خبرے طرف ته راشئ کومه چه زمونږ او ستاسو په مینځ کښے برابر ده. چه مونږ دالله تعالی نه سوا د بل چا عبادت نه کوو. دهغه سره څوك نه شریك کوو. اونه به دالله تعالی نه سوا په مونږ کښے بعضے خلق بعضے نور خدایان جوړوی. بیا که هغوی اعراض اوکړی نوورته اووایه. ګواه شئ چه مونږ د یو الله منونکی یو.

دلته تاسو ګورئ چه نبی ﷺ خپل خط د بسم الله الخ نه شروع کړلو. د خطونو په باره کښے د دوی عادت هم دا وو. چه.. بسم الله الخ.. نه به ئے شروع کوله. (١)

**قوله** مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ: دلته نبی کریم ﷺ خپل عبدیت او رسالت دواړه ذکر کړل اوعبدیت ئے په رسالت باندے مقدم کړلو. خکه چه اصل څیز خو عبدیت دے. الله تعالی مخلوق د عبادت دپاره پیدا کړے دے چونکه دا د تخلیق اصل مقصود دے. نوچه په دے کښے څوك څومره زیات وی. هغه هومره به هغه اوچت او پورته وی. انبیاء علیهم الصلاة والسلام ته د نبوت او رسالت په وجه د الله تعالی یو خاص معرفت حاصل وی. چه غیر نبی ته په هیڅ صورت کښے نشی حاصلیدے خکه ددے حضراتو مقام عبدیت د نورو خلقو دمقام عبدیت نه ممتاز وی. هغوی په عبدیت او بندګئ کښے د ټولو نه

(١) د دے ټولو خطونه هم داسے منقول دی اوګورئ (زادالمعاد(٦٨٨/٣) ذکرهدیه ﷺ فی مکاتباته علی الملوک وغیرهم)_

وړاندے او د ټولو نه اوچت وی.بیا سرکاردوعالم ﷺ دالله تعالی آخری نبی او د ټولو سردار دے.نوځکه دا یقینی خبره ده.چه د نبی ﷺ عبدیت د ټولو نه اوچت او وړاندے دے.بیا نبی ﷺ د ..رسول.. لفظ ذکر کړلو.ځکه چه دوی د الله تعالی رسول دے.اوهم دا یو داسے وصف دے.چه ددے په وجه دوی ته په ټول مخلوق باندے امتیاز ورکړے شوے دے.دوی دالله تعالی رالیږلے شوے دے.ددے رالیږلو د وجے دوی دعوتی خطونه لیکل.او خلقو ته ئے د ایمان دعوت ورکولو.

بهرحال د ..عبد.. او د ..رسول.. د لفظ یوځائے ذکرکولو نه یوه خبره دا معلومیږی.چه حضرات رسولان که څومره لوئے وی.خوهغوی د خپلے بندګئ اوعبدیت اقرار کوی.

په دے کښے اشارةً د نصاروٰ تردید اوشو.چه دوی حضرت عیسی ﷺ د مقام عبدیت او رسالت نه پورته کړے دے.اومقام الوهیت ته ئے رسولے دے.([1])

**په خط کښې به د کاتب نوم وړاندې لیکلې شی که دمکتوب الیه** دلته کښے دا خبره هم زده کړئ.چه نبی ﷺ د خط شروع دخپل نوم نه اوکړله.په دے کښے اختلاف دے.چه د خط ابتداء به د کاتب دنوم نه کیږی که د مکتوب الیه د نوم نه؟جمهورعالمان ﷺ فرمائی.چه د کاتب دنوم نه به کیږی .ابوجعفر نحاس رحمه الله په دے باندے د صحابه کرام رضی الله عنهم اجماع نقل کړے ده. ([2]) غالباً د هغوی مراد به داکثرو صحابو رضی الله عنهم اجماع وی.ګنی حقیقت دا دے.چه په دے مسئله کښے د صحابو رضی الله عنهم هم اختلاف دے.او د بعضے صحابو رضی الله عنهم نه د مکتوب الیه د نوم ابتداء منقول ده.

امام بخاری رحمه الله په الادب المفرد کښے روایت نقل کړے دے.چه حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه حضرت معاویه بن سفیان رضی الله عنه ته خط اولیکلو.دهغے شروع هغه داسے کړے وه.((من عبدالله معاویة أمیرالمؤمنین لزید بن ثابت سلام علیك))([3])دغه شان امام بخاری رحمه الله په ..الادب المفرد.. کښے دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه هم دا سند منقول کړے دے.([4])

دغه شان په بخاری شریف کښے دی.چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عبدالملك بن مروان ته خط لیکلے وو.((إلی عبدالله عبدالملك أمیرالمؤمنین..))([5])

محمدبن حنفیه او ایوب سختیانی رحمهما الله فرمائی.چه دمکتوب الیه دنوم نه په شروع کولو کښے څه قباحت نشته.([6])

---

(۱) شرح کرمانی(۶۱/۱)_

(۲) فتح الباری(۳۸/۱)_

(۳) فتح الباری(۴۸/۱۱) کتاب الإستیذان باب بمن یبدأ فی الکتاب)_

(۴) پورتنئ حواله)_

(۵) صحیح بخاری(۱۰۶۹/۲) کتاب الأحکام باب کیف یبایع الإمام الناس)_

(۶) عمدة القاری(۹۹/۱)_

امام طبراني په خپل ،معجم، كښے په يوضعيف سند سره دا نقل كړى دى.چه نبى اكرم ﷺ حضرت خالد او حضرت على رضي الله عنهما يمن ته اوليږل.دے دواړو نبى ﷺ ته خط اوليكلو. حضرت على رضي الله عنه د نبى ﷺ نوم وړاندے اوليكلو اوحضرت خالد رضي الله عنه خپل نوم وړاندے اوليكلو.په دوى باندے څه انكار اونكړے شو.(١)

خودا يوڅو واقعات دى.گنى اصل سنت هم دا دے.چه كاتب به خپل نوم اول ليكى.ځكه چه د نبى ﷺ نه څومره خطونه منقول دى.نوهغه ټول د دوى د اسم گرامى نه شروع دى.

ددے نه علاوه په ابوداود كښے دحضرت علاء بن الخضرمى رضي الله عنه نه منقول دى.چه دوى به كله هم نبى ﷺ ته خط ليكلو.نودخپل نوم نه به ئے شروع كوله.(٢)

حضرت سلمان فارسى رضي الله عنه فرمائى.((ماكان أحد أعظم حرمة من رسول الله ﷺ فكان أصحابه إذا كتبوا إليه كتاباً كتبوا،من فلان إلى محمد رسول الله ﷺ))(٣)

**هرقل عظيم الروم** نبى اكرم ﷺ عظيم الروم اوفرمائيل..ملك الروم.. ئے اونه فرمائيل. ځكه چه بادشاه خو هغه دے.كوم چه نبى اكرم ﷺ يا ددوى نائبين اوخلفاء بادشاه جوړ كړى .د كافرانو چه څوك بادشاه جوړ شى.نود هغه بادشاهى د ضرورت په بناء باندے وى.

بيا نبى ﷺ دا وصف د تاليف قلب دپاره بيان كړلو.ځكه چه په دعوت او تبليغ كښے په كلام كښے د نرمئ اختيارولو حكم دے.الله تعالى فرمائى.﴿أدْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾ (٤)او حضرت موسى اوهارون عليهما السلام ته فرمائى.﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا﴾ (٥)

چونكه هرقل دروميانو په نظر كښے معزز وو.نوځكه نبى اكرم ﷺ دهغه دپاره د عظيم لفظ اوليكلو.هم دا خبره د دوى د سيرت مطابق وه.چه سخت كلام نه وى.او دشمن سره هم ډيره نرمه خبره اختيار كړے شى. په دےكښے دا فائده وى.كه دشمن دوستى نه كوى.نوكم ازكم په دشمنئ كښے تخفيف راځى.گورنرمسټن چه كله دارالعلوم ديوبند ته راغلو.نوانتظاميه حضرت شاه صاحب ته د استقباليه كلماتو ليكلو دپاره اووئيل.نوحضرت شاه رحمه الله دهغه دپاره ددے حديث پيش نظر د ..عظيم.. لفظ استعمال كړلو.حالانكه هغه د كانپور په جمات باندے گولئ چلولے وے.شاه صاحب رحمه الله به فرمائيل.چه د دے حديث په وجه زما زړه مطمئن وو.

د مسند بزار په حديث كښے دى.چه كله دا خط اولوستلے شو.نودهرقل وراره د خفگان اظهار اوكړلو.اووے وئيل.چه دا خط دے نشى لوستلے.قيصر د وحے پوښتنه اوكړله.نوهغه اووئيل.

(١) مجمع الزوائد(٩٨/٨) كتاب الأدب باب فى كتابة الكتب وختمها_
(٢) سنن ابى داود كتاب الأدب باب فى الرجل يبدأ بنفسه فى الكتاب رقم.(٥١٣٤) و(٥١٣٥)_
(٣) مجمع الزوائد(٩٨/٨) كتاب الأدب باب فى كتابة الكتب وختمها)_
(٤) النحل:١٢٥)_
(٥) طه:٤٤)_

چه ده دخپل نوم نه شروع کړې ده.او په دې کښې ئې تاسو ته د ..ملك الروم.. په ځائې ,,عظيم الروم.. ونيلې دې.په دې باندې قيصر اوونيل نه دا خط به ضرور لوستلې شي.(١)

علامه قسطلاني رحمه الله د مدائني رحمه الله په حواله سره نقل کړې دې.چه دهرقل ورارهٔ خط رانبکلو.اودهرقل په تپوس کولو ئې اوونيل.چه ده خپل نوم وړاندې ليکلې دې .او تاته ئې ..عظيم الروم.. ونيلې دې.په دې باندې هغه اورتل او وې ونيل:((إنك لضعيف الرأى،أتريد أن ارمى بكتاب قبل أن أعلم ما فيه،لئن كان رسول الله إنه لأحق أن يبدأ بنفسه،ولقد صدق،أنا صاحب الروم،والله مالكى ومالكه))(٢)يعني ستا رائې ډيره کمزورې ده.آيا ته دا غواړې.چه زه د خط په مضمون باندې د پوهيدلو نه وړاندې دا اوغورځو؟که هغه دالله پيغمبر وي.نوهغه ته دخپل نوم نه د شروع کولو حق شته.اوهغه ټيك فرمائيلې دي.چه زه ..صاحب الروم.. يم.خکه چه زمونږ دټولو مالك خو الله تعالى دې.

**قوله:** سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى:دا عبارت دفکر وړ دې.دهرقل متوجه کول وو.که ته په حقيقت کښې دالله تعالى دهدايت پيروکار ئې.نو بيشکه زمونږ د طرفه ستا دپاره د سلامتيا دعا ده.اوکه ته د هدايت خداوندي تابعدار نه دې.نوبيا دا دعا ستا دپاره نه دهٔ.هرقل خپل خان اهل کتاب او اهل حق گڼړلو.خو اوس هغه ته دا هم معلومه شوه.چه محمد رسول الله ﷺ مبعوث شوې دې.اوهغه د حالاتو په تحقيق سره په خپله هم دې نتيجه ته رسيدلې وو.چه دوى يقيناً خاتم الانبياء والمرسلين دي.نواوس چه ترڅو پورې دې د دوى تابعداري اونکړي.نوترهغه وخته پورې دې د هدايت الهي تابعدار نشي جوړيدې.که دې دا غواړي.چه د رسول اکرم ﷺ دا دعا دې زما په حق کښې شي.نودې به د نبي ﷺ د تابعدارئ لمن اونيسي.اوکه دې دهغه لمن راؤ نه نيسي.نوبيا دې متبع د هدايت نه دې اودا دعا دده دپاره نه ده.

**آيا کافرانو ته سلام کولې شي؟** دا مسئله مختلف فيه ده.امام شافعي رحمه الله اواکثرعالمان رحمهم الله فرمائي.چه کافرته ابتداءً سلام کول جائز نه دي.(٣) امام طحاوي رحمه الله د احنافو رحمهم الله د درې عالمانو رحمهم الله امام ابوحنيفه.امام ابويوسف او امام محمد رحمهم الله نه هم دا نقل کړي دي.(٤)

(١)كشف الأستار عن زوائد البزار(١١٧/٣) ذكرنبينا محمد رسول الله ﷺ باب فيما كان عند أهل الكتاب من علامات نبوته..)_

(٢)شرح قسطلاني(٧٩/١)_

(٣) عمدة القاري(٩٩/١) وشرح نووى على صحيح مسلم (٢١٤/٢) كتاب السلام باب النهى عن إبتداء أهل الكتاب بالسلام وكيفية الرد عليهم)_

(٤) شرح معاني الآثار(٣٣٢/٢) كتاب الكراهة باب السلام على أهل الكتاب)_

بعضے عالمان ﷭ فرمائی چه کافر ته مطلقاً سلام کول جائز دی.(١)خودا قول ضعیف دے.
خکه چه د رسول الله ﷺ ښکاره ارشاد دے.((لاتبدؤا الیهود ولا النصاری بالسلام))(٢)
صاحب د درمختار لیکلی دی.د ضرورت اوحاجت په وخت کښے د سلام کولو ګنجائش شته.(٣) د بعضے سلفو رائے دا ده.چه په تالیف قلب کښے دغرض دپاره ابتداء سلام مباح دے.(٤)

صاحب د ((شرعة الإسلام)) فرمائی.که کافر ته د سلام کولو ضرورت پیښ شی.نو((السلام علی من اتبع الهدی)) دے وائی.(٥)
امام محمد رحمه الله فرمائی.چه یهودی یا نصرانی ته خط لیکل وی.نود نبی ﷺ په تابعداری کښے ((السلام علی من اتبع الهدی)) لیکل پکار دی.(٦)

**قوله: أَمَّـا بَعْـدُ:** د نبی کریم ﷺ نه دا کلمه په ډیرو روایاتو کښے راغلے ده.حافظ عبدالقادررهاوی رحمه الله په خپل کتاب((الأربعين المتباينة)) کښے په خطبه کښے دا د دوه دیرش صحابه کرامو ﷺ نه نقل کړے دے.(٧)
**په ,,امابعد،، دټولو نه وړاندې چا اطلاق کړې وو؟** په دے کښے اختلاف دے.چه لفظ د ,,اما بعد،، دټولو نه وړاندے چا استعمال کړے دے.
یوقول دا دے.چه ددے د ټولو نه اولنے قائل حضرت داود ﷺ دے.امام طبرانی رحمه الله په دے باره کښے دحضرت ابوموسی اشعری ﷺ نه یو مرفوع روایت نقل کړے دے.خودهغے په سند کښے ضعف دے.
دویم قول دا دے.چه ددے د ټولو نه اولنے استعمال کونکے حضرت یعقوب ﷺ دے.دا روایت امام دارقطنی په خپل کتاب ,,غرائب مالك،، کښے نقل کړے دے.
دریم قول دا دے.چه ددے د ټولو نه اولنے قائل يَعْرب بنُ قحطان دے.
څلورم قول دا دے.چه د دے دټولو نه اولنے قائل کعب بن لوئ دے.

---

(١) فأخرج الطبری عن طریق ابن عیینة قال:یجوز إبتداء الکافر بالسلام.لقوله تعالی: ﴿لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ﴾ (الممتحنة:٨)_ الایة وقول إبراهیم لأبیه .سلام علیک.. ونقل ذلک عن أبی ﷺ أیضاً انظر أوجز المسالک (١٠٨/١٥) ماجاء فی السلام علی الیهودی والنصرانی)_

(٢) صحیح مسلم (٢١٤/٢) کتاب السلام باب النهی عن إبتداء أهل الکتاب بالسلام و کیفیة الرد علیهم)_

(٣) درمختار مع ردالمحتار(٢٩٢/٥) کتاب الحضرو الإباحة)_

(۴) عمدة القاری(٩٩/١)_

(۵) فتاوی شامیه(٢٩٢/٥)_

(۶) پورتنئ حواله)_

(٧) فتح الباری(٤٠٦/٢)کتاب الجمعة باب من قال فی الخطبة بعدالثناء:أما بعد)_

پنځم قول دا دے چه د تولونه وړاندے سحبان بن وائل ددے استعمال کړے دے
شپږم قول د قس بن ساعده په باره کښے شوے دے چه هغه د تولو نه وړاندے دا لفظ استعمال کړے دے
اولنے قول زیات راجح دے والله اعلم (١)

**قوله** فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ: دا حدیث په کتاب الجهاد کښے هم راخي هلته او د مسلم په روایت کښے ((بداعیة الإسلام)) راغلی دی. (٢)

،،دعایة،، او ،،داعیة،، دواړه مصدر دی. د دعوت په معنی دی. (٣) او مطلب دا دے چه زه تاته د اسلام دعوت درکوم.

علامه عینی رحمه الله مصدر د مفعول په معنی کښے اخستے دے. او اف فت نے بیانیه ګرځولے دے. هغوی فرمائی. ((أدعوك بالدعوالذی هوالإسلام)) او فرمائی ..ب... د ..الی.. په معنی ده. نواوس به معنی دا شی. چه ((أدعوك إلی الإسلام)) (٤)

اوکه ..داعیة.. د اسم فاعل صیغه اوګرځولے شی. نوتقدیر د عبارت به دا شی ((أدعوك بـ الکلمة الداعیة إلی الإسلام)) اود کلمه نه به مراد د ((لاإله إلا الله محمد رسول الله)) ګواهی وی. (٥)

**قوله**: أَسْلِمْ تَسْلَمْ: دے جمله خپل وجازت او اختصار باوجود د دنیا او آخرت نیکئ اوخوبیان په خپله جولئ کښے راګیرے کړی دی. (٦) هرقل د نبی ﷺ په ارشاد کښے غور اونکړلو. نبی ﷺ ورته دکاملے سلامتیا ضمانت ورکولو. مطلب نے دا وو چه د اسلام قبلولو نه پس به تاته د دنیا او آخرت سلامتی ملاؤ شی. دے بے وقوفه دا اوګنړل که ما اسلام قبول کړلو. نوزما نه به حکومت واخستے شی. اواقتدار به مے د لاس نه لاړ شی. (٧)

دکتاب الجهاد په روایت کښے دی. ((أسلم تسلم وأسلم یؤتك الله أجرك مرتین)) په دے کښے د ..اسلم.. تکرار دے. (٨) په دے کښے خو به یا دا اوونیلی شی چه دا د تاکید دپاره دے او یا به دا اوونیلی شی. چه په اولنی ..اسلم.. سره د اسلام قبلولو مطالبه ده. او په دویم ..اسلم.. سره

---

(١) د تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری (٢/٤٠٤، ٤٠٥)_
(٢) صحیح مسلم (٢/٩٩) کتاب الجهاد باب کتب النبی ﷺ إلی هرقل ملك الشام یدعوه إلی الإسلام)_
(٣) النهایة لابن الأثیر (٢/١٢٢)_
(٤) عمدة القاری (١/٩٣) بیان الإعراب)_
(٥) فتح الباری (١/٣٨) وشرح نووی (٢/٩٨)_
(٦) ارشادالساری (١/٧٩)_
(٧) پورتنئ حواله)_
(٨) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب دعاء النبی ﷺ الناس إلی الإسلام والنبوة.. رقم (٢٩٤١)_

د دوام علی الاسلام مطالبه ده.(١)لکه چه په ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا﴾(٢) کښې.

**آیا اسلام او ,,مسلمان،، ددې امت دپاره خاص دې؟** په دے کښې اختلاف دے.چه اسلام د دین محمدی دپاره او مسلمان د امت محمدیه دپاره مخصوص دے.اوکه نورو ادیانو او امتونو ته هم شامل دے.علامه سیوطی رحمه الله په خپله رساله ((اتمام النعمة)) کښې خصوصیت ثابت کړے دے.اوپه دے باندےئې دیرش دلائل ذکر کړی دی.خوقرآن کریم حضرت ابراهیم علیه السلام ته ,,حنیفاً مسلماً،، او ﴿إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّهُ أَسْلِمْ قَالَ أَسْلَمْتُ﴾(٣) وائی.د یوسف علیه السلام دعا ده.﴿تَوَفَّنِي مُسْلِمًا﴾ حضرت سلیمان علیه السلام بلقیس ته وائی.﴿ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ﴾ دحضرت لوط علیه السلام متعلق دی.﴿غَيْرَ بَيْتٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ د حواریانو متعلق راغلی دی.﴿وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾

علامه سیوطی رحمه الله جواب ورکړے دے.چه د ذکر شوی اختصاص نه انبیاء علیهم السلام مستثنی دی.نودحضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت یوسف علیه السلام د آیتونو نه جواب اوشو.دغه شان دانبیاء علیهم السلام په کوروالہ باندے تبعاً د مسلمان اطلاق شوے دے.دحضرت لوط علیه السلام سره متعلق آیت نه جواب اوشو.سیوطی رحمه الله فرمائی.چه ما رساله اولیکله.اوفارغ شوم.اود اوده کیدو دپاره سملاستم.نو د حواریانو آیت راته په ذهن کښې راغلو.په دے باندے هیڅ تاویل نه جوړیدو.نو بیا راپاسیدم.ډیوه مې اولګوله.اوهغه جواب مې اولیکلو.کوم چه مې په ذهن کښې راغلو.چه حواریانو ته ددےوجې مسلمین وئیلے شوی دی.چه دهغوی په جماعت کښې نبی موجود وو.نودا اطلاق د تبعیت نبی په اعتبار سره دے.د سیوطی رحمه الله خیال دے.چه په دغه حواریانو کښې دوه درے نبیان وو.

دعلامه عثمانی رحمه الله په رائے کښې کلی جواب زیات مناسب دے.ځکه چه د جزئیاتو احصاء اوبیا جواب ورکول ډیره ګرانه ده.دوی فرمائی.چه د لغت په اعتبارسره دا اطلاق عام دے.اود لقب په اعتبار سره خاص دے.لکه څنګه چه لفظ د ,,حافظ،، په لغت کښې عام دے.اولقب د ابن حجر رحمه الله دے.,,حیوان،، په لغت کښې عام دے.او لقب د انسان غیرناطق سره خاص دے.کیدےشي.چه دا داسم او لقب ﴿مِلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ﴾(٤)او﴿رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ﴾(٥) نه اخستے شوی وی.(٦)والله اعلم.

---

(١) فتح الباری(١/٣٨)_

(٢)النساء:١٣٦)_

(٣) سورة البقرة:١٣١)_

(٤) الحج:٧٨)

(٥) سورة البقرة:١٢٨)_

(٦) فضل الباری(١/٢٢٨. ٢٢٩)_

**قوله**: يُؤْتِكَ اللَّهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ: اول داسلام راوړلو حکم وو. اواوس ترغيب دے. که تا اسلام قبول کړلو. نوالله سبحانه وتعالى به تاته دوچنده ثواب درکړى. يوخودے وجے چه دے په خپل پيغمبر باندے ايمان ساتى. اوبل ددے وجے چه په حضرت محمد ﷺ باندے ئے ايمان راوړلو. اوکتابى چه کله ايمان راوړى. نوهغه ته دوچنده اجر ملاويږى. يو دهغه په خپل پيغمبرباندے په ايمان راوړلو. اوبل زمونږ په پيغمبرباندے په ايمان راوړلو. هم دا مفهوم دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په روايت کښے راغلے دے. دوى د نبى ﷺ نه نقل کوى. چه

«ثلاثة لهم أجران، رجل من أهل الكتاب آمن بنبيه وآمن بمحمد» [1]

بعضے عالمان فرمائى. چه د ..مرتين.. معنى ده ..مرة بعد مرة.. يعنى برابر ثواب به ورته ملاويږى. يواجر خو د هغه په خپله د ايمان راوړلو اوبل اجر په دے چه دے د نورو خلقو دايمان راوړلو سبب اوګرځى. [2]

**قوله**: فَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَإِنَّ عَلَيْكَ إِثْمَ الْأَرِيسِيِّينَ: که تا ددے اواعراض اوکړلو. نود اريسيينو ګناه به ستا په غاړه کښے وى.

د ..اريسيين.. په ضبط کښے پنځه اقوال دى. [3]

() ..اريسيين.. (د راء مکسوره مخففه نه وړاندے همزه مفتوحه اود سين نه پس دوه ياګانے.

() ..اريسيين.. (د راء مکسوره مخففه نه وړاندے همزه مفتوحه او د سين نه پس يوه ياء ساکنه)

() ..يريسين.. (د راء مکسوره مفتوحه نه وړاندے ياء او د سين نه پس دوه ياګانے.

() ..يريسين.. (د راء مکسوره مخففه نه وړاندے ياء ساکن او د سين نه پس يوه ياء.

() اريسيين (همزه مکسوره، ددے نه پس راء مشدده مکسوره بيا ياء ساکنه بيا سين او ددے نه پس يوه ياء.

**اريسيين څوک وو؟**: د اريسيين په تعين کښے اختلاف دے.

() يوقول دا دے. چه ددے معنى د زميندار ده. د امام ثعلب، ابن الاعرابى رحمهما الله اونورو عالمانو ﷺ نه هم دا منقول ده. [4] ځکه چه ددے تائيد په مختلفو رواياتو سره کيږى. دابن اسحاق رحمه الله روايت دے. «فإن عليك إثم الأكارين» د برقانى رحمه الله په روايت کښے اضافه ده ...يعنى الحراثين.. دغه شان د مدائنى په مرسل روايت کښے دى. «فإن عليك إثم الفلاحين»

(١) صحيح بخارى (٢٠/١) كتاب العلم باب تعليم الرجل أمته وأهله)_

(٢) ارشادالسارى (٧٩/١)_

(٣) ددے ټولو اقوالو دپاره اوګورئ شرح نووى على صحيح مسلم (٩٨/٢) كتاب الجهاد والسير. باب كتب النبى ﷺ)_

(۴) فتح البارى (٣٩/١) وعمدة القارى (٨٦/١) وأعلام الحديث للخطابى (١٣٧/١)_

دابوعبيد رحمه الله په كتاب الاموال كښې د عبدالله بن شداد په مرسل روايت كښې دى.((وإن لم تدخل في الإسلام فلا تحل بين الفلاحين وبين الإسلام))(١)

ابوعبيد رحمه الله فرمائي.دفلاحين معنى اګرچه زميندار ده.خودلته خاص طور صرف زميندار مراد نه دى بلكه د ملك ټول اوسيدونكي مراد دى.(٢)دزميندار ذكر ددې دپاره اوشو چه عام طور هم دا خلق د قوم افراد وى.دغه شان دا خلق د بادشاهانو بنه پوره تابعدار وى.كوم خواه ته چه هغوى خى.دوى ورسره هم خى.كه بادشاه مسلمان شى.نوقوم هم اسلام قبلوى.اوكه هغه اعراض اوكړى.نو بيا قوم هم اعراض كوى.بيا دعربوخلق هركس ته فلاح وائى.برابره ده كه هغه په خپله زميندار وى.اوكه په بل باندې زميندراى كوى.(٣)

() دويم قول دا دې چه ددې نه خادمان او تابعدار مراد دى.او مطلب دا دې چه كه تا اسلام راوړلو.نوستا خادمان اوتابعدار به هم اسلام قبول كړى.لكه چه ته د دوى د ايمان دپاره ركاوټ جوړيږې.نوخكه به د هغوى ګناه هم په تا باندې وى.(٤)

دريم قول دا دې.چه ددې نه مراد دعبدالله بن اريس متعبين دى.چاته چه اريسه ونيلى شى.(٥)

() څلورم قول امام طحاوى رحمه الله نقل كړې دې چه ..اريسه.. يوه ډله ده.چه اروس نومې كس ته منسوب ده.دا ډله دالله تعالى دتوحيد معترف ده.دحضرت عيسى عليه السلام د نبوت قائل ده.اوخه چه په انجيل كښې دى.په هغې باندې ايمان راوړى.اوخه چه عيسايان وائى.هغه نه منى.(٦)

اوس د ((فإن عليك إثم الأريسيين)) دوه توجيهات كيدې شى.يوه دا وجه كيدې شى.چه هرقل هم ..اريسى.. عقيده لره.نوكه دې د اسلام نه اعراض اوكړى.نودهغه ډله به هم د اسلام نه اعراض اوكړى.

دويمه وجه دا كيدې شى.چه په اصل كښې اريسى دهرقل په حكومت كښې اوسيدل.اودا قاعده ده.چه د بادشاه رعيت هم دبادشاه سره وى.امام طحاوى رحمه الله فرمائى.كيدې شى.چه صورت داسې شوې وى.چه اريسيه ډلې ته د نبى صلى الله عليه وسلم د بعثت علم د هرقل نه وړاندې شوې وو.اواريسيه ډلې په نبى صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راوړل.د دې وجې دهغوى په حضرت عيسى عليه السلام باندې ايمان هم باطل شو.خكه چه حضرت عيسى عليه السلام د نبى اكرم صلى الله عليه وسلم د نبوت بشارت وركړې وو.اوس چه مبشربه ئې اونه منل.نولكه چه د حضرت عيسى عليه السلام بعضې خبرې ئې اونه

(١) ددې ټولو رواياتو دپاره اوګورئ فتح البارى(٣٩/١)_
(٢) شرح نووى (٩٨/٢)_
(٣) فتح البارى(٣٩/١)_
(٤) النهاية لابن الأثير(٣٨/١)_
(٥) النهاية (٣٨/١)_
(٦) حاشيه فيض البارى(٤٠/١، ٤١)_

منلي نوتول گناهگار شول. نو مطلب دا شو چه لکه څنگه هغه کسان گناهگار شو نو ته به هم گناهگار شے.(١)

۵) پنځم قول دا دے چه د اريسيين نه مراد سرداران او بادشاهان دی. ځوك چه خپل رعيت فاسدو عقيدو ته وړاندے كوی.(٢) په دے صورت كنبے به مطلب دا شی چه كه تاسو نافرمانی اوكړئ نو تاسو به هم داسے گناهگار شئ لكه څنگه هغه متكبر سرداران او بادشاهان گناهگار دی. ځوك چه د حق نه اعراض كوی.

۶) شپږم قول دا دے چه دد دے نه ..عشار.. يعنى دټيكس اخستونكى مراد دی. ليث بن سعد رحمه الله د يونس بن يزيد رحمه الله نه نقل كړی دی.((الأريسيون: العشارون يعني أهل المكس)) كه دا معنى ثابته وی. نو دلته به مبالغه مقصود وی. يعنى لكه څنگه چه عشار د سخت عذاب مستحق دی. اولوئ گناهگار دی. دغه شان به هرقل هم گناهگار وی.(٣)

اووم قول دا دے چه د اريسيين نه مراد خوزميندار دی. خو دا ونيلے شوی دی چه زميندار ان مجوسيان وو. او روميان اهل كتاب وو.(٤) په دے صورت كنبے به مطلب دا شی چه ته كتابی اونصرانی ئے. او دد ے ملك اوسيدونكى چه زميندار دی. دا مجوسيان دی. اوستا خيال دے چه دا كتابيان اهل حق دی. او اريسيين د مجوسيت د وجے اهل باطل دی. نو لكه څنگه چه د اهل كتابيت د وجے ته خپل خان برحق گنړے. اودا زميندار ان اهل باطل. نو دغه شان اوگنړئ چه اوس زما د نبوت د اعلان نه پس كه تا اسلام قبول نكړلو. نو دے اريسيين پشان به ته په اهل باطل كنبے داخل شے. اوپه اهل حق كنبے به ستا شمار نه كيږی. لكه څنگه چه دوی د مجوسيت د وجے اهل باطل دی. نو اوس به ته د نصرانيت د وجے په اهل باطل كنبے داخل شے.(٥)

بيا په يوروايت كنبے د اريسيين په ځائے د ..اركوسيين.. لفظ راغلے دے. ..ركوسيت د نصرانيت اومجوسيت په مينځ كنبے يومذهب دے. ممكن ده. چه په هغے كنبے څه خلق داسے وو چه هغوی د نصرانيت په ځائے د ركوسيت قائل وو.(٦) لكه چه هرقل ته اوونيلی شو چه كه ته اسلام نه راوړے. نو ركوسين چه اهل باطل دی. د هغوی پشان به گناهگار شے. والله اعلم.

**قوله: وَيَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا....:** په بعضے نسخو كنبے په دے ځائے كنبے ..واو.. نشته. اوپه بعضو كنبے ..واو.. شته.(٧)

---

(١) پورتنئ حواله)_
(٢) عمدة القاری(٨۶/١)_
(٣) فتح الباری(٣٩/١)_
(۴) غريب الحديث للخطابی(۵٠٠/١)_
(۵) جامع الأصول لابن الأثير(٢٧٣/١١)_
(۶) جامع الأصول (٢٧٣/١١)_
(٧) فتح الباری(٣٩/١)_

**دوه سوالونه اودهغې جوابونه** دلته دوه سوالونه دی.

() اولنی سوال دا دے چه په قرآن پاك كښے ..واو.. نشته.بيا دلته واؤ څنګه راغلو؟

دويم سوال دا دے چه دا آيت د وفدنجران په حق كښے نازل شوے وو.خكه چه ابن اسحاق رحمه الله وغيره ليكلى دى.چه د آل عمران داول نه تر اتيا آيتونو پورے د وفد نجران په حق كښے نازل شوى دى.(١)اود وفد نجران راتګ په ٩هـ كښے وو.(٢)

خكه چه دے خلقو د ټولو نه وړاندے جزيه ادا كړے وه.(٣)اود جزيه مشروعيت په آيت كريمه ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ﴾(٤) سره شوے دے.اودا آيت د فتح مكه نه پس نازل شوے دے.(٥)رسول اكرم ﷺ چه كوم خط ليږلے وو.هغه په ٦هـ كښے وو.نودا آيت د آل عمران چه په دغه اتيا آياتونو كښے دے.چه د وفد نجران په راتلو نازل شوے وو.نبى ﷺ د هرقل په خط كښے څنګه اوليكلو؟

د اولنى سوال څو جوابونه وركړے شوى دى.

() يوجواب دا وركړے شوے دے چه كيدے شى.دا د ابوسفيان د كلام حصه وى.هغه داسے چه هغه ته د خط ټول مضامين ياد نه وو.د خط د شروع څه حصه ورته ياده وه.او آيت ترے پاتے شوے وو.لكه چه هغه دا ذكر اوكړلو.چه «كان فيه كذا وكان فيه يا أهل الكتاب» په دے صورت كښے به ..واو.. د ابوسفيان د كلام نه ګرځولے شى.دخط جزء يا حصه نه.(٦)

خودا جواب صحيح نه دے.خكه چه د نبى كريم ﷺ د خطونو چه كوم عكسونه شائع شوى دى.په هغے كښے هم دومره مضمون دے.

() دويم جواب دا وركړے شوے دے.چه دا واؤ عاطفه دے.او معطوف عليه «أدعوك» دے.اومعطوف محذوف دے.تقديرد عبارت دا دے.«إنى أدعوك بدعاية الإسلام وأقول لك ولأتباعك امتثالا لقول الله تعالى: يا أهل الكتاب..»(٧)

() د دويم سوال هم څو جوابونه وركړے شوى دى.

() يو جواب دا دے چه ممكن ده.چه دا آيت مكرر نازل شوے وى.يوځل د حديبيه نه وړاندے نازل شوے وى.اويوځل د فتح مكے نه پس نازل شوے وى.(٨)

---

(١) تفسير ابن كثير(١/٣٧١)_

(٢) ابتداء د سورة آل عمران از تفسيرابن كثير(١/٣٤٣)_

(٣) تفسيرابن كثير(١/٣٧١)_

(٤) التوبة:٢٩)_

(٥) تفسيرابن كثير(٢/٣٤٧)_

(٦) فتح البارى(١/٣٩)_

(٧) پورتنئ حواله)_

(٨) تفسيرابن كثير(١/٣٧١)_

حافظ ابن حجر رحمه الله دا قول بعید گرځولے دے.(۱)

() دویم جواب دا ورکړے شوے دے چه کیدے شی.د وفد نجران د قدوم په موقع چه کوم آیتونه نازل شوی وی.هغه د سورة ال عمران دشروع نه تر دے خائے پورے وی.اودا آیت وړاندے نازل شوے وی.ترځوپورے چه د ابن اسحاق رحمه الله د قول ((بضع وثمانین)) تعلق دے نواوبه وئیلی شی.چه دا عدد محفوظ نه دے.اود عدد په ذکر کولو کښے د دوی نه سهو شوے ده.(۲)

() دریم جواب دا ورکړے شوے دے.چه د وفد نجران راتګ د صلح حدیبیه نه وړاندے شوے وی.اوهم په دغه موقع باندے دا آیت نازل شوے وی.اوترځو پورے چه دده د ادا کولو مسئله ده.نو هغه جزیه نه وه.بلکه مصالحة د مباهله نه د بچ کیدو عوض وو.روستو په آیت د جزیه سره دده موافقت راغلو.(۳)

() څلورم جواب دا ورکړے شوے دے.(دا د اولنی سوال جواب هم دے) چه په کوم وخت کښے نبی ﷺ هرقل ته دا خط لیکل.نوترهغه وخته پورے دا آیت نه وو نازل شوے.روستو د نبی ﷺ په موافقت کښے د قرآن کریم دا آیت نازل شو.لکه دحضرت عمر رضی الله عنه په موافقت کښے د حجاب، اساری بدر،او د صلاة علی المنافقین د سلسلے د آیتونو نه سوا نور آیتونه نازل شوی وو.(۴)

﴿قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللهِ ۚ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِأَنَّا مُسْلِمُوْنَ﴾

اے اهل کتابو یوے داسے خبرے طرف ته راشئ.چه هغه زمونږ او ستاسو په مینځ کښے برابر وی.هغه دا چه مونږ به دالله نه سوا د بل چا عبادت نه کوو.اونه به څه څیز دهغه سره شریک کوو.اونه به په مونږ کښے بعضے خلق بعضے نورولره دالله نه سوا رب ګرځوو.

**خط مبارک اود دعوت اصول:** دلته کښے په دے خط کښے نبی ﷺ د دعوت د اصولو پوره پوره خیال ساتلے دے.

په اصول دعوت کښے یواصل دا دے.چه د تالیف قلب به د زیات نه زیات خیال ساتلی شی.تاسوګورئ چه یولفظ هم داسے نه دے.چه په هغے سره زړه مات شی.

نبی ﷺ ((من محمد بن عبدالله ورسوله إلی هرقل عظیم الروم)) فرمائیلی دی.دخپل خان دپاره نبی ﷺ د عظیم لفظ نه دے استعمال کړے.بلکه دهرقل دپاره ئے د..عظیم الروم،، لفظ استعمال کړے دے.په دے کښے تالیف قلب هم دے.اودهغه د منصب رعایت هم چه دهغه قوم دے عظیم ګنړی.

---

(۱) فتح الباری(۳۹/۱)_

(۲) تفسیرابن کثیر(۳۷۱/۱)_

(۳) تفسیرابن کثیر(۳۷۱/۱، ۳۷۲)_

(۴)تفسیرابن کثیر(۳۷۲/۱)_

د دے نه پس نبی ﷺ ((سلام علی من اتبع الهدی)) ليکلی دی لکه د سلام ليکلو سره سره نے د دے خبرے خيال ساتلے دے چه غير مسلم ته به سلام نشی کولے.

په سلام کښے نبی ﷺ د ((علی من اتبع الهدی)) قيد لګولے دے.اوس که هغه اسلام قبول کړی نوبيشکه هغه د دے دعا محل دے اوکه اسلام قبول نکړی نو د دے دعا محل نه دے اوهرقل نے په فکر کښے هم واچولو چه هغه سوچ اوکړی چه آيا په حقيقت کښے هغه د دے اهل دے چه د رسول الله ﷺ دعا د ده په باره کښے شی.

د دے نه پس دی ((فإني أدعوك بدعاية الإسلام أسلم تسلم، يؤتك الله أجرك مرتين فإن توليت فإن عليك إثم الأريسيين)) په دے کښے امر هم موجود دے او ترغيب هم .زجر هم شته او وعيد هم...اسلم..

امر دے او ..تسلم.. ترغيب دے.((فإن توليت)) زجر دے او((فإن عليك إثم الأريسيين))وعيد دے.

نبی ﷺ د ((فإن توليت))په ځائے ((فإن كفرت)) نه دی وئيلے.ځکه که چرته ((فإن كفرت)) وئيلے شوی وو.نوهغه چونکه د اهل کتابو ځنے وو.دکفر د اصطلاح نه واقف وو.نوهغه سره به ويره شوے وه.اود دعوت اصول دا دی.چه داعی به مخاطب متاثر کوی.چه زه څه ستا وړاندے پيش کوم.په دے کښے مے ستا خيګړه مقصود ده.دل آزاری مے مقصود نه ده.که دلته ((فإن كفرت)) استعمال شوے وو.نو د حوصله شکنئ احتمال راتلو.په دے وجه نبی ﷺ ((فإن توليت)) اوفرمائيل.

بيا ئے د هغه اسلام سره د مانوس کولو دپاره اود اجنبيت لرے کولو دپاره فرمائيلی دی.چه ﴿تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا﴾يعنی مونږ اوته په اصل الاصول کښے نزدے نزدے يو.لکه څنګه چه مونږ دتوحيد قائل يو.دغه شان ته هم ئے.چه په دے اصل کښے مونږ متحد يو.نو د دے نه پس د نورو خرابيانو لرے کول څه ګران نه دی.

**يواشکال اودهغې جواب** دلته په ﴿ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ باندے اعتراض شوے دے.چه نصارا خو د اقانيم ثلاثه اعتقاد ساتی.اوحضرت عيسى عليه السلام ته معاذالله د الله تعالى ځوئے وائی.اوپه الوهيت کښے هغه شريك کوی.نوبيا ﴿ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ څنګه ټيك کيدے شی؟ قرآن کريم څنګه دوی په کلمه کښے د اهل اسلام سره برابر کړی دی.حالانکه اهل اسلام د توحيد قائل دی.اوهغوی مشرکان دی.

يوجواب دا دے.چه په اصل کښے دلته د اصلی نصرانيت په باره کښے وئيلی شوی دی.چه په هغې او د اهل اسلام په کلمه کښے برابری ده.ځکه چه دا خبره منلے شوے ده.چه دتوحيد مسئله په تولو آسمانی کتابونو کښے يوشان راغلے ده.په قرآن. تورات اوانجيل کښے د دے په مينځ کښے څه دومره اختلاف نشته.په دے اعتبار سره د نصارو او اهل اسلام کلمه يوه ده.

دويم جواب دا دے.چه يهود او نصارا اګرچه په حقيقت کښے موحدين نه دی.خو موحدين خو ورته وئيلی شی.زبانی او قولی حده پورے د هغوی دعوی د توحيد وه.هغوی وائی.چه لوئے خدائے خو يو دے.هغه زمونږ واړه خدايان پيدا کړی دی.مونږ دا واړه خدايان دالله تعالى سره

د زمکے او آسمان په تخليق کښے شريك نه گنړو. اونه ئے د اوچتوکارونو په تدبير کښے شريك گنړو. نه زمونږ عقيده دا ده. چه دوی دالله تعالى څه حکم روستو کولے شي. نوښکاره شوه چه مونږ د الله تعالى دتوحيد قائل يو.

نودا به اووئيلی شي چه دلته قرآن پاك د ((مماشاة مع المخاطب)) طريقه اختيار کړے ده. اواشاره ئے کړے ده. چه د دعوی نه اهم څيز په عقيده او عمل کښے توحيد اختيار کړئ. نه په خاص صفاتو کښے دالله سره شرك کوئ. اونه په تحليل اوتحريم کښے. اونه د فرشتو روحونه د ورکړے شوی اختياراتو په تنفيذ کښے مستقل بالذات گنړئ.

**قوله** فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ: اوکه روگردانی اوکړی نوتاسو گواه اوسئ په دے خبره چه مونږ مسلمانان يو.

دخط تقاضا خو دا وه. چه د ((فإن تولوا)) په ځائے ((فإن توليتم)) وے. خوچونکه نبی ﷺ د قرآن کريم آيت نقل کړلو. اوپه دے کښے دغائب صيغه ده. نوځکه ئے على سبيل الحكاية دا د غائب په صيغه سره ذکر کړلو.

**قوله** قَالَ أَبُو سُفْيَانَ فَلَمَّا قَالَ مَا قَالَ وَفَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ الْكِتَابِ كَثُرَ عِنْدَهُ الصَّخَبُ وَارْتَفَعَتِ الْأَصْوَاتُ وَأُخْرِجْنَا: ابوسفيان وائی. چه کله هرقل څه چه ئے وئيل هغه ئے اووئيل. اوهغه دخط د لوستلو نه فارغ شو. نود ده په مخ کښے شور پيدا شو. آوازونه اوچت شول. اومونږ د دربار نه اوويستلی شو.

په ((قال ما قال)) کښے د فعل ضمائر هرقل طرف ته راجع کيږی. دلته کښے ((ما قال)) مبهم پريخودے شوے دے. ددے نه مراد يا خو هغه سوالونه اوجوابونه دی. کوم چه وړاندے تيرشوی دی. اويا ددے نه مراد هغه قصه ده. کومه چه وړاندے د ابن الناطور په حواله سره ذکر شوے ده.

بيا چونکه د ابوسفيان نه هرقل متاثر شوے وو. اودهغه اسلام طرف ته ميلان پيدا شوے وو. چه دا خلق ئے سبب جوړ شوے وو. ځکه هرقل سره ويره شوه. چه هسے دا خلق په ابوسفيان اودده په ملگرو باندے حمله اوکړی. چه تاسو زمونږ د بادشاه توجه واړوله. نوځکه ئے دوی دخپل دربار نه بهر کړل.

خو دا هم ممکن ده. چه د دوی د راغوښتلو کوم غرض اوغايت وو. يعنی د مدعی نبوت د حالاتو تحقيق. چونکه پوره شو. حالات معلوم شو. نوځکه ئے دوی رخصت کړل.

**قوله** فَقُلْتُ لِأَصْحَابِي حِينَ أُخْرِجْنَا لَقَدْ أَمِرَ أَمْرُ ابْنِ أَبِي كَبْشَةَ إِنَّهُ يَخَافُهُ مَلِكُ بَنِي الْأَصْفَرِ: کله چه مونږ اوويستلے شو. نوما خپلو ملگرو ته اووئيل. چه واقعی دابن ابی کبشه کار ډيراهميت حاصل کړلو. دهغه نه خو دبنی اصفربادشاه هم ويريږی.

**ابن ابی کبشه** ابوسفيان نبی کريم ﷺ خامل الذکر اوورك ښکاره کړل. اود دوی دپاره ئے د ناخوښئ په وجه د ..ابن ابی کبشه..نوم استعمال کړلو. قاعده دا ده. چه کله يوکس خامل

نه کړاو ګمنام ښکاره کولے شي نو دهغه دپاره داسے لقب اختیارولے شي چه دهغے نه عظمت نه ښکاره کیږي.دعربو دا عادت وو چه کله به د چا نقص بیانول مقصود وو.نو هغه به نے په پلار نیکه کښے يو ګمنام کس ته منسوب کولو.(١)

دا ابوکبشه څوك دے؟ددے په تعين کښے ډیر اختلاف دے.

() عالم الانساب ابوالحسن جرجاني رحمه الله فرمائي دا دنبي ﷺ د نیکه دوهب دنیکهٔ نوم دے.

() دويم قول دا دے چه دا دعبدالمطلب د نیکه نوم دے.

() دریم قول د ابوالفتح ازدي اوابن ماکولا رحمهما الله دے.دوي فرمائي.چه ابوکبشه د نبي ﷺ رضاعي پلار دے.دهغه نوم حارث بن عبدالعزى دے.

() ابن قتیبه.خطابي.او دارقطني رحمهما الله فرمائي.دا د بنوخزاعه يوکس وو.چاچه بت پرستي پريخودے وه.اود قریشو مخالفت نے کړے وو.اود ..شعري ا.. نوم ستوري عبادت نے شروع کړے وو.چونکه نبي اکرم ﷺ هم د بت پرستئ مخالفت کړے وو.نوځکه په مطلق مخالفت کښے د شرکت د وجے خلقو نبي ﷺ دغه کس طرف ته منسوب کړلو.هم دا قول د سهيل بن بکار هم دے.هغوي ددغه کس نوم ..وجزبن عامربن غالب..خودلے دے.

() پنځم قول دا دے.چه د نبي ﷺ دنیکهٔ وهب کنیت ابوکبشه وو.

() شپږم قول د ابن ماکولا رحمه الله نه نقل شوے دے.چه دا د دوي د رضاعي مورحضرت حليمه د پلار کنيت وو.

() اووم قول دادے.چه دا دحضرت حليمه د مورد طرفه د نیکهٔ یا د پلار د طرفه د نیکهٔ نوم دے.(٢)ددے ټولو اقوالو خلاصه هغه ده.کومه چه مونږ ذکر کړے ده.چه ابوسفیان نبي ﷺ لره خامل الذکر اوګمنام ګرځول غوښتل.چه دده مقام اوس اوچت شوے دے.دده نه د روم بادشاه هم ویریږي.

**بني الأصفر** د بني الاصفر نه مراد رومیان دي.رومیانو ته بني الاصفر ولے وائي.په دے کښے مختلف اقوال دي.

() ابن الانباري رحمه الله فرمائي.چه دده نیکه روم بن عيص د حبشه د بادشاه د لور سره نکاح کړے وه.دهغے نه چه کوم اولاد پیدا شوے وو.هغه د سپین او تور رنګ په مینځ کښے وو.ځکه ورته ..اصفر.. وائي.اودده نسل ته ..بنوالاصفر..وائي.(٣)

() دابن الانباري رحمه الله نه دا هم نقل دي.چه يوځل حبشیانو په رومیانو باندے غلبه حاصله کړے وه.اود دوي د ښځو سره نے زنا کړے وه.نو دهغوي نه چه کوم اولاد پیدا شوي وو.په هغوي کښے د رومیانو سپینوالے اود حبشیانو توروالے وو.اودغه شان په دوي کښے زیړوالے پیدا شو.نوځکه دوي ..اصفر.. طرف ته منسوب شو.(٤)

---

(١) فتح الباري(٤٠/١)_

(٢) ددے ټولو اقوالو دپاره اوګورئ فتح الباري(٤٠/١) وعمدة القاري(٨٠/١)

(٣) فتح الباري(٤٠/١)_

(٤) عمدة القاري(٨١/١)_

() ابراهيم حربى رحمه الله فرمائى چه ..بنوالاصفر..اصفربن روم بن عيصوبن اسحاق بن ابراهيم عليهما السلام ته منسوب دى.(١) قاضى عياض رحمه الله فرمائى.دا قول د ابن الانبارى رحمه الله د قول په مقابله كښې اشبه دے.(٢)

() يوقول دا دے چه د عيصوبن اسحاق بن ابراهيم عليهما السلام رنګ ډيرسور وو.د دوى وادۀ د خپل د ترۀ لور يعنى دحضرت اسماعيل عليه السلام لور سره اوشوه.د دے نه د عيصو نه علاوه پنځه نور اولاد پيدا شول.روم د ډيرزيړ رنګ وو.د روميانو نسل دهغه نه راروان دے.ځكه ورته ..بنوالاصفر.. ونيلى شى.(٣)

() ابن هشام رحمه الله په ..التيجان.. كښې ليكلى دى.چه عيصوبن اسحاق عليه السلام ته د هغه نيا حضرت ساره عليها السلام د سرو زرو كالى اچولى وو.د سرو د زيړوالى د وجے ورته ..اصفر.. ونيلى شى.(٤) والله اعلم

**قوله**: فَمَا زِلْتُ مُوقِنًا أَنَّهُ سَيَظْهَرُ حَتَّى أَدْخَلَ اللَّهُ عَلَيَّ الْإِسْلَامَ: نوزما برابر يقين اوشو.چه محمد ﷺ به ډيرزر غالب شى.تردے چه الله تعالى ما باندے اسلام داخل كړلو.

ابوسفيان د هرقل د دربار دا كيفيت اوكتلو.نود تاثير نه بغيرپاتے نشو.اودهغه يقين راغلو.چه نبى اكرم ﷺ به غالب كيږى.

**دابوسفيان رضي الله عنه اسلام**: څه بدبخته خلق داسے هم شته.چه ابوسفيان رضي الله عنه مسلمان نه منى.دوى د رافضيانو د پروپيګنډو ښكار دى.اود جهالت دوجے دا وائى.چه دا كس د زړه نه مسلمان شوے نه وو.

په دے كښې څه شك نشته.چه داسلام نه وړاندے دے د كفر په سردارانو كښې وو.خو ددے باوجود ورته الله تعالى د اسلام توفيق وركړلو.دده د اسلام قبلولو واقعه دلته په اختصار سره بيانولى شى.

د صلح حديبيه نه پس د قريشو حليف بنوبكر د نبى ﷺ په حلفاء بنوخزاعه باندے حمله اوكړله.د قريشو څه خلقو هم د خپلو حلفاء مدد اوكړلو.حالانكه په هغوى باندے لازمه وه.چه دوى ئے دحملے نه منع كړے وو.حمله هم د شپے د خوب په حالت كښې شوے وه.بديل بن ورقاء،عمروبن سالم،اود بنوخزاعه څه خلق مدينے منورے ته راغلل.اونبى ﷺ ته ئے د هغوى د دهوكے خبر وركړلو.عمروبن سالم د مظلوميت عكاسى كونكے نظم واورولو.

---

(١) پورتنى حواله)_

(٢) پورتنى حواله)_

(٣) پورتنى حواله)_

(٤) فتح البارى(١/ ٤٠) وعمدة القارى(١/ ٨١)_

يا رب إني ناشد محمدا — حلف أبينا وأبيه الأتلدا
قد كنتم ولدا وكنا والدا — ثمت أسلمنا فلم ننزع يدا
فانصر هداك الله نصرا أعتدا — وادع عباد الله يأتوا مددا
فيهم رسول الله قد تجردا — إن سيم خسفا وجهه تربدا
في فيلق كالبحر يجري مزبدا — إن قريشا أخلفوك الموعدا
ونقضوا ميثاقك المؤكدا — وجعلوا لي في كداء رصدا
وزعموا أن لست أدعو أحدا — وهم أذل وأقل عددا
هم بيتونا بالوتير هجدا — وقتلونا ركعا وسجدا

اهل مکہ چه کله ددے حرکت په انجام باندے سوچ اوکړلو.نو ابوسفیان ئے د صلح د تجدید دپاره مدینے منورے ته اولیږلو.دوی د حضرت ابوبکر،عمر.اوعلی ﷡ سره خانله خبرے اوکړلے.اونامراد واپس شو.
نبی اکرم ﷺ په ۱۰ رمضان لس زره لښکر واخستلو.او دمکے په لور ئے سفر شروع کړلو.قریشو ته خبر نه وو.تردے چه مکے ته نزدے ،،مرالظهران،، مقام ته نزدے اورسیدل.اهل مکه ته د فوج د راتلو غږ رسیدلے وو.اوهسے هم دا ویره وه.چه معلومه نه ده.رسول الله ﷺ به کوم وخت په مونږ باندے حمله کوی.نوابوسفیان بن حرب.بدیل بن ورقاء او حکیم بن حزام د خبراخستلو په غرض دمکے نه بهرته راووتل.کله چه مرالظهران ته نزدے شو.نواور ورته په نظر راغلو.خکه چه نبی کریم ﷺ د عربود زوړ رواج مطابق اودحکمت د وجه دا حکم ورکړے وو.چه هرکس دے دځپلے خیمے وړاندے اور اولګوی.دے خلقوچه اورونه اولیدل.نو ګهبراؤ شو.اود یو بل نه ئے تپوس اوکړلو.دا اورونه څنګه دی؟
بدیل اوونیل دا اورونه د خزاعه قبیلے دی.ابوسفیان اوونیل.خزاعه سره دومره لښکر دکومے راغلو.هغوی خو لږ دی.داخبرے کیدلے.چه حضرت عباس ﷛ د نبی ﷺ په قچر باندے سور هغه طرف ته راغلو.هغه سره فکر وو.څنګه اهل مکه ته خبر اوشی.اود صبا کیدو نه وړاندے وړاندے دوی د نبی ﷺ نه امن طلب کړی.ګنی دخیر څه صورت نه ښکاری.نوهغه د څه څرونکی وغیره په لټون کښے راوتلے وو.چه دابوسفیان آواز ئے واوریدلو.نوهغه ئے اوپیژندلو.سمدستی ئے هغه ته آواز ورکړلو.اود حملے خبر ئے ورته ورکړلو.چه خبر ئے واوریدلو.نودا خلق وارخطا شو.اودحضرت عباس ﷛نه ئے تپوس اوکړلو.چه څه تدبیر دے اوکړے شی؟حضرت عباس ﷛ورته اوونیل.ماسره په قچر باندے روستو سور شه.تا نبی ﷺ

نه بوخم.حضرت عمر رضي الله عنه ورپسے شو. اوقتلول ئے غوښتل.اوعرض ئے اوکړلو.یارسول الله دا ابوسفیان دے.ده سره څه معاهده نشته.ماته اجازت راکړه.چه څټ ترے قلم کړم.حضرت عباس رضي الله عنه اوفرمائیل ما ابوسفیان ته پناه ورکړے ده.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل:بنه دےخان سره ایسار کړه، او صباته ئے ماته راوله.حضرت عباس رضي الله عنه د نبی ﷺ دحکم مطابق دے په خپله خیمه کښے ایسار کړلو.صبا ته ابوسفیان د مسلمان کیدو فیصله اوکړله.اود نبی ﷺ په خدمت کښے حاضر شو.اسلام ئے قبول کړلو.نبی ﷺ هم دهغه عزت اوکړلو.او وے فرمائیل.«من دخل دار أبي سفيان فهو آمن» (١)

د اسلام راوړلو نه پس د نبی ﷺ دده سره سلوك، ددوی په غزواتو کښے ګډون.اود الله په لار کښے د دوی د دواړو سترګو شهادت دا ټولے خبرے دلیل دے. په دے خبره چه دوی د زړه په اخلاص مسلمان شوی وو.(٢)

**قوله**: وَكَانَ ابْنُ النَّاطُورِ صَاحِبُ إِيلِيَاءَ وَهِرَقْلَ سُقُفًا عَلَى نَصَارَى الشَّامِ يُحَدِّثُ..:دا دامام زهری رحمه الله مقوله ده.اود اسناد سابق سره موصول ده.بعضے حضراتو دے ته معلق وئیلے ده.خو دا وهم دے.اود بعضے مغاربو خیال دے.چه دا «عن الزهري عن عبيد الله عن ابن عباس عن أبي سفيان عن ابن الناطور» نه مروی دے.خو محققین فرمائی.په دوی باندے د ابن اسحاق رحمه الله په روایت سره اشتباه راغلے ده.ځکه چه هغوی د ابن الناطور حدیث د ابوسفیان دحدیث نه وړاندے ذکر کړے دے.(٣)

اصل صورت دا دے.چه دا حدیث په اولنی حدیث باندے معطوف دے.تقدیرد عبارت دا دے.«عن الزهري أخبرني عبيد الله .... فذكر الحديث ثم قال الزهري: وكان ابن الناطور يحدث..»(٤)

دامام زهری رحمه الله ملاقات د ابن الناطور سره د ابن الملك په زمانه کښے په دمشق کښے شوے وو.امام زهری رحمه الله دا قصه په خپله اوریدلے ده.په ظاهره په دغه وخت کښے ابن الناطور مسلمان شوے وو.(٥)

---

(١) دتفصیلاتو دپاره اوګورئ: سیرت ابن هشام (٢/٢٦٨، ٢٦٩) سیرت مصطفی (٣/٢٠، ٢١) اوسیرت النبی ﷺ (١/٢٩٦، ٢٩٧)_

(٢) دحضرت ابوسفیان داسلام په باره کښے بعضے حضرات دوی ته دا اشعار منسوب کوی.

لعمرک إني يوم أحمل رأية : لتغلب خيل اللات خيل محمد

لک المدلج الحيران أظلم ليله : فهذا أواني حين أهدى وأهتدى

هداني هاد غير نفسي ودلني : على الله من طردت كل مطرد...

خو په حقیقت کښے دا اشعار د حضرت ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب دی.د ابوسفیان بن حرب نه دی. اوګورئ: سیرت ابن هشام (٢/٢٦٨)_

(٣) فتح الباري (١/٤٠)_

(٤) پورتنئ حواله)_

(٥) پورتنئ حواله)_

..ناطور.. په طاء مهمله سره لوستلے شوے دے او "ناطور" په ظاء معجمه سره هم لوستلی شی. بعضے حضراتو ونیلی دی چه ناطورد کهجورو دباغ محافظ ته وانی. اودبعضوخیال دے. چه د انګورو د باغ مالیار ته وانی. دا عربی لفظ نه دے خو په عربی کښے استعمال دے.(١)
دا ابن ناطور د ایلیاء ګورنر وو. اود هرقل مصاحب هم وو. اودے د شام د نصاروٰ لوئے پادری وو. یعنی ده ته مذهبی عظمت اودنیوی وجاهت دواړه حاصل وو.

**آیا د حقیقت اومجاز په مینځ کښې جمع ټیک ده؟** دلته ..ابن الناطور.. ته صاحب دایلیاء او هرقل ونیلے شوے دے. د ..صاحب.. دلفظ معنی د حقیقی مصاحب دے. اومجازی معنی نے ګورنرده. دلته دا لفظ په دے دواړومعانیو کښے مستعمل دے. علامه کرمانی رحمه الله فرمانی. چه دحضرت امام شافعی رحمه الله په نیز د یولفظ نه په یووخت کښے حقیقی اومجازی معنی دواړه مراد اخستلی شی. اونور حضرات په داسے موقع باندے عموم مجاز مراد اخلی. یعنی یوه عامه معنی مراد اخلی. چه حقیقت او مجاز دواړه ددے معنی فرد جوړ شی.(٢)
زمونږ د طرفه دا ونیلی شی. چه اول خو شیخ الاسلام ابن تیمه رحمه الله تصریح کړے ده چه دامام شافعی رحمه الله نه چرته منقول نه دی. چه یولفظ په یووخت کښے د حقیقت او مجاز دواړو معانیو دپاره استعمالیدے شی. البته د امام شافعی رحمه الله ملګرو د بعضے استعمالاتو نه دا نتیجه اخذ کړے ده. په خپله دهغوی نه څه تصریح نشته.(٣)

دویمه خبره دا ده. چه «وکان ابن الناطور صاحب إیلیاء وهرقل» د زهری رحمه الله کلام دے. د رسول الله ﷺ ارشاد نه دے. نوځکه په دے باندے استدلال کول مفید نه دی.
ددے نه علاوه دا هم ونیلی شی. چه دلته د ..صاحب ایلیاء.. نه پس اود ..هرقل.. نه وړاندے د صاحب لفظ بیل هم مقدر دے. نود اولنی ..صاحب.. معنی به ګورنر شی. اود دویم ..صاحب.. معنی به ..مصاحب.. شی. په دے طریقه به دا اشکال ختم شی. چه د یولفظ نه دوه معانی یعنی حقیقی اومجازی مراد اخستے شوی دی. مخذوف منل د حقیقت او مجاز د جمع په نسبت سره بهتر دی.(٤)
دغه شان دا هم ونیلی شی. چه د ..صاحب.. معنی جدا جدا نه ده. بلکه یوه معنی نے ده. ..ذو.. په معنی د ..والا.. دے. دا بیله خبره ده. چه مضاف الیه ته د نسبت کولو په اعتبار سره فرق راځی. نوکه ددے نسبت ځانے طرف ته وی. نو ددے معنی خاوند اوحاکم دے. اوکه یوکس طرف ته وی. نود ..مصاحب او دوست.. معنی به وی. نو لکه چه د ..صاحب اویلیاء وهرقل.. مطلب دا شو چه د ایلیاء اوهرقل خاوند. چونکه ایلیاء ځانے دے. نوددے معنی به شی. دایلیاء حاکم او ګورنر. اوهرقل کس دے. نوددے معنی به شی. دهرقل ملګرے.(٥)

---

(١) عمدة القاری (١/٨٠) بیان الأسماء المبهمة)_
(٢) شرح کرمانی) رحمه الله ١/٦٤)_
(٣) فیض الباری (١/٤٢)_
(٤) عمدة القاری (١/٩٥)_
(٥) فیض الباری (١/٤٢)_

**سقف** ددے لفظ په ضبط کښے اختلاف دے چه دا فعل دے که اسم؟ که فعل وی نو په دے کښے دوه اقوال دی. يو قول خو دا دے چه دا ،،سقِّفَ،،د باب تفعيل نه دماضي صيغه ده اودويم قول دا دے چه دا ،،اسقف،، يعني د باب افعال نه ماضي ده.(١)

اوکه دا اسم وی نو ددے په ضبط کښے څو اقوال دی.

(١) يو قول ،،أسْقُفٌ،،، او دويم قول دے ،،أسْقُفٌ،، په دواړو همزه و قاف مضموم دے اوسين ساکن. البته په ړومبني قول باندے فاء مخفف ده اوپه دويم باندے مشدد دريم قول ،سُقُفٌ، بضم السين والقاف وتشديد الفاء دے.(٢)

مشهوره دا ده چه دا دعجمي ژبے لفظ دے اوددے معنى ده ((رئيس دين النصارى)) يعني د نصاروٰ دټولو نه لوئے پيشوا.

بعضے حضرات فرمائي چه دا ،،سقف،، نه مشتق دے ددے معنى په اوږدوالي سره تبديل دی چونکه ددوی دينی پيشوا به د عاجزیٔ داظهار دپاره په ټيټه تلو خکه ورته ،،سقف،، يا اسقف،، وائي.(٣)

**الشام** دا مهموز او غير مهموز په دواړو طريقو لوستلے شی دغه شان شام هم لوستلے شوے دے.(٤)

حافظ ابن عساکر رحمه الله په خپل تاريخ کښے نقل کړی دی چه شام ته لس زره صحابيان داخل شوی دی.(٥)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائي چه نبی څلور ځله شام ته تشريف اوړے دے دوه ځله د نبوت نه وړاندے اول ځل د دولسو کالو په عمر کښے ئے دخپل تره ابوطالب سره سفر کړے وو اومقام بصری ته رسيدلے وو راهب سره ئے ملاقات شوے وو هغه دوی ته د واپس بوتلو مشوره ورکړے وه په دويم ځل ئے د پنځويشت کالو په عمر کښے د حضرت خديجه رضي الله عنها مال د تجارت دپاره اوړے وو بيا دنبوت نه پس ئے هم دوه ځله شام ته تشريف اوړے وو يو ځل داسراء په موقع باندے اودويم ځل د غزوه تبوک په موقع باندے (٦) الله اعلم.

**قوله:** أَنَّ هِرَقْلَ حِينَ قَدِمَ إِيلِيَاءَ أَصْبَحَ يَوْمًا خَبِيثَ النَّفْسِ: يعني هرقل چه کله ايلياء ته اورسيدلو نو يوورځ هغه په ډيره پريشانئ اواضطراب کښے صبا کړلو هغه خفه او غمگين وو.

---

(١) عمدة القاری(٨٩/١) وفتح الباری(٤١/١)_
(٢) پورتنی حواله)_
(٣) فتح الباری(٤١/١) وتاج العروس (س ٥٣/٦)_
(٤) عمدة القاری(٨٢/١) بيان أسماء الأماكن وشرح کرمانی(٥٣/١)_
(٥) عمدة القاری(٨٢/١)_
(٦) شرح کرمانی(٥٣/١)_

دلته دے دا اشکال نه وی چه په حدیث کښے خو دی.((لایقولن أحدکم خبثت نفسی))[1] که چه په دے کښے خطاب مسلمانانو ته دے اوهلته دهرقل په باره کښے دے.
دلته د ..خبیث النفس.. نه مراد مغموم اوغمګین دے.

**قوله** فَقَالَ بَعْضُ بَطَارِقَتِهِ قَدِ اسْتَنْکَرْنَا هَیْئَتَكَ: دده د حکومت بعضے خواصو اووئیل مونږ ته ستا حالت بدل ښکاری.تاسو مړاوے مړاوے اوخفه اودلګیر معلومیږئ.ددے څه وجه ده؟
..بطارقة.. د بطریق جمع ده.ددے معنی ده قائد.د حکومت خواص اواهل الرائے[2]

**قوله** قَالَ ابْنُ النَّاطُورِ وَکَانَ هِرَقْلُ حَزَّاءً یَنْظُرُ فِی النُّجُومِ: ابن ناطور اووئیل:هرقل کاهن وو.په علم نجوم کښے ورته مهارت حاصل وو.
دلته دوه صورتونه دی.[3]
یوصورت دا دے چه ..حزاء.. موصوف او..ینظرفي النجوم.. ددے صفت اوګرځولے شی.اودویم صورت دا دے چه ..حزاء.. د ..کان.. دپاره خبر اول او ..ینظرفي النجوم.. خبرثانی اوګرځولے شی.
په اولنی صورت کښے به ددے مطلب دا شی.چه هرقل کاهن وو.اودهغه کهانت د ..نظرفي النجوم.. په ذریعه وو.
په دویم صورت کښے به وئیلی شی.چه د کهانت درے قسمونه دی.یودا چه سړے فطری طورکاهن وی.دویم صورت دا چه د شیطانانو د خبر ورکولو په ذریعه کهانت کولے شی.اودریم صورت دا دے.په نجوم کښے د غور اوفکر دوجې نه کهانت زده شی.[4]
اوس مطلب دا شو.چه هغه ته فطری کهانت هم حاصل وو.او د ..نظرفي النجوم.. په ذریعه هم هغه ته د کهانت فن ورتلو.
په جاهلیت کښے به کهانت د القاء شیطانی په ذریعه هم کیدلو.اود علم نجوم په مدد سره هم.اسلام هرقسم کهانت باطل اوګرځولو.نوپه کهانت باندے اعتماد ټیک نه دے.[5]

**یواشکال اودهغې جواب** دلته اشکال دا دے.چه امام بخاری رحمه الله داسے روایت ولے ذکر کړلو.چه دهغې نه د کهانت اوعلم نجوم تقویت اوتصحیح معلومیږی؟
ددے جواب دا دے.چه امام بخاری رحمه الله دلته دا روایت د علم نجوم اوکهانت د تائید او تقویت دپاره نه دے راوړے بلکه ددے دپاره ئے ذکر کړے دے چه دا معلومه شی.چه د

---

(۱)صحیح بخاری کتاب الأدب باب لایقل:خبثت نفسی رقم (۶۱۷۹) و(۶۱۸۰)_
(۲) عمدة القاری(۸۷/۱) وتاج العروس (۲۹۶/۶)_
(۳)عمدة القاری(۹۳/۱)_
(۴)ایضاح البخاری(۱۲٤/۱)_
(۵)فتح الباری(٤۱/۱)_

نبی ﷺ د نبوت او صداقت اشارات دهرطرفه ښکاره کیدل. انسانانو جناتو.اهل حق اواهل باطل د ټولو په ژبه د نبی ﷺ خبرونه او زیری معلوم شوی دی.(١)

**قوله**: فَقَالَ لَهُمْ حِينَ سَأَلُوهُ إِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ حِينَ نَظَرْتُ فِي النُّجُومِ مَلِكَ الْخِتَانِ قَدْ ظَهَرَ: نوهرقل د هغه په پوښتنې سره تپوس اوکړلو.چه ماښن شپه په نجوم کښې غور اوفکر اوکړلو.نواومې کتل.چه د ختنه کونکو ملك یا د ختنه کونکو خلقو بادشاه غلبه اوکړله.

..ملك..د میم د ضمه او د لام په سکون سره هم روایت دے.اودا د ..ملك.. د میم په فتحه اولام په کسره سره هم لوستلے شوے دے.

د نجومیانو عقیده ده.چه برج عقرب مائی دے.اوهرشل کاله په پس دے برج کښې د نمر اوسپوږمۍ اجتماع کیږی.اوددے دواړو دے اجتماع ته ..قرن السعدین.. وائی نبی ﷺ چه کله پیدا شوے وو.نوپه هغه وخت کښې ..قرن السعدین.. شوے وو بیا په دویم خل ..قرن السعدین.. په شل کاله پوره کیدو شوی وو.کله چه حضرت جبریل ﷺ وحی راوړله اودریم خل په هغه موقع باندے شوے وو.کله چه فتح دخیبر اودعمرة القضاء واقعه پیښه شوے وه. اوددے په نتیجه کښې دفتح مکه په ذریعه دوی ته په ټولو عربو باندے غلبه حاصل شوے وه.

هرقل ددے آخری ..قرن السعدین.. مشاهده په نظرفي النجوم سره کړے وه. او د دے نه هغه دا نتیجه راویستے وه.چه د ..ملك الختان.. غلبه به کیږی.(٢)

**قوله**: فَمَنْ يَخْتَتِنُ مِنْ هَذِهِ الأُمَّةِ: د هغه زمانې په خلقو کښې د ختنه رواج په چا کښې وو.دامت معنی د ډلے ده.دلته مجازاً داهل عصر په معنی کښې دا استعمال شوے ده.

**قوله**: قَالُوا لَيْسَ يَخْتَتِنُ إِلَّا الْيَهُودُ فَلَا يُهِمَّنَّكَ شَأْنُهُمْ وَاكْتُبْ إِلَى مَدَايِنِ مُلْكِكَ فَيَقْتُلُوا مَنْ فِيهِمْ مِنَ الْيَهُودِ: بطارقه جواب ورکړلو.چه د ختنه رواج د یهودو نه سوا په بل چا کښې نشته.خوتاسو ته د دوی د وجې فکر نه دی کول پکار.ته دخپل ملك ښارونو ته اولیکه.چه هغه یهودیان کوم چه هلته وی.قتل کړی.

بطارقه د ختنه په باره کښې صرف د یهودو نوم اخستے دے.دا هغه دخپل علم په اعتبار سره وئیلی دی.ځکه چه د حجاز خلقو به ختنه کوله.

**قوله**: فَبَيْنَمَا هُمْ عَلَى أَمْرِهِمْ أُتِيَ هِرَقْلُ بِرَجُلٍ أَرْسَلَ بِهِ مَلِكُ غَسَّانَ يُخْبِرُ عَنْ خَبَرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دا خلق په دے فکر کښې وو چه هرقل ته یو کس راوستے شو.کوم چه شاه غسان رالیږلے وو.اود نبی ﷺ خبرے راوړے وو.

د ملك غسان نه مراد ..عظیم بصری.. یعنی حارث بن ابی جمره دے.

---

(١) پورتنئ حواله_

(٢) فتح الباری(٤١/١)_

دلته ..رجل.. مبهم دے دا سړے څوك دے په دے باره كښے دوه اقوال نقل شوى دى
يودا چه ددے نه حضرت دحيه ﷺ په خپله مراد دے چه حارث غطيم بصرى ته كله دا خط
اورسيده نوهغه هم د حضرت دحيه ﷺ په ذريعه هرقل ته راليږلے وو
دويم قول دا دے چه دا عدى بن حاتم دے كوم چه ترهغه وخته پورے مسلمان شوے نه
وو بلكه د نصرانيت په دين وو لكه چه كله داخط حارث بن ابى جمره ته ملاو شو نوهغه د
عدى بن حاتم په ذريعه هرقل ته اوليږلو (١)

**قوله** فَلَمَّا اسْتَخْبَرَهُ هِرَقْلُ قَالَ اذْهَبُوا فَانْظُرُوا أَمُخْتَتِنٌ هُوَ أَمْ لَا فَنَظَرُوا إِلَيْهِ فَحَدَّثُوهُ أَنَّهُ مُخْتَتِنٌ وَسَأَلَهُ عَنِ الْعَرَبِ فَقَالَ هُمْ يَخْتَتِنُونَ: كله چه هرقل معلومات اوكړل نو
وے وئيل ورشئ اوګورئ چه دے مختون دے كه نه؟ هغه هرقل ته اوخودل چه هغه مختون
دے هرقل دهغه نه د عربو په باره كښے تپوس اوكړلو چه هغوى ختنه كوى كه نه؟هغه ورته
اوخودل چه هغوى هم ختنه كوى.

**قوله** فَقَالَ هِرَقْلُ هَذَا مُلْكُ هَذِهِ الْأُمَّةِ قَدْ ظَهَرَ: هرقل اووئيل دا دهغه امت بادشاه
دے چه غالب راتلونكے دے.
هرقل د ماضى صيغه او..قد..استعمال كړلو.څكه چه هرقل ته يقين وو چه ددے نه بغير
بله څه لاره نشته.چه هغه به غالب كيږى.
دلته كښے اكثرو راويانو ..مُلك.. د ميم په ضمه اولام په سكون سره روايت كړے دے.البته
د قابسى په روايت كښے ..مَلِك.. (فتحه ميم وكسره لام) دے.اود كشميهنى په نسخه كښے
..يملك.. دے.

قاضى عياض رحمه الله فرمائى.په اصل كښے ..ملك.. دے.دميم ضمه د ميم سره ملاو شوه.نو
دا ياء صورت پيدا شو.دغه شان په دے كلمه كښے تصحيف اوشو
علامه سهيلى دا په تصحيف باندے دحمل كولونه په ځائے د ټيك كرځولو كوشش كړے دے
اوفرمائيلى ئے دى.چه دا مبتدا اوخبر دى يعنى ((هذا المذكور يملك هذه الأمة))
دا امكان هم ذكر شوے دے چه دلته موصوف مخذوف دے او..يملك.. صفت دے يعنى
((هذا رجل يملك هذه الأمة)) بلكه د كوفيانو په نيزدلته اسم موصول منلى شى اوتقديرى
عبارت به وى.((هذا الذى يملك هذه الأمة)) ددے نه هم وړاندے كيږى.اوكوفيان دا وائى چه
..ذا.. د اسم اشاره په طور اسم مفعول استعمالولے شى.لكه چه د شاعر په دے شعر كښے
استعمال شوے دے.

---

(١) فتح البارى(١/ ٣٨)_

عدس، مالعباد عليك إمارة أمنتِ وهذا تحملين طليق (١)

يعنى «الذى تحملينه طليق» دغه شان ..ذا.. دلته كښې هم دا سم موصول په معنى كښې ده.دحذف منلو ضرورت نشته.مطلب به دا شي.چه «والذى يملك هذه الأمة قد ظهر» خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ما په يوه معتمده نسخه كښې ليدلى وو ...بملك.. يعنى د ميم نه وړاندې باء موحده ده.په دې صورت كښې به د ..هذا.. مشار اليه ,,حكم نجوم.. وى.اود ..بملك.. تعلق به د ..ظهر.. سره وى.تقدير د عبارت به دا شى.«هذا الحكم الذى ثبت بالنظر فى النجوم وقد ظهر بملك هذه الأمة التى تختتن» يعنى د نظرفي النجوم نه چه كوم حكم ثابت شو.هغه د امت مختونه په بادشاهت سره ښكاره شو. (٢) والله اعلم.

**قوله**: ثُمَّ كَتَبَ هِرَقْلُ إِلَى صَاحِبٍ لَهُ بِرُومِيَةَ وَكَانَ نَظِيرَهُ فِي الْعِلْمِ: بيا هرقل په روميه كښې خپل يو دوست ته خط اوليكلو.هغه په علم كښې د هرقل پشان وو.

وړاندې تير شوى دى.چه روميه د اټلى دارالحكومت دې.چه ..دومة الكبرى.. ورته هم وئيلى شى.د عيسايانو اصلى مركز هم دا وو.او هم دا د روم پايه تخت وو. شام فلسطين او نورې علاقې چونكه د روميانو د غلبې د وجې ددوى په تصرف كښې راغلې وې.اود دوى حكومت قائم شوې وو.نوځكه هغې ته هم روم وئيل شروع شوى وو.روستو بيا دا روميه چه دارالسلطنت او مذهبى مركز وو.ددې مركزيت تقسيم شو.او بل مركز په قسطنطنيه كښې جوړ كړې شو.هرقل به په قسطنطينه كښې اوسيدل.اوده د شام په علاقه كښې يومركز ..حمص.. جوړ كړې وو.په دې كښې به ده قيام كولو.

**قوله**: وَسَارَ هِرَقْلُ إِلَى حِمْصَ فَلَمْ يَرِمْ حِمْصَ حَتَّى أَتَاهُ كِتَابٌ مِنْ صَاحِبِهِ يُوَافِقُ رَأْيَ هِرَقْلَ عَلَى خُرُوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَّهُ نَبِيٌّ: هرقل حمص ته لاړلو.تراوسه پورې لا دحمص نه تلې نه وو.چه دده د دوست خط راغلو.اودهرقل درائې موافقت ئې كولو.چه يقينى ده.د نبى كريم ﷺ ظهور شوې دې.او دا چه ده په حقه پيغمبر دې. په دې موقعه باندې د هرقل دوست د هرقل د رائې سره موافقت خو اوكړلو .خودخپل اسلام اظهار ئې اونكړلو.

وړاندې مونږ په تمهيد كښې ذكر كړى دى.چه دې خط اوړونكې هم حضرت دحيه رضي الله عنه وو.

---

(١) دا د يزيد بن مفرغ شعر دې دې دحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه كښې د قحطن گورنر عباد بن زياد قيد كړې وو.د قيد نه دخلاصيدو نه پس هغه خپلې اسپې ته خطاب كوى اووائى روانه شه،په تابانډې دهغه عباد حكومت نه دې اوس خو مامون دې اوځوك چه تا اوچت كړې دى (يعنى شاعر) هغه آزاد دې اوگورئ (سبيل الهدى بتحقيق شرح قطرالندى.. للشيخ محمدمحيى الدين عبدالحميد رحمه الله (ص.١٠٦) الأسماء الموصولة)_

(٢) فتح البارى(١/٤٢)_

اوكه بل څوك وو؟ په يقين سره نشى ونيلے البته د تبوك په موقع چه نبى ﷺ دوباره دے هرقل ته اوليږلو نوهرقل د روميه لوئے پادرى ته دے اوليږلو خودے كښے دا نشته چه دا لوئے پادرى هم هغه سابقه ضغاطر وو اوكه نه بل څوك وو؟ بهرحال په دے خل دغه لوئے پادرى د خپل اسلام اعلان اوكړلو اودد ے په نتيجه كښے هغه شهيد كړے شو.

**حمص** د شام يو مشهور او قديم ترين ښار دے چه دخپلو آثارو، مشاهدو او مزاراتو د وجے ډير مشهور دے دحضرت ابوعبيده رضي الله عنه په مشرئ كښے دا ښار فتح شوے وو. (١) وړاندے ذكر شوى دى چه دهرقل اصلى مركز خو قسطنطنيه وو خود شام په علاقه كښے حمص ده خپل مركز جوړ كړے وو.

**قوله**: فَأَذِنَ هِرَقْلُ لِعُظَمَاءِ الرُّومِ فِي دَسْكَرَةٍ لَهُ بِحِمْصَ: هرقل په حمص كښے په خپل محل كښے د روم مشران راوبلل.

..دسكرة.. هغه محل ته وائى چه د هغے نه ګيرچاپيره ډيركورونه جوړ شوى وى.(٢)

يولوئے محل وو هلته كښے ده د روم مشرانو ته دعوت وركړے وو. دهرقل خيال دا وو چه هركله ضغاطر زما تائيد كوى چه لوئے پادرى دے اود اهل كتابو لوئے عالم دے نوارس كيدے شى چه قوم اومنى نوځكه هرقل په حمص كښے خلق راجمع كړل.

**قوله**: ثُمَّ أَمَرَ بِأَبْوَابِهَا فَغُلِّقَتْ ثُمَّ اطَّلَعَ: بيا ئے د دروازو د بندولوحكم اوكړلو. اوبيا په خپله پورته اوختل اودهغه ځائے نه ئے سر راتاه كړلو.

په خپله بالاخانه ته لاړلو په دے خيال كه په خلقو كښے جوش پيدا شى نوپه ما باندے به لاس نشى اوچتولے اودروازے ئے د دے دپاره بندے كړے چه دوى بهرته نشى وتلے خكه چه كه دجوش په صورت كښے بهرته اوځى نوفتنه پيدا كيدے شى نوځكه ئے دروازے بندے كړے چه ددوى غصه هم په دے ځائے كښے سره شى.(٣)

**قوله**: فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الرُّومِ هَلْ لَكُمْ فِي الْفَلَاحِ وَالرُّشْدِ وَأَنْ يَثْبُتَ مُلْكُكُمْ: بيا هغه اووئيل اے روميانو آيا تاسو په كاميابئ اوهدايت كښے څه مينه لرئ اوپه دے خبره كښے چه ستاسو حكومت باقى پاتے شى؟

دهغه يقين وو كه اسلام قبول نكړے شى نوحكومت به ځى دا خبرے هغه ته د اخبارسابقو نه معلومے شوے وے.(٤)

**قوله**: فَتُبَايِعُوا هَذَا النَّبِيَّ: كه ستاسو د كاميابئ اوهدايت سره مينه وى اوتاسوخپل حكومت قائم اودائم ساتل غواړئ نو ددے پيغمبر سره بيعت اوكړئ.

---

(١) معجم البلدان(٢/٣٠٢، ٣٠٤)_

(٢) فتح البارى(١/٤٣)_

(٣) فتح البارى(١/٤٣)_

(٤) پورتنئ حواله)_

**قوله** فَحَاصُوا حَيْصَةَ حُمُرِ الْوَحْشِ إِلَى الْأَبْوَابِ فَوَجَدُوهَا قَدْ غُلِّقَتْ: نوهغوى د خنگلى خرو پشان دروازو طرف ته منډه کړل خوهلته ئې دروازې بندې بيامونډې

د روم عظما، اوويريدل اواوتښتيدل دهغوى دا خيال وو چه هرقل زمونږ آزادى ختمول غواړى اوزمونږ نه د عربو غلامان جوړول غواړى

دلته يوخو د خرو سره تشبيه ورکړې شوې ده.دا په بيوقوفئ او جهالت کښې ضرب المثل ده.اوبل د خنگلى خرو سره تشبيه ورکړې شوې ده خکه چه د توپ وهلو اوتښتيدو خاصيت د کورنو خرونو په ځائې په دوى کښې زيات وى (١)

**قوله** فَلَمَّا رَأَى هِرَقْلُ نَفْرَتَهُمْ وَأَيِسَ مِنَ الْإِيمَانِ قَالَ رُدُّوهُمْ عَلَيَّ: کله چه هرقل د هغوى نفرت اوليدل.اود هغوى د ايمان نه مايوس شو نو وې ونيل دوى ماته واپس راولئ هغه سياسى چل اوکړلو.اووې ونيل.

**قوله** إِنِّي قُلْتُ مَقَالَتِي آنِفًا أَخْتَبِرُ بِهَا شِدَّتَكُمْ عَلَى دِينِكُمْ فَقَدْ رَأَيْتُ فَسَجَدُوا لَهُ وَرَضُوا عَنْهُ: ما چه اوس اوس تاسو ته کومه خبره اوکړله په دې سره ما دا ازميښت کولو چه تاسو په خپل دين باندې څومره سخت او کلك ئې.اوس زما يقين اوشو چه ستاسو مضبوطيا مې اوليدله.نودوى ده ته سرونه ټيټ کړل.اود ده نه خوشحاله شول.

**قوله** فَكَانَ ذَٰلِكَ آخِرَ شَأْنِ هِرَقْلَ: د «آخرشان هرقل» مطلب دا نه دې چه د دې نه پس هغه سمدستى مړ شو.بلکه هغه ته چه د اسلام کوم دعوت ورکړې شو اوپه دې باره کښې چه کومه واقعه پيښه شوه.هغه هم دلته ختمه شوه.دهرقل معامله مشتبه پاتې شوه هغه ته د نبى اکرم ﷺ حقانيت ثابت شو.خو بيا هم هغه خپل حکومت او دين ته ترجيح ورکړله.او ايمان ئې راوړلو.(٢)

هرقل دد ې نه پس ډيره موده ژوندې پاتې شو.لکه څنگه چه وړاندې بيان اوشو چه د دې نه پس هغه په جنګ موته کښې د مسلمانانو خلاف لښکراوليږل په جنګ تبوك کښې ئې لښکر راوليږل.دغه شان د نبى ﷺ په خدمت کښې ده سره زر راوليږل کوم چه نبى ﷺ تقسيم کړل.(٣)

نبى اکرم ﷺ ده ته د غزوه تبوك په موقع باندې خط ليږلې وو هرقل خپل قوم ته هغه خط اولوستل.او وې ونيل.دا کس ماته دعوت راکوى چه زه مسلمان شم کنى جزيه به ادا کوم.اوکه دا نه وى.نوآخرى صورت په جنګ وى.تاسو ټولو ته معلومه ده چه د دې کس قبضه به زمونږ په زمکه باندې هم اوشى راشئ يا خو دده ددين تابعدارى اوکړئ اويا جزيه ورکول اومنئ.قوم چه کله دا خبره واوريدله نوپه يو آواز ئې دده خبره رد کړله.او دخفگان

---

(١) پورتنئ حواله)_

(٢) فتح البارى (١/٤٣)_

(٣) پورتنئ حواله)_

اظهار ئے اوکړلو .خو هرقل په دے باندے په آرام کړل اوخوشحاله کړل .چه ما خو ستاسو کلك والے کتل .اوس ماته معلومه شوه چه تاسو په خپل دين باندے څومره کلك ئے
بیا هرقل حکم وزکړلو چه ماته یوعربی کس راولئ .چه هغه په خبره پوهیږی .اویادولے ئے شی نوتنوخی راوغوستے شو .هرقل ورته اوونیل .ته دے کس ته ورشه .که نوړے درنه تولے خبرے هیرے شی نوخیردے .خودرے خبرے یادے ساته .(۱)یوه دا چه هغه د خپل خط یادګیرنه کوی که نه؟(۲) دویمه دا چه هغه زما خط اولولی .نود شپے ذکر کوی که نه؟(۳) اودریم دا چه دهغه د اوږو په مینځ کښے څه څیز شته که نه؟
تنوخی لاړلو اوپه تبوك کښے د نبی ﷺ په خدمت کښے حاضر شو .دتعارف نه پس نبی کریم ﷺ اوفرمائیل .اے تنوخی آیا ستاسو دخپل پلار حضرت ابراهیم ﷺ په دین .د دین حنیف کښے مینه نشته .هغه ورته اوونیل .زه په دے وخت کښے د یو قوم قاصد یم .اوپه یوخاص دین باندے یم .ترڅوپورے چه زه هغوی ته واپس شوے نه یم .نو دهغے نه وړاندے اوس زه دخپل دین نه نشم اوړیدے .نبی ﷺ په خندا شو .اوددے نه پس نے دا آیت مبارك اولوستلو ﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ ۚ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِیْنَ﴾ القصص ۵۹ـ
بیائے اوفرمائیل .((یا أخا تنوخ :إنی کتبت بکتاب إلی کسری، فمزقه، والله ممزقه و ممزق ملکه، وکتبت إلی النجاشی بصحیفة فخرقها، والله مخرقه ومخرق ملکه، وکتبت إلی صاحبك بصحیفة فأمسکها، فلن یزال الناس یجدونه منه بأساً ما دام فی العیش خیر))
دا خبره دے ښکاره وی .چه نجاشی دوه دی .یوخوهغه دے .دچا په زمانه کښے چه صحابه کرام ﷺ اولنے هجرت کړے وو .هغوی په نبی ﷺ باندے ایمان راوړے وو .د هغوی وفات د ۷ھ کښے آخره کښے شوے وو .څکه چه د ام حبیبه ﷺ نکاح هم هغه کړے وه .او د راجح قول مطابق دهغے نکاح په ۷ھ کښے شوے وه .بیا نبی ﷺ د مدینه منوره پلاجنازګاه کښے دهغه غائبانه جنازه کړے وه .د غزوه تبوك په موقع په سفر کښے نه .علامه سهیلی رحمه الله ددوی وفات په ۹ھ کښے ذکر کړے دے .ددے په باره کښے حافظ ابن کثیرفرمائی چه ((فیه نظر))
دویم هغه دے .کوم چه د مسلمان نجاشی نه پس راغلو .هغه مسلمان نه وو .دهغه ذکر په مسند احمد کښے دتنوخی په روایت کښے دے .دغه شان د مسلم په روایت کښے نجاشی طرف ته د خط لیږلو ذکر سره په کښے د ((ولیس بالنجاشی الذی صلی علیه النبی ﷺ)) تصریح هم شته .(۱)
تنوخی وائی .چه یوه خبره دا شوه .اودا هغه اولیکله ددے نه پس دهرقل خط اولوستلے شو .په دے کښے هرقل لیکلی وو .((تدعونی إلی جنة عرضها السماوات والأرض أعدت للمتقین، فأین النار)) نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل .((سبحان الله أین اللیل إذا جاء النهار)) تنوخی اوونیل .دا دویمه خبره شوه .دا ئے هم اولیکله

(۱) طبقات ابن سعد (۹۵/۸) والإصابة (۲۰۶/٤) والبداية والنهاية (۹۹/۳. ۱۰٤) ومسند احمد)_

نبى كريم ﷺ د خط نه د فارغ كيدو نه پس اوفرمائيل.ستا حق جوړيږى.اوته يو قاصد ئے چونكه مونږ په سفر كښے يو.اومونږ سره څه نشته.نوځكه مجبورى ده ګنى مونږ به تا ته انعام دركړے وو.حضرت عثمان ﷺ يوه صفوريه جوړه پيش كړله اوبوانصارى خوان د ميلمستيا ذمه وارى واخستله.زه دتلو دپاره پاسيدم.او روان شوم نو نبى ﷺ ماته آواز اوكړلو او راوے غوښتلم.اووے فرمائيل.تاته چه د څه حكم شوے دے.هغه اوكړه.نبى ﷺ خپلے شاه طرف ته اشاره اوكړله.چه راتاؤ شوم.او اومے كتل نونبى ﷺ ..خبوه..(هغه جامه چه په كومه د كيناستو په وخت كښے پنډئ اوخيته ترى.چه اړانه ئے شى.ازمترجم) اوپه شاه مباركه ئے مهر نبوة ښكاره وو.كوم چه ماته په نظرباندے راغلو.(١)

**براعت اختتام** دامام بخارى رحمه الله عادت دے.چه په اختتام باندے دلالت كولو دپاره د كتاب په آخر كښے څه لفظ راوړى.دلته لفظ د..آخر.. د بدء الوحى په اختتام باندے دلالت كوى.(٢)

**فائده** حضرت شيخ الحديث صاحب فرمائيلى دى.چه امام بخارى رحمه الله د كتاب په آخر كښے څه لفظ په اختتام باندے دلالت كونكے راوړى.په دے سره د كتاب اختتام طرف ته اشاره وى.خوپه دے سره دوى انسان ته خپله خاتمه وريادوى.د دوى مقصد دا وى چه ګورئ دا كتاب چه علمى مباحث په كښے ذكر شوى دى.اختتام ته اورسيدلودغه شان ته هم مه غافله كيږه.ستا ژوند به هم يوه ورځ ختم شى.او بند به شى.لكه چه صرف د كتاب په اختتام باندے تنبيه نه ده.بلكه د دے سره سره سړے خپلے خاتمے طرف ته هم متوجه كوى.(٣)

**د روايت دترجمة الباب سره مناسبت** د روايت د ترجمة الباب سره د مناسبت په باره كښے يوه خبره دا كولے شى.چه په ((باب كيف كان بدء الوحى إلى رسول الله ﷺ)) كښے د وحى ذكر وو اوپه وحى كښے درے خيزونه وى.

() يوموحى،يعنى الله تعالى دده شان اوعظمت خو مسلم اومتفق عليه دے.مشركان هم دالله تعالى تعريف اومدح كوى.اووائى.چه هم هغه د زمكے اوآسمان خالق دے.هم هغه د شمس اوقمر خالق دے.هم هغه د نظام تدبير كونكے دے.څوك دهغه فيصله نشى رد كولے.

() دويم خيزپه وحى كښے يوه واسطه وى.هغه واسطه حضرت جبريل آمين دے.د چا په شان كښے چه راغلى دى.﴿إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ﴾(٤)

() دريم خيز موحى اليه دے.يعنى محمد ﷺ امام بخارى رحمه الله دلته د موحى اليه يعنى نبى ﷺ عظمت اوصداقت اود دوى ذهانت او شرافت ثابت كړل.د اهل كتابو د عالمانو، هرقل ،اوضغاطر شهادت دلته په حديث كښے مصرح دے.لكه څنګه چه ئے تفصيل وړاندے تيرشو.دغه شان د كفر په امامانو كښے دكفر د يولوئے امام د ابوسفيان بن حرب ګواهى ئے هم

---

(١)مسند احمدبن حنبل(٢/٤٤١، ٤٤٢)_
(٢)فتح البارى(١/٤٤)_
(٣)حاشيه لامع الدرارى (١/٥٣٢)_
(٤)التكوير:١٩)_

پیش کړے ده.ابوسفیان بن حرب چه د هرقل د یوولسو سوالونو په جواب کښے د نبی ﷺ کوم اوصاف بیان کړی دی.هغه د دوی په عظمت.دیانت او شرافت باندے دلالت کوی.لکه چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث راوړلو.په دے کښے د موحی الیه یعنی نبی ﷺ اوصاف بیانول غواړی دوی د نبی ﷺ د اوصافو د حقانیت دپاره دوه لوئے شهادتونه بیان کړی دی.(١)

دا هم ونیلی شی.چه دا باب د ..بدء الوحی.. دے.اود هرقل په حدیث کښے د ابوسفیان په ژبه دنبی ﷺ د ژوند ابتدائی حالات بیانیږی.نومعلومه شوه.چه نبی ﷺ ته د وحی ابتداء ددے دپاره شوے وه.چه د دوی دا ښکلی اوحمیده حالات وو.ددے تقاضا دا وه.چه په دوی باندے وحی نازل شی.(٢)

دریمه خبره دا ده.چه په ترجمة الباب کښے آیت ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِن بَعْدِهِ﴾ ...الخ.. ذکر دے.دغه شان په حدیث هرقل کښے هم ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ ...الخ﴾ (٣) آیت راغلے دے.په دے دواړو آیاتونو کښے د اخلاص.اقامت دین.اود توحید تبلیغ مضامین د قدر مشترك په طور موجود دی.چه پیغمبرانوته به وحی کیدله.دغه شان په حدیث هرقل کښے د ذکر شوی آیت په ذریعه دهغه آیت سره ربط راغلو.کوم چه په ترجمة الباب کښے ذکر دے.(٤)

دحضرت شیخ الهند د توجیه مناسبت به داسے وی.چه هغوی په بدء الوحی او په ..کیف.. کښے تعمیم اختیار کړے دے.ددے په رڼا کښے خو تطبیق ښکاره دے.چه په دے حدیث کښے د ابتداء رسالت بیان په اعتبارد مکان.زمان اواحوالو سره دے.اوپه اعتبار د صفات د موحی الیهم سره هم دے.دغه شان دحدیث هرقل د حدیث دمجموعه نه د نبی اکرم ﷺ د عظمت.صدق سره سره د صاحب وحی په حیثیت سره د وحی عظمت هم معلومیږی.

**دحدیث نه مستنبط مسائل:** ① ددے حدیث نه ثابته شوه.مکتوب الیه اګرچه کافروی.چه هرکله ورته د دعوت اسلام په سلسله کښے خط لیکلی شی.نود ملاطفت او نرمئ طریقه به اختیارولے شی.رسول الله ﷺ دهرقل په خط کښے هم ددے ملاطفت او نرمئ طریقه اختیار کړے وه.کما مر تفصله.② ددے نه یوه خبره دا معلومه شوه.اګرچه کافر ته خط لیکلی شی.نوهغه به هم د بسم الله الرحمن الرحیم نه شروع کولے شی.داسے نه ده.چه مکتوب الیه کافر وی.نو دهغه په خط کښے به بسم الله الخ نشی لیکلے.③ ددے حدیث نه دا هم معلومه شوه.چه په خبر واحد باندے عمل کول واجب دے.ځکه چه نبی ﷺ د یو کس په ذریعه خط اولیګلو.اود دوی مقصد دا وو.چه ددے مطابق دے عمل اوکړے شی.نو ددے نه په خبرواحد

(١) عمدة القاری(٧٩/١)_
(٢) عمدة القاری(٧٩/١)_
(٣) آل عمران: ٦٤)_
(٤) پورتنۍ حواله)_

باندے د عمل کولو لزوم معلومیږی. ④ څلورمه فائده ددے حدیث نه دا معلومه شوه.که اهل کتابو کښے څوك ایمان راوړی.نو هغه ته به دوه ثوابونه ملاویږی.څکه چه نبی ﷺ اوفرمائیل چه ((أسلم تسلم یؤتك الله أجرك مرتین))

⑤ پنځمه خبره دا معلومه شوه.چه قرآنی آیاتونه واخلی.اودکافرو ملك ته سفر کوی.نودا جائزدی.لکه څنګه چه ئے خط واخستلو اودهرقل ملك طرف ته ئے سفر اوکړلو.اوپه هغے کښے قرآن پاك لیکلے شوے وو.((وسیأتی تفصیله فی محله إن شاء الله))

⑥ شپږمه فائده دا معلومه شوه.چه کافرانو ته به اول د اسلام دعوت ورکولے شی لکه څنګه چه هرقل ته نبی ﷺ د اسلام دعوت ورکړے وو.

⑦ اوومه خبره دا معلومه شوه.چه د دین په امورو کښے به هغه خلقو ته ترجیح حاصله وی.څوك چه دنسبی شرافت حامل وی.یعنی که داسے خلق موجود وی چه هغوی د دین حاملان وی.اوددے په مقتضا باندے عمل کونکی وی.نوپه هغوی کښے چه څوك نسبی شرافت لری.هغه ته به ترجیح وی.اوکه څوك د نسبی فضیلت خاوند وی.خو حامل دین نه وی.اوددے په مقتضا باندے عمل نه کوی.اوبل کس چه نسبی شرافت نه لری خو د دین په مقتضا باندے پوره پوره عمل کونکے وی.نوڅوك چه د دین په مقتضا باندے عمل کوی اګرچه نسبی شرافت نه لری.هغه ته به ترجیح وی.په داسے صورت کښے به صرف نسبی شرافت وجه د ترجیح نه وی. ⑧ یوه مسئله ددے نه دا ثابته شوه.چه په کوم خط کښے د قرآن پاك آیت لیکلے شوے وی.هغے ته محدث، جنب اوکافر هم لاس وراوړلے شی لکه د نبی ﷺ په دے خط کښے چه دقرآن کریم آیت لیکلے وو.اود کافر لاس ته هغه خط اورسیدلو

⑨ نهمه فائده دا په ذهن کښے راغله.چه په خط کښے ایجاز او اختصار غوره دے.هم دا د بلاغت تقاضا ده.دنبی ﷺ خط مبارك د ایجاز او اختصار باوجود د بلاغت په اعلی قسم باندے مشتمل وو. ⑩ ددے نه دا هم معلومه شوه.چه د کافرانو ملك ته سفر کول جائز دی.لکه څنګه چه د نبی ﷺ قاصد حضرت دحیه کلبی رضی الله عنه شام ته سفر کړے وو

⑪ دا هم معلومه شوه.که د تبلیغ دپاره د قرآن پاك آیاتونه اولیکلی شی اوکافرانو ته اولیګلے شی.نوپه دے کښے څه حرج نشته.لکه څنګه چه نبی ﷺ لیږلے وو

⑫ یوه خبره دا هم معلومه شوه.چه د ګمراهئ سبب جوړیدل هم په ګمراهئ کښے داخل ده.لکه د ((فإن تولیت فإن علیك إثم الأریسیین)) نه چه معلومه شوه

⑬ یوه خبره دا هم معلومه شوه.چه دروغ په د ټولو امتونو په نیز قبیح او بد دے.صرف په رافضیانو کښے یوه ډله ده.چه هغوی دروغ اجراوثواب ګنړی.د باقی ټولو امتونو د کذب په قباحت باندے اجماع ده.

⑭ دا خبره معلومه شوه.چه پیغمبران علیهم السلام په اوچت نسب کښے رالیږلے شوی دی

⑮ یوه خبره دامعلومه شوه.چه اهل کتابو ته د نبی ﷺ د صداقت علم وو

⑯ یوه خبره دا هم معلومه شوه.چه اهل کتابوته به دجنګ نه وړاندے داسلام دعوت ورکولے شی.د جنګ نوبت به هله راځی.چه هغوی په اسلام یا په جزیه کښے یو هم قبول نکړی.

⑰ یوه خبره دا معلومه شوه چه کافرانوته په ابتداء سلام نشی کولے.نبی ﷺ «سلام علی من اتبع الهدی»فرمائیلی دی.«سلام علیکم»ئے نه دی فرمائیلی.

⑱ یوه خبره دا هم ثابته شوه چه کافرانو ته کله د اسلام دعوت ورکولے شی.اود اسلام په قبلولو کښے تاَل متول کوی.نودهغوی عذر به قابل قبول نه وی.هرقل دعوت قبول نکړلو.نونبی ﷺ اوفرمائیل.«کذب بل هو علی نصرانیته»(۱)

⑲ یوه خبره دا معلومه شوه.چه په مخاطباتو او خطبه کښے د «أما بعد» ونیل مستحب دی

**قوله** رَوَاهُ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ وَيُونُسُ وَمَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ: دا روایت کوم چه تاسواولوستل.په دے کښے د امام بخاری رحمه الله شیخ ابوالیمان دے.د دوی استاذ شعیب دے.اودهغه استاذ زهری دے.امام زهری رحمه الله د عبیدالله بن عبدالله عن ابن عباس په سند سره حدیث نقل کړے دے.

دلته کښے ئے «رواه صالح بن کیسان ..الخ» اوونیل.امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی.چه د زهری رحمه الله نه روایت کونکے لکه څنګه چه شعیب دے.دغه شان دا درے واړه هم د امام زهری رحمه الله نه روایت کوی.

دصالح بن کیسان روایت امام بخاری رحمه الله د «ابراهیم بن حمزة حدثنا إبراهیم بن سعد عن صالح بن کیسان عن ابن شهاب عن عبید الله بن عبد الله عن ابن عباس» په سند سره په «کتاب الجهاد باب دعاء النبی ﷺ الناس إلى الإسلام والنبوة» کښے نقل کړے دے.خویه دے روایت کښے د ابن ناطور قصه نشته.هم په دے سند سره امام مسلم هم دا دے حدیث تخریج کړے دے.(۲)

دغ شان د یونس روایت هم امام بخاری رحمه الله په «کتاب الجهاد باب قول الله عزوجل ﴿قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَآ إِلَّآ إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ﴾» او «کتاب الإستیذان باب کیف یکتب إلی أهل الکتاب» کښے مختصراً نقل کړے دے.د دوی په سند سره مکمل حدیث امام طبرانی روایت کړے دے.

اودمعمر روایت هم امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر باب ﴿قُلْ يَآ أَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ﴾ کښے نقل کړے دے.

علامه کرمانی رحمه الله په دے مقام کښ څه نور احتمالات ذکر کړی دی.دهغے علامه عینی او حافظ ابن حجر رحمهما الله په زوردار طریقه تردید کړے دے.(۳)

والله اعلم وعلمه أتم وأحکم قد تم شرح کتاب بدء الوحی ویلیه إن شاء الله تعالی کتاب الإیمان

---

(۱) د ..اسلام هرقل ..په بحث کښے دا دے تخریج تیر شوے دے_

(۲) صحیح مسلم کتاب الجهاد باب کتب النبی ﷺ إلی هرقل ملک الشام یدعوه إلی الإسلام)_

(۳) د پوره تفصیل دپاره اوګورئ عمدة القاری (۱/۱۰۰، ۱۰۱) وفتح الباری (۱/۴۴، ۴۵)_

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كتاب الإيمان

دوحي عظمت او صداقت، عصمت اوحجتيت د ديباچه په طور د بيانولو نه پس اصلي مقصد شروع كوي. چونكه دټولو كارونو دارومدار په ايمان باندې دې. د وحي په تعلق سره د الله تعالى اود بنده تعلق معلوم شو. اوس ددې تعلق اظهارهم ضروري دې. هغه به په ايمان او اعمالو سره راځي. ايمان روح دې او اسلام بدن. ايمان حقيقت دې او اسلام ددې صورت. ايمان بنياد دې او اسلام ددې شاخونه دي. هم د ايمان په وجه په مغيباتو باندې بغير د دليل او حجت نه يقين او اطمينان راځي. د وحي بحث ئې ځكه په ابتداء كښې ذكركړلو چه دټول كتاب حجتيت او استناد ثابت شي.

مناسب معلوميږي چه دايمان د مباحثو شروع كولو نه وړاندې د اسلامي ډلو مختصر تعارف اوكړے شي.

**اسلامي ډلې** اسلامي فرقې هغې ته وائي چه د اسلام دعوى كوي. اوخپل ځان اسلام طرف ته منسوب كوي. كه ګمراه وي او كه په صحيح لاره وي. معتزله. خوارج. مرجيه. جهميه. وغيره ټولې على سبيل التشكيك.. فرق ضاله.. دي. صحيح اسلامي فرقه. اهل السنة والجماعة.. ده. كوم چه د«ماأناعليه وأصحابي» مصداق دے(۱)

**داهل سنت والجماعة ډلې** بيا په اهل سنت والجماعة كښې ځلور ډلې په صحيح اسلام باندې دي

**محدثين** دا حضرات په عقائدو كښې د امام احمد رحمه الله متبعين دي.

**متكلمين** دا دوه ډلې دي.

(الف) **اشاعره** دا خلق عام طور د امام مالك اوامام شافعي رحمهماالله نه د منقولو عقائدو تشريح اوترويج كوي.

(ب) **ماتريديه** دا حضرات د امام اعظم رحمه الله اود دوى نه دمنقولو عقائدو تائيد اوتفصيل كوي. په اشاعره او ماتريديه كښې لږ غوندې اختلاف دے. ابوالحسن اشعري رحمه الله د اولنئ اود ابومنصور ماتريدي رحمه الله د دويمې ډلې امام دے. دا دواړه د امام طحاوي رحمه الله هم عصر دي.(۲)

**امام ابوالحسن اشعري** رحمه الله امام ابوالحسن اشعري په اول كښې معتزلي وو. د ابوعلي جبائي معتزلي په خاص شاګردانو كښې وو. د معتزلو لوئې مناظر وو. يوځل ئې په ټول رمضان كښې اعتكاف اوكړلو. په اوله عشره كښې ئې اوليدل چه نبي ﷺ ورته فرمائي «ياعلى أنصرالمذاهب

(۱) هذا جزء من حديث أخرجه الترمذي في جامعه عن عبدالله بن عمروبن العاص رضى الله عنهما فى كتاب الإيمان باب ماجآء في إفتراق هذه الأمة رقم.(۲۶۴۱)۔

(۲) فضل الباري (۲۳۵/۱)

المروية عنى فإنها الحق)) چه خوب نه رابيدار شو نو ډير فكرمند شو ورسره په دويمه عشره كښې ورته بيا د نبى ﷺ زيارت نصيب شو نبى ﷺ ترے تپوس اوكړلو ((مافعلت فيما أمرتك)) دوى ورته جواب وركړلو.((يارسول الله وماعسى أن أفعل، وقد خرجت للمذاهب المروية عنك محامل صحيحة)) نبى ﷺ ورته دوباره اوفرمائيل ((أنصر المذاهب المروية عنى فإنها الحق))چه بيدار شو نو ډيرفكرمند شو ورسره . پخه اراده ئے اوكړله چه ..كلام.. به پريږدم دحديث تابعدارى به كوم او دقرآن كريم په تلاوت به مداومت كوم.بيا په آخرى عشره په اوويشتمه شپه چه توله شپه په كښې بيدار وو.په دغه باندے دخوب غلبه راغلمه.نواوده شو.هغه ته افسوس كيدلو.چه په اوويشتمه شپه ئے عبادت اونكړلو.هم ددے خوب په حالت كښے ورته د نبى كريم ﷺ زيارت نصيب شو.نبى ﷺ ترے بيا تپوس اوكړلو نو دوى جواب وركړلو.((قد تركت الكلام،يارسول الله،ولزمت كتاب الله وسنتك)) نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.((أنا ما أمرتك بترك الكلام،إنما أمرتك بنصرة المذاهب المروية عنى فإنها حق)) دوى عرض اوكړلو.يارسول الله زه د يوخوب په بنياد باندے داسے مذهب څنګه پريخودے شم.چه دهغے په پخولو او مضبوطولو كولو كښے ما ديرش كاله تير كړى دى.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.((لولا أنى أعلم أن الله سيمدك بمدد من عنده لما قمت عنك حتى أبين لك وجوهها،فجد فيه،فإن الله سيمدك بمدد عنده))چه كله صبا شو.او رابيدار شو.نود اهل سنت عقائدو ته ئے شرح صدر شوے وو.اود معتزلوډ د عقائدو فساد ورته ښكاره شوے وو.په جامع مسجد كښے ئے د توبے اعلان اوكړلو.اوبيا د اهل سنت لوئے امام جوړ شو.(١)

**امام ابومنصور ماتريدى** رحمه الله محمد بن محمد بن محمود .ابومنصورماتريدى رحمه الله د متكلمينو رحمهم الله امام دے.په درے واسطو سره د امام ابوحنيفه رحمه الله شاګرد دے.دوى فقه د ابوبكرجوزجانى رحمه الله اوابوسليمان جوزجانى رحمه الله نه حاصل كړے وه.كوم چه د امام محمد رحمه الله شاګرد دے.

كتاب التوحيد .كتاب المقالات.كتاب اوهام المعتزلة وغيره اهم تصنيفات ئے پريخى دى.په ٣٣٣ﻫ كښے وفات شوے دے.

دوى ..ماتريد..طرف ته منسوب دى.كوم چه د سمرقند يوه محله ده.(٢)

څلورمه ډله د اهل سنت دصوفيانو رحمهم الله ده.

په حضرات محدثينو رحمهم الله باندے نقل اوسماع غالب ده.دوى د سمعياتو نه مسائل مستنبط كوى.متكلمين كه ماتريديه وى اوكه اشاعره.په سمعيات او عقليات دواړو باندے اعتماد

(١)ددے واقعے دپاره دغه شان ددوى د نورو حالاتو دپاره اوګورئ طبقات الشافعية الكبرى للسبكى(٢/٢٤٥، ٣٠١)

(٢)انظر الفوائد البهية فى تراجم الحنفية(ص،١٩٥)_

کوی خو ددے دا مطلب نه دے چه په عقل باندے ټه خبره ثابتوی بلکه د قرآن او سنت نه ثابت شوی عقائد په عقلی دلائلو سره ثابتوی.دعقلی شبهاتو رد کول د دوی اهم مقصد دے.دوی دعقل اونقل د توافق په ذریعه باندے د مسائلو اثبات کوی.دصوفیانو رحمهم الله په نیز اشراق نوری ته زیات اهمیت حاصل دے.(۱)

**د ایمان لغوی معنی** د ..ایمان.. لفظ د ..امن.. نه ماخوذ دے.او ..امن.. د ..خوف.. ضد دے. امن اطمینان او طمانیت ته وائی.کله چه دا د باب افعال نه راشی.نومتعدی کیږی .او د دے معنی، ازاله د ویرے.. راځی.بیا ددے استعمال کله د یو مفعول سره کیږی.او وئیلی شی.«آمنته» ماهغه ته امن ورکړلو.اوهغه مے مطمئن کړلو.اوکه کله د دوو مفعولینو سره راځی. «آمنته غیری»ما هغه ته د خپل خان نه سوا د نورو نه یے ویرے او مطمئن کړلو.بیا چه کله دا د باب افعال نه استعمال شی.نوددے معنی ازاله د ویرے وی.او دوو مفعولینو ته متعدی کیږی. اوکله په دویم مفعول باندے .من. داخلولے شی.لکه ﴿وَآمَنَهُمْ مِنْ خَوْفٍ﴾ دلته د باب افعال ځنے دے..هم.. او ..خوف.. دوه مفعوله دی.دویم مفعول ..خوف.. د ..من.. په واسطه د ..من.. سره ذکر شوے دے.

کله د ..ایمان.. په صله کښے ..باء..استعمالیږی.په دغه وخت کښے ددے معنی ..تصدیق.. وی.بیا دغه ..باء.. کله په ذوات باندے داخلیږی.لکه «آمنت بالله» اوکله په احکامو باندے لکه ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ﴾ (۲)

د بعضے خلقو رائے دا ده.چه ایمان کله د ..تصدیق..په معنی کښے استعمال وی.نو ددے ,,صله.. د ..باء.. سره ځکه راځی.چه دا معنی د ..اعتراف.. لره متضمن وی .اود ..اعتراف.. صله چونکه ..باء.. راځی.نوځکه ددے صله هم ..باء.. راځی.

بعضے حضرات فرمائی.چه ددے وئیلو ضرورت نشته.چه ایمان د اعتراف معنی لره متضمن دے.اود ..اعتراف.. صله ..باء.. راځی.نوځکه د ..ایمان.. په صله کښے هم ..باء.. راځی.بلکه پخپله د تصدیق صله په ..باء.. سره راځی.نوکله چه ایمان دتصدیق په معنی دے.نو ددے دپاره د ..باء.. استعمال په «آمنت بالله» کښے یا په ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ﴾(۳) کښے ښیخی ښکاره دے.

بیا په دے کښے اختلاف دے.چه ..ایمان.. په معنی د .. ویرے لرے کولو..دے.چه دا متعدی بنفسه وی.اوپه معنی د ..تصدیق.. وی چه متعدی بالباء وی.د ایمان دا دواړه معانی حقیقی دی.اوکه په دے کښے یوه حقیقی اوبله مجازی ده.د علامه زمخشری نه دواړه قولونه منقول دی.

---

(۱) فضل الباري(۱/۲۳۶)_
(۲) سورة البقرة:۲۸۵)-
(۳) سورة البقرة:۲۸۵)-

بعضے خو وائی چه ..دویرے لرے کول.. او ..تصدیق.. دواړه د ایمان حقیقی معانی دی د ..امن.. لفظ په دے دواړو کښے مشترك دے کله چه متعدی بنفسه وی نواولنئ معنی اوچه کله په صلے د ب .سره وی نو دویمه معنی به اخستلے شی.

بعضو دا ونیلی دی چه د ایمان حقیقی معنی خو ..د ویرے لرے کول.. دی خو چونکه په تصدیق کښے د تکذیب نه امن ورکول او د ویرے لرے کول وی د دے تعلق د وجے د ایمان مجازی معنی تصدیق هم راځی.

دغه شان د دے یو دریم استعمال هم شته چه کله د ..ایمان.. په صله کښے ..لام.. راشی لکه ﴿وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا﴾ (۱) ﴿اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَیْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوْنَ﴾ (۲) د دے استعمال په باره کښے ونیلی شی چه دلته په اصل کښے ایمان معنی دانقیاد لره متضمن دے اود انقیاد صله د لام سره راځی نود ﴿وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا﴾ (۳) معنی به وی ته زمونږ د خبرے منونکے نه یے دغه شان د ﴿اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَیْنِ مِثْلِنَا﴾ (۴) معنی ده آیا مونږ د داسے دوو کسانو منقاد اوتابعدار شو د دوی د خبرے منونکی شو چه هغوی زمونږ پشان دی او د دوی قوم زمونږ غلام دے نو دلته ..ایمان.. چونکه معنی دانقیاد لره متضمن دے اود انقیاد صله د ..لام.. سره راځی نوځکه د ایمان په صله کښے لام راوړلے شو.

د ایمان په صله کښے د ..علی.. استعمال ډیر لږ دے حضرت علامه کشمیری رحمه الله فرمائی ((ما من الأنبیاء نبی إلا أعطی ما مثله آمن علیه البشر...)) (۵) په دے حدیث کښے دا خودلی شی چه هرپیغمبرته داسے معجزات ورکولے شی چه په هغے باندے د خلقو اعتماد پیدا کړی د ..ایمان.. په صله کښے د ..علی.. استعمال ډیرزیات کم دے حضرت علامه کشمیری رحمه الله فرمائی دا استعمال صرف په یو حدیث کښے راغلے دے کوم چه مونږ وړاندے ذکر کړلو دلته کښے ایمان د اعتماد معنی لره متضمن دے (۶)

خلاصه دا شوه چه د ایمان استعمال په څلورو طریقوسره کیږی (۱) یودا چه دا متعدی بنفسه وی که یو مفعول طرف ته متعدی وی اوکه مفعولینو ته وی بل مفعول ته په واسطه د حرف جر سره لاړ شی اوکه بغیر د واسطه دحرف نه (۲) دویم صورت دا دے چه ایمان په معنی د

---

(۱) یوسف:۱۷

(۲) المؤمنون ٤٧_

(۳) یوسف:۱۷

(۴) المومنون:٤٧

(۵) صحیح بخاری(۷٤٤/۲) کتاب فضائل القرآن باب کیف نزل الوحی وکتاب الإعتصام باب قول النبی ﷺ بعثت بجوامع الکلم دغه شان صحیح مسلم (۸٦/۱) کتاب الإیمان باب وجوب الإیمان برسالة نبینا محمد ﷺ إلی جمیع الناس ونسخ الملل بملته)_

(۶) د دے ټولو د لغوی تفصیل دپاره اوګورئ لسان العرب (۲۱/۱۳، ۲٦) وتاج العروس (۱۲٤/۹، ۱۲۵) وفیض الباری(٤٤/۱، ٤٦)_

..تصديق ..شي.او د باء په صلة سره راغلي وي () دريم صورت دا دے چه دا د انقياد معنى لره متضمن شي.اود په صلة د لام سره استعمال شوے وي () اوڅلورم صورت دا دے چه دا د اعتماد معنى لره متضمن وي په دے صورت كښے به د دے صله ..على.. راځي.اودا ډيره كمه ده.والله اعلم

**په تصديق لغوى اوتصديق منطقى كښې فرق** دد ے نه پس د ايمان لغوى معنى تصديق اوتصديق منطقى كښے فرق پيژندل ضرورى دى.

دتصديق لغوى معنى ده.په خپل اختيار سره يوخبر يا يومخبر صادق ګرځول.مثلاً ستا وړاندے يوكس څه خبره اوكړله.اوتا دهغه خبره رښتيا اوګرځوله.يا د ے مخبر رښتونے اوګرځوله.نودا تصديق لغوى شو.

اود تصديق منطقى معنى ده.د نسبت تامه علم او ادراك.مناطقو تصديق چه د علم او ادراك د قبيلے څخه شمارلے دے.او ددے معنى ئے هم هغه د نسبت تامه علم او ادراك بيان كړے دے.اوس د نسبت تامه علم كله بغيرد اختيار نه هم راځي.مثلاً د ماسپخين وخت دے نمر راختلے دے.دلته چه د نمر راختو كوم تصديق حاصل دے.هغه غير اختيارى دے دغه شان په ټولو بديهياتو كښے هم دا كيږي.چه دهغے د نسبت تامه چه كوم علم او ادراك حاصل وي.په هغے كښے اختيار ته دخل نه وي.

حاصل دا چه په تصديق لغوى اوتصديق منطقى كښے يوفرق دا شو چه په تصديق لغوى كښے اختيار ته دخل وي.ځكه چه سړے په خپل اختيار باندے يوخبر يا مخبر صادق ګرځوي.اوپه تصديق منطقى كښے اختيار ته دخل نه وي.هلته د نسبت تامه علم او ادراك كله بغيرد اختيار نه هم حاصليږي.اودے ته د منطقيانو په نيز تصديق وائي.

اويو بل فرق دے.هغه دا چه تصديق منطقى د تكذيب اوانكار سره جمع كيدے شي اوتصديق لغوى د تصديق اوانكار سره نشي جمع كيدے.مثلاً زما دا چشمے دى او تاسو دا پيژنئ.چه دا هم زما دى.خود عناد يا بدنيتئ دوجے تاسو انكار كوئ.نو زما او دچشمو په مينځ كښے تاسو ته دنسبت علم او ادراك شته.اوتاسو ته تصديق منطقى حاصل دے.خوتاسو انكار كوئ.مناطقه ددے انكار د وجے دا د تصديق نه نه خارجوي.اوتصديق لغوى دانكار سره نشي جمع كيدے.په دے كښے خبراو دهغے مخبر صادق ګرځولے شي.زه وايم چه دا چشمے زما دى.نوچه كله تاسو ماته رښتينے اووائے.چه واقعئ دا چشمے زما دى.نوهله دا تصديق لغوى شو.ګنې تصديق لغوى نه دے.

دا فرق د دے تعريف په بنياد باندے دے.كوم چه د منطق په كتابونو كښے ليكلے شوے دے.په كوم كښے چه ئے تصديق دعلم اوادراك د قبيلے نه شمار كړے دے.(١)

خوصاحب د روح المعانى په روح المعانى كښے ليكلى دى.((وان التصديق المنطقى بعينه التصديق اللغوى،ولذا فسره رئيسهم فى الكتاب الفارسية ب-گرويدن،،وفى العربية بما يخالف التكذيب

---

(١) فضل البارى(١/٢٣٧، ٢٣٨)_

والإنكار، وهذا بعينه المعنى اللغوى»(۱)مطلب دا دے چه د رئیس المناطقه د تصریح مطابق د تصدیق منطقی معنی په فارسی کښے ..گرویدن.. راځی اودا د تکذیب اوانکار مقابل دے.اود ..گرویدن.. معنی ده.په یوڅیز باندے یقین اوباور کول.او په یوڅیزباندے یقین کول دا د علم د حصول نه پس د نفس یو فعل دے.چونکه دا د تکذیب مقابل ګرځولے شوے دے.نوځکه دا معنی د تکذیب سره نشی جمع کیدے.اوس چونکه دا د علم نه پس د نفس فعل دے.نودا به اختیاری فعل وی.اود تکذیب سره به جمع کیدے هم نشی.نوپه دغه وخت کښے به تصدیق منطقی بالکل د تصدیق لغوی سره مرادف وی.ځکه چه تصدیق لغوی هم د تکذیب سره نشی جمع کیدے.اوپه تصدیق لغوی کښے هم د انسان د اختیار دخل وی.نوهرکله چه تصدیق منطقی د حصول علم نه پس د نفس یو فعل ګرځولے شی.نومعلومه شوه.چه تصدیق په خپله دعلم او ادراك د قبیلے ځنے نه دے.بلکه د علم او ادراك د ملحقاتو د قبیلے ځنے دے.اودے ته د تکذیب مقابل هم وئیلی شی.نود ابن سینا د تعریف مطابق به تصدیق منطقی د ادراك د لواحقو نه ګرځولے شی.اودا به وئیلی شی.چه په تصدیق لغوی او تصدیق منطقی کښے څه فرق نشته.

بیا دعلامه تفتازانی اوصدرالشهید رحمهما الله چه د تصدیق په باره کښے کوم اختلاف دے.هغه هم په دے باندے مبنی دے.ځکه چه علامه تفتازانی رحمه الله فرمائی.چه د ایمان په تعریف کښے چه د تصدیق کوم لفظ راځی.په هغے د اختیاری د قید څه ضرورت نشته.ځکه چه تصدیق خو هم اختیاری وی.لکه چه دوی د ابن سینا د قول اعتبار کړے دے.اوصدرالشهید رحمه الله دا فرمائی.چه د ایمان په تعریف کښے چه د تصدیق کوم لفظ راځی.په هغے کښے به د اختیاری قید هم زیاتی کولے شی.دوی دهغه اولنی تعریف اعتبار کړے دے.کوم چه د منطق په رسائلو کښے مذکور دے.په کوم کښے چه تصدیق په اختیاری او غیر اختیاری دواړو کښے مشترك ګرځولے شوے دے.ځکه چه هغوی وئیلی دی چه په ایمان کښے کوم تصدیق وی.په هغے کښے به د اختیار اعتبار کولے شی.(۲)

البته په تصدیق منطقی او تصدیق لغوی کښے دومره فرق دابن سینا په نیز هم ضرور ملحوظ دے.چه په تصدیق منطقی کښے په اتفاق سره ظنیات هم داخل دی.اود تصدیق لغوی دپاره پوره جزم اویقین لازم دے.د ظن په دے کښے څه ګنجائش نشته.والله اعلم.

**دایمان شرعی معنی** د ایمان شرعی معنی عالمانو رحمهم الله په ډیرو عنواناتو سره ذکر کړے ده.

جمهورو عالمانو رحمهم الله ددے تعریف کړے دے.«**هوالتصديق بما علم مجئ النبي ﷺ به ضرورة تفصيلاً فيما علم تفصيلاً وإجمالاً فيما علم إجمالاً**»(۳)ددے مطلب دا دے چه د رسول الله ﷺ نه د کومو څیزونو

---

(۱) روح المعانی (۱۵۲/۱)۔

(۲) فیض الباری(۴۷/۱)۔

(۳) روح المعانی (۱۵۱/۱)۔

ثبوت بديهي طورثابت دے دهغے تصديق كول ايمان دے.كه د رسول الله ﷺ نه ثبوت اجمالي وي. نو اجمالي تصديق به ضروري وي.اوكه ثبوت تفصيلي وي.نو تفصيلي تصديق به ضروري وي.

د مثال په طور د نبي ﷺ نه عذاب قبر په تواترسره ثابت دے اوهغه اجمالي دے .نو اجمالاً د عذاب قبر تصديق كول دايمان دپاره لازمي اوضروري دے.اود عذاب قبر چه كوم تفصيلات راغلي دي.هغه په اخبار آحاد سره ثابت دي.اود نفس عذاب ثبوت په تواتر سره دے.اوبديهي دے.دمونځ ثبوت.د ركعاتونو شمار.د وختونو تفصيل.اودا چه په هر ركعت كښے يو قيام يوه ركوع اودوه سجدے دي.د نبي ﷺ نه په تواتر سره ثابت دي.اوبديهي دي اوپه عوامو او خواصو كښے مشهور دي.هم دا حال د روژے دے.اوددے په ابتداء او انتهاء او ((الامساك عن الأكل والشرب والجماع)) باندے اجماع ده.نوددے تصديق به تفصيلي لازم وي.

دانبياء كرامو عليهم السلام په باره كښے قرآن كريم فرمائي ﴿مِنْهُمْ مَنْ قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ﴾[1] دنبي ﷺ نه هم د څه پيغمبرانو ذكر اجمالاً منقول دے.د ﴿وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾[2] نه هم اجمالي ثبوت ملاويږي.نوچه د چا ثبوت اجمالي وي.په هغوى باندے اجمالي ايمان ضروري دے.اودحضرت ابراهيم. حضرت نوح.حضرت موسى.حضرت يوسف. حضرت اسحاق،حضرت اسماعيل،حضرت عيسى،حضرت داود .حضرت سليمان عليهم السلام وغيره ذكر تفصيلاً راغلے دے.په دوى باندے تفصيلي ايمان ضروري دے.[3]

**يواشكال اودهغې جواب:** دلته يو اشكال دا كيږي چه ((التصديق بما علم مجيئ الرسول ﷺ ضرورة)) ته وئيلي شوي دي.اود ((ضرورة)) معنى ((بداهة)) ده.يعني مشهور بين العوام والخواص. د دے نه معلومه شوه.چه د ايمان دپاره د مشهور حكم تصديق ضروري دے د غير ضروري تصديق ضروري نه دے.اگرچه هغه قطعي وي.

حضرت شيخ الاسلام شبيراحمدعثماني رحمه الله ددے جواب دا وركړے دے چه دلته د مشهور نه د هركس ناكس په نيز مشهور مراد نه دے.بلكه اهل دين چه د شريعت سره تعلق ساتي.اوددے د اصولو او قوانينو نه واقف وي.دهغوى په نيز مشهور مراد دے.په دے تقديرباندے هيڅ يوحكم داسے نشته.چه هغه قطعي وي.اود علم دين او ددے سره د تعلق ساتونكو په مينځ كښے به مشهور نه وي.[4]

علامه تفتازاني رحمه الله ددے اشكال دا جواب وركړے دے چه په دے تعريف كښے د ((ضرورة)) نه مراد ..يقين.. دے.يعني د ..ضرورت.. چه كومه معنى په پوهه كښے راځي .هغه مراد نه

(۱) المؤمن:۷۸_

(۲) الرعد:۷_

(۳) فضل البارى(۱/ ۲٤۰، ۲٤۱)_

(٤) فضل البارى(۱/ ۲٤۰)_

ده. بلکه صرف دومره مراد ده چه هغه څیز یقیني طور د نبی ﷺ نه ثابت وی. که مشهور وی او که نه وی. نو دهغې انکار به کفر ګرځولې شي. او دهغې تصدیق به دایمان دپاره ضروری ګرځولې شي (۱)

امام غزالی رحمه الله په «فیصل التفرقة بین الایمان والزندقة» کښې د ایمان او کفر تعریف کړې دے هغوی فرمائیلی دی. چه ایمان نوم دے «تصدیق النبی ﷺ بجمیع ما جاء به» یعنی د ایمان دپاره ضروری ده چه دهغه ټولو څیزونو کوم چه د نبی ﷺ نه په قطعیت سره ثابت دی تصدیق اوکړے شي. اود کفر متعلق دوی فرمائیلی دی «تکذیب النبی ﷺ فی شئ مما جاء به» د نبی ﷺ نه چه کوم څیزونه په قطعیت او یقین سره ثابت دی په هغې کښې که د یو نه انکار اوکړے شي. نو کافر به وی. نود ایمان دپاره ضروری دی چه د ټولو تصدیق اوکړے شي. اود کفر دپاره د ټولو انکار ضروری نه دے. دنبی ﷺ نه په قطعیت سره کوم څیزونه ثابت وی. په هغې کښې د یو په انکار سره هم کفر لازمیږی. (۲)

په دے باندے اعتراض شوے دے. چه هرکله د ایمان دپاره تصدیق اود کفر دپاره تکذیب ضروری دے. نو که یو کس داسې وی. چه هغه د څه څیز نه تصدیق کوی او نه تکذیب. نو هغه ته به څه وئیلی شي. د ایمان په تعریف کښې د تصدیق اود کفر په تعریف کښې د تکذیب قید لګولې شوے دے. یو سړے «لا اُصدق ولا اُکذب» وائی. نو هغه په اتفاق سره کافر دے. خو د دے تعریف په اعتبار سره دهغه حکم معلوم نه دے.

نوځکه امام رازی رحمه الله فرمائیلی دی. چه د کفر تعریف د «تکذیب النبی ﷺ فی شئ مما جاء به» په ځائې «عدم تصدیق الرسول فی شئ مما علم بالضرورة مجیئه به» اوکړے شي. یعنی د نبی ﷺ نه چه کوم څیزونه په قطعیت او یقین سره ثابت شوی وی. په هغې کښې د یو تصدیق نه کونکے کافر دے. (۳)

حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله د ایمان تعریف کړے دے. چه د قرآن کریم ظاهراً او باطناً تصدیق کول. اواقرار کول. اوبیا د دے معنی داسې متعین کول چه هغه د مرادات قرآنیه او نبویه مطابق وی. دا ایمان دے. په ژبه او زړه دواړو سره قرآن د الله تعالی ربنتینې کلام ګنړل او بیا د دے نه پس د قرآنی آیاتونو د معانیو متعین کولو دپاره چه رسول الله ﷺ او قرآن پاك څه مراد بیان کړے وی. هغه منل. دا ایمان دے. یو سړے که په ظاهره او باطن په ژبه او زړه د قرآن د حقانیت اقرار کوی. خو د قرآن د معنی متعین کولو دپاره هغه د قرآنی او نبوی مرادونو خیال نه ساتی. د قرآن معنی د دے خلاف بیانوی. دغه کس زندیق دے. مؤمن نه دے. په قرآن مجید کښې د جنت او دوزخ ذکر راغلے دے. اوپخپله قران پاك او نبی ﷺ د جنت او

(۱) نبراس شرح شرح عقائد (ص. ۳۹۲)_

(۲) تنظیم الاشتات (۱/۳۳)_

(۳) تفسیر کبیر (۲/۳۷، ۳۸) تفسیر آیت ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ﴾ (البقرة: ۷)_

دوزخ مصداق متعين كړے دے خو يو سړے وائى چه د جنت نه مراد معنوى اوباطنى خوشحالى ده او د دوزخ نه مراد معنوى او باطنى غم دے هغه په قرآن او سنت كښے چه د جنت او دوزخ په باره كښے كوم تفصيلات راغلى دى هغه نه منى حالانكه په ظاهره هم د قرآن اقرار كوى اوپه باطن كښے هم اقرار كوى خو معنى هغه بې نوى چه د رسول ﷺ د مراد نه خلاف وى د قرآن كريم د مراد خلاف وى دجنت نه هغه جنت مراد نه اخلى كوم چه به په آخرت كښے وى اوچه په هغے كښے به كوم باغونه وى حورے وى راحتونه او خوشحالئ راجمع شوى وى چه دهغه شان ((مالاعين رأت ولاأذن سمعت ولا خطر على قلب بشر)) وى دغه شان د دوزخ نه هغه د عذاب خائے مراد نه اخلى په كوم خائے چه به فرشتے د عذاب وركولو دپاره مقررے وى په كوم خائے كښے چه به قسم قسم تكليفونه رسولے شى اوكفر به ابدالآباد پورے په هغے كښے وى نوهغه كس مؤمن نه دے زنديق دے هغه د آخرت هم منكر دے په دنيا كښے د زړه سكون او خوشحالئ ته هغه جنت وائى اوهم دا تكليفونه اودردونه چه په زړه بانديے راځى هغه دوزخ گنړى اوكه يو سړے په ظاهره اقرار كوى اوپه زړه كښے ئے انكار پټ وى نوهغه منافق دے.(١)

حضرت علامه انورشاه كشميرى رحمه الله چه كوم بحث كړے دے دهغے حصل دا راوخى چه د نبى ﷺ نه كوم امور په قطعى او يقينى طور ثابت شوى وى په هغے كښے په دوى باندے اعتماد كوى اوتصديق ئے كوى دے ته ايمان وائى اوكه يو كس په دے امورو كښے په دے كښے په بعضو باندے په عقل د اعتماد كولو په بنياد تصديق كوى اوپه نبى ﷺ باندے ئے د اعتماد دتصديق په بنياد باندے نه وى نوهغه مؤمن نه دے يوكس وائى چه ما دعقل په بنيادباندے دا معلومه كړے ده اوپه عقل مے ددے خيزونو صداقت او اهميت پيژندلے دے نوزه ددے تصديق كوم د نبى په وئيلو زه تصديق نه كوم نوداسے كس هم مؤمن نه دے په قرآن كريم كښے دى. ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾(٢) دلته په نبى ﷺ باندے داعتماد ذكر دے

امام محمد رحمه الله فرمائى چه د ايمان شرعى معنى دا ده چه د رسول الله ﷺ نه د كومو امورو ثبوت قطعى اويقينى وى چه دهغے د تصديق دپاره د قول مع سواء نه د براءت او بيزارى اظهار هم اوكړے شى. ﴿ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾(٣) كښے ئے په حضرت ابراهيم عليه السلام اوپه هغه باندے د ايمان راوړونكو د مشركانو او دهغوى دخدايانو نه د براءت اعلان كړے دے خكه دتصديق سره ((تبرى عن جميع ماسوى الله)) هم ضرورى ده .(٤)

---

(١) تنظيم الأشتات (٣٣/١)_

(٢) النساء:٦٥)_

(٣) الممتحنة:٤)_

(٤) تنظيم الأشتات(٣٤/١)_

حضرت شيخ عبدالقادر جيلانى. مولانا ثناء الله پانى پتى. اوحضرت شاه ولى الله محدث دهلوى ﷺ فرمائى چه دايمان يوصورت دے هغه تصديق بالقلب ، اقرار باللسان. او عمل بالاركان دے اويو دايمان حقيقت دے او هغه «لايؤمن أحدكم حتى يكون هواه تبعاً لما جئت به»(١) مطابق دے چه طبيعت د شريعت مطابق شى. كوم څيزچه شريعت غوارى. طبيعت هم هغه څيز غوارى دكوم څيزنه چه شريعت تنفراوبيزارى ښكاره كړے وى په طبيعت كښے دهغے نه تنفر اوبيزارى او كراهت وى. دا د ايمان حقيقت دے.(٢)

**يواشكال** دلته اشكال كيږى. چه په ايمان كښے تصديق ضرورى دے او هغه تصديق پكار دے چه اختيارى وى. نوهرقل ته چه د ابوسفيان په سوال اوجواب باندے تصديق حاصل شو. او ضغاطرته چه خط اوليكلے شو. نود هغوى نه د خط په جواب كښے تصديق حاصل شو دوى ته مسلمان ونيل پكار دى. ځكه چه هغوى ته تصديق اختيارى حاصل وو. لكه چه دهغوى داقوالو «فَكَذَٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي نَسَبِ قَوْمِهَا» او «وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ» او «فَسَيَمْلِكُ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ» او «فَلَوْ أَنِّي أَعْلَمُ أَنِّي أَخْلُصُ إِلَيْهِ لَتَجَشَّمْتُ لِقَاءَهُ» او «وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمَيْهِ» او «هَلْ لَكُمْ فِي الْفَلَاحِ وَالرُّشْدِ وَأَنْ يَثْبُتَ مُلْكُكُمْ فَتُبَايِعُوا هَذَا النَّبِيَّ» نه معلوميږى.

هم دا حال د ابوطالب دے. هغه ته تصديق اختيارى حاصل وو. د هغوى اشعار د تصديق اختيارى په حصول باندے دلالت كوى.

كذبتم وبيت الله يبزى محمد ولما نطاعن دونه ونناضل

و نسلمه حتى نصرع حوله ونذهل عن أبنائنا والحلائل(٣)

ترجمه: تاسو دروغ وائي په بيت الله قسم محمد به مقهور او مغلوب نشى. تراوسه پورے مونږ دهغه په مرسته كښے جنګ نه دے كړے. مونږ به ترهغه وخته پورے هغه يے يار اومددګاره پرے نږدو. ترڅو چه دهغه نه يوخواه بل خواه راونه پرزوو. اوخپل خامن اوښځے رانه هيرے نشى)

هم دغه شان دابوطالب شعر دے

أبيض يستسقى الغمام بوجهه ثمال اليتامى عصمة للأرامل(٤)

ترجمه: (دهغه نورانى مخ داسے روښانه دے چه دهغے په وسيله د وريځو نه باران طلب كولے شى. د يتيمانو سرپرست اود كونډو محافظ دے.)

(١) مشكاة المصابيح (٣٠/١) كتاب الإيمان باب الإعتصام بالكتاب والسنة.الفصل الثانى)_
(٢) تنظيم الاشتات(٣٤/١)_
(٣) سيرت ابن هشام (١٧٦/١)_
(٤) سيرت ابن هشام (١٧٧/١)_

دغه شان ابوطالب وئیلی دی.

ودعوتنی وعلمت أنك صادق ولقد صدقت فکنت ثم أمینا

ولقد علمت بأن دین محمد من خیر أدیان البریة دینا([1])

ترجمه: تاماته داسلام دعوت راکړلو.زما یقین دے چه ته رښتینے ئے تا رښتیا وئیلی دی. د دے نه وړاندے هم ته امین وے.زما یقین دے چه د محمد دین د ټولو دینونو نه غوره دے.

دغه شان دهغه دا شعر دے.

والله لن یصلوا إلیك بجمعهم حتی أوسد فی التراب دفینا

ترجمه: په خدائے قسم که خلق د خپلو ټولو ډلو سره راشی.نوبیا هم تاته نشی رسیدے ترڅو چه زه په قبر کښے دفن نکړے شم.

نوهرقل او ابوطالب ته اختیاری تصدیق حاصل وو.کوم چه د ایمان دپاره ضروری دے بیا په کومه وجه دا دواړه مؤمنان تسلیم نکړے شول؟

**دامام غزالی رحمه الله جواب** ددے اشکال په جواب کښے امام غزالی رحمه الله فرمائی.چه د تصدیق قلبی سره د ایمان دپاره قول بالقلب یعنی اقراربالقلب هم ضروری دے.او ددے دواړو د طرفه اقراربالقلب نه دے موجود شوے.دامام غزالی رحمه الله دا تعبیر واضح نه دے.([2])

**دمحقق ابن همام رحمه الله جواب** شیخ ابن همام رحمه الله دویم تعبیر اختیار کړے دے.هغوی فرمائیلی دی.چه دایمان دپاره د تصدیق قلبی سره استسلام باطنی او انقیاد باطنی هم ضروری دے.د استسلام باطنی اوانقیاد قلبی مطلب دا دے چه د رسول الله ﷺ په لاس کښے خپل اختیار ورکړے شی.اوخپل ځان نبی ﷺ ته حواله کړے شی.او د نبی ﷺ په هدایاتو من وعن عمل اوکړے شی.په هرقل او ابوطالب کښے دا انقیاد قلبی او استسلام باطنی موجود نه وو.نوځکه هغوی مؤمنان نه وو.([3])

**د حافظ ابن تیمیه رحمه الله تعبیر**: ابن تیمیه رحمه الله فرمائی.د تصدیق سره التزام د طاعت هم ضروری دے.اودے دواړو د تصدیق سره د طاعت التزام نه وو کړے.حافظ ابن تیمیه رحمه الله په دے باندے دټولو عالمانو رحمهم الله اجماع نقل کړے ده.چه دایمان دپاره د تصدیق قلبی سره التزام د طاعت هم ضروری دے.([4])

**د شیخ ابوطالب مکی اوشیخ نظام الدین هروی رحمهما الله تعبیر** هم دا خبره نورو عالمانو رحمهم الله په نورو عنواناتو سره ذکر کړے ده.ابوطالب مکی رحمه الله د ،،التزام شریعت،، عنوان اختیارکړے دے.اوفرمائی.چه دایمان دپاره دتصدیق قلبی سره ،،التزام شریعت،، هم لازم دے.

---

(۱) الإصابة فی تمیز الصحابة (۱۱۶/۴) القسم الرابع ترجمة أبی طالب)_

(۲) فضل الباری(۲۴۲/۱)_

(۳) پورتنئ حواله)_

(۴) فضل الباری(۲۴۳/۱)_

شیخ نظام الدین هروی رحمه الله هم دا تعبیر تسلیم کړے دے چه دایمان دپاره د تصدیق قلبی سره سره تسلم ضروری دے ددے تعبیر په اختیارولو باندے صدرالشریعة په هغے باندے د برطعن کړے دے تردے چه په ..شیخ التسلیم.. مشهور شوے دے په حقیقت کښے دوی هم هغه څه وائی کوم چه ابن همام رحمه الله فرمائی اوابن تیمیه رحمه الله چه په څه باندے اجماع نقل کړے ده بلکه په غورسره اوکتلے شی.نو د دوی تعبیر د قرآن نظم ته نزدے دے.ځکه چه په قرآن کریم کښے دی ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ (۱) نوځکه د دوی په تعبیر باندے اعتراض کول ټیک نه دے.(۲)

**خلاصه دجواب** دجواب خلاصه دا شوه.چه دهرقل اوابوطالب په تصدیق کښے التزام طاعت وشریعت او انقیاد قلبی موجود نه وو.نوځکه هغوی ته مومن نشی وئیلے

دابوطالب په باره کښے خو تاسو ته پخپله معلومه ده چه هغه اور ته په پیغور باندے ترجیح ورکړنه او وے وئیل.

لولا الملامة أو حذار مسبة لوجدتني سمحا بذاك مبينا(۳)

ترجمه: یعنی که د ملامتیا او کنځلو ویره نه وے نوتا به زه لیدلے ووم.چه ډیر په کهولاؤ زړه به مے دا دین قبول کړے وو.

دغه شان په صحیح مسلم کښے د ابوطالب دا قول هم منقول دے.

«لولا أن تعيرني قريش،يقولون إنما حمله على ذلك الجزع،لأقررت بها عينيك» (۴)که ما سره د پیغور ویره نه وه.چه قریش به وائی.چه ابوطالب د دوزخ د اور نه اوویریدلو.نوما به ایمان راوړے وے.اوستا سترګے به مے یخے کړے وے.خوزه دا پیغور نشم برداشت کولے.ځکه د ایمان راوړلو نه مجبور یم.

هم په دے طریقه د هرقل متعلق د هرقل په حدیث کښے تیر شو.هغه وئیلی وو.«إني قلت مقالتي آنفا أختبر بها شدتكم على دينكم» یعنی ما د ایمان راوړلو ذکر ددے دپاره اوکړلو.ما په نصرانیت کښے ستاوپختګی او مضبوطتیا معلومول غوښتل.ددے نه معلومه شوه.چه هغه هم التزام شریعت ته تیار نه وو.

امام نووی رحمه الله لیکلی دی چه هرقل دایمان په مقابله کښے حکومت او ریاست ته ترجیح ورکړله.اوددے ویرے د وجے چه حکومت او ریاست زما نه لاړ نشی هغه ایمان راوړلو ته تیار

---

(۱) النساء:۶۵_

(۲) فضل الباری(۱/۲۴۳)_

(۳) فضل الباری(۱/۲۴۴) وفیض الباری(۱/۵۰)_

(۴) صحیح مسلم (۱/۴۰)کتاب الإیمان باب الدلیل علی صحة إسلام من حضره الموت ما لم یشرع فی النزع رقم(۱۴۴)_

نشو نوځکه ورته مؤمن نشي وئیلے (۱) ددے تائید د مسند بزار د حدیث نه کیږی.په هغے کښے راغلی دی.«أبلغ صاحبکم أني أعلم أنه نبي ولکن لاأترک ملکي» (۲)

**یوسوال اودهغې جواب** سوال دا دے.چه نجاشی ته مؤمن وئیلی شی.حالانکه هغه هم دخپل ایمان اظهار نه وو کړے؟

ددے جواب دا دے.چه نجاشی د ویرے د وجے خپل ایمان پټ کړے وو.خوهغوی التزام طاعت او التزام شریعت کړے وو.انقیاد باطنی او استسلام قلبی هغوی اختیار کړے وو.په قرآن کریم کښے﴿ وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ ۖ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ ﴾ (۳) راغلی دی.ددے نه معلومیږی.که د ویرے د وجے څوك ایمان پټ کړی . نو د دے گنجائش شته.په دے طریقه که هرقل هم التزام شریعت او التزام طاعت کړے وو.اوخپل ایمان ئے پټ ساتلو.نومونږ به هغه ته هم مؤمن وئیل اودنجاشی په باره کښے خودا هم ثابت دی.چه نبی ﷺ دهغه دجنازے مونځ کړے دے.نومعلومه شوه.چه هغه التزام شریعت کړے وو.اوهغه مؤمن وو.

یوسوال دا هم کیدے شی.چه نجاشی هجرت نه وو کړے.حالانکه په هغه وخت کښے هجرت فرض وو.نوبیا دهغه د ایمان څنگه اعتبار کولے شی؟

ددے جواب دا دے.چه نجاشی هجرت نه وو کړے.خوهغه د مسلمانانو دپاره پناهگاه اوملجا وه.هغه مسلمانانوته تحفظ ورکړے وو.اوهغه کس چه د اهل اسلام دپاره پناه جوړیږی او هغوی ته تحفظ ورکوی.دهغه حیثیت د مقاتل اومجاهد دے.نو د نجاشی حیثیت د مقاتل اومجاهد پشان وو.نوځکه په هغه باندے هجرت لازم او ضروری نه وو. (۴)

خلاصه دا چه د نجاشی ایمان ددے وجے معتبر وو.چه هغه دالتزام طاعت او التزام شریعت اهتمام کړے وو.اگرچه د ویرے نه هغه ایمان ښکاره کړے نه وو.او په داسے حالت کښے ایمان پټول نقصانی نه دی.خوکه التزام طاعت او انقیاد قلبی متحقق شوے نه وی.نوایمان به متحقق نه وی.لکه څنگه چه د ابوطالب او هرقل په واقعه کښے دی.چه هلته التزام طاعت او انقیاد قلبی موجود نه دے.(۵)

---

(۱) شرح نووی علی صحیح مسلم (۲/۹۸) کتاب الجهاد والسیر.باب کتب النبی ﷺ إلی هرقل ملک الشام یدعوه إلی الإسلام)_

(۲) کشف الأستارعن زوائد البزار(۳/۱۱۸)ذکرنبینا محمد رسول الله ﷺ باب فیما کان عند أهل الکتاب من علامات النبوة)_

(۳) المؤمن:۲۸)_

(۴) داحقرشاه فیصل په ذهن کښے دا جواب هم راځی.چه هجرت دمکے نه مدینے منورے ته فرض وو.ځکه چه په مکه کښے دکفر غلبه وه اواسلام مغلوب وو.اومسلمانانو به په خپل دین باندے په آزادئ سره عمل نشوکولے.اوحبشه چونکه د مکه پشان نه وه.دغه شان نجاشی بادشاه د مکے د کمزورو او بے وسه مسلمانانو پشان نه وو بلکه هغه خو دخپل ملك بادشاه وو ځکه په هغه باندے دحبشه نه مدینے ته هجرت فرض نه وو)_

(۵) فضل الباری(۱/۲۴۳، ۲۴۴)_

**التزام طاعت او انقياد باطنى د ايمان دپاره شرط دې كه ركن؟** بيا دلته دا خبره ده.چه التزام طاعت اوانقياد باطنى دايمان دپاره ركن دے كه شرط؟ بعضے حضراتو دا د ايمان دپاره شرط گرخولے دے اوفرمائى چه د ايمان دتحقق دپاره دا التزام ضرورى دے.ددے نه بغير ايمان نه متحقق كيږى اوبعضے حضراتو وئيلى دى.چه دا التزام شريعت او التزام طاعت دايمان دپاره ركن دے.(١)

د ركن منلو په صورت كښے به ددے خيال ساتلے شى.چه په ابتداء كښے د التزام شريعت وجود ضرورى وى.خوكه روستو دچا نه څه معصيت صادر شى.نو معصيت په صدور سره ايمان نه سلب كيږى.اوهغه كس چه التزام طاعت ئے نه وى كړے . د هغه مثال دباغى پشان دے چه هغه حكومت هډو منى نه.اوهغه كس چه التزام طاعت ئے كړے وى.اوددے نه پس دهغه نه معصيت او جرم صادر شى.دهغه مثال د مجرم پشان دے.او په باغى اومجرم كښے ډير فرق دے.باغى ته وفادار نشى وئيلے.خومجرم وفادار گڼړلے شى.دا ټيك ده.چه دهغه د جرم هغه ته سزا ملاويږى .خود بغاوت سزا ورته نشى ملاويدے.دغه شان چه كوم كس التزام طاعت كړے وى.اودهغه ايمان متحقق شوے وى.ددے نه پس كه هغه گناه كوى.نودده مثال د مجرم پشان دے.اوپه دے جرم به هغه د سزا مستحق هم وى.اوتاسودا پيژنئ هم. چه څنگه هغه د سزا مستحق دے.هغه ته سزا وركولے شى.دغه شان كله مجرم معاف كولے هم شى.نودا هم كيدے شى.چه د هغه جرم معاف شى.

**د اقرارباللسان حيثيت** كه يو كس ته تصديق بالقلب حاصل وى.اود ويرے د وجے يا دعدم قدرت د وجے يا دعدم فرصت دوجے ئے اقرار نه وى كړے.نوهغه په اتفاق سره مؤمن دے.

يوهغه كس دے.چه هغه ته تصديق قلبى حاصل وى.هغه ته څه عذر هم نه وى.اوددے باوجود چه دده نه د اقرارمطالبه اوشى.هغه اقرارنه كوى.نوداسے كس په اتفاق سره كافردے.

يودريم صورت دے.چه تصديق بالقلب موجود دے.داقرار دپاره څه عذرهم نشته.اود اقرار مطالبه هم نه وى شوے.اوده اقرار اونكړلو.نوداسے كس به مؤمن شمارلے شى كه نه؟د ده په باره كښے اختلاف دے.

بعضے حضرات فرمائى.چه اقرار باللسان صرف د احكامو جارى كولو دپاره د ايمان شرط دے.دامام ابوالحسن اشعرى رحمه الله نه په دوو روايتونوكښے اصح روايت هم دا دے.هم دا د امام ابومنصور ماتريدى رحمه الله قول دے.حافظ الدين نسفى رحمه الله فرمائى. هم دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه مروى دے.

اونورحضرات وائى.چه اقرار باللسان دايمان ركن دے.خودا ركن د تصديق پشان ركن اصلى نه دے.بلكه ركن زائد دے.هم ددے وجے د اكراه او عجز په حالت كښے دا ركن ساقط كيږى. علامه فخرالاسلام رحمه الله فرمائى.چه اقرارته ركن زائد وائى.دا قول د فقهاؤ رحمهم الله مذهب دے.اود احكامو د اجراء دپاره دا شرط گرخول د متكلمينو رحمهم الله مذهب دے.(٢)

---

(١) فضل البارى(٢٤٤)_

(٢) دتفصيل دپاره اوگورئ فتح الملهم (٤٣٤/١) كتاب الإيمان باب الإقرار شرط للإيمان أم لا؟)_

تنبیه متکلمینو رحمهم الله چه کوم اقرار د دنیوی احکامو داجراء دپاره ضروری گرځولے دے دد ے مطلب دا دے چه دا کس به په عامه مجمع کښے اقرار کوی چه خلقو او قاضی ته دده د اقرار علم راشی ځکه چه د اسلام د احکامو اجراء د عوامو. قاضی او حاکم دعلم نه بغیر ممکن نه دی.

البته د فقهاؤ په نیز اقرار دایمان جزء او رکن دے نوکه یو کس په خانله والی کښے هم کلمه اووائی نودا کافی ده. ځکه چه دوی د اجراء احکام قید نه دے لګولے اود رکن په حیثیت اقرار کول به په هغه وخت کښے هم صحیح وی چه په خلوت کښے اقرار اوکړی.(۱)

**یواشکال اودهغې جواب** دلته یواشکال دا پیدا کیږی چه د متکلمینو رحمهم الله په نیزاقرار د اجراء احکام دپاره شرط دے اودفقهاؤ په نیز رکن زائد دے لکه چه اوس اوخودلے شو نواوس سوال دا پیدا کیږی چه کوم کس ته څه عذر نه وی اودهغه نه د اقرار مطالبه اوشوه. نوده ته د متکلمینو رحمهم الله په مذهب کښے هم کافر ونیلی شی. حالانکه داسے نه ده پکار. فقهاء خو نے رکن منی. د دوی په مذهب دده په کفر کښے څه اشکال نه راځی. خومتکلمین رحمهم الله خونے رکن نه منی. نود مطالبے باوجود که اقرار اونکړی. نود متکلمینو رحمهم الله په مذهب پکار ده چه کافر نشی. ځکه چه د ایمان رکن نه دے فوت شوے

دد ے جواب ((إذا فات الشرط فات المشروط)) مطابق د اقرار فوت کیدل دتصدیق په فوت کیدو باندے دال دی. لکه چه ده ته کافر دد ے وجے ونیلے شی. چه د مطالبه په صورت کښے که عذر نه وی. اوبیا هم اقرار اونکړی. نودد ے مطلب دا دے چه تصدیق ئے نشته ځکه چه څه عذر هم نشته. اود اقرار کولو دده نه مطالبه کیږی. اوبیا هم دے اقرار نه کوی. نودا وجداناً. ذوقاً اوعرفاً دد ے خبرے دلیل دے. چه ده ته تصدیق نه دے حاصل ګنی ده به خامخا اقرار کړے وو. نود متکلمینو رحمهم الله په مذهب باندے دا اشکال ټیك نه دے.

**دکفر قسمونه** ① کفرانکار ② کفر جحود ③ کفرعناد ④ کفر نفاق.

① کفرانکار دے ته وائی. چه په زړه کښے هم انکار وی. اوپه ژبه باندے هم انکار وی. نه په زړه کښے تصدیق موجود وی. اونه په ژبه باندے اقرار وی. لکه څنګه چه د عامو کافرانو کفر وی.

② کفرجحود دے ته وائی. چه په زړه باندے پیژنی. دایمان حقانیت باندے پوهیږی. خو په ژبه باندے انکار کوی. لکه دابلیس کفر. په زړه خو هغه ټول هرڅه منی اوپیژنی. خو په ژبه باندے انکار کوی.

③ کفرعناد دا دے چه په زړه باندے هم پیژنی. اوپه ژبه باندے هم اقرار کوی. خو التزام طاعت وشریعت نه کوی. استسلام او انقیاد باطنی نه قبلوی خپل واك اختیار پیغمبر ته نه حواله کوی. کوم طرف ته هغه روان وی د هغه طرف تګ ته تیار نه وی. څنګه چه هغه وائی. هغه شان کولو باندے راضی نه وی. لکه د ابوطالب اوهرقل کفر.

---

(۱) فضل البارى (۲۴۵/۱)_

④ اوكفرنفاق دا دے چه په ژبه باندے اقرار كوي او د التزام طاعت اظهار هم كوي.خو په زړه كښې ئے انكار موجود وي په زړه قبلولو او منلو ته تيار نه وي.دا كفر نفاق دے.(١)

**د ايمان د حقيقت په باره كښې د مذاهبو تفصيل** دلته كښے دا اوپيژنئ:چه د ايمان په سلسله كښے په فرق ضاله كښے هم اختلاف دے.اوچه څوك اهل حق دي.په هغوي كښې هم اختلاف دے داهل حق اختلاف تقريبا لفظي دے.داصلي مدعا په اعتبارسره په دوي كښے څه اختلاف نشته.البته د اهل حق د اهل باطل سره اختلاف سخت دے.

**جهميه او ايمان** په اهل باطل كښے يوه فرقه ..جهميه.. ده.دا جهم بن صفوان طرف ته منسوب ده. د دے فرقے عقيده دا ده.چه ايمان صرف د معرفت قلبي نوم دے.برابره ده كه دا معرفت اختياري وي اوكه غيراختياري وي.د دوي په نيز د ايمان دپاره تصديق.انقياد قلبي .اوالتزام شريعت ضروري نه دے.د دوي په مذهب د ابوطالب او هرقل مومن كيدل لازميږي.ځكه چه دے دواړو ته هم معرفت حاصل وو.بلكه خودلي شوي دي چه ابوطالب اوهرقل ته صرف معرفت نه بلكه معرفت اختياري حاصل وو.(٢)

**كراميه** دا د محمد بن كرام متعين دي.د دوي په نيز دايمان دپاره صرف اقرار باللسان كافي دے.دتصديق بالقلب او عمل بالجوارح ضرورت نشته.(٣)

شيخ الاسلام شبيراحمد عثماني رحمه الله ليكلي دي.چه ددوي د مذهب كله تحقيق اوشو.نو معلومه شوه.چه ددوي په نيز ايمان د دنيوي احكامو په اعتبارسره د اقرار باللسان نوم دے.داسلام دنيوي احكام به ترهغه وخته پورے نه جاري كيږي.ترڅو چه سړي په ژبه باندے اقرار نه وي كړے.خوچه تركومے پورے د آخرت دنجات تعلق دے.نودوي هم ددے دپاره تصديق بالقلب ضروري ګڼړي.په دے صورت كښے په اهل سنت والجماعت اوكراميو كښے څه زيات اختلاف باقي نه پاتے كيږي.(٤)

**مرجئه** مرجئه د ..ارجاء.. نه دے.د ..ارجاء.. معني روستو كول دي.په قرآن كريم كښے ﴿وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ﴾(٥) دا آيت دهغه درے صحابو په باره كښے نازل شوے وو.كوم چه غزوه تبوك ته نه وو تلي.او دنبي ﷺ وړاندے هغوي دخپل قصور ښكاره اقرار كړے وو.د دوي معامله دالله تعالى د طرفه دحكم راتلو پورے روستو كړے شوه. اود منافقينو معامله مختلف وه.هغوي قسمونه اوخوړل. ددروغو بهانے ئے اوكړلے.نبي ﷺ به هغوي ته معافي كوله.اورخصت كول به ئے.خو ددے درے صحابو په باره كښے نبي ﷺ اوفرمائيل: ستاسو

---

(١) فيض الباري(٧١/١) كتاب الإيمان.أقسام الكفر)_
(٢) فضل الباري(٢٤٥/١) والفرق بين الفرق (ص.١٢٨) الفصل السادس)_
(٣) فضل الباري(٢٤٥/١)_
(٤) پورتني حواله)_
(٥) التوبة:١٠٦)_

فيصله روستو كولے شي.الله تعالى به دخپل علم او حكمت مطابق د معافي ياد سزا حكم راوليږى.(١) بهرحال ،ارجاء،، د روستو كولو په معنى راخي.(٢)

د مرجئه په نيز دايمان دپاره صرف تصديق قلبى ضرورى دے.هم دا تصديق دنجات دپاره كافى دے.دعمل ضرورت نشته.لكه چه دوى عمل روستو كړلو نوځكه ورته ،،مرجئه،، وائى.(٣)

دوى وائى چه لكه څنګه بغير دايمان نه څوك جنت ته نشى داخليدے اګرچه هغه څومره ښه كارونه كړى وى.اوهغه د اخلاقو او شرافت مجسمه وى.چه ايمان په كښے نه وى نوهغه قطعاً جنت ته نشى داخليدے.اوهغه به مخلد في النار وى.دا بيله خبره ده.چه د بدعمل او بدكرداره كافر په مقابله كښے به دهغه عذاب كم وى.خوخلود في النار دده دپاره هم واجب دے.دوى وائى.كه په دے طريقه په يو كس كښے تصديق قلبى موجود وى.نودهغه ګناهونه كه څومره زيات وى.نوهيڅ كله جهنم ته نشى تلے.لكه څنګه چه دايمان نه بغيريوكس هيڅ كله جنت ته نشى داخليدے.نودغه شان دايمان يعنى تصديق قلبى سره د ګناهونو په وجه څوك جهنم ته نشى داخليدے.دوى د «الطاعة لاتفيد والمعصية لاتضر» قائل دى.چه نه طاعت څه فائده وركوى.اونه معصيت څه نقصان وركوى.دوى عمل بيخى شاته غورځولے دے.اودا نے بيخى نظرانداز كړے دے.نه اقراربالليسان ددوى په نيز ضرورى دے.او نه عمل بالاركان.

دلته هم علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى.زما خيال دا دے.چه ددوى په نيز د تصديق بالقلب نه پس جنت ته داخيدل خو ضرورى دى.خود اعمالو د تفاوت په وجه د دوى په نيز هم په جنت كښے به په مراتبو كښے فرق وى.ځكه چه دآسمانى كتابونو او انبياء كرامو عليهم السلام په تعليماتو كښے چه دعمل كوم اهميت دے.چه دا مطلقاً په هيڅ درجه اثر نه كوى.دا خبره په عقل كښے نۀ راځي.(٤)

**معتزله او خوراج** د دے دواړو فرقو په نيز ايمان مركب دے.او ړاندے چه د كومو درے فرقو ذكر اوشو. دهغوى په نيز ايمان بسيط دے.

د دوى وينا دا ده.چه «الإيمان هو التصديق بالقلب والإقرار باللسان والعمل بالأركان» تصديق،اقراراو عمل درے واړه دايمان اجزاء دى.لكه چه ددوى په نيز شدت دے.اودا وائى. كه يوكس تارك دعمل وى.نوهغه به مخلد في النار وى.بيا د خوارجو په نيز خو هغه دايمان نه اوځى.اوپه كفر كښے داخليږى.اود معتزلو په نيز د كبيره په ارتكاب سره دايمان نه خارجيږى.خوپه كفر كښے نه داخليږى.بلكه دے فاسق وى.اودا فسق ددوى په نيز منزله بين المنزلتين ده.لكه چه دوى د ايمان اوكفر په مينځ كښے د يوے مرتبه (مرتبه فسق) قائلين

---

(١) تفسيرابن كثير(٢/٣٨٧)

(٢) مختار الصحاح (ص.٢٣٣)_

(٣) فضل البارى(١/٢٤٦)_

(٤) پورتنئ حواله)_

دى خودا خبره دے بادہ وى چه په كومه طريقه كافر مخلد في النار وى نودغه شان دوى دے فاسق ته هم مخلد في النار وائى لكه چه په دے دواړو فرقو كښے اختلاف صرف لفظى دے د انجام او مآل په اعتبار سره په دوى او خوارجو كښے څه فرق نشته هغوى هم مرتكب د كبيره ته مخلد في النار وائى اومعتزله هم.(۱)

د بعضے معتزلو په نيز خو نور هم شدت دے هغوى وائى چه په طريقه د فرائضو تارك او دمعاصيو مرتكب د ايمان نه خارجيږى نودغه شان د مستحباتو تارك او د مكروهاتو مرتكب هم د ايمان نه خارجيږى كومه درجه چه د فرائضو اومحرماتو ده هم هغه درجه دوى د مستحباتو او مكروهاتو دپاره مقرر كړے ده.(۲)

معتزله خوارج او مرجئه على طرفى النقيض دى يوطرف ته معتزله او خوارج دى كه د كبيره ارتكاب اوشو نوايمان ختم شو اودغه كس به مخلد في النار وى اوبل طرف ته مرجئه دى د دوى په نيز كه د څومره كبائرو ارتكاب اوشى سړے بيا هم د تصديق بالقلب په وجه براه راست جنت ته خى په هغه به د دوزخ هوا هم نه لگى.

**د اهل سنت والجماعت مذهب** داهل السنة والجماعة په دے باندے اتفاق دے كه تصديق بالقلب او اقرار باللسان موجود وى نود امام ابن تيميه رحمه الله د قول مطابق كه ارتكب د معاصى موجود وى بيا هم مؤمن دے اوس دا هم ممكن ده چه الله تعالى داول نه په خپل فضل او رحم سره دے معاف كړى اوبراه راست ئے جنت ته اوليږى اودا هم كيدے شى چه هغه د خپل گناهونو سزا خوړلو او گناهونو نه د پاكيدو دپاره دڅه ورځو دپاره دوزخ ته اوليگلے شى خوبيا هم بهرحال هغه به ددوخ نه راويستے شى اوجنت ته به داخل كولے شى هغه به مخلد في النار نه وى.(۳) خوكه ده څه داسے گناه كړے وى چه دهغه گناه په وجه دا گنړلے شى چه په ده كښے تصديق موجود نه دے نوبيا بيشكه دے كافر دے لكه چه ده د نبى ﷺ په شان كښے گستاخى كړے وى يا قرآن پاك په پليتئ كښے اوغورځوى يا بت ته سجده اوكړى نو ددے گناهونو دوجے كه دے په زړگاؤ كرته وائى چه زما په زړه كښے تصديق شته خوبيا هم دے كافر دے.

دهرقل دحديث په ضمن كښے تير شوى وو چه په تعظيمى سجده باندے سړے كافر كيږى نه هلته كښے دا هم مونږ ذكر كړى وو كه يوسړے داسے څيز ته سجده اوكړى چه هغے ته سجده كول د مشركانو شعار وى لكه بت نوبيا دا كس كافر دے اگرچه هغه دا وائى چه ما دا سجده د تعظيم دپاره كړے ده د تعبد دپاره نه د ده به دا خبره نشى منلے خكه چه ده د كفر اوشرك شعار اختيار كړے دے اود كفر اوشرك شعار اختيارول ددے خبرے دليل دے چه دده په زړه كښے تصديق نشته.

---

(۱) فضل البارى(۱/۲۴۶)_

(۲) پورتنئ حواله)_

(۳) فتح الملهم (۱/۴۲۹) كتاب الإيمان الحكم الشرعى للإيمان والإسلام)_

باقي پاتې شوه دا خبره چه دا گناهونه د عدم تصديق دليل څنګه ګرځولې شي؟ بلکه څنګه چه نور کبيره ګناهونه دي. دهغه په وجه سړے نه کافر کيږي نو دغه شان د دے ګناهونو په وجه هم سړے نه کافر کيږي.

د دے جواب به په يو مثال سره ستاسو په پوهه کښے راشي. يو سړے دے. هغه دخپل پلار نافرماني کوي. پلار ورته وائي د سحر وختي پاسه. مونځ د جماعت سره کوه. هغه نه پاسي. پلار ورته وائي ته خپل کاروبار له په پابندئ سره ځه او غيرحاضري يا روستوالے مکوه. هغه دپلار نافرماني کوي. او په وخت نه ځي. بلکه قضائي کوي. نو په عرف او وجدان کښے د دے سړي په باره کښے نشي ونيلے چه دے د پلار دعظمت قائل نه دے. بل يو ځوئے دے. هغه پلار په څپلو باندے وهي. او پلار ته کنځلے کوي. اولني کس هم نافرماني کوي. او دا دويم کس هم نافرماني کوي. د دے دويم کس په باره کښے څوك دا نه وائي چه دے د پلار د عظمت قائل دے. او که داسے اووائي نو دنيا به ورته پاګل اووائي.

هم په دے طريقه هغه کس چه مونځ نه کوي زکواة نه ورکوي. د دے کس په باره کښے دا نشي ونيلے چه دے دتصديق نه محروم دے او دده په زړه کښے دالله او د رسول عظمت نشته. دا بيله خبره ده. چه د بشريت او نفسانيت په د وجه د عظمت او تصديق باوجود ده نه کوتاهي کيږي. نو ده ته د دے باوجود چه د ګناه کبيره ارتکاب کوي. به مونږ وايو چه په ده کښے تصديق موجود دے او دے مومن دے خو هغه کس چه بت ته سجده کوي يا د نبي اکرم ﷺ په شان کښے ګستاخي کوي. يا قرآن د خپو لاندے کوي. يا قرآن کريم په پليتئ کښے غورځوي. د ده په باره کښے هيڅ کله نشي ونيلے چه دده په زړه کښے دالله او د رسول عظمت موجود دے او تصديق موجود دے نو سب النبي ﷺ. يا ،،القاالمصحف في القاذورات،، يا سجود لصنم. د داسے ګناهونه دي چه عرفاً. ذوقاً. وجداناً په عدم تصديق باندے دلالت کوي. نو د دے ګناهونو په ارتکاب باندے سړے کافر کيږي. د دے وجے نه چه ارتکاب د کبيره داسے ګناه ده چه سړے برے کافر کيږي. بلکه د دے وجے چه د دے ګناهونو د ارتکاب نه ثابتيږي چه دده په زړه کښے تصديق موجود نه دے. د نورو ګناهونو په خلاف چه د هغې په وجه دے د ايمان نه خارج نشي ګرځولے بلکه دا به ونيلي شي چه دے به د خپلو ګناهونو سزا خوړلو نه پس جنت ته ځي او مخلد في النار به نه وي. او دا هم ممکن ده چه الله سبحانه وتعالى دے معاف کړي او براه راست ئے جنت ته بوځي دا د اهل سنت والجماعة متفقه عقيده ده. او په دے کښے د دوي په مينځ کښے څه اختلاف نشته [1] والله اعلم

**دايمان په باره کښې داهل سنت والجماعت په خپل مينځ کښې اختلاف** بيا د اهل سنت په مينځ کښے په تعبير کښے اختلاف دے

(۱) امام بخاري رحمه الله فرمائي. ((وهو قول وفعل)) [2]

---

[1] فضل الباري (۱/ ۲٤۷)_

[2] صحيح بخاري (۵)_

() نورحضرات فرمائی «الإیمان معرفة بالقلب وإقرار باللسان وعمل بالأیدی» دا تعبیر دمحدثینو ﷭ دے.(١)

دامام ابوحنیفه اوحضرات متکلمینو ﷭ تعبیر دے «الإیمان هوالتصدیق بالقلب، والإقرار باللسان، شرط لإجراء الأحکام، والعمل بالأرکان نتیجة للتصدیق وثمرة الإیمان»(٢)

دامام ابوحنیفه رحمه الله نه امام طحاوی رحمه الله دا هم نقل کړی دی چه اقرار باللسان د ایمان رکن دے.(٣)

دامام ابوحنیفه رحمه الله نه د متکلمینو ﷭ د مذهب مطابق یوقول هم منقول دے چه اقرار شرط دے.(۴)

بهرحال دعرض کولو مقصد دا وو چه دحضرات متکلمینو او امام ابوحنیفه ﷭ په نیز دایمان تفسیر په تصدیق بالقلب سره شوے دےاوعمل دوی ثمره د ایمان او نتیجه د ایمان گرځولے ده.

**په امام اعظم باندې د ارجاء الزام او ددې حقیقت** په امام ابوحنیفه رحمه الله باندے بعضے خلقو الزام لگولے دے چه دوی په مرجئه کښے وو او دوی د عمل د ضرورت قائل نه وو،(۵) خودا الزام سراسر غلط اوظلم دے.

محققینو ﷭ تصریح کړے ده.چه د مرجئه دوه قسمونه دی.یوه هغه فرقه ضاله ده کومه چه د عمل د ضرورت بیخی قائل نه دی.

اویوه مرجئه په اهل سنت کښے ده.څوك چه دعمل د ضرورت قائل دی خوعمل دایمان جزء نه منی.(۶)

بعضے حضراتو امام ابوحنیفه رحمه الله د اهل سنت په مرجئه کښے شمارلے دے خوموږ وایو چه په امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله باندے چه کوم الزام لگولے شی اگرچه د لقب د حده پورے وی نودا قابل قبول نه دے ځکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله عمل د ایمان نه بیخی ویستے نه دے بلکه دے ته ئے خپل مقام ورکړے دے اودا ئے خودلی دی چه دعمل هغه مقام نه دے کوم چه د تصدیق دے تصدیق اصل اوبنیاد دے که تصدیق نه وی نوکه ته څومره نیك اعمال کوے د جنت داخلیدو دپاره ددے څه حیثیت نشته چونکه تصدیق اصل الاصول اوبنیاد دے نو ځکه امام ابوحنیفه رحمه الله صرف دا واضحه کړے ده چه دعمل درجه دتصدیق برابر نه

---

(١) فضل الباری(١/ ٢٤٧)وشرح العقیدة الطحاویة لابن أبی العزالحنفی (ص.٣٣٢)_

(٢) کما یستفاد ذلک من الإحیاء وشرحه الإتحاف (٢/ ٢٤١، ٢٤٣)_

(٣) کمافی العقیدة الطحاویة..الإیمان هوالإقرار باللسان.والتصدیق بالجنان.انظرشرح العقیدة الطحاویة (ص.٣٣١)

(۴) اتحاف السادة المتقین(٢/ ٢٤١)_

(۵) کصاحب ..القوت.. وغیره وتبعه القونوی من علمائنا کذا فی ..الإتحاف..(٢/ ٢٤١)_

(۶) د یوره تفصیل دپاره اوگوری (الرفع والتکمیل فی الجرح والتعدیل (ص.٣٥٢،٣٨٣) إیقاظ ٢٢.فی بیان معنی الإرجاء السنی والبدعی)_

ده بلکه د تصدیق نه کمه اوددے نه پس ده نودعمل نه بغیر سړے جنت ته تلے شی

اودا خبره هم داسے ده لکه چه په حدیث کښے راغلی دی «أخروهن من حیث أخرهن الله»(۱) دلته دا مراد نه دے چه ښځې بالکل دجمات نه بهر کړی بلکه دا حکم ورکړے شوے دے چه ښځې په روستنو صفونو کښے ساتی. ځکه چه د دوی مقام الله تعالی هم دا مقرر کړے دے چه عمل د ایمان جزء نه گرځوی که په دے وجه په امام ابوحنیفه رحمه الله باندے اعتراض کیدے شی نوموړی هم ونیلی شو چه تاسو خو هم د معتزلو او خوارجو عنوان اختیار کړے دے معتزله او خوارج وائی چه ایمان مرکب دے د تصدیق بالقلب، اقرار باللسان او عمل بالارکان نه حالانکه امام ابن تیمیه رحمه الله اودهغه هم خیال هم دا وائی چه ایمان ددے امور ثلاثه نه مرکب دے نو کوم تعبیر چه د هغوی دے هم هغه تعبیر ستاسو دے.

مخالفین شکایت کوی چه احنافو رحمهم الله د تعبیرپه سلسله کښے د احتیاط نه کار نه دے اخستے. کوم تعبیر چه د مرجئه وو چه ایمان تصدیق بالقلب ته وائی هم دا تعبیر دوی اختیار کړے دے

نوموړی وایو چه امام ابوحنیفه رحمه الله خوهغه کسانوته کافر ونیلی دی ځوك چه د عمل د ضرورت نه انکار کوی هغه د مرجئه د تعبیر سره کله اتفاق کوی اوستاسو تعبیر د معتزلو او خوارجو تعبیر سره متفق په نظر راځی تاسو په خپل قول کښے تاویل کوئ اود امام اعظم رحمه الله په قول کښے د تاویل کولو نه ځان بچ کوئ (۲)

یوه خبره دا هم کولے شی چه په اصل کښے احنافو رحمهم الله چونکه عمل دایمان جزء نه دے گرځولے نو دے سره د عمل اهمیت کمیږی موږ دا وایو چه تاسو عمل د ایمان جزء گرځولے دے نوپه دے سره په خلقو کښے مایوسی پیدا کیږی که عمل نه وی نو جنت به هم نه ملاویږی لکه څنگه چه خوارج او معتزله وائی نوکه داحنافو رحمهم الله په تعبیرباندے ستاسو اشکال وی چه په دے سره دعمل اهمیت کمیږی نو ستاسو په تعبیرباندے دا اشکال دے چه په دے سره په خلقو کښے مایوسی پیدا کیږی

دا هم ونیلی شی چه د احنافو رحمهم الله په تائید سره د مرجئه حوصله افزائی کیږی ځکه چه هغوی هم عمل ضروری نه گرځوی اواحناف رحمهم الله هم عمل دایمان جزء نه منی نو دے سره د مرجئه د مذهب تائید کیږی

موږ وایو چه ستاسو په تعبیر سره د معتزلو اوخوارج تائید کیږی په کومه طریقه چه هغوی عمل د ایمان جزء گرځوی نوهم په هغه طریقه تاسو هم عمل دایمان جزء گرځوئ نودا تاسو د خوارجو اومعتزلو تائید کوئ.(۳)

حافظ ابن تیمیه رحمه الله فرمائی چه احناف رحمهم الله دایمان تعریف په تصدیق بالقلب سره کوی او

---

(۱) رواه رزین کما فی کنوزالحقائق (ص۱ ۱۱) وانظرنصب الرأیة (۲ ۳۶) کتاب الصلاة باب الإمامة)_

(۲) رواه رزین کما فی کنوزالحقائق (ص۱ ۱۱) وانظرنصب الرأیة (۲ ۳۶) کتاب الصلاة باب الإمامة)_

(۳) پورتنی حواله)_

عمل د ایمان جزء نه ګرځوي خو د عقیدې په لحاظ سره دوی د عمل د ضرورت قائل دي صرف دومره ده چې د جزئیت نه منکر کوي نو دا د عقیدې بدعت نه دے خو په بدعت اقوالو کښې ضرور داخل دے (۱)

ددې متعلق مونږ وايو چه دا اعتراض صحيح نه دے ګورئ د حديث اقسام دي صحيح لذاته. صحيح لغيره. حسن لذاته. حسن لغيره. شاذ معلول وغيره. دا ټول اصطلاحات نه د نبي ﷺ په ارشاداتو کښې موجود دي او نه د صحابوﷺ په اقوالو کښې د دې ذکر شته دغه شان د مونځ فرائض. واجبات او سنن وغيره د فرض و واجب وغيره په عنوان سره د نبي ﷺ په اقوالو کښې مذکور نه دي او نه دا په کوم ځائے کښې ذکر دي چه قيام. قراءت. رکوع او سجده په مونځه کښې فرض دي يو په مونځه کښې فلانے څيز واجب دے که دا پريخودے شي نو سجده سهو به لازميږي؟ دا فقهي حدبندئ اې د نبي ﷺ په ارشاداتو کښې يا د صحابه کرامو ﷺ په اقوالو کښې موجود دي اصول حديث. اصول فقه. او په خپله د فقه حدبندئ او اصطلاحات نه د نبي ﷺ نه ثبت دي او نه د صحابوﷺ په اقوالو کښې ددې څه ذکر شته بيا هم تاسو دا مني او ددې مطابق عمل کوئ نو که امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د ايمان په باره کښې تجزيه کړې وي چه په دې کښې د تصديق درجه اوله ده او ددې نه بغير ايمان نه متحقق کيږي او د عمل درجه د تصديق برابر نه ده که دا عمل نه وي نو بيا هم ايمان متحقق دے نو په دے باندې تاسو ولې اعتراض کوئ؟

لکه څنګه چه محدثينو ﷺ او فقهاؤ امت نو د خلقو د آسانتيا د پاره دا اصطلاحات وضع کړي دي او په دے کښې ئې درجه بندي کړې ده په دے طريقه باندې امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د ايمان په تفصيل کولو کښې د تصديق مرتبه مقرر کړې ده او بيا مرتبه ئې د عمل مقرر کړې ده نو په دے باندې اعتراض ولې کيږي؟ دا په بدع الاقوال کښې څنګه شاملولے شي که داسے وي خو ټول څيزونه به په بدع الاقوال کښې داخليږي (۲)

که ددې باوجود په دے باندې اصرار وي چه دا امام اعظم رحمه الله قول په بدع الاقوال کښې داخل دے نو بيا به دا هم داسے وي لکه څنګه چه حضرت عمر رضي الله عنه په مسجد نبوي کښې په جماعت سره تراويح شروع کړل او وې فرمائيل ((نعمت البدعة هذه)) (۳) حضرت عمر رضي الله عنه په خپل دے فعل باندې د بدعت لغوي اطلاق کړے وو نو تيک هم داسے به د دوی دا قول په بدع الاقوال کښې داخليدل مونږ قبلولے شو ګني حقيقت دا دے چه دا په بدع الاقوال کښې داخل نه دے په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې يو اعتراض دا هم شوے دے چه امام ابوحنيفه رحمه الله د ايمان تعريف په ((الإيمان هو المعرفة)) سره کړے دے معرفت اختياري هم وي او غيراختياري

---

(۱) فتح ملهم (۱ / ۱٤٤)_

(۲) فيض باري (۱ / ۲٤٩. ۲٥٠)_

(۳) أخرجه مالک في الموطا (۱ / ۱۱٤) کتاب الصلاة في رمضان باب ما جاء في قيام رمضان رقم ۳. والبخاري في کتاب صلاة التراويح باب فضل من قام رمضان رقم (۲۰۱۰)_

هم معرفت غيراختياري په ايمان كښې معتبر نه دے نوبيا دا تعريف څنګه ټيك كيدے شي؟[1]

دا خبره دے واضحه وي چه دايمان تعريف په ..معرفت.. سره د حضرت على كرم الله وجهه او امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم منقول دے.[2]

دغه شان دعبدالكريم شهرستاني استاذ شيخ ابوالقاسم انصاري رحمه الله دامام الحرمين رحمه الله د كتاب ..الارشاد.. په شرح كښې دايمان تعريف په ..معرفت.. سره كړے دے.[3]

په خپله په صحيح بخاري كښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول مذكور دے «اليقين الإيمان كله»[4] چه يقين ټول ايمان دے اويقين علم وي.كوم چه اختياري او غيراختياري دواړو ته شامل دے.

نودے حضراتو د ايمان په تعريف كښې دمعرفت ذكر كړے دے خوچ هم اعتراض نه دے كړے.بلكه تاويل په كښې شوے دے.خوامام اعظم رحمه الله د ايمان په تعريف كښې د ..معرفت.. ذكر كړے دے.نواعتراض پرے كولے شي.دا د انصاف خبره نه ده .معرفت د تصديق موقوف عليه دے.تصديق ترهغه وخته پورے نشي راتلے.ترڅوچه معرفت حاصل شوے نه وي.نوكه تلفظ په معرفت اوكړي.اومراد ترے تصديق واخلي .په دے كښے څه حرج دے.امام طحاوي رحمه الله كوم چه دامام ابوحنيفه رحمه الله د نقطه نظراومذهب په نقل كولو كښې دټولو نه زيات معتبر او ثقه دے.هغوي د امام اعظم رحمه الله نه دايمان تعريف په تصديق سره نقل كړے دے.نوكه په يوځائے كښے امام صاحب رحمه الله دايمان په تعريف كښے د معرفت لفظ استعمال كړے وي.نو ددغه معرفت نه به هم تصديق مراد وي.[5]

يوجواب دا هم وركړے شوے دے.چه امام ابوحنيفه رحمه الله چه د معرفت كوم لفظ استعمال كړے دے.نوددے نه هغه معرفت كوم چه اختياري او غيراختياري دواړو ته شامل دے.مراد نه دے.بلكه ددے نه هغه معرفت مراد دے.كوم چه د رياضت او مجاهدے نه پس حاصليږي.چاته چه دا معرفت حاصل شي.هغه ته عارف وائي .ښكاره خبره ده.چه دا خاص معرفت كوم چه عارفينو رحمهم الله ته حاصل وي . اختياري وي غيراختياري نه وي.نو دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د ايمان په تعريف كښے د «الإيمان هوالمعرفة» باندے د اعتراض كولو څه ګنجائش نشته.[6]

---

(۱) فيض الباري(۵۲/۱)_

(۲) پورتني حواله)_

(۳) فضل الباري(۲۵۰/۱)_

(۴) صحيح بخاري (۶/۱)فاتحة كتاب الإيمان)_

(۵) فضل الباري(۲۵۱/۱)_

(۶) فضل الباري(۵۲/۱)_

يوجواب دا هم ورکړے شوے دے چه امام ابوحنيفه رحمه الله چه د معرفت کوم لفظ استعمال کړے دے کيدے شي دده نه هغه معرفت مراد وي کوم چه د دلائلو اوبراهينو نه پس حاصليږي خکه چه ايمان يوتقليدي وي اويو استدلالي وي دايمان تقليدي په مقابله کښے ايمان استدلالي په هرصورت اعلى او افضل دے اوهغه ايمان چه د استدلال او براهينو نه حاصل شوے وي دهغے نه په معرفت سره تعبير کولے شي.(١)

**ايمان تقليدي معتبر دے که نه؟** په دے کښے اختلاف دے چه د مقلد ايمان معتبر دے که نه؟ د معتزلو په نيز تقليدي ايمان معتبر نه دے نوترڅو چه په دلائلو سره معرفت حاصل نه وي ايمان معتبر نه دے هم دا خبره بعضے خلقو امام ابوالحسن اشعري رحمه الله ته هم منسوب کړے ده. خودا نسبت صحيح نه دے امام ابوالقاسم اشعري رحمه الله فرمائي دا قول د امام ابوالحسن اشعري رحمه الله د شان نه لرے دے.

د ټولو اهل السنة والجماعة دا مسلك دے چه ايمان تقليدي معتبر دے ټولو ته معلومه ده چه کشران کله خپل مشران په څه کار باندے اووينی نوهغوی ته د خپلو مشرانو په دے کارسره شرح صدر او اطمينان حاصليږي هغوی دا ګنړي چه زمونږ مشران چونکه دا کار کوی نودا صحيح اوټيك دے نوچونکه په تقليدي ايمان کښے تصديق موندلے شي نوځکه به دے اعتبار کولے شي خودا حقيقت دے چه ايمان استدلالي د ايمان تقليدي نه اعلى اوافضل دے.(٢)

**آيا دامام ابوحنيفه رحمه الله تعبير دسلفونه مختلف دے؟** دلته دا کتل پکاري دي چه دا حضرات په امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله باندے اعتراض خو کوی اووائی چه دوی د سلفو رحمهم الله قول نه دے اختيار کړے خوسوال دا دے چه د سلفو رحمهم الله قول څه دے د سلفو قول «الإيمان قول وفعل» نه دے. اونه دسلفو قول «الإيمان معرفة القلب» دے بلکه د سلفو قول دے.«الإيمان معرفة بالقلب وإقرار باللسان وعمل بالأركان يزيد بالطاعة وينقص بالمعصية»(٣)

په دے کښے چرته تصريح نشته چه عمل دايمان جزء دے حرف عطف استعمال شوے دے د دے نه دا چرته لازميږي چه عمل دايمان جزء دے دحرف عطف داستعمال نه دا نه لازميږي چه دا د معطوفاتو جزء دے په ترمذي شريف کښے دحضرت فضل بن عباس رضي الله عنهما روايت دے.«قال قال رسول الله ﷺ الصلاة مثنى مثنى، تشهد في كل ركعتين وتخشع وتضرع، وتمسكن وتذرع وتقنع يديك: يقول ترفعهما إلى ربك مستقبلاً ببطونهما وجهك وتقول: يا رب يا رب ومن لم يفعل ذلك

---

(١) فضل البارى(١/٢٥١)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) ذكره الشيخ ابوالمنصور عبدالقاهر البغدادى فى .كتاب الأسماء والصفات.. والشيخ أبوالقاسم الأنصارى فى شرح ..الإرشاد.. كذا فى فضل البارى(١/٢٥٥، ٢٥٦)_

فهو كذا وكذا»(۱)

دلته نے مونځ ته ..مثنى مثنى.. ونيلى دى.اودد ے نه پس فرمانى.«تخشع وتضرع وتمسكن»
اود دے نه پس فرمائى.«تقنع يديك يقول ترفعهما إلى ربك مستقبلاً ببطونهما وجهك وتقول: يارب
يارب» تاسو اوښائے چه دا ټول څيزونه چه په دے حديث كښے د ..صلاة.. په تفسير كښے
بيان شوى دى.دا ټول فرائض دى.اوكه لاس اوچتول او..يارب يارب.. ونيل اوپه مانځه
كښے خشوع او خضوع اختيارول؟ ښكاره ده چه دا ټول فرض نه دى.نود عطف باوجود تاسو
دا په فرائضو كښے نه شاملوئ.نود سلفو ﷺ اقرارباللسان او عمل بالاركان دايمان په
تعريف كښے د ذكر كولو نه ددے په فرائضو كښے داخليدل څنګه لازميږى.

دغه شان په يوحديث كښے راځى.چه د نبى ﷺ نه تپوس اوشو.«أى الحج أفضل»نو نبى ﷺ
اوفرمائيل.«العج والثج»(۲) ..عج.. معنى «رفع الصوت بالتلبية» اود ..ثج.. معنى «إراقة
الدماء» ده.حالانكه «رفع الصوت بالتلبية»او «إراقة الدم» د حج په فرائضو كښے داخل نه
دى.فرض خو طواف زيارت.او وقوف عرفه دى. اصل دا دے چه په محاوراتو كښے بعضے
وخت متعلقات اوفروعات هم د فرائضو په څانګ يا دهغے په ضمن كښے ذكر كولى
شى.نو، تخشع،تضرع، او تمسكن صلاة.، د مونځ د متعلقاتوڅخه دى.«رفع اليدين إلى الوجه»
هم د مونځ د په متعلقاتو كښے داخل دى.اګرچه دا د مانځه نه پس وى.دغه شان «رفع الصوت
بالتلبية»او«إراقة الدم» د حج د متعلقاتوڅخه دى.نوددے ټولو په ذكر كولو سره ددوى
فرضيت او جزئيت نه ثابتيږى.نود سلفو ﷺ په قول كښے د ايمان په تعريف كښے د
«الإقرارباللسان والعمل بالاركان» ذكر كولو نه دا څنګه معلوميږى . چه اعمال دايمان جزء
دے.بلكه دا به ونيلى شى.چه ددے ذكر څكه اوشو.چه دا د ايمان په متعلقاتواوفروعاتو
كښے داخل دى.

امام غزالى رحمه الله اعتراض كړے دے.چه محدثين ﷺ يوطرف ته اعمالوته د ايمان جزء
وائى.اوبل طرف ته دوى دا هم وائى.چه تارك اعمال به جنت ته خى.نوبے ايمانه سړے به څنګه
جنت ته داخل شى.كله چه اعمال دايمان جزء دے.نوبيا خو تارك اعمال د ايمان نه محروم
دے.نوبيا دے ولے جنت ته خى.(۳)

---

(۱) سنن ترمذى أبواب الصلاة باب ما جآء فى التخشع فى الصلاة رقم.(۳۸۵)_

(۲) جامع ترمذى أبواب الحج،باب ما جآء فى فضل التلبية والنحر.رقم (۸۲۷) وأبواب تفسيرالقرآن باب ومن سورة آل عمران رقم(۲۹۹۸) وسنن ابن ماجه كتاب المناسک باب رفع الصوت بالتلبية رقم.(۲۹۲٤) وسنن دارمى (۴۹/۲) كتاب المناسک باب أى الحج أفضل رقم(۱۷۹۷)-

(۳) إحياء علوم الدين مع شرح إتحاف السادة المتقين(۲٤٤/۲)_

حافظ ابن تيميه رحمه الله جواب ورکړے دے چه يو مطلق ايمان دے يعنى نفس ايمان. او يو ايمان مطلق دے يعنى كامل ايمان. نو اعمال د ايمان مطلق يعنى كامل ايمان جزء دے اود مطلق ايمان يعنى دايمان جزء نه دے.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا خبره منى چه اعمال د ايمان كامل دپاره جزء دے. دنفس ايمان جزء نه دے (٢)

امام اعظم رحمه الله خو هم دا فرمائى چه دنفس ايمان دپاره دے اعمال جزء اونه ګرخولے شى باقى دايمان كامل دپاره د اعمالو په جزئيت كښے امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله هم څه اشكال نه كوى

دټولو اهل السنة والجماعة په دے خبره باندے اتفاق دے چه مرتكب د كبيره به بالآخر جنت ته خى برابره ده كه الله تعالى هغه په اول كښے معاف كړى. اود اول نه ئے جنت ته داخل كړى اوكه د سزا خوړلو نه پس ئے جنت ته داخل كړى. بهرحال هغه به جنت ته خى. ددے نه ښكاره دا معلوميږى. چه اعمال د نفس ايمان جزء نه دے. نو دا واويلا كول او شورجوړول چه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د جزئيت نه انكار كوى. اوهغوى د سلف نه خلاف كړے دے ټول فضل دى. سلف هم اعمال د نفس ايمان جزء نه ګڼړى. اوامام اعظم رحمه الله هم دايمان دپاره د عمل د جزئيت نه انكار كوى. اود ايمان كامل دپاره چه لكه څنګه سلف اعمال جزء ګرځوى. امام ابوحنيفه رحمه الله هم دا تسليموى.

**د ايمان دپاره داعمالو په جزئيت دمحدثينو رحمهم الله دلائل** ددے دپاره ډير دلائل پيش كولى شى چه اعمال په ايمان كښے داخل دى.

(١) اولنے دليل دحضرت ابوهريره رضى الله عنه حديث دے ((الإيمان بضع وسبعون شعبة والحياء شعبة من الإيمان))(٣)

(٢) دويم دليل د وفدعبدالقيس حديث دے په كوم كښے چه نبى صلى الله عليه وسلم دايمان په تفسير او تشريح كښے د صلوة، زكاة، وغيره اعمالو ذكر كړے دے ((أمرهم بالإيمان بالله وحده، قال أتدرون ما الإيمان بالله وحده؟ قالوا: الله ورسوله أعلم، قال شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله، وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة وصيام رمضان وأن تعطوا من المغنم الخمس....))(٤)

---

(١) فضل البارى(١/ ٢٥٤)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه كتاب الإيمان باب أمورالإيمان رقم ٩. ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب بيان عدد شعب الإيمان ..رقم(١٦١، ١٦٢) والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه باب ذكر شعب الإيمان رقم (٥٠٠٧) و(٥٠٠٨) و(٥٠٠٩) وابوداود فى سننه فى كتاب السنة باب فى رد الإرجاء رقم (٤٦٧٦) والترمذى فى جامعه فى كتاب الإيمان باب ماجاء فى أستكمال الإيمان وزيادته ونقصانه رقم.(٢٦١٤) وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم(٥٧)_

(٤) صحيح بخارى كتاب الإيمان باب أداء الخمس من الإيمان رقم(٥٣) وصحيح مسلم كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى وشرائع الدين..رقم (١٢٤)_

(۱) دريم دليل دحضرت عائشه رضي الله عنها حديث دے.((قالت قال رسول الله ﷺ إن أكمل المؤمنين إيماناً أحسنهم خلقاً وألطفهم بأهله))(۱)

(۲) څلورم دليل دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دے.((قال قال رسول الله ﷺ أكمل المؤمنين إيماناً أحسنهم خلقاً))(۲)

(۳) پنځم دليل دحضرت ابوامامه بن ثعلبة رضي الله عنه حديث دے.((فقال رسول الله ﷺ: ألا تسمعون ألا تسمعون إن البذاذة من الإيمان إن البذاذة من الإيمان...))(۳)

(۴) شپږم دليل حديث دشفاعت دے.په هغے کښے راغلي دي.((إذهبوا فمن وجدتم في قلبه مثقال دينار من إيمان فأخرجوه)) بيا فرمائي.((إذهبوا فمن وجدتم في قلبه مثقال نصف دينار فأخرجوه)) دغه شان راغلي دي.((إذهبوا فمن وجدتم في قلبه مثقال ذرة من إيمان فأخرجوه))(۴) ښکاره ده چه دا اعمال اوزان دي.

**د ذکرشوي دلائلو نه جواب** خو متکلمينو ﷺ ددے دلائلو نه جواب کړے دے چه په دے اعمالو باندے د ايمان اطلاق مجازاً شوے دے.ځکه چه اعمال دايمان د مقتضياتو څخه دي.چه په ايمان کښے داخل دي.لکه څنګه چه عمل د علم د مقتضياتو څخه دے.نولکه چه عمل په علم کښے داخل دے.هم دا وجه ده.که عالم بے عمله وي.نو وونيلې شي چه دے خو جاهل دے.

دغه شان اعمال د ايمان توابع دي.يعني چه ايمان واقع شي.نوپکار ده.چه اعمال ورسره هم وي.دا داسے اووايه.چه په اعمالوباندے دايمان اطلاق ددے وجے شوے دے.چه دا د ايمان د آثارو څخه دي.اودڅيز په اثرباندے بعضے وخت د هغه څيز اطلاق کيږي.کورئ د شمس اطلاق په ..قرص.. باندے هم کيږي.او..ضوء شمس..باندے هم.کوم چه د شمس اثر دے.دغه شان د نار اطلاق په جمره يعني سکروټه باندے کيږي.اوددے په لمبو باندے هم کيږي.

**د اعمالو په عدم جزئيت باندې دمتکلمينو رحمهم الله دلائل** حضرات متکلمينو ﷺ په دے باندے چه اعمال دايمان جزء نه دے.ډيردلائل د قرآن او احاديثونه پيش کړي دي.

(۱) دقرآن کريم هغه ټول مقامات چه په هغے کښے د اعمالو عطف په ايمان باندے شوے دے.

---

(۱) جامع ترمذی کتاب الإيمان باب ما جآء فی إستكمال الإيمان وزيادته ونقصانه رقم.(۲۶۱۲)_

(۲) جامع ترمذی کتاب الرضاع باب ماجآء فی حق المرأة علی زوجها رقم(۱۱۶۲) وسنن أبی داود کتاب السنة باب الدليل علی زيادة الإيمان ونقصانه رقم(۴۶۸۲)_

(۳) ابوداود کتاب الترجل رقم (۴۱۶۱) وسنن ابن ماجه کتاب الزهد باب من لا يؤبه له رقم (۴۱۱۸)_

(۴) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالی﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ ۝ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ رقم(۴۳۹)_

لكه ﴿وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَىٰ﴾ (١)
﴿فَأَمَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَعَسَىٰ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ﴾ (٢) او ﴿وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ﴾ (٣) وغيره اوپه عطف کښې اصل مغايرت وی

() د قرآن کريم هغه ټول آياتونه په کوم کښې چه د عمل دپاره ايمان شرط ګرځولې دے لکه ﴿وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ (٤) ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً﴾ (٥) د دے پشان نور ډير آياتونه دی په هغے کښې د عمل صالح دپاره ايمان شرط ګرځولے شوے دے. اوپه شرط او مشروط کښې مغايرت وی نو په عمل او ايمان کښې به مغايرت وی. اوعمل به د ايمان جزء نشی ګرځولے.

() په قرآن کريم کښې ارشاد خداوندی دے. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا﴾ (٦) تاسوته معلومه ده. چه توبه د ګناه نه کيږی. اودا درته هم معلومه ده که عمل د ايمان جزء او ګرځولے شی. نو په ګناه او ايمان کښې به تضاد راشی. ځکه چه ګناه د عمل ضد دے او عمل چه کله د ايمان جزء شی. نو ګناه به د ايمان هم ضد دے ځکه چه کوم څيز د جزء ضد وی. هغه د کل هم ضد وی. نو د معصيت مرتکب په ايمان باندے نشی موصوف کيدے د دے باوجود په قرآن کريم کښې دی. اے د ايمان خاوندانو! تاسو توبه اوباسئ يعنی د ګناه نه. لکه چه د ګناه باوجود ورته هم مؤمن ونيلی شی. د دے نه معلومه شوه. چه عمل په ايمان کښې داخل نه دے

دغه شان په قرآن پاک کښې په يوبل ځائے کښې په مرتکب د کبيره باندے د مؤمن اطلاق کړے دے. ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ﴾ (٧) دلته په خپلو کښې جنګ کونکی مسلمانانوته مؤمن ونيلے شوے دے اوقتال ګناه کبيره ده. د دے نه هم معلومه شوه. چه عمل په ايمان کښې داخل نه دے

() دغه شان هغه ټول آيات قرآنيه هم حضرات متکلمين د دليل په طور پيش کوی په کومو کښې چه د ايمان سره د عمل صالح مطالبه هم شوے ده. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ (٨)

() د قرآن کريم هغه آياتونه هم د متکلمينو ﷺ دلائل دی په کومو کښې چه قلب محل

---

(١) الكهف:٨٨)_
(٢) القصص:٦٧)_
(٣) البقرة:٢٥)_
(٤) النساء:١٢٤)_
(٥) النحل:٩٧)_
(٦) التحريم:٧)
(٧) الحجرات:٩)_
(٨) التوبة:١١٩)_

دایمان گرځولې شوې دې لکه ﴿أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ﴾[1]
﴿وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾[2] دغه شان فرمائی ﴿قَالُوا آمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ﴾[3] دغه شان فرمائی ﴿وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾[4] ټول پېژنی چه زړه د تصدیق محل دې د عمل محل نه دې

۱) علامه عینی رحمه الله فرمائی چه الله تعالی اهل عربو ته د ..آمنوا.. حکم کړې دې اود ایمان مطالبه ئې ترې کړې ده.اوداهل عربو په نیز دایمان مفهوم ددې نه سوا بل څه نه وو چه تاسو تصدیق بالقلب اختیار کړئ.نودا د ..آمنوا.. صیغه په کومه بانْدې چه دوی مکلف گرځولی شی دعربو دلغت مطابق دتصدیق قلب نه سوا بل څه ته شامل نه دې ددې نه هم معلومیږی.چه ایمان د تصدیق نوم دې اوعمل په دې کښې داخل نه دې[5]

۱) په قرآن کریم کښې ارشاد دې ﴿فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللَّهِ﴾[6] دلته د کفر په مقابله کښې دایمان ذکر دې اوکفر انکار اوتکذیب ته وائی.اوانکار اوتکذیب محل د ایمان دې نودده ضد دایمان محل به هم قلب وی.اودا به هله وی.چه دایمان تعریف په تصدیق سره اوشی.اوعمل په کښې داخل نشی.

۱) په حدیث جبریل علیه السلام[7] کښې د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس شوې وو.چه «أخبرنی عن الإسلام» ددې په جواب کښې نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.«الإسلام أن تشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله وتقيم الصلاة وتؤتی الزكاة وتصوم رمضان وتحج البيت إن استطعت إليه سبيلاً» اوبیا ئې د «فأخبرنی عن الإيمان» په جواب کښې اوفرمائیل .«أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الآخر وتؤمن بالقدر خيره وشره» لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم د ایمان په تعریف کښې امور مخصوصه ذکر کړل دا تفریق د دې خبرې دلیل دې.چه اعمال په ایمان کښې داخل نه دی.

۱) دحضرت اسامه بن زید رضی الله عنه واقعه ده.چه هغوی یوداسې کس قتل کړې وو چا چه «لا إله إلا الله» ونیلې وه.هغه په دې خیال هغه قتل کړې وو چه دې د ځان بچ کولو دپاره کلمه وائی.نونبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل. «أفلا شققت قلبه»[8] تا دهغه زړه ولې نه څیرې کولو چه کتلې

---

[1] المجادلة:۲۲)_
[2] النحل:۱۰۶)_
[3] المائدة:۴۱)_
[4] الحجرات:۱۴)_
[5] عمدة القاری(۱۰۵/۱)_
[6] سورة البقرة:۲۵۶)_
[7] صحیح مسلم فاتحة کتاب الإیمان رقم ۱۰۲)_
[8] صحیح مسلم (۶۸/۱) کتاب الإیمان باب تحریم قتل الکافربعد قوله لا إله إلا الله)_

دے وے.تادا ځنګه يقين اوکړلو.چه صرف د خان بچ کولو دپاره کلمه وائی.په حقيقت کښے مؤمن نه دے؟ددے نه ښکاره معلوميږی.چه دايمان محل زړه دے.اوددے وجے قلب د تصديق محل دے.نود ايمان تعريف به په تصديق سره کولے شی.اوعمل به په ايمان کښے نشی داخلولے.

() په مسند احمد کښے ديوانصاری رضي الله عنه واقعه ده.«أنه جاء بأمة سوداء وقال يا رسول الله: إن علي رقبة مؤمنة فإن كنت ترى هذه مؤمنة أعتقتها، فقال لها رسول الله ﷺ أتشهدين أن لا إله إلا الله؟ قالت: نعم، قال أتشهدين أني رسول الله؟ قال نعم، قال أتؤمنين بالبعث بعد الموت، قال نعم، قال أعتقها»(۱)دلته دعمل څه ذکر نشته.نبی ﷺ د تصديق بالقلب اعتبار کړے دے اوپه دے باندے ئے د ..مومنة.. اطلاق اوکړلو.

() هم په مسند احمد کښے دحضرت انس رضي الله عنه نه مرفوع روايت دے.«الإسلام علانية والإيمان في القلب...»(۲) ددے ټولو دلائلو نه ثابته شوه.چه عمل په ايمان کښے داخل نه دے.ځکه متکلمين رحمهم الله او حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله ددے خبرے قائلين دی.چه عمل په ايمان کښے داخل نه دے.والله اعلم.

**دحضرات محدثينو اومتکلمينو رحمهم الله په مينځ کښې د اختلاف حيثيت** بيا دلته دا سوال پيدا کيږی.چه متکلمين رحمهم الله د ايمان تعريف په تصديق بالقلب سره کوی.اومحدثين رحمهم الله دتصديق.عمل او اقرار مجموعه ته ايمان وائی.خود مآل اونتيجے په اعتبارسره د محدثينو اومتکلمينو رحمهم الله په مينځ کښے څه اختلاف نشته.ځکه چه دواړه فريق مرتکب دکبيره مخلد في النار نه ګنړی.بيا دا اختلاف دومره سخت ولے شو؟ په دے باره کښے د بعضے حضراتو رائے ده. چه دا اختلاف لفظي اختلاف دے.(۳)

حضرت شيخ الاسلام شبيراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.دا اختلاف لفظی نه بلکه د نظرئے اختلاف دے.

د متکلمينو رحمهم الله نظريه ده.چه اعمال دايمان په فروعو کښے دی.اود ايمان يعنی تصديق بالقلب حيثيت داسے وی.لکه چه د جرړے حيثيت وی.چه جرړه په زمکه کښے دننه پټه وی.دهغے نه تنه راوځی.اود تنے نه پس شاخونه او پاڼړے.نوهغه شاخونه او پاڼړے د جرړے جزء نه وی هغه د جرړے دپاسه متفرع کولے شی د متکلمينو رحمهم الله په نيز هم په دے طريقه اعمال په ايمان باندے متفرع کيږی.

دمحدثينو رحمهم الله نقطه نظردادے چه ايمان دتنے پشان دے اواعمال د شاخونواوپاڼړو پشان دے. نولکه ځنګه چه شاخونه اوپاڼړے د جرړے جزء نه وی.دغه شان اعمال هم د ايمان جزء نه دے.

---

(۱) سند احمد (۳/٤٥١. ٤٥٢)حديث رجل من الأنصار)_

(۲) مسند احمد (۳/١٣٤. ١٣٥) مسند انس بن مالک رضي الله عنه)_

(۳) فضل الباری(۱/۲٤۸)_

د محدثينو رحمهم الله خيال دے چه دايمان حيثيت بيخي دهغې تنې پشان دے كومه چه د زمكه د پاسه وى شاخونه او پاڼړے ددے جزء وى دغه شان به اعمال هم د ايمان جزء وى.[1]

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى دا اختلاف په اصل كښے د حالاتو پيداوار دے.د امام اعظم ابوحنيفه اومتكلمينو رحمهم الله په زمانه كښے چونكه د معتزلو او خوارجو زور وو.او هغوى ددے خبرے قائلين وو چه اعمال دايمان جزء دے كه اعمال نه وى .نوسړے به مخلد في النار وى اوهغوى به مرتكب د كبيره دايمان نه خارج گرخولو.نودهغوى د ترديد دپاره متكلمينواوامام ابوحنيفه رحمهم الله موثراوبليغ عنوان اختيار كړلو اووے فرمائيل چه ايمان صرف د تصديق بالقلب نوم دے.اواعمال ددے ثمره. نتيجه او فرع ده.دا دايمان جزء نه دے.

د حضرات محدثينو رحمهم الله په زمانه كښے د مرجئو زور وو .اوهغوى عمل بيخي بيكاره گرخولے وو.د «الطاعة لاتفيد والمعصية لاتضر» دعوى ئے كوله.ددوى د ترديد دپاره حضرات محدثينو رحمهم الله بليغ عنوان اختيار كړلو.هغه دا وو چه عمل دايمان جزء دے.چه دعمل اهميت كم نشى.په دے وجه دا اختلاف پيدا شو.كنى داصل په اعتبار سره نه دا حضرات د عمل د اهميت نه منكر دى اونه هغوى د دواړو په نيز عمل ضرورى دے.دغه شان د دواړو په نيز مرتكب دكبيرة نه دايمان نه خارج دے اونه مخلد في النار دے.[2]

**په ايمان كښې زيادت اونقصان** دلته دويمه اهمه مسئله په ايمان كښے دزيادت او نقصان ده.په دے كښے اختلاف دے.

جمهوراشاعره.ائمه ثلاثه او داود ظاهرى رحمهم الله فرمائى.چه په ايمان كښے كمے زياتے راځى.[3]

دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مشهور مذهب دا دے.چه په ايمان كښے كمے زياتے نه كيږى.

حضرت علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه امام ابوحنيفه رحمه الله ته چه د عدم زيادت او نقصان قول منسوب وو.په دے كښے اول كښے زما تردد وو.خكه چه دا هغوى ته په فقه اكبر كښے منسوب ملاويږى.خود ..فقه اكبر.. په باره كښے د محدثينو رحمهم الله رائے ده.چه د هغوى خپل تصنيف نه دے.بلكه دهغوى د شاگرد ابومطيع بلخى رحمه الله تصنيف دے.حافظ ذهبى رحمه الله هغه جهمى گرخولے دے.خودا خبره تيك نه ده.دومره خبره ضرور شته چه دحديثو په سلسله كښے هغه حجت نه دے.

ددے نه علاوه دا قول امام صاحب رحمه الله نه امام ابن تيميه رحمه الله هم نقل كړے دے. بيشكه هغه حافظ متبحر دے.خوچونكه دهغوى په طبيعت كښے تيزى ده اوكوم طرف ته چه دهغوى ميلان وى.نود حد نه زيات ميلان وى نوخكه دهغوى په نقل باندے اعتماد نشى كولے.

حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى.دصحيح قول نه ملاويدو په وجه ما ددے قول نفى كول غوښتل چه د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله شرح موطا مے د نظر نه تيره شوه په هغے كښے هغوى هم دا قول دامام ابوحنيفه رحمه الله استاذ حضرت حماد رحمه الله طرف ته منسوب كړے وه.چونكه

---

(١) درس بخارى علامه شبيراحمد عثمانى مرتبه مولاناعبدالوحيد صديقى فتح پورى (١/١٢٠، ١٢١)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) فتح الملهم (١/٤٤٦) كتاب الإيمان هل الإيمان يزيد وينقص)_

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله په نقل کښې متقن او متثبت دے. نو ځکه راته څه ناڅه اطمینان حصل شو چه د شیخ قول د شاګرد هم وی (۱)

خو حضرت شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه حافظ ابن عبدالبر رحمه الله دامام اعظم رحمه الله نه ډیر متاخر دے او هغوی چه څه نقل کړی دی نو هغه نے صراحة امام ابوحنیفه رحمه الله ته منسوب کړے هم نه دی بلکه دامام ابوحنیفه رحمه الله د استاذ حماد رحمه الله نه ئے نقل کړی دی.

او یوبل نقل ملاؤ شوے دے کوم چه دد نه زیات مضبوط دے شیخ ابوالمنصور بغدادی رحمه الله په «کتاب الأسماء والصفات» کښې او امام ابوالحسن اشعری رحمه الله په کتاب «مقالات الإسلامیین» کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله قول نقل کړے دے چه «الإیمان لایتبعض ولایزید ولاینقص ولایتفاضل الناس فیه» حضرت شیخ الاسلام فرمائی چه امام ابوالحسن اشعری رحمه الله د امام طحاوی رحمه الله هم عصروو. اوامام طحاوی رحمه الله په یوه واسطه د امام محمد رحمه الله شاګرد دے اوامام محمد رحمه الله دامام ابوحنیفه رحمه الله په شاګردانو کښې دے نو د دوی زمانه امام اعظم رحمه الله ته زیاته نزدے ده. اوبه نقل کښې دهغه مستند او معتمد کیدل دبیان محتاج نه دے (۲)

**منشأ د اختلاف** اوس دلته د ټولونه وړاندے دا سوال پیدا کیږی چه د زیادت اونقصان د دے اختلاف منشأ څه ده؟

په دے سلسله کښې دامام رازی رحمه الله رائے ده. چه په اصل کښې دا اختلاف د ایمان په ترکیب اوبساطت باندے مبنی دے کوم حضرات چه ایمان مرکب ګنړی هغوی د «الإیمان یزید وینقص» قائلین دی او څوک چه دا وائی چه ایمان بسیط دے. هغوی د «الإیمان لایزید ولاینقص» قائلین دی. دا اختلاف هم په دے اولنی اختلاف باندے متفرع دے نو دا اختلاف هم د اولنی اختلاف پشان لفظی دے (۳)

امام نووی رحمه الله فرمائی که اعمال د ایمان جزء اونه ګرځولے نو په دے صورت کښې هم په ایمان کښې زیادت اونقصان راځی هغوی فرمائی چه د صدیقینو ﷺ ایمان د عامو خلقو دایمان نه زیات وی (۴)

**د «لایزید ولاینقص» مطلب** کوم حضرات چه د زیادت ونقصان نفی کوی په هغوی کښې بعضے حضرات فرمائی چه دایمان دوه درجے دی یوایمان معلی کوم ته چه تاسو ایمان کامل یا ایمان مطلق یا ایمان علی الاطلاق هم وئیلے شئ اوبل ایمان منجی دے کوم ته چه تاسو

---

(۱) فیض الباری (۱/ ۵۹، ۶۰)_

(۲) فضل الباری (۱/ ۲۵۸، ۲۵۹)_

(۳) فضل الباری (۱/ ۲۶۰)_

(۴) شرح نووی علی صحیح مسلم (۱/ ۲۶) کتاب الإیمان)_

نفس ایمان یا ایمان مطلق هم ونیلے شی ایمان معلی اوچته درجه ده او ایمان منجی ادنی درجه ده ایمان معلی زیادت اونقصان قبلوی خوکوم چه نفس ایمان دے یعنی ایمان منجی په هغے کنبے د زیادت اونقصان څه احتمال نشته خکه که په دے کنبے کمے زیاتے تسلیم کړے شی نوهغه خو د وړاندے نه په ادنی درجه کنبے دے که په هغے کنبے نوره کمی راشی نوایمان باقی نه پاتے کیږی خکه چه د ایمان په ادنی درجه کنبے د کمی مطلب دا دے چه یقین باقی پاتے نشو شك او تردد پیدا شو نودایمان دا درجه نقصان نه قبلوی.(۱)

سوال دا پیدا کیږی چه دا زیادت خو قبلوی نوبیا د.. لایزید.. ونیلومطلب څه دے؟

ددے جواب دا دے چه د زیادت قبلولو مطلب دا دے چه د ایمان په کومه ادنی درجه باندے خلودفي النارحرام گرځولے شوے دے.نودهغے نه پورته درجه د خلودفي النار دپاره موقوف علیه نه ده ددے نه پورته بیشکه ډیردرجات کیدے شی خوهغه پورته درجات دخلود في النار دحرمت دپاره موقوف علیه نه دی.مثلاً د پیغمبرانوعلیهم السلام یا د صدیقانوایمان یقیناً ددے نه افضل اوغوره دے خود خلود في النار دحرمت دپاره هغه موقوف علیه نه دے.که دهغوی ایمان کوم چه د نفس ایمان اود ادنی درجے نه اوچت اوپورته دے دخلود في النار دحرمت دپاره موقوف علیه اوگرځولے شی نوبیا په مونږ کنبے څوك هم د خلود في النار نه مستثنی کیدے نشی.

خلاصه دا ده چه هغه درجه نقصان نه قبلوی که هغه نقصان قبول کړی نوهغه ایمان نه پاتے کیږی.په هغے کنبے تردد او شك راځی.تصدیق نه پاتے کیږی اوپه دے کنبے د زیادت دنفی مطلب دا دے.چه ددے نه زیاته اوچته مرتبه دخلود في النار د حرمت دپاره موقوف علیه نشی گرځیدلے.

علامه ابن حزم ظاهری رحمه الله هم د «لایزید ولاینقص» قائل دے.هغوی یوه بله توجیه کړے ده.هغوی فرمائی چه په حقیقت کنبے دلته درے صورتونه دی

() یو داچه تصدیق په صورت د جزم وی یعنی چه په دے کنبے دنقیض احتمال موجود نه وی.

() دویم صورت دا دے.چه په هغے کنبے تصدیق وی اوتردد هم موجود وی

() دریم صورت دا دے.چه تصدیق وی.اودے سره انکار وی.

ابن حزم رحمه الله فرمائی.ایمان دهغه تصدیق نوم دے چه په هغے کنبے جزم وی.اود نقیض احتمال په کنبے نه وی.که تصدیق وی.اودهغے سره تردد وی.نوهغه ایمان نه دے.نوکله چه په ایمان کنبے د تصدیق سره جزم وی.اود نقیض گنجائش په کنبے نه وی.نوبه دے کنبے به نقصان څنگه راشی؟خکه چه دنقصان راتلو مطلب دا دے چه د نقیض احتمال پیدا شی اود جزم نقیض تردد او انکار دے نوکه په دے کنبے د نقیض یعنی د تردد یا انکار احتمال راشی نوهغه خو ایمان نه پاتے کیږی خکه چه ایمان هغه تصدیق دے چه هغه د جزم سره وی اود نقیض محتمل نه وی نودا منل به ضروری شی چه په دے کنبے دنقصان احتمال

---

(۱) درس بخاری ازحضرت شیخ الاسلام علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله (۱/ ۱۲۵)مرتبه مولانا عبدالوحید صدیقی فتح پوری)_

نشته او قاعده دا ده چه ((مالا یحتمل النقصان لا یحتمل الزیادة)) په کوم څیز کښې چه د نقصان احتمال نه وی په هغې کښې د زیادت ګنجائش هم نه وی نوځکه به وئیلی شی چه ((الایمان لا یزید ولا ینقص)) (۱)

شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله یوه بله خبره کړې ده (۲) هغوی فرمائی چه د ایمان روح انقیاد قلبی اواستسلام باطنی دے شیخ ابوطالب مکی رحمه الله دے ته د ..التزام شریعت.. عنوان ورکړے دے دے ته التزام طاعت هم وئیلی شی په دے انقیاد قلبی اوالتزام شریعت باندے ایمان موقوف دے که دا نه وی نو ایمان به هم نه وی او دا د ..مؤمن به.. درجه ده مونږ دا فیصله کړې ده او زمونږ په دے باندے یقین دے چه کوم حکم د نبی ﷺ نه راخی مونږ به هغې ته غاړه بسته یو نو په دے التزام شریعت او انقیاد قلبی کښې کمې اوزیادت کیږی خو په خپله په تصدیق کښې زیادت اونقصان نه راخی مونږ د رسول الله ﷺ د اطاعت التزام کړے دے اوس نبی ﷺ حکم اوکړلو چه حشراونشر باندے یقین اوکړئ په حساب اوکتاب باندے ایمان راوړئ په جنت او دوزخ باندے یقین اوکړئ مونږ دا منو اوس ښکاره خبره ده چه دا ټولے خبرے په نظر نه راخی اونه دا په عقلی استدلال سره ثابتے کړے شوی دی صرف د دے وجے چه د نبی ﷺ تصدیق مو کړے دے اود انقیاد قلبی او د شریعت التزام ذمه واری مو قبوله کړے ده نو کومه خبره چه نبی ﷺ کوی هغه په سر سترګو منو په لا اله الا الله محمد رسول الله باندے ایمان وو دے نه پس په حشر نشر حساب کتاب جنت او دوزخ باندے دیقین کولو حکم اوکړے شو نو دا اومنلے شول بیا ئے اوفرمائیل چه پنځه وخته مونځ کوئ نو دا اومنلے شو نو دا التزام شریعت مومن به دے په دے کښې کمے زیاتے کیږی خو په تصدیق کښې کمے زیاتے نه کیږی.

**په نصوصو کښې د وارد شوی زیادت توجیه** باقی پاتو شو دا اشکال چه بیا په آیاتونو کښې چه په ایمان کښې د کمی اوزیاتی ذکر راغلے دے د هغې جواب به څه وی؟

په دے باره کښې بوه خبره خو دا یاده ساتل پکار دی چه په آیاتونو او احادیثو کښې د زیادت ذکر راغلے دے د نقصان نه دے د حافظ ابن تیمیه رحمه الله غوندے وسیع النظر عالم اقرار کوی چه د نقصان ذکر په نصوصو کښې نه دے راغلے (۳) صرف په یو حدیث کښې نبی ﷺ ښځو ته ((ناقصات عقل ودین)) وئیلی دی (۴)

په هغې کښې د نقصان ذکر شته خو هلته د ایمان لفظ هم نشته په هغې کښې دا احتمال هم شته

---

(۱) فتح الملهم (۱/ ٤٤٧) کتاب الإیمان هل الإیمان یزید وینقص)_

(۲) فضل الباری (۱/ ۲٦۱، ۲٦۲)_

(۳) فضل الباری (۱/ ۲۵۹)_

(۴) په حدیث کښې دی ((مارأیت من ناقصات عقل ودین أذهب للب الرجل الحازم من إحداکن ..صحیح بخاری (۱/ ٤٤)_

چه هغه نه د اعمالو کمے مراد دے.دزیادت لفظ په قرآن او احادیثو کښے په کثرت سره راغلے دے.کیدے شي هم دا وجه وي.چه دامام مالك رحمه الله مذهب «الإيمان يزيد ولا ينقص» نقل شوے دے.دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله یو قول هم دا نقل شوے دے.دغه شان دعبدالله بن المبارك څوك چه په یووخت مجاهد ، محدث ، زاهد ، اوصوفي دے.اودامام اعظم شاګرد هم دے.دهغوی قول هم «الإيمان يزيد ولا ينقص» منقول دے.(١) خود احنافو رحمهم الله مشهور قول هم «لا يزيد ولا ينقص» دے.

بهرحال سوال دا دے.چه دے حضراتو «لايزيد ولاينقص» د کوم خائے نه ونیلی دی؟ اوپه آیاتونو کښے دننه د زیادت ذکرموجود دے.نوددے زیادت نه څه مراد دے.ددے څو جوابونه ورکړے شوي دي.

() یوجواب دا ورکړے شوے دے.چه دزیادت نه د نورایماني زیادت مراد دے.﴿أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِ﴾(٢)

الله تعالی چه کوم کس ته د اسلام دپاره شرح صدر ورکړی.نوهغه ته دهغه د رب د طرفه دایمان نور ورکړے شي.اوداعمالو د کمی زیاتي په اعتبار سره په دغه ایماني نور کښے انبساط،زیادتیدل اونقصان پیدا کیږی.کوم کس چه څومره نیك اعمال زیات کوی.هغه هومره دهغه په نورایماني کښے انبساط پیدا کیږی.اودا نورایماني خوریږی.اودکوم سړی په اعمالو کښے چه څومره کمے راځي.نوهغه هومره دهغه په نورایماني کښے کمے واقع کیږی.

دقرآن مجید یوبل آیت هم دے.﴿أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا﴾(٣) آیا هغه کس چه د ضلالت اوګمراهئ په تیرو کښے مړ پروت وی.مونږ ورته دمعرفت الهی اوایمان نور ورکړو.اوژوندے ئے کړو.اوهغه دغه نورایماني واخلی.اوپه خلقو کښے ګرځي.نوکوم کس چه مونږ ددے دپاره پیدا کړے دے.دا کس د هغه کس پشان کیدے شي.څوك چه په تیرو کښے پروت وی.اودهغے نه راوتونکے نه وی.

دغه شان په قرآن کریم کښے دی.﴿يُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ﴾ (٤) دلته د کفرد ظلمت نه دایمان نور طرف ته راویستل مراد دی.

دغه شان ﴿يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ﴾(٥) دلته کښے د ﴿نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ﴾ نه نورایماني مراد دے.

---

(١) فضل البارى(٢٥٩/١)_
(٢) سورة الزمر:٢٢)_
(٣)سورة الأنعام:١٢٣)_
(٤) سورة البقرة:٢٥٧)_
(٥) سورة التحريم:١٣)_

دغه شان په قرآن مجید کښې ﴿يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَىٰ نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِم﴾ (١) کښې دنور ایمانی ذکر دے.

په یوځائے کښې فرمائی. ﴿يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ آمَنُوا انظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِن نُّورِكُمْ﴾ (٢) منافقین او منافقات به مسلمانانو ته اووائی. موږ ته لږ شان انتظار اوکړئ چه ستاسونه لږ غوندے نور موږ هم واخلو. نو دا ایمان په دے نور کښې زیادت اوکمے راځی. ایمان کوم چه دتصدیق قلبی نوم دے په هغے کښې کمے زیاتے نه راځی.

(٢) دویم جواب دامام اعظم رحمه الله نه منقول دے. (٣) په دوی باندے په استدلال کښې دهغه آیاتونو په رڼړا کښې اعتراض اوشو په کومو کښې چه دزیادت ذکر دے. نودوی اوفرمائیل.

«آمنوا بالجملة ثم آمنوا بالتفصیل» یعنی اول ایمان مجمل وو چه رسول الله ﷺ څه راوړی دی. هغه اومنلی شی. اوهغے ته غاړه کیخودے شی. اوددے نه پس نبی ﷺ تفصیلات بیان کړل چه دا کول دی. دا منل دی. دا کار کول دی. نودا تفصیلات روستو راغلی وو. نو کمے اوزیادت ددے تفصیلات په اعتبار سره دے. څه کسان دایمان راوړلو نه پس په هغه وخت کښې وفات شوی وو. چه مونځونه هم فرض نه وو. څه کسان تیر شوی وو. چه د مونځ دفرضیت په وخت کښې ژوندی وو. خوچه کله روژے فرض کیدے. نووفات شوی وو. څه کسان داسے وو. چه هغوی مونځونه کړی وو. اوروژے ئے هم نیولے وے. خود هغوی په ژوند کښې حج نه وو فرض شوے. څوك چه وړاندے وفات شوی وو. ددے تفصیل په اعتبار سره دهغوی ایمان کم وو. اوڅوك چه روستو وفات شوی وو. دهغوی ایمان ددے تفصیل په اعتبار سره زیات وو. نوددے تفصیل په اعتبار سره کمے زیاتے راتلے شی. خواجمالی ایمان چه څه نبی ﷺ وائی. موږ په هغے باندے یقین کوو. دا زیادت اونقصان نه قبلوی.

خوپه دے جواب باندے اشکال کیږی. چه په حدیث شفاعت کښې (٤) چه دایمان درجات مختلفه بیان شوی دی. هغه ددے جواب سره موافقت نه خوری. ځکه چه ددے جواب حاصل خو دا دے. چه ایمان یودے. د اجمال اوتفصیل فرق دے. نو زیادت په اعتبار د تفصیل سره شو. اودا خبره ښکاره ده. چه کله حقیقت یو وی. نو د هغے به په کامله طریقه سره مطالبه کیدے شی. ځکه که په حقیقت کښې کمے راشی. نوهغه څیز منتفی کیږی. ددے تقاضا دا ده. چه د ایمان کوم درجات په حدیث د شفاعت کښې بیان شوی دی. اوپه څه چه نجات مرتب کړے شوے دے. پکارده چه نجات ورته ملاؤ نشی. ځکه چه نجات خو په پوره ایمان باندے حاصلیږی. بعضے ایمان چه د هغے نه په ..دینار.. نصف دینار او ..ذره.. سره تعبیر شوے دے. نشی مرتب کیدے.

(١) سورة الحدید:١٢)

(٢) سورة الحدید:١٣)

(٣) درس بخاری ازحضرت شیخ الاسلام شبیراحمد عثمانی مرتبه مولانا عبدالوحید صدیقی فتح پوری (١٢٤/١)

(٤) کتاب التوحید باب قول الله تعالی: ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ _

دے جواب دا ورکولے شی. چه د شفاعت په حدیث کښے چه د ایمان کوم درجات بیان شوی دی. دهغے نه مراد اعمال دی. اوهغے ته مجازاً ایمان ونیلے شوے دے. ځکه چه دا د ایمان د مقتضیاتو ځنی دی.

() دریمه خبره دا کړے شوے ده. چه الله تعالی اهل ایمان ته سکینه اوطمانیت ورکوی. «کما فی قوله تعالی ﴿فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾»[1] دا سکینه د تصدیق نه سوا یوبل څیز دے کوم چه اهل ایمان ته ملاویږی. بلکه داسے اووائے چه دا عارفین او کامل الایمان حضراتو ته ملاویږی. نوزیادت اوکمے ددے سکینه په اعتبار سره وی دنفس ایمان په اعتبار سره نه کیږی.

**دشیخ الاسلام شبیراحمد عثمانی رحمه الله تحقیق** شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی. چه د اهل حق په مینځ کښے په اصل کښے څه اختلاف نشته. په نقل کښے دقصور د وجے اختلاف ګڼړلے شوے دے. متکلمین اوامام اعظم رحمه الله یوفریق ګرځولے شوے دے. او فقهاء ثلاثه. محدثین. اواشاعره دویم فریق ګرځولے شوے دے. دوی فرمائی. بعضے وخت په نقل کښے ډیره غلطی کیږی. ددے مثال هغوی ورکړے دے. چه په درمختار کښے د فتاوی بزازیه په حواله سره نقل شوی دی. «ینـدب القیام عنـد سماع الأذان»[2] ددے مطلب دا اخستے شوے دے. که سړے ملاست وی. یا ناست وی. نوچه اذان واوری. اودریږی به. په دے خبره نه پوهیږم، چه د اذان په وخت کښے ملاست کس یا ناست کښے به اودریږی. علامه شامی رحمه الله فرمائی. دا په «النهرالفائق» کښے هم داسے منقول دی. خو په فتاوی بزازیه کښے ما لټون کړے دے. نوپه هغے کښے ماته دا عبارت داسے خو ملاؤ نشو. البته د «سمع وهویمشی» الفاظ راته ملاؤ شول.[3] لکه چه مطلب داشو. که یوکس لار کښے روان وی. اوپه روانه کښے د اذان آواز واوری. نوهغه دے کینی. چه اذان په ادب اواحترام سره واوری. اوروانه روانه کښے د په بے پرواهئ اواستغناء سره دے اوریدل نه کوی. مولانا رحمه الله فرمائی. دا خبره معقوله ده. چه د تګ په حالت کښے ادباً او احتراماً اودریدل او اوریدل پکار دی. خواولئ خبره چه ملاست اوناست کس دے د اذان اوریدو دپاره اودریږی. معقول نه ده. په ملاسته هم اذان په توجه سره اوریدے شی. خوپه نقل کښے غلطی واقع شوے ده. اومطلقاً ئے «ینـدب القیام عنـد سماع الأذان» نقل کړی دی. نوخبره د کوم ځائے نه کوم ځائے ته اورسیدله.

دلته کښے هم د سلفو په قول اود امام اعظم رحمه الله په قول کښے کمے زیاتے شوے دے. اوددے کمی زیاتی د وجے اختلاف پیدا شوے دے اوبیا بحثونه شروع شوی دی.

دوی فرمائی. چه د سلفو رحمهم الله قول دے. «الإیمان معرفة بالقلب، وإقرار باللسان، وعمل بالأرکان، یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة»

---

(۱) سورة الفتح: ۲۶۔

(۲) الدرالمختار (۱/۲۹۳) باب الأذان۔

(۳) ردالمحتار پورتنئ حواله)۔

() په دے کښے يو اختصار دا شوے دے چه د درے واړو څيزونو ذکر کولو په ځائے ئے «الإيمان قول وعمل» ذکر کړے دے اګرچه د تاويل نه پس د دے مراد هم هغه راوځي.خو هغه اصل عبارت باقي پاتے نشو.

() دويم اختصار دا شوے دے چه فقط «يزيد وينقص» ئے ونيلي دي.دے سره چه د «بالطاعة» او «بالمعصية» الفاظ دي.هغه ئے حذف کړي دي.د دے اختصار د وجے د دے جملے اصلي مطلب هم مخفي شو.د دے قول نه چه د سلفو ﷺ کوم غرض وو.هغه د «بالطاعة» او «بالمعصية» د الفاظونه بغير نه ښکاره کيږي.

() دريم اختصار دا شوے دے.چه په اصل کښے دا د اول نه واخله تر آخره پورے يو عبارت وو.او چه مجموعه ملاؤ شي.نو يوه عقيده وه.خلقو دا جدا جدا کړه.او دوه مسئلے ئے ترے جوړے کړے.يوه «الإيمان قول وعمل» يعني اعمال د ايمان جزء دے.دويمه «الإيمان يزيد وينقص» يعني په ايمان کښے زيادت اونقصان راځي. نو اوس چه په کوم ځائے کښے هم د سلفو ﷺ عقيده نقل کولے شي.نو هغه جدا جدا د دوو مسئلو په صورت کښے ښکاره کولے شي.

دغه شان د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله قول کوم چه امام طحاوي رحمه الله نقل کړے دے.هغه دا دے.چه «الإيمان الإقرار باللسان، والتصديق بالجنان، وما صح عن رسول الله ﷺ من الشرع والبيان كله حق والإيمان واحد وأهله في أصله سواء والتفاضل بينهم بالخشية والتقى ومخالفة الهوى وملازمة الأولى» دا دے د امام اعظم رحمه الله ټول عبارت.د امام صاحب د دے عبارت نه «وما صح عن رسول الله ﷺ من الشرع والبيان» كله حق حذف کړے شوے دے.او «الإيمان الإقرار باللسان والتصديق بالجنان» خانله ذکر کړے شوے دے.او ونيلي شوي دي.چه په دے کښے د عمل ذکر نشته.او دا مسئله جوړه کړے شوه ده.چه امام اعظم رحمه الله عمل د ايمان دپاره جزء نه ګڼړي.او «الإيمان واحد» هم حذف کړے شوے دے.د دے نه پس وو.«وأهله في أصله سواء» د دے نه دا مطلب اخستے شوے دے.چه «الإيمان لايزيد ولاينقص» په ايمان کښے کمے زياتے نه راځي.ټول اهل ايمان په اصل ايمان کښے برابر دي.د دے نه دويمه مسئله جوړه کړے شوے ده.او بيا د «والتفاضل بينهم بالخشية والتقى ومخالفة الهوى وملازمة الأولى» ټول عبارت غائب کړے شو.لکه چه د امام اعظم رحمه الله په قول کښے هم کمے زياتے شوے دے.او په عبارتونه جدا کړے شوي دي .د مستقلو مسائلو عنوان ورته ورکړے شوے دے.حالانکه کوم مقصد چه د سلفو ﷺ دے.هم هغه مقصد د امام اعظم رحمه الله دے.د دواړو په مقصد کښے څه فرق نه دے.صرف دومره خبره ده.چه امام اعظم په اوږد عبارت کښے د سلفو ﷺ د قول تجزيه او تحليل کړے دے.او د سلفو منشا ئے ښکاره بيان کړے ده.لکه چه په «صفة الصلاة» کښے حديث راځي.او فقهاء د هغې فقهي تحليل کوي.چه په دے حديث کښے فلانے څيز فرض دے.او فلانے څيز د واجب يا سنت يا مستحب په درجه کښے

دے.دنبی ﷺ په حدیث کښې تول څیزونه یوځائے ذکر دی.خوفقهاء ددے مراتب اودرجات بیانوی.هم دغه شان امام اعظم رحمہ اللہ د سلفو رحمہم اللہ دقول تحلیل اوحد بندی کړے ده.

دسلفو رحمہم اللہ عبارت وو.((الإیمان معرفة بالقلب، وإقرار باللسان، وعمل بالأرکان، یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة)) ددے حضراتوپه زمانه کښې چونکه د مرجئو زور وو.نوهغوی په خپله اولنئ جمله کښې د مرجئو تردید اوکړلو.چه ایمان د تصدیق بالقلب.اقرارباللسان او عمل بالارکان نوم دے.عمل په ایمان کښې داخل دے.د مرجئودا قول چه . .د عمل دایمان سره څه تعلق نشته.اوبغیرد عمل نه به هم سړے براه راست جنت ته داخلیږی.اوپه ارتکاب د معصیت سره هغه مستحق د سزا نه ګرځی. . دا غلطه ده.عمل په ایمان کښې داخل دے.

ددے نه پس د ((یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة)) نه د دوی مطلب دا دے.چه اصل ایمان خو تصدیق بالقلب اواقرارباللسان دے.که تصدیق اواقرار نه وی.نو دایمان د دائرے نه انسان خارجیږی.اوکه تصدیق اواقرارباللسان موجود وی.نودے مؤمن شمارلے شی.دا حیثیت د عمل نه دے.چه ددے په نفی سره د ایمان نفی لازمیږی .عمل خو دایمان په مراتبوکښې د زیادت اوکمی دپاره دے.دا د ایمان جزء نه دے .هغوی ((یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة)) اووئیل.اودا ئے اوخودل.چه په نیکو سره د ایمان درجه پورته کیږی.اوپه ګناهونو سره ددے درجه کمیږی.عمل دایمان په مراتبو کښې دکمی بیشی سبب دے.دا ددے مرتبے څیز نه دے.چه عمل نه وی.نوسړے دایمان نه خارجیږی.لکه چه د معتزلو اوخوارجو مذهب دے.لکه چه ((یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة)) سره هغوی د معتزلو اوخوارجو رد کړے دے.

امام اعظم ابوحنیفه رحمہ اللہ بعینیه هم دا خبره کوی.دوی هم د معتزلو.خوارجواومرجئو رد کوی.بس لږغوندے فرق دے.چه سلفو اول د مرجئو رد کړے دے.ځکه چه د هغوی په زمانه کښې د دوی زور وو.اوپه ((یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة))سره هغوی د معتزلو اوخوارجو رد کړے وو.اوامام صاحب اول د معتزلو اوخوارجو رد کړے دے.ځکه چه د هغوی په زمانه کښې د هغوی زور وو.اود مرجئو رد ئے روستو کړے دے.

امام صاحب ((الإیمان إقرار باللسان وتصدیق بالقلب)) اوفرمائیل.اود عمل ذکر ئے اونکړلو. دمعتزلو او خوارجو رد ئے اوکړلو.خوعمل ئے هم بیخی بےکاره نه دے ګرځولے.((وما صح عن رسول الله ﷺ من الشرع والبیان کله حق)) ئے اوفرمائیل. او د عمل ذکر ئے اوکړلو.په معتزلو او خوارجو باندے د رد.کولو دپاره ئے دا خبره خانله ذکر کړله.چه د ایمان بنیاد اواساس اقرار باللسان اوتصدیق بالقلب دے.اوددے خودلو دپاره . .چه د عمل دا درجه نه ده. .ئے عنوان بدل کړلو.او((وما صح عن رسول الله ﷺ من الشرع والبیان کله حق)) اوفرمائیل.په دے کښې د مرجئو رد هم اوشو.چه مونږ دعمل داهمیت منکر نه یو.ځکه چه د رسول الله ﷺ نه چه په صحیح سندونو سره کوم شریعت ثابت دے.هغه اعمال اواحکام دی.هغه ټول حق دی.اودا سلف رحمہم اللہ هم منی.

ددے نه پس جمله وه .((والإيمان واحد)) ددے مطلب دا دے چه ایمان د تصدیق بالقلب.
اقرارباللسان.اوعمل بالارکان.. ددے د مجموعه نوم دے.لکه چه څنګه یومرکب د خپلو
اجزاؤ نه ملاؤ شی اویوڅیز ترے جوړ شی.دغه شان ایمان هم دے.لکه جرړه تنه اوشاخونه
پاڼړے اوګلونه چه دا ټول ملاؤ شی.نو وونه ترے جوړه شی.هم دغه شان ایمان د تصدیق
بالقلب.اقرارباللسان اوعمل بالارکان مجموعه ده.دا خبره تاسوته خودلے شوے ده.چه دامام
اعظم رحمه الله په نیزدا ټول دایمان اجزاء دی.خوپه مرتبه کښے برابر نه دی.لکه څنګه چه په وونه
کښے د څانګواوپاڼړو هغه مقام نه وی.کوم چه د جرړے اوتنے وی.دغه شان دلته دعمل هغه
مقام نه دے .کوم چه د اقرار اوتصدیق دے.په ((الإيمان واحد)) کښے امام اعظم رحمه الله دا
اوخودل.چه ددے مجموعے نه جوړ شوے ایمان یو څیز دے.اوددے مجموعے په اجزاؤ کښے د
تصدیق اواقرار مرتبه د اساس اوبنیاد ده.اودعمل حیثیت داساس اوبنیاد نه دے.دا خبره
امام صاحب رحمه الله بیا بنکاره کړے ده.اوفرمائیلی ئے دی.چه ((وأهله في أصله سواء)) په تصدیق
کښے ټول اهل ایمان برابر دی.
دلته به اشکال کیږی.چه په تصدیق کښے ټول څنګه برابریدے شی.د انبیاء صدیقین
اوصحابهٔ رضي الله عنهم په تصدیق کښے خو تفاوت دے.اودعوامو تصدیق د هغوی نه هم کم دے.
ددے په جواب کښے وئیلی شی.چه کله په یوڅیزکښے متفاوت درجات وی.نو په هغے کښے یو
داساس حیثیت لری.مثال په طور د نظر(قوت باصره) مختلف درجات دی.د چا نظرتیز
وی.د چا متوسط وی.اودچا ادنی وی.خوته به دا خامخا منے.چه د نظر یو آخری حد هغه هم
دے.که هغه نه وی.نوسړے ړوند کیږی.
دغه شان په عقلونوکښے تفاوت اوپه عاقلانو کښے فرق منلے شوے دے.یوسړے ډیرسریع
الفهم او دقیق الفهم وی.اوبل په باربار پوهوئ.نو په عقلونو کښے هم تفاوت دے.خو په دے
کښے شك نشته.چه ددے تفاوت باوجود دعقل یوه بنیادی درجه ده.که هغه نه وی.نوسړی ته
بیا پاګل وئیلی شی.
هم دغه شان دایمان په درجاتو کښے تفاوت اوګنړئ.خودایمان یوه درجه هغه هم ده.چه دهغے
نه اخوا بیا ایمان باقی نه پاتے کیږی.بلکه که دهغے نه بنکته څے.نو کفر دے.

بهرحال دعرض کولو مقصد دا وو.چه امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله ((وأهله في أصله))افرمائیلی
دی.((وأهله فيه سواء))ئے نه دی فرمائیلے.ددے نه هم هغه درجه مراد ده چه دهغے نه پس ایمان
نه وی.په هغے کښے ټول برابر دی.

ددے نه پس امام اعظم رحمه الله فرمائی.((والتفاضل بينهم بالخشية والتقى ومخالفة الهوى وملازمة
الأولى)) دا په مرجئو باندے رد دے.مرجئه وائی.چه دعمل څه ضرورت نشته.امام
اعظم رحمه الله فرمائی.چه د علم ضرورت شته.په دے سره د درجاتو تفاوت راځی.چه یو کس
نیك اعمال زیات اوکړی.دهغه درجه به اوچته وی.هغوی خودا هم فرمائی.چه د اولی
اوافضل چه کوم سړے اهتمام کوی.دهغه درجه به هم اوچته وی.یعنی د فرض،واجب، سنت

اومندوب خبره خوپه خپل ځائے ده. د «ملازمة الأولى» اهتمام کونکے به هم د فضیلت خاوند وی.په دے عبارت کښے امام اعظم رحمه الله په مرجئو باندے رد کړے دے.اودے سره سره هغوی د عمل حیثیت هم خودلے دے.چه دعمل په وجه په مراتبو کښے تفاوت راځی.ددے په وجه سړے د ایمان نه نشی خارج کیدے.دامام اعظم رحمه الله په عبارت کښے هم هغه خبره شوے ده.کومه چه دسلفو رحمه الله په عبارت کښے شوے وه.یعنی د مرجئو اوخوارجو رد هلته کښے هم وو.اودلته هم.البته امام اعظم رحمه الله دعمل حیثیت متعین کړے دے.کوم چه د سلفو رحمهم الله په عبارت کښے ښکاره نه وو.

اوس که تاسو دا ونیل اوغواړئ.چه په امام اعظم اواشاعرو او ائمه ثلاثو کښے څه اختلاف نشته.هغوی هم ایمان مرکب منی.اودوی هم.نوبے تکلفه دا خبره کوو.په دے کښے څه حرج نشته.دا د دواړو فریقو په مینځ کښے فیصله شوے خبره ده.چه داعمالو حیثیت د جزء تزیینی دے.د جزء اصلی اوترکیبی حیثیت ئے نه دے.تاسوچه په خپله دامام صاحب مشهور مذهب بیانوئ.نودا به اومنئ.چه هغوی په ایمان کامل کښے اعمال جزء منی.نودلته به هم په ایمان کامل کښےجزء منلے شی.اشاعره.ائمه ثلاثه. اومحدثین رحمهم الله هم اعمال دکامل ایمان دپاره جزء ګرځوی.نوپه اهل حق کښے څه اختلاف پاتے نشو.(۱) والله اعلم

**په ایمان کښې استثناء** دلته یوه مسئله د استثناء فی الایمان ده.یعنی یوسړے به دخپل ځان په باره کښے «أنا مؤمن» مطلقاً وائی.اوکه د «إن شاء الله» قید به ورسره لګوی.اودا به وائی.چه «أنا مؤمن إن شاء الله»

یوه ډله وائی.چه استثناء کول پکار دی.دا د ائمه ثلاثه.حضرت عبدالله بن مسعود . حضرت علقمه.حضرت ابراهیم نخعی.سفیان ثوری.سفیان بن عیینه.اویحیی بن سعید قطان رحمهم الله مذهب دے.یوه بله ډله وائی.چه استثناء کول جائز نه دی.د احنافواودوی اکثرومتکلمینو رحمهم الله هم دا قول دے.هم دا مذهب مختار اوداهل تحقیق دے.

امام اوزاعی رحمه الله فرمائی.چه استثناء اوعدم استثناء دواړه صورتونه جائز دی.

استثناء خوددے وجے جائز ده.چه د راروان وخت څه پته نه لګی.چه په ایمان به ثابت قدم پاتے شی که نه؟ اوعدم استثناء ددے وجے چه فی الحال ایمان موجود دے.اوپه ده باندے حالاً د ایمان احکام جاری دی.

کوم حضرات چه دا وائی.چه «أنا مؤمن إن شاء الله» ونیل پکار دی.دا حضرات فرمائی.چه اصلی ایمان خوهغه دے.کوم چه د مرګ په وخت کښے وی.اودهغے څه نبه نشته.څکه چه دانجام چاته علم نه وی.نوڅکه سړی ته بطور تبرک نه د شك په طور «إن شاء الله» ونیل پکار دی.قال الله تعالى: ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا﴾(۲)

---

(۱) فضل البارى(۱/ ۲۶٤. ۲۶۹)_

(۲)سورة الكهف:۲۳)_

اوكوم حضرات چه دا وائى چه «إن شاء الله» ونيل نه دى پكار .هغوى فرمائى چه دا كلام دتعليق دپاره استعماليږى اوس كه يو كس دا اووائى نوبل ته دهغه په ايمان كښے شك پيدا كيدے شى.هم داسے كيدے شى.چه په ونيلو ونيلو نفس ددے كلمے د وجے د شك اوشبه عادى جوړ شى

دعلامه ابن تيميه رحمه الله رائے ده.چه «أنا مؤمن إن شاء الله» ونيل پكار دى.خو ددے تعليق وجه دا ده.چه ايمان د سلفو رحمهم الله په نيز يوډير وسيع خيز دے.چه په هغے كښے د زړه عقيده.د ژبے اقرار. اواعمال اركان ټول داخل دى.اوس كه يو كس «أنا مؤمن»مطقاً وائى.نوددے دا معنى ده. چه هغه وائى.زه كامل مومن يم.اومؤمن كامل جنتى وى.په نوروالفاظو كښے داسے اووايه.چه هغه خپل خان ته جنتى وائى.اوخوك دخپل خان په باره كښے دا ذمه وارى نشى وركولے.چه ده د ايمان ټول اعمال ادا كړى دى.په كومو باندے چه جنت مرتب كيږى.هم دا وجه ده.چه يو كس حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته راغلو.اووئے ونيل.«إنى مؤمن» نوحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ورته دانكارپه طورسره اوفرمائيل.بياخوداسے وايه.چه «إنى في الجنة» بيا ئے ورته ددے نه هدايت اوكړلو.چه داسے ونيل پكاردى.«لكنا آمنا بالله وملائكته وكتبه ورسله»(۱)

داخبره دے ياده وى.چه په سلفو كښے ددے مسئله په وجه ډيره فتنه پاتے شوے وه.يوے ډلے دحد نه زياته غلو كړے ده.او«إن شاء الله» ويونكو ته ئے ،،مستثنيه شكيه،، پته نه لگى.چه څه ونيلى دى.په دے مقام كښے علامه زبيدى رحمه الله صاحب د «إتحاف السادة المتقين» په هغے غلاة احنافو باندے انكار كړے دے .اوفرمائيلى ئے دى.چه حقيقت دا دے.چه په دے مسئله كښے ژبه بندول پكار دى .اوچه ضرورت پيدا شى.نوپه اعتدال سره خبره كول پكار دى.دامام اعظم رحمه الله نه اگرچه د «أنا مؤمن إن شاء الله» باندے انكار منقول دے.خودهغوى نه داسے تشديدى كلمات كوم چه د متاخرينونه صادر شوى دى.منقول نه دى.هسے هم د سوچ خبره ده.كه د استثناء كونكو تكفير اوتضليل اوكړے شى.نوحضرت عبدالله بن مسعود. علقمه.ابراهيم نخعى. رحمهم الله په باره كښے به څه ونيلى شى.كوم چه د احنافو رحمهم الله د مذهب ستنے دى.اوپه چا باندے چه د احنافو رحمهم الله د مستدلاتو انتها كيږى.(۲)

**په ايمان اواسلام كښې فرق** په نصوصو كښے ددے استعمال على سبيل الترادف .على سبيل التباين اوعلى سبيل التداخل درے قسمه راغلى دے.

**اول قسم على سبيل الترادف** الله تعالى فرمائى.﴿فَأَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ۝﴾(۳)

---

(۱) رواه الطبراني في الكبير ورجاله ثقات ..كذا في مجمع الزوائد (۱/۵۵) كتاب الإيمان باب في الإسلام والإيمان)

(۲) دمكمل بحث دپاره اوگورئ فتح الملهم (۱/۴۵۷. ۴۵۹) حكم الإستثناء في قول الرجل أنا مؤمن إن شاء الله)

(۳) سورة الذاريات:۳۵.۳۶)_

الله تعالی په دویم ځائے کښې فرمائی ﴿وَقَالَ مُوسٰی یٰقَوْمِ اِنْ کُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَیْهِ تَوَکَّلُوْٓا اِنْ کُنْتُمْ مُّسْلِمِیْنَ﴾(۱)

اونبی ﷺ فرمائیلی دی.«بنی الإسلام علی خمس: شهادة أن لا إله إلا الله...الخ» (۲) بیا تقریباً هم دا ځیزونه د وفد عبدالقیس په حدیث کښې (۳) دایمان په تفسیر کښې ذکر شوی دی.

**دویم قسم علی سبیل التباین** په قرآن کریم کښې دی. ﴿قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ؕ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰکِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا﴾(۴)

په حدیث جبریل ﷺ کښې دایمان تفسیر په عقائد معینه معلومه سره شوے دے.اود اسلام تفسیر په اعمال معینه سره.(۵) دغه شان دحضرت انس ﷺ په حدیث کښې دی.«الإسلام علانیة والإیمان فی القلب»(۶)

**دریم قسم علی سبیل التداخل**: د نبی ﷺ نه چه کله تپوس اوشو.چه «أی العمل أفضل» نو نبی ﷺ اوفرمائیل. «إیمان بالله ورسوله» (۷)

دحضرت عمرو بن عبسه ﷺ په روایت کښې دی.«فأی الإسلام أفضل؟ قال الإیمان»(۸)
په اصل کښې خبره دا ده.چه د ایمان او اسلام جدا جدا حقیقت شرعیه دے.لکه څنګه چه د دے جدا جدا حقیقت لغویه دے.ایمان خو نوم دے د مخصوص اعتقاد .او اسلام نوم دے داحکام شرعیه د ادا کولو.خود هر یو دبل سره دتکمیل تعلق دے.لکه څنګه چه یو معتقد کامل نشی کیدے.ترڅوچه اعمال اونکړی.دغه شان مسلمان مطیع کامل نشی کیدے.ترڅوچه نے د زړه نه اعتقاد نه وی.اوس که دا دواړه کلمات په یوځائے راغلے وی.اوپه مقام د سوال کښې وی.نو ددے حقیقت به متباین وی.په حدیث جبریل کښې هم دا صورت دے.اوکه یوځائے نه وی وارد شوے.یا په مقام د سوال کښې نه وی.نو بیا په دے صورت کښے کیدے شی.چه په یوبل

---

(۱) سورة یونس: ۸٤_
(۲) صحیح بخاری کتاب الإیمان باب أعاءکم إیمانکم رقم ۸ وکتاب التفسیر.باب (؟) رمق (٤٥١٤) وصحیح مسلم کتاب الإیمان باب بیان أرکان الإسلام ودعائمه العظام رقم (۱۲۰، ۱۲۳)_
(۳)صحیح بخاری کتاب الإیمان باب أداء الخمس من الإیمان رقم(۵۳) وصحیح مسلم کتاب الإیمان باب الأمر بالإیمان بالله تعالی وشرائع الدین..رقم (۱۲٤)_
(۴) سورة الحجرات: ١٤)_
(۵) صحیح مسلم فاتحة کتاب الإیمان رقم(۱۰۲)_
(٦) مسند أحمد (۱۳۵/۳) مسند سیدنا أنس بن مالک ﷺ)_
(۷) صحیح بخاری (۸/۱) کتاب الإیمان باب من قال إن الإیمان هوالعمل رقم.۲٦) وکتاب الحج باب فضل حج المبرور.رقم (۱۵۱۹)_
(۸) رواه الطبرانی وأحمد أنظر مجمع الزوائد(۵۹/۱) کتاب الإیمان باب أی العمل أفضل وأی الدین أحب إلی الله)

كښے داخل شی (١)

حافظ ابن رجب حنبلی رحمه الله فرمائی چه کله ایمان او اسلام دواړه جدا جدا ذکر کړے شی نو په دے دواړو کښے څه فرق نه وی او چه کله دواړه یوځائے ذکر کړے شی نو بیا به فرق وی هغوی فرمائی.((فالایمان والاسلام کاسم الفقیر والمسکین اذا اجتمعا افترقا، واذا افترقا اجتمعا)) یعنی دا دواړه الفاظ د مسکین او فقیر پشان دی

لکه څنګه چه دا دواړه لفظونه یوځائے ونیلی شی نو د دے حقائق متباین وی او کله چه جدا جدا ذکر وی نو یو په بل کښے داخل وی.(٢)

د بعضے عالمانو رحمهم الله رائے دا ده چه اسلام عام دے او ایمان خاص دے نو هر ایمان اسلام دے او هر اسلام ایمان نه دے (٣)

# الحدیث السابع

## ١- باب الایمان وقول النبی ﷺ بنی الاسلام علی خمس

وهو قول وفعل ویزید وینقص قال الله تعالی ﴿لیزدادوا ایمانا مع ایمانهم﴾

﴿وزدنهم هدی﴾

﴿ویزید الله الذین اهتدوا هدی﴾

﴿والذین اهتدوا زادهم هدی واتهم تقوهم﴾

وقوله ﴿ویزداد الذین امنوا ایمانا﴾

وقوله ﴿ایکم زادته هذه ایمانا فاما الذین امنوا فزادتهم ایمانا﴾

وقوله جل ذکره ﴿فاخشوهم فزادهم ایمانا﴾

وقوله تعالی ﴿وما زادهم الا ایمانا وتسلیما﴾

والحب فی الله والبغض فی الله من الایمان

وکتب عمر بن عبد العزیز الی عدی بن عدی ان للایمان فرائض وشرائع وحدودا وسننا فمن استکملها استکمل الایمان ومن لم یستکملها لم یستکمل الایمان فان

---

(١) فتح الباری(١/١١٥) کتاب الایمان باب سؤال جبریل علیه السلام النبی ﷺ عن الایمان والاسلام والاحسان وعلم الساعة وبیان النبی ﷺ له)_

(٢) فتح الملهم (١/٤٢٨، ٤٢٩) البحث الأول فی موجب اللغة)_

(٣) فتح الملهم (١/٤٢٦)_

أَعِشْ فَسَأُبَيِّنُهَا لَكُمْ حَتَّى تَعْمَلُوا بِهَا وَإِنْ أَمُتْ فَمَا أَنَا عَلَى صُحْبَتِكُمْ بِحَرِيصٍ
وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي
وَقَالَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ اجْلِسْ بِنَا نُؤْمِنْ سَاعَةً
وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ الْيَقِينُ الْإِيمَانُ كُلُّهُ
وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ حَقِيقَةَ التَّقْوَى حَتَّى يَدَعَ مَا حَاكَ فِي الصَّدْرِ
وَقَالَ مُجَاهِدٌ شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ أَوْصَيْنَاكَ يَا مُحَمَّدُ وَإِيَّاهُ دِينًا وَاحِدًا
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا سَبِيلًا وَسُنَّةً دُعَاؤُكُمْ إِيمَانُكُمْ لِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ قُلْ مَا يَعْبَأُ بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ وَمَعْنَى الدُّعَاءِ فِي اللُّغَةِ الْإِيمَانُ

**قوله:** وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ: نبی کریم ﷺ فرمائي اسلام په پنځه څيزونو باندے مبني دے.دا پنځه څيزونه دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په حديث کښے وړاندے په تفصيل سره راروان دی.هم دے حديث طرف ته امام بخاری رحمه الله اشاره کړے ده.() اول شهادتين() دويم مونځ () دريم زکواة () څلورم صوم () اوپنځم حج په دے کښے شهادتين قول اوباقي فعل اوعمل دی.هم ددے وجے مؤلف فرمائي.چه ((وهو قول وفعل)) اوچه کله قول اوفعل شول.نوپه دے کمے زياتے هم راځي.ځکه چه اقوالو اوافعالو کښے ټول خلق برابر نه وی.هم ځکه وړاندے فرمائي ((ويزيد وينقص)) په دے کښے زيادت هم کيږی.اونقصان هم.

**قوله:** وَهُوَ قَوْلٌ وَفِعْلٌ: دلته کښے تاسو ګورئ چه امام بخاری رحمه الله ((وهو قول وفعل)) اوفرمائيل.اود ((هو)) ضمير راجع کيږی اسلام طرف ته.ځکه چه دا اقرب دے په دے صورت کښے دا سوال پيدا کيږی.چه هغه خو ايمان ترکيب ثابتول غواړی.اودلته خو داسلام ترکيب ثابتيږی.

ددے جواب دا دے.چه دامام بخاری رحمه الله په نيز ايمان اواسلام دواړه مترادف دی.نود اسلام د ترکيب نه به د ايمان ترکيب ثابت شی.(۱)

يواحتمال د ((هو)) په ضمير کښے دا هم دے.چه ددے مرجع په ..کتاب الايمان.. کښے ايمان وی.په دے صورت کښے به براه راست دايمان ترکيب ثابت شی.

بيا په امام بخاری رحمه الله باندے دا اشکال کيږی.چه هغوی ايمان قول اوعمل ګرځولے دے يعني داقرار اوعمل ذکر ئے کړے دے.خود تصديق ذکر ئے نه دے کړے.حالانکه اهم جزء هم هغه دے.

(۱) شرح کرمانی (۷۰/۱)۔

ددے جواب ورکړے شوے دے چه قول عام دے که په لسان سره وی.اوکه په قلب سره.قول باللسان خواقرار دے اوقول بالقلب تصدیق دے بعضے حضرات وائی .چه فعل عام اوګرځولے شی یعنی که فعل د قلب وی اوکه فعل دجوارح وی.فعل قلب تصدیق دے اوفعل جوارح عمل بالارکان دے.(١)

یوجواب دا هم ورکړے شوے دے چه تصدیق بالقلب خو دتولو په نیزمسلم دے .په دے کښے څه جګړه نشته.نوځکه ئے ددے ذکر پریخودلو.اوقول باللسان او فعل بالاعضاء والجوارح ئے ذکر کړلو (٢)

دلته دا خبره په ذهن کښے یاده ساتئ:چه امام بخاری رحمه الله دلته ..قول وفعل.. وئیلی دی.په اکثرونسخو کښے هم دا دی.حالانکه د سلفو رحمهم الله تعبیر..قول وعمل.. دے.(٣) په علم اوفعل کښے فرق دے.فعل اختیاری اوغیراختیاری دواړو ته وئیلی شی.اودعمل اطلاق صرف په فعل اختیاری باندے کیږی.یوفرق دا هم خودلے شوے دے.چه په عمل کښے امتداد اواستمرار وی.اوپه فعل کښے امتداد او استمرار نه وی .(٤)

بهرحال چونکه په اکثرواستعمالاتو کښے عمل اوفعل کښے هریو دبل په ځائے استعمالیږی. نوځکه ئے دلته فعل ذکر کړلو.(٥)

بیا د کشمهینی رحمه الله د نسخه مطابق ((قول وعمل)) دے.(٦) کومه چه د سلف رحمهم الله مطابق ده.نوځه اشکال پاتے نه شو.

**د ,,قول، او,,عمل، معنی:** بیا حضرت کشمیری رحمه الله د قول اوعمل خلورمعانی بیان کړی دی.

① یوه خوهغه مشهوره معنی ده.چه ایمان د قول اوعمل نه مرکب دے.

② بله دا چه اصل ایمان خوصرف تصدیق دے.چه دهغے اظهار په قول اوعمل یعنی لسان اوجوارحو سره کیږی.حاصل د دے دا دے.چه ایمان تصدیق دے.اودقول اوعمل په ذریعه دے ته تقویت ملاویږی.

③ دایمان اطلاق لکه څنګه چه په تصدیق باندے کیږی.نودغه شان په قول اوعمل باندے هم کیږی.ګورئ که یوکس د چا په خبره باندے صرف په ژبه ..ها.. اوکړی .نووئیلی شی چه زید دعمرو تصدیق اوکړلو.دغه شان په اعمالو باندے هم دتصدیق اطلاق کیږی.چه یوکس خلقوته نصیحت کوی.اوپخپله پرے عمل نه کوی.نووئیلی شی.چه دده اعمال دده قول ته دروغ وائی.اود ده د قول تکذیب کوی.اوکه یوکس نورو ته نصیحت کوی.اوپه خپله پرے هم

---

(١) پورتنۍ حواله)_

(٢) پورتنۍ حواله)_

(٣) فتح الباری(١/٤٦)_

(٤) تاج العروس (٣٤/٨) مادة .عمل.. و(٦٤/٨) مادة .فعل.)_

(٥) فضل الباری(٢٧٣/١)_

(٦) فتح الباری(١/٤٦)_

عمل کوی. نو وانی. وروره! دهغه اعمال د دے خبرے تصدیق کوی. او دهغه د صداقت دلیل دے.
④ خلورم مطلب نے د دے دا بیان کړے دے چه په ایمان باندے قول او عمل متفرع کیږی. یعنی قول او عمل د ایمان د مقتضیاتو څخه دی.(۱)

**ویزید وینقص** یعنی «یزید بالطاعة وینقص بالمعصیة» د دے سره متعلق تفصیل وړاندے تیر شوے دے په «یزید وینقص» کښے ضمیر ..ایمان.. طرف ته راجع دے او که د اسلام طرف ته راجع کړے شی. نو بیا هم څه قباحت نشته. ځکه چه د امام بخاری رحمه الله په نیز په ایمان او اسلام کښے ترادف دے.(۲)

بعضے خلقو په دے مقام کښے دا وئیلی دی. چه امام بخاری رحمه الله په احنافو رحمهم الله باندے رد کول غواړی. چه دوی د بساطت ایمان قائلین دی. او امام بخاری رحمه الله ایمان ذواجزاء ثابتوی. نو چه ایمان ذواجزاء وی. هله به زیادت او نقصان قبلوی.

خو دا وینا غلطه ده. ځکه چه احناف رحمهم الله وائی. چه ایمان د نفس تصدیق نوم دے. خو په دے کښے د مکملاتو په ذریعه زیادت او نقصان راځی. په خلاف د مرجئو ځکه چه هغوی د هیڅ قسم زیادت او نقصان قائل نه دی. نو په هغوی باندے رد دے.(۳)

نو ځکه دا هم په مرجئو باندے رد دے. ځکه چه هغوی د دے خبرے قائل دی. چه د ایمان دپاره عمل ضروری نه دے. نو چه ایمان وی. نو معصیت ضرر نه رسوی. او احناف رحمهم الله فرمائی چه معصیت ضرر رسوی. که یو کس د ګناهونو ارتکاب او کړی. نو هغه د دغه ګناهونو په وجه د عذاب مستحق دے. خو چه څومره موده د عذاب دپاره مقرر وی. دهغے نه پس به نجات بیا مومی. او کوم حضرات چه دا وائی. چه اعمال په ایمان کښے داخل دی. هغوی هم دا وائی. چه عاصی دائمی جهنمی نه دے. بلکه د سزا خوړلو نه پس به نجات بیا مومی. ځکه امام ابن تیمیه رحمه الله فرمائی. چه د اهل حق په مینځ کښے چه کوم اختلافات دی. هغه د نزاع لفظی د قبیله څخه دی. په اهل حق کښے حقیقی اختلاف نشته.(۴)

**قوله: قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی ﴿لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ﴾:** د دے مقام نه امام بخاری رحمه الله مسلسل اته آیاتونه ذکر کړی دی. چه په هغے کښے د زیادت ایمان بیان دے. د دے نه نصاً او صراحةً د ایمان زیادت ثابتیږی. او استدلالاً کمی معلومیږی. ځکه چه زیادت او نقصان د امور اضافیه څخه دی. کوم څیز چه زیادت قبلوی. هغه نقصان هم قبلوی.

دلته شارحین او استاذان کرام رحمهم الله د احنافو رحمهم الله د مشهور مذهب مطابق بحث کوی. نو دوی

---

(۱) فیض الباری (۱/۵۵، ۵۶)_
(۲) شرح کرمانی (۱/۷۰)_
(۳) تقریر بخاری (۱/۱۱۴)_
(۴) مجموع فتاوی شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله (۲۹۷/۷)_

فرمائی چه دلته به نفس ایمان اوتصدیق کښې زیادت مراد نه دے بلکه د ایمان په آثارو کښې زیادت مراد دے
دا آیت د غزوه حدیبیه سره متعلق دے رسول اللهﷺ د عمرۀ په خیال تشریف اوړے وو. دمکې کافرانود مکې د داخلیدو نه منع کړل.حضرت عثمانؓ دخبرو اترو دپاره هغوی ته اولیږل حضرت عثمانؓ هغوی ایسار کړلو.اودا افواه خوره شوه چه هغه شهید کړے شو نوصحابه کرامؓ چه صرف دعمرے دپاره راغلی وو.دهغوی په خیال کښې دجنګ څه تصور هم نه وو.نبیﷺ هغوی په جنګ باندے آماده کړل.اوبیعت علی الجهاد ئې ترے واخستلو. خوروستو معلومه شوه.چه حضرت عثمانؓ قتل شوے نه دے.آیت قرآنی ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَأَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا﴾(۱) په دے کښې دبیعت ذکر دے.
بهرحال حضرات صحابه کرامؓ دجهاد دپاره تیار شول.خان قربانی کول یا دبل کس قتلولو ته تیاریدل څه آسانه لوبه نه دی.دا ډیرګران کار دے.په دے کښې خپل خان په هلاکت کښې اچول اوددے دپاره خطره پیدا کول وی.بیا خاص کرچه ذهنی طور تیارهم نه وی نو اماده کیدل ډیرګران کار دے.ددے نه پس دا نوره هم ګرانه ده.چه یوبهادر کس د جنګ دپاره تیار کړے شی.اوچه کله هغه د جهاد په جذبه باندے مست شی.نوورته اوونیلی شی نه اوس جنګ مه کوه.صورت حال دا وو.چه د صحابه کراموؓ ډله د پنځلس سوو وه.هغوی په جنګ بدر کښې ددے باوجود چه درے سوه اودیارلس وو.مشرکان وارخطا کړی وو.اود ګازرو او مولو پښان ئې هغوی قتل کړی وو.اوس خوهغوی پنځلس سوه وو.اوپه هغوی کښې د جهاد جذبے تږیونه وهل.داسے جذبۀ چه بعضے صحابوٴ خو بیعت درے خله اوکړلو.حضرت سلمه بن اکوعؓ د نبیﷺ په لاس باندے بیعت علی الجهاد اوبیعت علی الموت په اول کښې هم کړے وو.په درمیان کښې هم کړے وو.اوپه آخر کښې هم.هم دا د جهاد جذبه وه.چه هغوی بیابیا بیعت کولو.
اوس صورت حال دا پیدا شو.چه د بیعت خبر ئې واوریدلو.نود قریشوخلق اوویریدل .اود صلح دپاره د خط اوپیغام سلسله شروع شوه.دنبیﷺ خیال وو.که صلح کیدے شی.نو خامخا ئې کول پکار دی.اګرچه مونږ دعمرے نه بغیرواپس لاړ شو .او د صلح دپاره نبیﷺ د هغے شرطونو منلو ته هم تیار وو.دکومو چه په صلح حدیبیه کښې ذکر راغلے دے.که دمکې خوك مسلمان شی.اومدینے ته راشی.نوهغه به دوی ته واپس کولے شی.اوکه د مدینے یوکس مرتد شی.اومکې ته راشی.نوهغه به نشی واپس کولے.اوداچه سخ کال به واپس ځی.او روان کال ته به راځی.صرف درے ورځے به په مکه کښې تیروی.
ددے شرطونو په رد عمل سره په صحابه کراموؓ ډیراضطراب پیدا شو.اوحضرت عمرؓ اضطراب دټولونه زیات اوسخت وو.

(۱) سورة الفتح:۱۸)_

آخر داسې اوشوه چه نبی ﷺ د احرام پرانستلواود څاروو قربانی کولوحکم اوکړلو.نوخوك هم پانه سيدل.ځکه چه هغوی د جهاد په جذبه مست وو اونبی ﷺ هغوی ددې باوجود چه تيار نه وو په جهاد باندې آماده کړی وو اوبيعت علی الجهاد اوبيعت علی الموت ئې ترې اخستې وو نودوی اوس جهاد ولې نه کوی.اودا ظاهری د ذلت شکست قبول کړی؟نوځکه هغوی احرام پرانستلو ته اماده نشو.نبی ﷺ حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته تشريف يوړلو اوورته ئې اووئيل.د نن ورځې پشان منظرماچرته نه دې ليدلې.ماخلقو ته اووئيل چه څاروی قربانی کړئ.اواحرامونه پرانيزئ.نوڅوك هم پانه سيدل.حضرت ام سلمه رضي الله عنها عرض اوکړلو.حضرت يقيناً ستاسومقصد دا دې.چه هدی ذبح کړې شی.نبی ﷺ ورته اوفرمائيل آو.نوهغې ورته ددې يوه طريقه اوخودله.چه تاسولاړ شئ.اوخپل څاروی ذبح کول شروع کړئ.نو نبی ﷺ دحضرت ام سلمه رضي الله عنها په مشوره باندې عمل اوکړلو.صحابه کرامو رضي الله عنهم چه دا اوليدل نو ډير په ذوق اوشوق ئې د هدايا ذبح شروع کړه.

په اصل کښې ددې وجه دا وه.چه هغوی اول دا ګنړل.چه نبی ﷺ دا صلح په خپل اجتهاد سره کړې ده.کيدې شی.دالله تعالی حکم ددې د ملتوی کولو دپاره راشی.خوچه کله هغوی اوکتل.چه نبی دخپل څاروی د ذبح کولودپاره تيارې کوی .نوڅاروی ذبح کوی.نودهغوی اطمينان اوشو.چه د نبی ﷺ فيصله وحی ناطق ده.او اوس دا منسوخ کيدې نشی ددې اطمينان نه پس هغوی ډير په جذبه سره ذبح اوکړله.اوحلق ئې اوکړلو.د احرام جامې ئې بدلې کړې.او نورې جامې ئې واغوستلې.(١)

دا دايمان اثر وو.د نبی ﷺ د فرمانبردارئ اووفادارئ بې نظيره مظاهره وه.چه دغه قسم تيارئ نه بغير د نبی ﷺ په حکم د جهاد دپاره تيار شو.اوکله چه د جهاد په جذبه باندې مست شو.نود نبی ﷺ په حکم ئې په ظاهره په ناموافق حالاتو کښې صلح اوکړله.اود جهاد اراده ئې پريخودله.نو د قرآن مجيد د دې آيت ﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ﴾(٢) نه مراد دا دی.چه هغوی وړاندې کوم عزم علی القتال کړې وو.هغه هم دهغوی د ايمان اثر وو .نو دلته دايمان د اثرزيادت مراد دې.وړاندې چه هم کله عزم کړې وو.نودا هم د ايمان اثر وو.اواوس چه ترك قتال دپاره تيار شو.حالانکه دواړه کارونه ګران وو. دا هم دهغوی دايمان اثر وو.نودلته د ايمان د اثر زيادت مراد دې اول چه ئې هم کله عزم کړې وو.نودهغوی د ايمان په آثارو کښې اضافه شوې وه.اوروستوچه ئې هم کله صلح قبول کړه.نو ددوی د ايمان په آثارو کښې زيادت اوشو.اوپه آثارو د ايمان کښې د اضافې مطلب په نور ايمانی اوانشراح صدر کښې زيادت مراد دې.نود نفس ايمان زيادت دلته مراد نه دې. بلکه د آثارو دايمان زيادت مراد دې.

---

(١) د صلح حديبيه د تفصيلاتودپاره اوګورئ :.السيرة الحلبية.. (٣/ ٨. ٣١) او زادالمعاد (٣/ ٢٨٦. ٣١٦)_

(٢) سورة الفتح:٣)_

**قوله** ﴿وَزِدْنٰهُمْ هُدًى﴾: دا دویم آیت دے.دامام بخاری رحمه الله مراد دا دے.چه دلته د ((زیادة فی الهدایة)) ذکر دے اوهدایت یوعمل دے.کوم چه امام بخاری رحمه الله په ایمان کښے داخل ګنړی.

خو زمونږ د طرفه دا ونیلے شی.چه ددے نه مراد دبصیرت زیادت دے.یعنی چه کوم ایمان هغوی ته حاصل وو.الله سبحانه وتعالی په هغے کښے هغوی ته نور بصیرت اوفهم ورکړلو.

په اصل کښے دا آیت د اصحاب کهف په قصه کښے وارد شوے دے.د اصحاب کهف واقعه د روم د یوبادشاه په زمانه کښے پیښه شوے وه.چه دهغه نوم دقیانوس وو.ډیرکلك بت پرست وو.اوپه ظالمانه انداز کښے به ئے خلق د بتانو په سجده باندے مجبوره کول.دهغه په حکومت کښے ځوخوانان الله تعالی داسے پیدا کړل.چه هغوی دهغه دربار ته لاړل.اواعلان ئے اوکړلو.﴿رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَا مِنْ دُوْنِهٖۤ اِلٰهًا لَّقَدْ قُلْنَاۤ اِذًا شَطَطًا ○ هٰۤؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ لَوْلَا يَاْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍۭ بَيِّنٍ ؕ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ○﴾(۱) ربوبیت اواولوهیت دالله تعالی سره خاص دے.نه مونږ ځوك رب جوړولے شو.اونه ورته اله ونیلی شو.که مونږ بل ځوك اله او معبود اومنلو.نوزمونږ دا خبره به ناروا اوغلطه وی.کوم کسان چه د بت پرستئ دعوت ورکوی.هغوی څه واضح دلیل ولے نه پیش کوی.

دا هغوی دخپل ایمانی قوت اظهار اوکړلو.هم د هغوی متعلق ارشاد دے.چه ﴿وَزِدْنٰهُمْ هُدًى ○﴾ نودلته د ایمان زیادت مراد نه دے.بلکه بصیرت فی الایمان او انشراح فی الایمان کښے زیادت مراد دے.

**قوله**: ﴿وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى﴾: په دے کښے دا فرمائیلے شوی دی.چه الله سبحانه وتعالی اهل هدایت په هدایت کښے نور هم زیاتوی.

دامام بخاری رحمه الله خیال دا دے.چه دا هدایت اوایمان چونکه یو څیز دے.نوپه هدایت کښے دزیادت مطلب په ایمان کښے زیادت دے.

ددے جواب دا دے.چه اول خو ایمان اوهدایت دواړه جدا جدا څیزونه دی.هدایت ایمان نه دے.بلکه دایمان اثردے.اوبله خبره دا ده.چه دلته زیادت مراد نه دے.بلکه استمرار اودوام علی الهدایة مراد دے.

اصل صورت حال دا دے.چه دا دسورة مریم آیت دے.ددے لړغوندے وړاندے فرمائی.چه ﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا ۙ اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا ○﴾(۲) کله چه

(۱) سورة الکهف:۱۵،۱۴)

(۲) سورة مریم:۷۳)

دوی ته زمونږ ښکاره آیاتونه لوستے شی.نو کافران مسلمانانو ته وائی.کومه یوه ډله د مرتبے اومقام په اعتبارسره اود سوسائټئ په اعتبارسره ښه ده؟یعنی دوی استهزاء اوتوقے کوی.او وائی چه زمونږ اودخپل حال موازنه اوکړه.زمونږ د ژوند معیارخومره اوچت دے.اوستاسود ژوند معیارخومره ښکته دے.زمونږ معاشرت اوسوسائټئ اعلی اواوچته ده.اوستاسو معاشرت ښکته اوکم تر ده.قرآن کریم ددے جواب ورکړلو.اووے فرمائیل.﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِءْيًا﴾ سوسائټئ اود ژوند معیار پریږدئ.ددے څه اعتبار نشته.ستاسو نه وړاندے ډیرداسے خلق تیر شوی وو.چه دهغوی سامان هم ډیرشاندار وو.اوظاهرئ هم ښکلے اوحسین وو.خومونږ هغه ټول هلاك اوتباه وبرباد کړل.ددے نه پس بیا وړاندے فرمائی﴿قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا﴾(۱) ته دوی ته اووایه.چه کوم کسان گمراه دی.الله تعالی هغوی ته مهلت ورکوی.اودوی په خپله گمراهئ کښے خخیږی.نود هدایت قبلولو دپاره نه تیاریږی.اوهم ددے گمراهئ په خبره کښے مینه لری.نوځکه الله تعالی ددوی په گمراهئ کښے نور زیادت اوکړلو اوبیا ددوی په مقابله کښے فرمائی.﴿وَيَزِيدُ اللَّهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى﴾ اوکوم خلق چه دهدایت حاصلولو کوشش کوی.اوبیا هغوی ته هدایت ملاؤ شی.نو الله تعالی به هغوی ته استمرار علی الهدایة اودوام علی الهدایة نعمت نصیب کړی.

لکه چه ﴿وَيَزِيدُ اللَّهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى﴾کښے دکوم هدایت د زیادت ذکر شوے دے.ددے نه استمرار اودوام علی الهدایة مراد دے.اومطلب دا دے.چه کوم سړے دهدایت حاصلولو کوشش کوی.اوددے دپاره جدوجهد کوی.نوهغه ته هدایت هم ملاویږی.اواستقامت ورته هم ورکولے شی.ددے کس په خلاف چه څوك په گمراهئ کښے پریوځی.اوبیا هم دا دخپلوخواهشاتودپاره خاص کړی.نوهغه به هم په دغه گمراهئ کښے مبتلا ساتم.والله اعلم.

**قوله: ﴿وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ﴾:** د دے آیت نه هم امام بخاری رحمه الله د تیرو شوو آیاتونو پشان د ایمان په زیادت باندے استدلال کوی.

خومونږ وایو.چه ددے مطلب دا دے.چه کوم خلق دهدایت حاصلولو کوشش کوی.نوالله سبحانه وتعالی دهغوی په بصیرت اوفهم کښے اضافه کوی اوبه روحانی قوتونو په استعداد کښے ترقی ورکوی.دلته د ایمان زیادت مراد نه دے.

دا دسورة محمد (ﷺ) آیت دے.ددے نه وړاندے آیت دے ﴿وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا

(۱) سورة مریم:۷۵)_

مِنْ عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ﴾ دلته کښې ﴿زَادَهُمْ هُدًى﴾ د ﴿طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ په مقابله کښې دے او د ﴿وَاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ﴾ او ﴿وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ﴾ په مقابله کښې دے دکافرانو په باره کښې فرمائیلې شوی دی.چه څه خلق د قرآن پاك آیاتونه اوری اوددے نه پس چه کله خپل مجلس ته لاړ شی نوداهل علم نه د توقو په طریقه تپوس کوی څه ئے اووئیل اوس اوس.

الله تعالی چه انسان ته کوم قوی ورکړی دی دهغے په باره کښې دا اصول اودستور دے که ته هغه قوتونه استعمالوے نوباقی وی چه لاس اوپښو ته حرکت ورکولے شی.نوددے قوت بحال وی.که دے ته حرکت ورکول پریخودے شی.نوشل به شی.

هم دا حال د روحانی قوتونو دے.که دا د روحانیت حاصلولو دپاره استعمالولے شی نوددے قوت به بحال وی.خوکه دا د صحیح استعمال په ځائے هروخت په تمسخر استهزاء.داحکام الهی توهین اوتحقیر کښې اخته کړے شی.نوددے نتیجه دا شی چه په انسان کښې چه د روحانیت اخستلو کوم صلاحیت چه الله تعالی په دے قوتونو کښې کیخودے دے.هغه زائله کیږی.که ته ئے بیا خومره پوهوے.هغه نه پوهیږی.چه د تمسخر اواستهزاء عادت ئے خپل کړلو.نوهغه داکتساب روحانیت صلاحیت فنا کړلو.قرآن مجید ددے نه په ﴿خَتَمَ﴾ سره تعبیر کوی.اووائی.چه ددوی په زړونو باندے مهر لګولے شوے دے.یعنی لاپرواهئ اوتمسخر عادت ئے خپل کړے دے.اوروحانی قوتونه ئے د هدایت حاصلولو صلاحیت نه محروم کړی دی.

خلاصه دا چه دلته دایمان زیادت مراد نه دے.بلکه دا بیانول مقصود دی.چه کومو خلقوقوائے روحانیه صحیح استعمالوی.نوددے په نتیجه کښې دهغوی په فهم اوبصیرت کښې اضافه کیږی.

**قوله** وَقَوْلُهٗ ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا﴾: په دے آیت کښې د زیادت ایمان ذکر دے دا د سورة مدثر آیت دے.ددے نه وړاندے ذکردے چه په جهنم باندے نورلس فرښتے مقرر شوی دی.دوی دهغه ځائے دانتظام دپاره مقرر شوی دی.دمکے په مشرکانو کښې بعضے خلقو په دے پورے توقے کولے.یوکس اووئیل.داوولسو دپاره خو زه یواځے کافی یم.اود باقی دوو بندوبست به نورخلق په آسانتیا سره اوکړی نوځکه د جهنم نه د ویریدو څه ضرورت نشته. ددے نه پس دی.﴿وَمَا جَعَلْنَآ اَصْحٰبَ النَّارِ اِلَّا مَلٰٓئِكَةً وَّمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ اِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا﴾(١) دا فرښتے کومے چه په جهنم باندے مقرر شوی دی. دکافرانو دپاره داسے مستقله فتنه اوازمانښ دے چه هغوی دخپل عادت مطابق توقے اوکړلے. اوهغوی په دے فتنه کښې اخته شو اوخپل آخرت ئے خراب کړلو وړاندے فرمائی...ددے دپاره چه اهل کتابو ته یقین اوشی...دا ئے ددے دپاره اوفرمائیل.چه په پخوانی آسمانی کتابونو کښې هم د جهنم د فرښتو شمار نورلس خودلے شوے دے.او رسول الله ﷺ امی

(١) سورة المدثر:٣١)_

دے دوی د پخوانی آسمانی کتابونو مطالعه نه ده کړے اوپه عدد کښے قیاس هم نه چلیږی نوځامخا به دا منل ضروری وی چه دالله تعالی وحی ده نه راځی لکه څنګه چه وحی زمانی په پخوانو کتابونو کښے خودلی وو چه دجهنم انتظام کونکی نورلس فرښتے دی.نوهم دغه شان دمحمد ﷺ قرآن هم بیانی نوثابته شوه چه دا قرآن مجید دالله تعالی کتاب دے دوی نه نازلیږی نوداهل کتابودپاره په دے کښے د یقین کولو اسباب موجود دی

وړاندے فرمانی ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا﴾ دلته کښے تاسودا ونیلے شئ چه د

دلائلو ښکاره کولو ته اشاره ده.یعنی مسلمانانوته په دے خبره خوشحالی ملاؤ شوه چه لکه څنګه د جهنم د فرښتو شمار زمونږ په کتاب کښے نورلس بیان شوے دے نودغه شان په آسمانی کتابونو کښے هم دا شمار بیان شوے دے.نوددے شمار یو دلیل خو زمونږ قرآن دے اویودلیل د آسمانی کتابونو بیان دے

دویمه خبره دا ده چه چونکه دا خبره بیخی دغیبو سره تعلق ساتی چه په جهنم کښے انتظام کونکے فرښتے څومره دی.نوهرکله چه رسول اللهﷺ د وحی په ذریعه باندے اوخودله چه نورلس دی.نوصحابه کرامو ﷺ په دے باندے کامل یقین اوکړلو په دے غیبی خبر باندے دیقین کولو نه ثابته شوه.چه هغوی د مضبوط ایمان خاوندان دی ضعیف الایمان نه دی د دوی د ایمان کیفیت ډیرمضبوط اومستحکم دے.نودلته په ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا﴾ کښے د ایمان قوت او مضبوطیا مراد ده.

دریمه خبره دا ده.چه تاسو ونیلے شئ.چه وړاندے خواجمالی طور دا خبره دهغوی په مومن به کښے داخله وه.چه نبیﷺ دڅه خبرهم ورکوی.هغه صحیح اوتیك وی بیا چه کله نبیﷺ خبر ورکړلو.چه دجهنم انتظام کونکے فرښتے نورلس دی.نوهغوی سمدستی یقین اوکړو.

«آمنوا بالجملة ثم آمنوا بالتفصيل» اول اجمالی ایمان وو.بیا دتفصیل په ذریعه په مومن به کښے اضافه اوکړے شوه نودلته د ایمان د زیادت په ځانے د مومن به زیادت مراد دے

**دجهنم د فرښتو د شمار حکمت** دلته کښے سوال کیږی.چه په جهنم کښے دکافرانود قابو کولو دپاره خو یوه فرښته کافی وه.نونورلس ولے مقرر شوی دی؟

هسے خو عالمانو ﷺ ددے ډیرحکمتونه لیکلی دی.خوپه دے سلسله کښے دحضرت شاه عبدالعزیزصاحب ﷺ کلام ډیرلطیف اوعمیق دے.هغوی فرمانی.په اصل کښے خبره دا ده. چه فرښتے د څه کار دپاره مقرر شوی دی.هم دهغه کار استعداد اوصلاحیت په هغوی کښے وی.حضرت جبریلﷺ د وحی راوړلو دپاره مقرر دے.نوکه هغه د آسمان نه زمکے ته په ورځ کښے سل بلکه زرکرته د وحی راوړلو دپاره زمکے ته راشی.نودهغه دپاره څه ګرانه نه ده. خودهغه د روح قبض کولو دپاره نه دے مقرر شوے.نوځکه هغه د یوماشوم روح هم نشی قبض کولے.دغه شان حضرت عزرائیلﷺ د روح قبض کولو دپاره مقرر شوے دے.نوپه یووخت کښے د زرګونو اولاکهونو خلقو روحونه قبض کوی.خود باران ورول اود وریخوانتظام دهغه د وس خبره نه ده.دغه شان الله تعالی د جهنم دعذاب نورلس قسمونه مقرر کړی.اوپه هغے کښے ئے دهرقسم دپاره یوه فرښته افسره مقرر کړے ده.هره فرښته ئے چه د

كوم قسم دپاره مقرر کړے ده.هغه هم په هغې باندے پوهیږی.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی. چه دعذاب انواع ئے نورلس مقرر کړی دی.اود هرقسم عذاب دپاره یوه خانله فرشته مقرر شوے ده.په دے بناء ئے د نورلس عدد بیان کړلو. (١)

اوس باقی پاتے شوه داخبره چه الله تعالی دعذاب انواع نورلس ولے مقرر کړی دی؟ نو ددے متعلق ونیلے شوی دی.چه دا تکوینی امر دے.اوپه امورتکوینیه کښے د حکمت لټول بے سوده اوبے فائدے دے.دا خو عالمانو ﷺ خودلی دی.چه نورلس انواع دی.اونورلس فرشتے دی.کنی ددے شمار په باره کښے هم د څه خبرو کولو ضرورت اوحاجت نشته.په امورتکوینیه کښے دحکمت تعین د بندګانو د وس خبره نه ده.

**قوله** ﴿أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِ إِيمَانًا فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا﴾: امام بخاری رحمه الله دآیاتونو سلسله شروع کړے ده.اودا سلسله تراوسه پورے ختمه شوے نه ده.پنځه آیاتونه وړاندے تیرشول. او اوس دشپږم آیت ذکرکیږی.نوپه درمیان کښے ((وقوله عزوجل)) زیاتی کړل.په ظاهره ددے څه وجه په نظر نه راځی. البته دا ونیلی شی.چه د تفنن دپاره امام بخاری رحمه الله داسے کړی دی.په تسلسل سره آیاتونه راروان وو.نواوس هغوی په مینځ کښے د ((وقوله عزوجل)) زیاتی کړل.چه د لوستونکو په زړونو کښے تازګی پیدا شی.کله چه نهج بدلیږی.او په انداز کښے تبدیلی راځی.نوپه دے سره په طبیعت کښے انشراح راځی.د تفنن عبارت هم دا مقصد دے.

ددے نه پس ئے آیت ذکر کړے دے.﴿أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِ إِيمَانًا﴾کله چه به د قرآن پاک څه سورة نازل شو.نومنافقانو به ونیل په دے سره په تاسوکښے د کوم کوم کس ایمان زیات شو؟نوقرآن پاک اوونیل.﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ چه هغه داهل ایمان په ایمان کښے اضافه اوکړله.اوهغه د دوی نه خوشحاله دے.﴿وَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ﴾ (٢) دچا په زړونو کښے چه دنفاق مرض وی.نوهغه د دوی په مرض کښے نوره هم اضافه اوکړله. کله چه یو سړے بیمار شی.اودهغه قوت هاضمه خرابه شی.نوبهترینه غذا د هغه په حق کښے د نورے بیمارئ سبب جوړیږی.هغه دنړیا خوړلے شی.اوپولاؤنشی خوړلے.هغه پئ او بسکټ خوړلے شی.قورمه نشی خوړلے.که په هغه باندے قورمه اوپولاؤ اوخوړلے شی.نو دهغه معده به نوره هم خرابه شی.خوچه کوم سړے تندرست اوصحت مند وی.هغه چه کله پولاؤ اوقورمه خوری.نودهغه په قوت کښے اضافه کیږی.اوهغه غذا د بدن جزء جوړیږی.

---

(١) تفسیر عثمانی(ص. ٧٦٤. ٧٦٥)_

(٢) سورة التوبة:١٢٥)_

دغه شان چه روحاني قوت او صحت بحال وي.نود قرآني آياتونو نه فائده رسي.اود چاپه زړونوكښې چه د نفاق بيماري وي.هغه خلقوته په قرآن مجيد باندې نقصان رسي.كوم چه د روح دپاره د غذا حيثيت لري ﴿وَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَى رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ﴾ (١) دچا په زړونو كښې چه مرض وو.دسورة نازليدونه پس دهغوى د بيمارئ دوجې دهغوى په روحاني غلاظت كښې نور زيادت اوشو.اوهغوى هم ددې كفراوضلالت په حالت كښې مړه شول.دلته ئې د ..مرض.. او ..رجس.. لفظ استعمال كړې دې.د دې دواړو په مينځ كښې ډيرلطيف مناسبت دې.څنګه چه جسماني طوريوسړې مريض وي كله چه هغه ته ښه غذا پيش كړې شي.نودهغه په ګندګئ كښې زيادت كيږي.په دې طريقه ددوى په زړونو كښې چونكه د نفاق مرض موجود دې.نود قرآن ښه غذا كله چه دوى ته پيش كړې شي.نودا د دوى دپاره د صحت بخش اومقوي نه وي.بلكه كوم نجاست چه په دوى كښې موجود وي.په هغې كښې نورزيادت كيږي.

بهرحال ﴿أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَذِهِ إِيمَانًا﴾ آيت كښې چه د ايمان د زيادت كوم ذكر شوې دې.علامه ثعلبي جزائري مكي رحمه الله ددې په باره كښې فرمائيلي دي.چه د سورة نازليدو نه پس درې قسمه زيادت كيږي.

() كله خوداسې كيږي.چه كله سورة نازل شي.نوپه هغې كښې نوې احكام وي نوپه دغه نوې احكامو باندې ايمان راوړلې شي.دې ته تاسو وئيلې شئ:«آمنوا بالجملة ثم آمنوا بالتفصيل»: اول نه اجمالي ايمان وو.چه څه د وحي په ذريعه باندې نازليږي. مونږ هغه منو اوس په سورة كښې نوې مسائل اواحكام راغلل.نومونږ اومنل.

() دويم صورت دا وي.چه بعضې وخت د قرآن پاك په سورة كښې قرآني دلائل ذكر كړې شي.د دغه دلائلو په اوريدو او لوستلو سره په ايمان كښې تازګي.ترقي او انشراح پيدا كيږي.

() دريم صورت دا وي.چه مؤمنانوته كله كله وسوسې راځي.د هغوى نه بتقاضائې بشريت څه غلطي صادره شي.چه نوې سورة نازل شي.نوهغه ټولې وسوسې زائله شي او ايمان تازه اوپوخ شي.(٢) والله اعلم.

**قوله: وَقَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ ﴿فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَانًا﴾:** دقرآن كريم پوره آيت دې ﴿الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَانًا وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ (٣)

دا آيت دغزوه حمراء الاسد سره متعلق دې.ابوسفيان چه كله د احد نه مكې ته واپس شو.نوپه لاره كښې ورته خيال راغلو.چه مونږ ډيره غلطي اوكړله.شكست خوړونكي اوزخميان مسلمانان مو داسې پريخودل.مشوره اوشوه.چه بيا مدينې ته واپس شو.اود دوى قصه ختمه

---

(١) سورة التوبة: ١٢٤)_

(٢) فضل البارى(١/٢٨١)_

(٣) سورة آل عمران:١٧٣)_

کړو چه نبی ﷺ ته خبر اوشو نوا علان ئے اوکړلو چه کوم خلق پرون زمونږ سره په جنګ کښے شریك وونن دے د دشمن رالاندے کولو دپاره تیار شی مسلمانانو مجاهدین ددے باوجود چه تازه زخمی شوی وو دالله تعالی اود رسول ﷺ په وینا به رابهر شو نبی ﷺ د مجاهدینو دغه ډله خان سره واخستله او مقام حمراء الاسد ته رکوم چه د مدینے نه اته میله کښے دے اورسیدل ابوسفیان چه دا واوریدل چه مسلمانان د دوی د رالاندے کولو دپاره راخی نود هغه په زړه کښے سخت رعب اوویره راغله دوباره د حملے اراده ئے پریخوده اود مکے طرف ته اوتښتیدل.د وفد عبدالقیس یوه تجارتی قافله مدینے ته راتله ابوسفیان دغه خلقو ته څه ورکړل.او تیار ئے کړل چه دوی مدینے ته اورسی نوڅه داسے خبرے دے خورے کړی چه هغه واوری نومسلمانان زمونږ نه مرعوب اوپه ویره کښے شی هغوی چه مدینه ته اورسیدل نو وینا ئے شروع کړه چه دمکے خلقو د مسلمانانو دختمولو دپاره ډیرلوئے لښکر وسازوسامان تیار کړے دے چه دانے واوریدل.نود مسلمانانو په زړونو کښے د ویرے په ځائے جوش اوایمان زیات شو اوچه د کافرانو د لښکر خبر ئے واوریدلو نو وے وئیل ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾: تولے دنیاپه مقابله کښے یواځے الله زمونږ دپاره کافی دے هم په دے باندے دا آیتونه نازل شو بعضے فرمائی چه جنګ احد ختم شو.نوابوسفیان اعلان اوکړلو چه په راروان کال به په بدر کښے بیا جنګ وی.نبی ﷺ قبول کړلو.کله چه راروان کال راغلو نونبی ﷺ خلقو ته حکم اوکړلو.چه د جهاد دپاره روان شئ.اوکه څوك نه ځی.نوبیا هم دالله رسول به یواځے ځی بل طرف ته ابوسفیان لښکر راواخستلو.اودمکے نه رابهر شو.چه لږ مزل ئے اوکړلو.نود همت ملا ئے ماته شوه.رعب پرے راغلو.دقحط سالئ بانه ئے جوړه کړه چه مکے ته واپس شئ.خوچه صورت داسے وی.چه الزام په مسلمانانو باندے راشی.نودا صورت ئے اختیار کړلو چه یو کس مدینه ته تلو.هغه ته ئے څه ورکړل.اودا ئے ورته اووئیل چه هلته اورسیږے نوداسے خبرے خورے کړه. چه مسلمانان ئے واوری.اوپه ویره کښے شی اود جنګ دپاره نه راوځی هغه چه مدینے ته اورسیدلو.نووئیل ئے شروع کړل چه د مکے خلقو ډیرلوئے لښکر جمع کړے دے .ستاسودپاره جنګ بهتر نه دے مسلمانانوته الله تعالی همت ورکړلو هغوی هم دا اووئیل چه الله زمونږ دپاره کافی دے.آخر دا چه مسلمانان دوعدے مطابق مقام بدرته اورسیدل هلته به منډئ لګیدله.درے ورځے ئے سوداګری اوکړله اوښه په فائدے سره مدینے ته راواپس شول.دے ته ..غزوه بدر صغری.. وائی (١)

بهرحال دلته هم دا راجح ده چه دا د غزوه حمراءالاسد ذکر دے او د ایمان دزیادت نه مراد په ایمانی جوش کښے زیادت مراد دے

**قوله وَقَوْلُهُ تَعَالَى ﴿وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا﴾**:دا د سورة احزاب آیت دے اود غزوه احزاب سره متعلق دے پوره آیت دا دے ﴿وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ

---

(١) تفسیر عثمانی (ص.٩٤)۔

﴿وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَمَا زَادَهُمْ اِلَّآ اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا﴾(۱) کله چه مسلمانانو د کافرانو ډلے اولیدلے چه د قریشو خلق یواځے نه دی راغلی بلکه دوی نورے قبیلے هم په مدینه منوره باندے دحملے کولو دپاره راوستے دی نودوی اوونیل چه هم ددے خومونږ سره الله اودهغه رسول وعده کړے وه او الله اودهغه رسول رښتینی دی په دے سره ددوی په ایمان اود تسلیم په عادت کښے اضافه اوشوه.

په غزوه احزاب کښے چه په عامو مسلمانانو باندے کومه سخته تیره شوے وه.قرآن مجید د دومره سختئ ذکر دبلے غزوه دپاره نه دے کړے خوچه کوم ممتاز اهل کمال واخلاص وو.اودهغوی دالله اود رسول په وعدو باندے نظر وو دهغوی کیفیت څه عجیبه وو ځکه ځنګه چه یوډیر معتبر کس د څه حیرانونکے واقعے پیشنګوئی اوکړی اوبیا هغه واقعه ښکاره شی.نوهغوی بے اختیاره چغه کړی چه دا خو هغه خبره وه کومه چه مونږ ته خودلے شوے وه.هم هغه نقشه مونږ ته مخامخ شوه.هم دا صورت حال دلته راپیښ شوے دے نبی ﷺ دا وړاندے خودلی وو.چه داسے به کیږی.اوهم هغه شان اوشو هم ددے ذکردے﴿ هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ﴾ د قریشونه بلکه د ټولوعربود طرفه د مسلمانانو ختمولو آخری کوشش وو.چه په دے کښے هغوی ته شکست ملاؤ شو اوواپس لاړل هم په دے موقع باندے نبی ﷺ اوفرمائیل.«نغزوهم ولايغزونا»(۲)اوس به په راوران وخت کښے مونږ په دوی باندے حمله کوو.اودوی به په مونږ باندے دحملے کولو جرات نشی کولے نودلته دایمان زیادت مراد نه دے.بلکه دا مراد دے.چه دالله تعالی اودهغه د رسول ﷺ د وعدو په رښتیاوالی باندے اعتماد زیات شو.

**قوله: وَالْحُبُّ فِي اللّٰهِ وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ مِنَ الْإِيْمَانِ:** وړاندے اته آیاتونه تیرشوی دی.ددے نه پس امام بخاری رحمه الله فرمائی چه «حب فی الله» او«بغض فی الله» اعمال دی اودا دایمان جزء دے.نومعلومه شوه.چه ایمان مرکب دے.اوهرمرکب قابل للزیادة والنقصان وی.نود ایمان ترکیب اوقابل للزیادة والنقصان ثبوت اوشو (۳)

ددے جواب دا دے.چه «الحب فی الله والبغض فی الله من الایمان» نه حدیث دے اونه قرآن اوس دوه احتمالات دی.یاخوپخپله دامام بخاری رحمه الله قول دے کوم چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په مقابله کښے حجت نه دے.یا دسلفو رحمهم الله قول دے په دے صورت کښے به مونږ دا اووایو چه دلته «من الایمان» کښے ..من.. د تبعیض دپاره نه دے بلکه ..من.. ابتدائیه دے اومطلب دا دے.چه دا څیزونه د ایمان نه ناشی دی او ددے په متعلقاتو کښے داخل دی.نو د امام

(۱) سورة الأحزاب:۲۲۔

(۲) صحیح بخاری(۵۹۰/۲)کتاب المغازی باب غزوة الخندق وهی الأحزاب)۔

(۳) فتح الباری(۴۷/۱)۔

بخاری رحمہ اللہ په دے باندے د ترکیب او زیادة اونقصان دپاره استدلال صحیح نه دے
امام بخاری رحمہ اللہ چه د ((والحب فی الله والبغض فی الله من الإیمان)) چه کومه جمله ذکرکړے ده
حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی چه په دے سره د ابوداود حدیث ((أفضل الأعمال الحب فی الله والبغض فی الله)) (۱)او ((من أحب لله وأبغض لله وأعطی لله ومنع لله فقد استکمل الإیمان)) (۲) طرف ته اشاره ده.
خوتاسوګورئ چه په دے کښے په اول حدیث کښے دایمان ذکر نشته.اوپه دویم حدیث کښے د((فقد استکمل الإیمان)) ذکردے.معلومه شوه چه ددے څلورو واړو څیزونو تعلق د کمال ایمان سره دے.اوکمال ایمان ته مونږ هم مرکب وایو.اوقابل للزیادة والنقصان ئے منو.خودلته خو خبرے د نفس ایمان په باره کښے دی.
اوکه مونږ په دے جمله کښے ..من.. دامام بخاری رحمہ اللہ دمنشا مطابق ..من.. تبعیضی اومنو.نود ایمان نه مراد دے ایمان کامل.چه دهغه په ترکیب کښے دچا اختلاف نشته.

**قوله** :وَكَتَبَ عُمَرُبْنُ عَبْدِالْعَزِيزِإِلَى عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ إِنَّ لِلْإِيمَانِ فَرَائِضَ وَشَرَائِعَ وَحُدُودًا وَسُنَنًا فَمَنْ اسْتَكْمَلَهَا اسْتَكْمَلَ الْإِيمَانَ وَمَنْ لَمْ يَسْتَكْمِلْهَا لَمْ يَسْتَكْمِلْ الْإِيمَانَ فَإِنْ أَعِشْ فَسَأُبَيِّنُهَا لَكُمْ حَتَّى تَعْمَلُوا بِهَا وَإِنْ أَمُتْ فَمَا أَنَا عَلَى صُحْبَتِكُمْ بِحَرِيصٍ :حضرت عمربن عبدالعزیز رحمہ اللہ عدی بن عدی رحمہ اللہ ته لیکلی وو.چه دایمان څه فرائض اوڅه شرائع دی.څه حدود دی.اوڅه سنن.کوم کس چه دا ټول پوره کړل.هغه خپل ایمان مکمل کړلو.اوچاچه مکمل نکړلو.نوهغه ایمان مکمل نکړلو.

**حضرت عمربن عبدالعزیز** رحمہ اللہ دوی ته پنځم خلیفه راشد وائی.دوی مجدد اول ګرځولے شوے دے.په ٦۱ھ کښے پیدا شوے وو.اوپه ۱۰۱ھ کښے ئے وفات شوے وو.(۳) د نبی ﷺ احادیث په سرکاری سطح باندے د مدون کولو تجدیدی کارنامه هم دوی کړے ده.(۴)
مشهور متل دے.چه فلانے دومره عادل دے.چه دهغه د عدالت په وجه ګډے اوشرمخان په ګودر اوبه څکی.اوشرمخان ګډو ته څه نه وائی.دا متل دے.خود حضرت عمربن عبدالعزیز رحمہ اللہ په زمانه کښے دا واقعه پیښه شوے وه.د هغوی د عدالت اثر په څناورو باندے هم کیدلو.(۵)

---

(۱) أخرجه ابوداود فی سننه عن أبی ذر رضی الله عنه فی کتاب السنة باب مجانبة أهل الأهواء وبغضهم رقم (٤٥٩٩)_
(۲) أخرجه ابوداود فی سننه عن أبی أمامة رضی الله عنه فی کتاب السنة باب الدلیل علی زیادة الإیمان ونقصانه رقم(٤٦٨١)_
(۳) تهذیب الکمال للمزی(٢١/٤٣٦، ٤٤٦)_
(۴) دتفصیل دپاره اوګورئ ..مقدمة العلم..)_
(۵) تهذیب الأسماء واللغات للنووی(٢/١٨)_

خو ورسره دے داخبره هم یاده وی.چه امام عبدالله بن المبارك رحمه الله نه د حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه په باره کښے تپوس اوشو.نوهغوی اوفرمائل.«ما أقول فی رجل قال رسول الله ﷺ سمع الله لمن حمده،فقال خلفه،ربنا ولك الحمد،، ددۀ نه تپوس اوشو.چه ،،أيهما أفضل؟،،هو أو عمر بن عبد العزيز،، نو وے فرمائیل.،،لتراب فی منخری معاوية مع رسول الله ﷺ خير و أفضل من عمر بن عبد العزيز»(١)

**عدی بن عدی** دا عدی بن عدی بن عمیره بن فروه بن زراره کندی دے.دوی په جزیره ابن عمر کښے د عمربن عبدالعزیز رحمه الله دطرفه گورنر وو.(دا ابن عمربل خوك دے.حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما مرادنه دے) دا جزیرۀ موصل ته نزدے یوه علاقه ده.په دے باره کښے دا اختلاف هم شوے دے.چه دے صحابی ووکه تابعی؟صحیح قول هم دا دے.چه دوی تابعی رحمه الله دی. ددوی پلار اوترۀ صحابیان وو.

ددوی په جلالت شان.عبادت.اوفضل اوصلاح باندے د تولواتفاق دے.امام بخاری رحمه الله فرمائی.«عدی بن عدی سید أهل الجزیرة»

مسلمه بن عبدالملك وائی.چه په قبیله کنده کښے درے کسان داسے دی چه دهغوی په وسیله باران غوښتلے شی.اوددوی په وسیله په دشمنانوباندے مدد غوښتلے شی () یورجاء بن حیوه () دویم عباده بن سبا() اودریم عدی بن عدی دے.په ١٢٠ھ کښے وفات شوےوو.(٢) رحمه الله تعالی

**دحضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله په اثر سره دامام بخاری رحمه الله استدلال**

امام بخاری رحمه الله ددے اثر نه دا ثابته کړے ده.چه ایمان مرکب دے.په دے کښے فرائض. شرائع. حدود اوسنن داخل دی.نوهرکله چه ایمان مرکب شو.نوددے قابل زیادت اونقصان په هم ثابت شی.اومونږ دا هم وئیلی شو.چه «الإیمان یزید وینقص»

ددے جواب دا دے.چه اول خوحضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله دلته دا څیزونه دکامل ایمان جزء گرځوی.ځکه چه په آخر کښے د «من إستکملها فقد إستکمل الإیمان» او «ومن لم یستکملها لم یستکمل الإیمان» الفاظ دی.اوپه دے کښے د چا اختلاف نشته.چه ایمان کامل مرکب دے.

دویمه خبره دا ده.چه «إن للإیمان فرائض.الخ» د دے نه جزئیت نه ثابتیږی.بلکه دا ثابتیږی.چه دا څیزونه دایمان متعلقات اوفروع دی.نود امام بخاری رحمه الله استدلال ټیك نه دے.

**فرائض وشرائع اوحدود وسنن** د ،،فرائض،، نه مراداعمال مفروضه یعنی مونځ ،روژه،حج زکواة وغیره دی.

د شرائع،، نه مراد عقائد یعنی توحید ،رسالت،حشرونشر ،اوجزاءالاعمال وغیره مراد دی.

اوپه حدودو کښے درے احتمالات دی.

---

(١) البداية والنهاية (٤/، ٨/ ١٣٩) ترجمة معاوية رضی الله عنه_

(٢) عمدة القاری(١/١١٣) وتهذيب الأسماء واللغات(١/٣٢٨، ٣٢٩)_

() ددے نه د احكاموبمادی اوغايات مراد واخستلے شی.لکه دمانخه ابتداء د تکبيرتحريمه نه او انتهاء په سلام باندے كيږی.دا دمونځ حد دے.د روژے ابتداء د صبا صادق نه كيږی.اوانتهاء ئے په نمر په ډوبيدو باندے كيږی.دا د روژے حد دے.

() دحدودو نه مراد زواجر دی.لکه حد سرقه.حد شرب خمر وغيره.

() دريم احتمال دا دے.چه دحدودو نه منهيات مراد واخستے شی.لکه په آيت کريمه کښے ارشاد دے.﴿وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾[1] دغه شان په حديث کښے دی.«ألا وإن لكل ملك حمى وإن حمى الله في أرضه محارمه»[2]دا منهيات اومحرمات حدود دی.په دے باندے د اودريدو حکم دے.دتجاوز اجازت نشته.

..سنن..د سنت جمع ده.دسنت معنی د طريقے ده.په دے کښے فرائض.شرائع اوحدود هم داخل دی.ځکه چه دا ټولے د دين طريقے دی.په دے صورت کښے دا تعميم بعدالتخصيص دے. چه اول ئے دا څيزونه د جدا جدا بيانولو نه پس د يو عنوان لاندے جمع کړل.

دويم صورت دا دے.چه د فرائضو په مقابله کښے سنن واخستے شی.نو ددے نه به امور مندوبه ومسنونه مراد وی.

ددے نه پس فرمائی.«فمن استكملها استكمل الإيمان ومن لم يستكملها لم يستكمل الإيمان» څوك چه دا مکمل کوی.د فرائضو شرائعو حدوداو سنن اهتمام کوی. نو هغه به خپل ايمان کاملوی. اوڅوك چه ددے ټولو اهتمام نه کوی.نودهغه ايمان به ناقص وی.

**قوله**: فَإِنْ أَعِشْ فَسَأُبَيِّنُهَا لَكُمْ حَتَّى تَعْمَلُوا بِهَا وَإِنْ أَمُتْ فَمَا أَنَا عَلَى صُحْبَتِكُمْ

بحريص: كه زه ژوندے پاتے شوم.نوددے تفصيلات به بيان کړم.چه تاسو پرے عمل اوکړئ. اوکه زه ژوندے پاتے نه شوم.زما مرګ راغلو.نوماته تاسو سره د اوسيدو څه شوق نشته.

**قوله**. وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَلَٰكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي﴾:حضرت ابراهيم عليه السلام الله تعالى ته عرض کړے وو.چه ﴿رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى﴾ په دے باندے د الله تعالى د طرفه تپوس شوے وو. ﴿قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ﴾ حضرت ابراهيم عليه السلام جواب ورکړلو. ﴿قَالَ بَلَى وَلَٰكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي﴾.

امام بخاری رحمه الله په دے سره اشاره کول غواړی.دسعيد بن جبيراومجاهد رحمهما الله تفسير طرف ته.سعيد بن جبير رحمه الله ددے تفسير په «ليزداد يقيني» سره کړے دے. او مجاهد رحمه الله په «لأزداد إيماناً إلى إيماني» سره کړے دے.نودغه شان زيادت د ايمان ثابتيږی.کله چه دحضرت

(۱) الطلاق:۱

(۲) صحيح بخاری (۱۳/۱) کتاب الإيمان باب فضل من إستبرأ لدينه

ابراهيم ﷺ په باره کښې دا خبره ثابته ده نوچونکه دهغوی دملت د تابعدارئ مونږ ته حکم شوے دے نولکه چه د نبی کریم ﷺ نه هم ثابته شوے ده (١)

ددے جواب دا دے چه دلته دحضرت ابراهیم ﷺ په کلام کښې دایمان زیادت مراد نه دے بلکه شوق اواضطراب په اطمینان کښې بدلول مراد دی نور وضاحت به د وړاندے تشریح نه اوشی.

آیا دابراهیم ﷺ تپوس دشك په بنیاد سره وو؟

دلته سوال دا پیدا کیږی چه حضرت ابراهیم ﷺ د الله تعالی نه د احیاء موتی سوال ولے اوکړلو آیا هغوی ته دالله تعالی په قدرت علی الاحیاء کښې والعیاذ بالله څه شك یا تردد وو؟ حالانکه هغوی ابوالانبیاء اوپه اولوالعزم پیغمبرانو کښې شامل دی

ددے جواب دا دے چه د ,,کیف،، استعمال څوکله د استعجاز دپاره کیږی کله د استعجاب دپاره اوکله داستفهام دپاره. مثلا که یوکس دا دعوی اوکړی چه زه دومره غټ بوج اوچتولے شم اوهغه ته اووائے «أرنی کیف تحمل هذا؟» نودا د استعجاز دپاره دے یعنی ته هغه عاجز بنکاره کول اوګرځول غواړے.

دغه شان که یو ورکوټے ماشوم وی اودهغه متعلق اوونیلی شی چه هغه ته موطا امام مالك یاد ده نوته تپوس کوے «کیف حفظ الموطا» هغه څنګه موطا یاده کړه .د هغه عمر خو ډیرکم دے دلته ،،کیف،، داستعجاب دپاره دے.

او ،،کیف،، په «کیف کان بدء الوحی» کښې راغلے دے هغه د استفهام دپاره دے.

دلته دا زده کړه چه حضرت ابراهیم ﷺ چه کوم سوال کړے وو هغه داستفهام دپاره وو اودا سوال په دے خبره باندے مبنی دے چه حضرت ابراهیم ﷺ ته په قدرت علی الاحیاء باندے پوره یقین وو. ددے قوت یقین دوجے په هغوی کښې اشتیاق پیدا شو چه هغه ددے د کیفیت مشاهده اوکړی. تاسو ته یقین دے چه مکه مکرمه یو مقدس ښار دے هلته بیت الله دے د ټولے دنیا خلق هلته کښې رسی. اود حج فریضه ادا کوی. ددے یقین دوجے ستا په زړه کښې شوق دے چه الله تعالی هغه مبارك وخت زما په ژوند کښې هم راولی چه زه د مکے مکرمے دیدار اوکړم. یقین چه څومره قوی اومضبوط وی هم دهغے مطابق به اشتیاق هم وی. حضرت ابراهیم ﷺ ته چونکه کامل یقین وو. ددے کامل یقین د وجے په هغوی یود احیاء کیفیت لیدلو ډیرشوق پیدا شو. نوځکه هغوی درخواست اوکړلو چه ﴿رَبِّ اَرِنِیْ کَیْفَ تُحْیِ الْمَوْتٰی﴾ خوالله سبحانه وتعالی د خپلو پیغمبرانوعلیهم السلام دشان حفاظت کوی. نوځکه ئے تپوس اوکړلو. ﴿قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ﴾ دا سوال ددے وجے نه وو چه دالله تعالی د حضرت ابراهیم ﷺ په یقین اوایمان کښې شك پیدا شوے وو بلکه ددے دپاره ئے تپوس اوکړلو چه غبی اوکم نهم ته په حضرت ابراهیم ﷺ باندے د بدګمانئ موقع ملاؤ نشی. الله تعالی ښه پوهیدو چه دحضرت ابراهیم ﷺ په یقین کښې څه کمے نشته. خود غلط فهمیانو رد کولو دپاره ئے سوال

---

(١) فتح الباری (٤٧/١)۔

اوکړلو. په خپله ئے دحضرت ابراهيم ﷺ په ژبه دا اووئيل. ﴿بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ چه زما ستا په قدرت على الاحياء باندے يقين ولے نشته. هغه يقين خو کامل دے. خوکه زه ددے کيفيت اووينم. نوزما زړه ته به آرام ملاؤ شي.

دا بيخي داسے ده. لکه الله تعالى چه حضرت عيسى ﷺ ته فرمائي. ﴿ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾(١) الله تعالى دا پيژني. چه حضرت عيسى ﷺ داسے نه دي وئيلي. په قرآن کريم کښے ارشاد دے. ﴿مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾(٢) ددے باوجود دحضرت عيسى ﷺ نه تپوس کيږي. مقصد هم دا دے. چه دحضرت عيسى ﷺ په ژبه باندے اظهار د براءت اوشي. نوهغوى عرض اوکړلو. ﴿قَالَ سُبْحٰنَكَ مَا يَكُوْنُ لِيْۤ اَنْ اَقُوْلَ مَا لَيْسَ لِيْ بِحَقٍّ اِنْ كُنْتُ قُلْتُهٗ فَقَدْ عَلِمْتَهٗ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَاۤ اَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِكَ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۝ مَا قُلْتُ لَهُمْ اِلَّا مَاۤ اَمَرْتَنِيْ بِهٖۤ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ﴾(٣) ددے تصريح نه پس هيڅ يوغبي اوغوى ته دا خيال نشي راتلے. چه هم حضرت عيسى ﷺ خلقو ته دخپل خان اومور د اله جوړولو مشوره ورکړے وه.

هم دغه شان دلته دي. چه الله تعالى اوفرمائيل ﴿قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ﴾ اے ابراهيم! ولے تاته يقين نشته. چه زه په احياء موتى باندے قادر يم؟ نوحضرت ابراهيم ﷺ عرض اوکړلو ولے نه. دا يقين مے کامل دے. اوپه دے خبره زما پوره پوره ايمان دے. ﴿وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ خوزه دا غواړم. چه زما په زړه کښے دشوق لمبے بليږي. اوزه د احياء موتى د کيفيت ليدو دپاره خپل خان مضطرب وينم. چه زما دغه د شوق اور يخ شي. اوماته سکون اواطمينان ملاؤ شي.

بهرحال دحضرت ابراهيم ﷺ په دے جواب کښے د «زيادة فى الايمان» ذکر نشته. کوم چه امام بخاري رحمه الله کړي. بلکه دلته خو مقصد دا دے. چه په ما کښے د کيفيت احياء د مشاهدے کوم شوق چه پيدا شوے دے. زه دهغے تسکين غواړم.

حقيقت دا دے. چه په استدلال سره د يوخيزعلم حاصل شي. نوپه هغے کښے د يقين اوجزم کيفيت وي. اوعلم اليقين حاصليږي. خودمشاهدے کولو نه پس چه د عين اليقين کوم کيفيت پيداشي. هغه په خبريا استدلال سره نه پيدا کيږي. حضرت ابراهيم ﷺ ته دالله تعالى په خبر ورکولو باندے پوره يقين وو. اوبيا ورته دخپل استدلال په وجه هم کامل يقين وو. چه الله تعالى په احياء موتى باندے قادر دے. خوهغوى غوښتل. چه ددے کيفيت مشاهده هم اوکړي. چه علم اليقين په عين اليقين سره بدل شي. والله اعلم.

**يواشکال اودهغے جواب.** دلته يواشکال دا کيږي. چه امام بخاري رحمه الله د ايمان د کمي اوزيادت دپاره وړاندے اته آياتونه ذکر کړل. ددے نه پس ئے «الحب فى الله والبغض فى الله»

---

(١) المائدة:١١٦۔

(٢) آل عمران:٧٩۔

(٣) المائدة:١١٧،١١٦۔

اودحضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله اثرذكر كړلو.ددے تولو نه پس ئے آيت ﴿وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ ذكركړلو. حالانكه پكار دا وو.چه دا آيت ئے هم ددغه آياتونو سره ذكر كړے وے.ددے تفريق څه وجه ده؟

حضرت گنگوهي رحمه الله فرمائي.ددے وجه دا وه.چه ﴿وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ دحضرت ابراهيم عليه السلام قول دے.(۱)

خو په دے جواب كښے اشكال دا دے.چه ددے قول الله تعالى حكايت كړے دے .نو دا دالله تعالى كلام دے.

نوځكه بهتر جواب دا دے.چه اصل كښے د پورتنو اتهٔ آياتونو نه دايمان زيادت صراحةً ثابتيږي.اود آيت﴿ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ نه كمے اوزيادت استدلالاً ثابتيږي.د لفظ طمانينت نه دا مضمون اخذ كيږي.چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته علم اليقين وو .د دے نه پس هغوی د نور طمانينت خواهش كړلو.معلومه شوه.چه ايمان زيادت قبلوی.اوكوم څيزچه زيادت قبلوی.هغه كمے هم قبلوی.(۲)

**قوله:وَقَالَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ اجْلِسْ بِنَا نُؤْمِنْ سَاعَةً:** حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه فرمائي.كينئ چه مونږ څه وخت دپاره ايمان راوړو.ددے تجديد اوكړو.

حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه ممتاز صحابي دے.داتلسو كالو په عمر كښے ئے اسلام قبول كړے وو.په بيعت عقبه ثانيه كښے شريك شوے وو.دنبي ﷺ سره په بدر او نورو تولو غزاگانو كښے شريك شوے وو.نبي ﷺ د دوی په حق كښے فرمائيلي وو.«أعلمهم بالحلال والحرام معاذبن جبل رضي الله عنه»(۳)د دوی مناقب اوفضائل بےشميره دی . په ۱۸ھ كښے په طاعون عمواس كښے وفات شوی وو.(۴)

دحضرت معاذبن جبل رضي الله عنه دا اثر ابن ابي شيبه اوامام احمد موصولاً نقل كړے دے .اوهغوی اسود بن هلال ته فرمائيلي وو.«اجلس بنا نؤمن ساعة»(۵)

امام بخاری رحمه الله ددے نه په زيادت في الايمان باندے استدلال كوی.په دے طريقه چه دا قول په اصل ايمان باندے نشي حمل كولے.ځكه چه حضرت معاذ رضي الله عنه خوداول نه ايمان راوړے وو.نودا به هم په زيادت في الايمان باندے حمل كولے شي.

---

(۱) لامع الدراری(۱/۵٤۰، ۵٤۱)۔

(۲) فضل الباری(۱/۲۸۶)۔

(۳) جامع ترمذی كتاب المناقب باب مناقب معاذبن جبل وزيد بن ثابت،وأبی ،أبی عبيدة بن الجراح رضي الله عنه رقم:(۳۷۹۰)و(۳۷۹۱)۔

(۴) تهذيب الأسماء واللغات(۲/۹۸، ۱۰۰) ترجمة معاذبن جبل رضي الله عنه۔

(۵) فتح الباری(۱/٤۸)۔

دا دے جواب دا دے چه دلته زيادت في الايمان مراد نه دے بلکه دايمان تجديد اود دے تازګي مراد ده لکه څنګه چه په حديث کښې راغلي دي «جددوا إيمانكم، قيل يارسول الله كيف نجدد إيماننا؟ قال: أكثروا من قول لا إله إلا الله»(١) «لا إله إلا الله» په کثرت سره وائې. نود ايمان تازګي اوترقي به راشي حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه فرمائي . چه «اجلس بنا نؤمن ساعة» کيني چه د آخرت څه ذکر اوکړو چه د جنت د ثواب اود دوزخ د عذاب ذکراوکړو اوڅه دالله تعالى د رسول خبرے اوکړو نوبه دے سره به په ايمان کښې تازګي پيدا شي ﴿إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَٰئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ﴾(٢) متقيان چه کله د شيطاني وسوسو نه پريشانه شي نوهغوى دالله تعالى ذکر شروع کړي په دے سره دهغوى بصيرت رابيدار شي اود شيطان د وسوسو اثر ختم شي. ددے نه پس د اهل زيغ په باره کښې فرمائي ﴿وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ﴾(٣) څوك چه د شيطانانو رونړه دي هغوى ګمراهئ ته راکاږي بيا په کښې هغوى کمے نه کوي.

تاسو به کتلي وي چه د اور په سکروټه باندے دپاسه کله ايره راشي نوهغه سروټکه سره شي. خوچه ايره ترے لرے کړے نوسروټکه تازه شي. بيخي هم داسے داهل ايمان ايماني کيفيت پټ شي خوسمدستي خبر شي. اودالله تعالى په ذکر کښې مشغول شي. ددے نتيجه دا شي چه دهغوى ايماني کيفيت کوم باندے چه د شيطاني وسوسو په وجه غبار راغلي وي دالله تعالى په ذکرسره هغه دوره ختمه شي اودهغوى روحاني کيفيت بحال شي کافران چه دهغوى روحاني کيفيت مړ شوے دے هغوى ته خبروکول فائده نه رسوي الاماشاءالله. سرے بينا وي د پرکالي دوجے هغه ته څه په نظر نه راځي. چه ته هغه اوړقوے نودهغه پرکالي ختمه شي اوهغه هرڅه ليدل شروع کړي په خلاف د نابيناکه هغه بقے سترګے راوباسي نوهغه ته نه دا فائده ورکوي اوکه ته يے رقوے نونه ورته دا فائده ورکوي هغه په هيڅ صورت کښے ليدل نشي کولے هم دا فرق دمومن اوکافر دے دشيطاني وسوسو دوجے مومن غافله شي خوچه کله هغه ته خبر ورکړے شي ياهغه په خپله دالله تعالى د ذکر په ذريعه بيدار شي . نو د هغه بينائي راواپس شي په کافرکښے چونکه صلاحيت نه وي په خپل عمل سره هغه دا صلاحيت ضائع کړے دے نوتنبيه ورکول دهغه دپاره څه فائده منده نه ده .

بهرحال امام بخاري رحمه الله په «نؤمن ساعة» سره دايمان په زيادت باندے استدلال کوي. ښکاره ده چه دلته تجديد مراد دے اوددے مطلب په ايمان کښے زيادت نه دے بلکه تروتازګي پيدا کول دي. والله اعلم.

---

(١) مسند احمد (٢/ ٣٥٩) أحاديث أبي هريرة رضي الله عنه_

(٢) الأعراف: ٢٠١)_

(٣) الاعراف: ٢٠٢)_

**قوله: وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ الْيَقِينُ الْإِيمَانُ كُلُّهُ:** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه يقين كامل ايمان دے.

دا اثر طبرانى په صحيح سند سره ذكر كړے دے.پوره اثر دا دے «الصبر نصف الإيمان واليقين الإيمان كله» (۱)

دامام بخارى رحمه الله استدلال يا خو په لفظ د ..كل.. سره دے.ځكه چه د كوم څيزكل وى.د هغے به جزء هم وى.يادد ے په اولنى جزء باندے استدلال كوى.ځكه چه په دے كښے لفظ د ..نصف.. دے.كوم چه صراحة په جزئيت باندے دلالت كوى. د دے نه ايمان تركيب هم ثابتيږى.اوقابل د زيادت اودنقصان هم په پوهه كښے راځى . دا دامام بخارى رحمه الله عادت دے.چه غامض ته په ظاهرباندے ترجيح وركوى.او دصريح په مقابله كښے په اشاره باندے استدلال كوى.مطلب ئے د طالبانو ذهنى تشحيذ وى.

ذامام بخارى رحمه الله داستدلال جواب دا دے.چه دلته د يقين نه د اهل معرفت يقين مراد دے.كوم چه په مشقت شاقه اومجاهدات كثيره سره حاصليږى.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا خودل غوارى.چه كامل ايمان هغه دے.چه په هغے كښے دا يقين وى.نو اوس دا داحنافو رحمهم الله خلاف نشو.ځكه چه ددوى په نيز هم دكامل ايمان دپاره د ډيرو څيزونو ضرورت وى.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ حَقِيقَةَ التَّقْوَى حَتَّى يَدَعَ مَا حَاكَ فِي الصَّدْرِ:**
حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائى.دتقوى حقيقت ته نشى رسيدلے.ترڅو چه هغه خبرے پرے نګدى.كومے چه په زړه كښے شك اچوى.

په سنن ترمذى اوسنن ابن ماجه كښے دحضرت عطيه السعدى حديث مروى دے «لا يبلغ العبد أن يكون من المتقين حتى يدع مالا بأس به حذرا لما به البأس» (۲) يعنى بنده تر هغه وخته پورے د متقيانو درجے ته نشى رسيدے.ترڅوچه هغه څيزونه پرے نږدى.په كومو كښے چه څه باك نه وى.دهغه څيزونو نه د بچ كيدو په غرض په كومو كښے چه باك وى.

**دتقوى درجات:** () دتقوى يوه درجه دا ده.چه سړے د كفر شرك اونفاق نه بچ شى.
() دويمه درجه دا ده.چه د بدعاتو نه بچ وى.
() دريمه درجه دا ده.چه كبائرو نه بچ وى.
() څلورمه درجه دا ده.چه د صغائرو نه بچ وى.
() پنځمه درجه دا ده.چه دهغه مباحاتونه بچ شى.چه په هغے كښے اخته كيدو او مشغوله كيدو سره په ګناه كښے د واقع كيدو ويره وى.

---

(۱) مجمع الزوائد(۵۷/۱)كتاب الإيمان باب فى كمال الإيمان دغه شان مستدرک حاكم(۴۴۶/۲) كتاب التفسير.تفسير سورة حم عسق)_
(۲) سنن ترمذى كتاب صفة القيامة باب ۱۹.رقم (۲۴۱۵) وسنن ابن ماجه كتاب الزهد باب الورع والتقوى رقم(۴۲۱۵)_

() شپږمه درجه دا ده.چه سړے د مشتبهاتو نه بچ شی.دحضرت ابن عمر ﷺ په اثر کښے ددے بیان دے.چه کوم څیزونه په زړه کښے شك غورځوی.ترڅو پورے انسان هغه پرے نږدی. نودتقوی حقیقت ته نشی رسیدے.
() عارفینواومحققین عالمانو ﷺ د تقوی یوه بله درجه هم ذکر کړے ده.هغه دا چه سړے ..کل ما سوی الله.. پریږدی.اود ..کل ما سوی الله.. پریخودو مطلب دا دے.چه کوم کار هم کوی.نودالله تعالی د رضا دپاره ئے کوی.که هغه د دین کار وی اوکه ددنیا وی (١)
امام بخاری رحمه الله په دے باندے استدلال داسے دے.چه دهغوی په نیز ..تقوی.. او ..ایمان.. یوڅیز دے.او د اثر نه معلومه شوه.چه بعضے مؤمنان دتقوی حقیقت ته رسی.اوبعضے نه رسی.نومعلومه شوه.چه ایمان زائد اوناقص وی.په بعضے روایاتو کښے دلته د ..تقوی.. په ځائے ..ایمان.. راغلے دے.چه ((لایبلغ العبد حقیقة الإیمان))(٢)
ددے جواب دا دے.چه تقوی اوایمان یوڅیز ګرځول ټیك نه دی.ځکه چه تقوی عین ایمان نه دے.بلکه دایمان اثر دے.والله اعلم.

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ شَرَعَ لَكُمْ، أَوْصَيْنَاكَ يَا مُحَمَّدُ وَإِيَّاهُ دِينًا وَاحِدًا:** امام مجاهد رحمه الله د آیت قرآنی ﴿شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِ نُوحًا وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَىٰ أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ﴾(٣) په تفسیر کښے فرمائی.((أوصیناك یامحمد وإیاه دینا واحداً)) یعنی اے محمده!تاته اونوح ته مونږ د یوشریعت وصیت کړے وو.
دامام بخاری رحمه الله مطلب دا دے.چه دین او ایمان یوڅیز دے.اودامعلومه ده.چه د رسول الله ﷺ اودحضرت نوح ﷺ په شریعت کښے فروعی اختلافات شته.اګرچه په اصولو کښے اختلاف نشته.په توحید.رسالت.اوآخرت وغیره امورو کښے اختلاف نشته.دنبی ﷺ ارشاد دے.((الأنبیاء أولاد علات)) او ((الأنبیاء إخوة لعلات،أمهاتهم شتی ودینهم واحد))(٤)نوددے نه د ایمان ترکیب معلومیږی.اود ترکیب نه ددے قابل للزیادة والنقصان هم ثابتیږی.
ددے جواب دا دے.چه دلته صرف دا خودل دی.چه اصول دین او مهمات شریعت هلته اودلته یو دی.په عقائدو کښے ټول یودی.په اعمال فرعیۀ کښے اختلاف ته کتل اوبیا ددے نه دایمان په ترکیب اوقابل للزیادة والنقصان بیانول مقصود نه دی.چه په دے سره دامام

---

(١)تفسیرالبیضاوی مع شیخ زاده (٧٧/١) وفضل الباری(٢٩٢/١، ٢٩٣)_

(٢) عمدة القاری(١١٦/١)_

(٣) الشوری:١٣_

(٤) صحیح بخاری کتاب الأنبیاء باب قول الله ..وذکرفی الکتاب مریم ..رقم(٣٤٤٢، ٣٤٤٣) دغه شان صحیح مسلم (٢٦٤/٢) کتاب الفضائل باب فضائل عیسی ﷺ وسنن أبی داود کتاب السنة باب فی التخییر بین الأنبیاء علیهم الصلاة والسلام)_

بخاري رحمه الله استدلال صحيح شی دابن عمر رضی الله عنه په حدیث کښې د اصول دین اومهمات شریعت دواړو ذکر موجود دے.

تنبیه حافظ بلقینی رحمه الله فرمائی چه دبخاری په ټولوروایاتو کښې دامام مجاهد داثرپه الفاظو کښې تصحیف دے.د اصل اثرالفاظ لکه څنګه چه د عبدالله بن حمید ،فریابی،طبری اوابن المنذر رحمهما الله په تفاسیرو کښې دی.هغه دا دی.«وصاك يا محمد وأنبياءه كلهم دينا واحدا»

حافظ بلقینی رحمه الله فرمائی چه امام مجاهد رحمه الله صرف نوح علیه السلام ته ضمیر ګرځولے شی. حالانکه په سیاق کښې دپیغمبرانوعلیهم السلام د یوے ډلے ذکر دے.

حافظ فرمائی.چه په تفسیرکښې د مفرد ضمیرراوړلو څه مانع نشته.په دے طریقه چه اراده په اصل کښې د مخاطب وی.اوبیا باقی حضرات تابع اوګرځولی شی.ددے وجې هم چه په آیت کښې دحضرت نوح علیه السلام ذکرمستقلا دے.بیا په تفاسیروکښې په مختلفو الفاظو سره ددے واقع کیدلو سره دا نه لازمیږی.چه دلته تخیف شوے دے.کیدے شی.چه د مصنف رحمه الله روایت بالمعنی واقع شوے وی.والله اعلم (١)

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا سَبِيلًا وَسُنَّةً:** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د قرآنی آیت په تفسیر «لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا»(٢) کښې هغوی د «شرعة ومنهاجا» تفسیر هغوی په «سبیلا وسنة» سره کړے دے.

د ,,منهاج،، تفسیر ,,سبیل،، دے.او د ,,شرعة،، تفسیر ,,سنة،، دے.لکه چه په تفسیر او آیت کښې لف نشرغیرمرتب دے.,,شرعة،، لومړے لارے ته وائی. او ,,منهاج،، وړے لارے ته وائی. مطلب دا چه اصول دین کوم چه لویه لاره ده. هغه د ټولو دپاره یوه ده.اوفروعی احکام کومه چه وړه لاره ده.هغه دټولو دپاره جدا جدا ده.

امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی.چه دین په ,,شرعة او ,,منهاج،، کښې تقسیم دے.نو مرکب شو.اومرکب قابل للزيادة والنقصان وی.

زمونږ جواب دا دے.چه منهاج یعنی فروعی احکام دایمان متعلقات او مکملات دی. اجزاء نه دی.چه دامام بخاری رحمه الله مدعی ثابته شی.

دلته یواشکال دا کړے شوے دے.چه د اولنی آیت نه معلومیږی.چه دټولوانبیاؤ دین یو وو.اوددے آیت نه معلومیږی.چه مختلف وو.په دے دواړو کښې تعارض دے.

ددے جواب دا دے.چه په کوم ځائے کښې وحدت بیان شوے دے.دهغے نه مراد وحدت في الاصول دے.اوپه کوم ځائے کښې چه اختلاف خودلے شوے دے.دهغے نه مراد اختلاف في الفروع دے.(٣)

(١) فتح الباری(١/٤٨)_

(٢) المائدة:٤٨_

(٣) فتح الباری(١/٤٩)_

بیا دویم اشکال دا شوے دے.چه اولنۍ آیت د مؤلف دترجمے مناسب نه دے.البته دویم آیت مناسب دے.

حضرت گنګوهی رحمه الله ددے جواب ورکړے دے.چه حضرت امام بخاری رحمه الله خپله مدعی د دوارو آیاتونو د مجموعه نه ثابته کړے ده.اودا ئے خودلی دی.چه انبیاء علیهم السلام په اصولو کنبے متفق اومتحد وو.اوپه فروعو کنبے مختلف.نوهرکله چه په فروعو کنبے اختلاف دے.نوخامخا چه په فرع باندے کوم عمل کیږی.په هغے کنبے به زیادت اونقصان پیدا کیږی.(۱)

حضرت مولانا احمدعلی سهارنپوری رحمه الله ددے اشکال بل جواب ورکړے دے.فرمائی .

«شرع لکم من الدین...» کنبے وړاندے «أن أقیموا الدین» دی.اود اقامت دین معنی دا ده.چه سړے صحیح ایمان راوړی.یعنی دکومو څیزونوتصدیق چه په ایمان کنبے ضروری وی.دهغے څیزونو تصدیق اوکړی.اواحکام خداوندی په ښه طریقه ادا کړی.اوس چه کوم کس د دین په اقامت اکمل وی.دهغه ایمان به هم اکمل وی.اوچه په چا کنبے څه کمی وی.دهغه په ایمان کنبے به هم کمی وی.لکه چه د مؤلف مدعی د «أن أقیموا الدین» نه مستنبط کیږی.(۲)

**قوله: دُعَاؤُکُمْ إِیمَانُکُمْ:** دلته په بعضے نسخو کنبے «باب دعائکم إیمانکم» دی.امام نووی رحمه الله فرمائی.چه په ډیرو نسخو کنبے دلته د باب لفظ دے.کوم چه غلط فاحش دے.صحیح دا ده.چه دلته ،،باب،، ساقط دے.(۳)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه ما یوه نسخه لیدلے ده.کومه چه فربری رحمه الله ته اورولے شوے وه.په هغے کنبے د ،،باب،، لفظ نشته.(۴)

دلته که د ،،باب،،لفظ اومنلے شی.نووړاندے دابن عمر(عنهما)د روایت دترجمۂ سره مطابقت نه راځی.اواولنۍ ترجمه «باب قول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس» بغیرد حدیث نه پاتے کیږی.(۵) خوحافظ رحمه الله څه توجیه نه ده بیان کړے.

یوه توجیه دا کیدے شی.چه دابن عمر رضی الله عنهما په حدیث کنبے عقائدایمانیه بیان شوی دی.اود «دعاؤکم إیمانکم»نه د اعمال ایمانیه پته لګی.ځکه چه هرکله دعا ایمان شو.نومعلومه شوه. چه عمل په ایمان کنبے داخل دے.اودابن عمر رضی الله عنهما په دحدیث نه هم دا معلومیږی.چه اعمال په ایمان کنبے داخل دی.اودا به وئیلی شی.چه دا «باب فی باب» دے.اصلی باب وړاندینے دے.کوم چه کتاب الایمان کنبے راغلے دے.والله اعلم.

---

(۱) لامع الدراری (۱/۵٤٤، ۵٤۵)_
(۲) حاشیه بخاری(۱/۶،حاشیه ۵)_
(۳)فتح الباری(۱/٤۹)_
(۴) شرح کرمانی(۱/۷۶)_
(۵) فتح الباری(۱/٤۹)_

دا د آيت قرآنى د ﴿قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ﴾ (١) تفسير دے.دلته د «دُعَاؤُكُمْ» تفسير په «إيمانكم» سره شوے دے.مطلب دا دے چه اے كافرانو ستاسو د حركتونو.فساد اواستهزاء اوتمسخر تقاضا دا ده.چه تاسوهلاك شئ.خوپه تاسو كنبے څه خلق ايماندار دى.د هغوى دايمان په وجه په تاسوباندے عذاب نه راځى .او تاسونشئ بربادیدئ.

بعضے حضراتو د «دُعَاؤُكُمْ» تفسير په ..ذكر.. سره كړے دے.اوپه دعا كنبے خو ذكر وى.نو مطلب دا شو.چه ستاسودكفراوعناد تقاضاخو دا ده.چه تاسو هلاك كړے شئ.خوپه تاسو كنبے څه خلق داسے دى.چه هغوى دالله تعالى يادونكى دى .د هغوى په وجه تاسو بچ يئ.

دصحيح مسلم په روايت كنبے دى.«لاتقوم الساعة حتى لايقال فى الأرض: الله الله» (٢) ترڅو پورے چه د الله الله ونيل بند شوے نه وى.تر هغه وخته پورے به قيامت قائم نشى.چونكه د الله رابلونكى او د هغه ذكر كونكى خلق موجود دى. خكه تاسو نشئ تباه كولے.

حضرت علامه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه دلته د دعا نه هم دعا مراد واخلئ.نه به ددے تفسير په ايمان سره كولے شى.اونه په ذكر سره.مطلب به داشى.چه اے كافرانوكله چه تاسو په څه مصيبت كنبے اخته يئ.اوپه تاسو څه مصيبت راشى.نو په دغه مصيبت او تكليف كنبے خپل معبودان بے وسه او مجبورئ مومئ.اوبيا تاسو بے اختياره الله تعالى رابلئ.نودا ستاسو بے اختياره الله تعالى لره رابلل ستاسو د بچ كيدو سبب دے.گنى تاسو به هلاك كړے شوے وئ.(٣)

دامام بخارى رحمه الله استدلال دلته د «إيمانكم» په تفسير باندے دے.په دے كنبے دے طرف ته اشاره ده.چه ايمان يوعمل دے.اوددے اطلاق په ايمان باندے كيږى .نودا اطلاق دجزء على الكل دے.نود ايمان ذو اجزاء كيدل ثابت شو.اوكوم څيزچه مركب اوذواجزاء وى.هغه قابل للزيادة والنقصان وى.نودايمان قابل للزيادة والنقصان كيدل هم ثابت شو.

ددے نه جواب دا دے.چه دعا دايمان د متعلقاتو څخه ده.د اجزاؤ نه نه ده.نودامام بخارى رحمه الله استدلال ټيك نه دے.والله اعلم.

---

(١) الفرقان:٧٧_

(٢) صحيح مسلم(١/٨٤)كتاب الإيمان باب ذهاب الإيمان آخرالزمان)_

(٣) فيض البارى (١/٧٥، ٧٦)_

## الحديث الثامن

[٨] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى قَالَ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا (١) قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ [رقم: ٤٢٤٣]

## رجال الحديث

**قوله**: عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى: دا عبیدالله بن موسی بن باذام عبسی کوفی دے.ثقه دے. اوداما م اعمش رحمه الله نه علاوه د ډیروتابعینو رحمهم الله نه دوی روایت کړے دے.ددوی نه امام بخاری اوامام احمدبن حنبل رحمهماالله براه راست اوامام مسلم اود سنن اربعه صاحبان رحمهم الله په یوه واسطه باندے روایت کوی.دقرآن کریم لوئے عالم وو.(٢)
حافظ رحمه الله فرمائی.دوی ثقه دی.البته په دوی کښے تشیع وو.(٣)
امام نووی رحمه الله فرمائی.چه په صحیحین اوددے نه علاوه د ډیروامامانو په کتابونو کښے د ډیرو داسے مبتدعینونه روایات اخستے شوی دی.چه هغوی داعی الی البدعة نه وو.نود سلفو اوخلفو رحمهم الله دداسے حضراتو نه د روایاتو اخستلواوپه هغے باندے استدلال کولو باندے متفق دی.بغیرد څه انکار نه د هغوی سماع او اسماع ټیک ده.(٤)
٢١٣هـ کښے په اسکندریه کښے وفات شو.(٥)

**قوله**: حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ: دوی حنظله بن ابی سفیان بن عبدالرحمن بن صفوان بن امیه بن خلف جمحی قرشی مکی دی.ثقه اوحجت دے.دعطاء بن ابی رباح اونورو تابعینو رحمهم الله نه روایت حدیث کوی.اود دوی نه دامام سفیان ثوری رحمه الله غوندے اعلام

---

(١) الحديث أخرجه البخاري في كتاب التفسير أيضاً رحمه الله باب وقاتلوهم حتى لاتكون فتنة ويكون الدين لله رقم(٤٥١٤)ومسلم في صحيحه في كتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام ودعائمه العظام رقم(١٢٠. ١٢٣) والنسائي في كتاب الإيمان وشرائعه باب على كم بني الإسلام رقم(٥٠٠٤) والترمذي في جامعه في كتاب الإيمان باب ما جآء بني الإسلام على خمس رقم(٢٦٠٩)_
(٢) عمدة القاري(١١٨/١)_
(٣) تقريب التهذيب (٣٧٥)_
(٤) عمدة القاري(١١٨/١)_
(٥) پورتنئ حواله وتقريب التهذيب(ص.٣٧٥)_

حديث دعلم اخذ كړے دے.ددوی روایات داصول سته مصنفینو رحمهم الله په خپلو كتابونوكښے راوړی دی.په ۱۵۱ھ كښے ددوی وفات شوے دے.(۱)

**قوله: عِكْرِمَةُ بْنُ خَالِدٍ:** دوی عکرمه بن خالد بن العاص بن هشام بن المغيره قرشي مخزومي مکي دی. جلیل القدربزرگ دے.دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه دوی احادیث اوریدلی دی.د دوی په روایت کونکو کښے دعمروبن دینار رحمه الله نه علاوه نور ډیر تابعیان رحمهم الله دی.ددوی وفات په مکه کښے دعطاء نه پس شوے وو.اود عطاء وفات په ۱۱۴ھ یا ۱۱۵ھ کښے شوے وو.

**تنبیه:** یاد ساتئ چه د عکرمه بن خالد په نوم سره یوبل راوی هم په دے طبقه کښے دے.د دغه دویم عکرمه نسب دے.عکرمه بن خالدبن هشام بن المغيرة المخزومي.لکه چه د نیکۀ په نوم کښے ئے فرق راځی.ددے نه علاوه د شیوخو په اعتبار سره په کښے هم فرق دے.ددغه دویم عکرمه نه په صحیحینوبلکه په اصول سته کښے څه روایت نشته.بیا دے ضعیف هم دے. اواولنے عکرمه جلیل القدر ثقه راویانوکښے دے.او دابن ماجه نه سوا باقي ټولود هغه نه روایات اخستے دی.(۲)

**قوله: عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا:** دوی د حضرت عمربن الخطاب خوئے دے.دام المؤمنين حضرت ام سلمة رضي الله عنها سکه ورور دے.د دوی دمور نوم زینب بنت مظعون دے. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په ماشوموالی کښے دخپل پلار سره مسلمان شوے وو.اودهغوی نه وړاندے ئے هجرت کړے وو.په بدرکښے د ورکوټوالي د وجے شریك نشو.د احد په شرکت کښے ئے اختلاف دے.البته په غزوه خندق اوددے نه پس په ټولو غزواتوکښے شریك شوے وو. د سنتو په اتباع کښے مشهور وو.تردے چه په سفر کښے به په هغه مقاماتو کښے خامخا پراو کولو.په کوموکښے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم پراو کړے وو.اوپه هغه ځائے کښے به ئے خپله اوښه کینوله. په کوم ځائے کښے چه به نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خپله اوښه کینولے وه. دا هم منقول دی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوے ونے دلاندے ایسارشوے وو.حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به دغه ونے ته اوبه ورکولے.اودهغے خسمانه به ئے کوله .چه ووچه نشي.خلاصه دا چه د اتباع سنت،حب رسول، زهدفي الدنيا ، په اعتبار سره د دوی نظیرډیر کم وو.

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په عبادله اربعه کښے یو دے.دغه شان په هغه شپږ مکثرینو صحابوو رضي الله عنهم کښے دے.(۳) دکومو نه چه د ټولو نه زیات روایات مروی دی.دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه ټول دوه زره،شپږ سوه اودیرش احادیث مروی دی.په دے کښے متفق علیه یوسل اویا اویواتیا کښے بخاری منفر دے.اومسلم صرف په مسلم کښے یودیرشت دی.

(۱) عمدة القاری(۱۱۸/۱) وتقریب التهذیب (ص۱۸۳۰)۔

(۲) عمدة القاری(۱۱۸/۱) وفتح الباری(۴۹/۱)۔

(۳) دمکثرینوتفصیل هم وړندے د بدء الوحي په څلورم حدیث کښے دحضرت عائشے رضی الله عنها په تذکره کښے تیر شوے دے.فارجع إليه إن شئت)۔

په مكه مكرمه كښې دحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه د شهادت نه درے يا شپږ مياشتے پس په ٧٣هـ كښې وفات شو.په مقام محصب يا فخ كښې دفن كړے شو.(١)

**قوله**: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ: رسول الله ﷺ فرمائي.اسلام په پنځو ستونو ولاړ دے.يو ددے خبرے ګواهي چه دالله تعالى نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته اوداچه محمد ﷺ دالله تعالى رسول دے. دويم مونځ قائمول،دريم د زكواة وركول،څلورم حج اوپنځم د رمضان د روژو نيول.

**قوله**: بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ: دلته كښې يواشكال دا دے.چه اركان اربعه په حقيقت كښې مبني دي.اوشهادتين مبني عليه دے.ځكه چه د شهادتين نه بغيرد باقي اركان اربعه څه حقيقت نشته. نو سوال دا دے.چه مبني اومبني عليه دواړه ئے د يو مسمى لاندے څنګه جمع كړل . يعني مبني او مبني عليه ټولو ته اسلام څنګه اووئيلے شو؟

ددے جواب دا دے.چه دا ممكن ده.چه يوڅيزپه بل څيزمبني وي.اوبيا په دے دواړو باندے يوبل څيزمبني وي.دلته اعمال اربعه په شهادتين منبى دي.اود دواړو په مجموعة باندے اسلام مبني دے.يعني د اسلام وجود ددے پنځو په وجود باندے دے.

دويم اشكال دا دے.چه په مبني اومبني عليه كښې مغايرت وي.حالانكه دلته چه كوم اركان خمسه دي.هم دا اسلام دے.نوبيا اسلام مبني على الاركان الخمسه څنګه ګرځولے شي؟

ددے جواب دا دے.چه دلته د جزء اوكل مغايرت دے.د اركان خمسه خانله خانله افراد د مجموعے نه مغاير دي.صرف شهادتين مجموعه خمسه يا اسلام نه دے.دغه شان صرف صلاة مجموعه خمسه نه ده.

**قوله**: شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ:په ،،شهادة،، باندے درے واړه اعرابات جائز دي.كه مجرور وي.نود ،،خمس،، نه بدل دے.اوكه منصوب وي.نود فعل محذوف مفعول دے.لكه ،،اعني،، اوكه مرفوع وي.نوبياخودا د مبتدا محذوف دپاره خبردے.«أي أحدها شهادة...» اويا دخبر محذوف دپاره مبتدا ده.«أي منها شهادة...»

**قوله**: وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ:د توحيد اؤرسالت شهادت دټولو ديني عقائدو دپاره عَلم دے. په كوم ځائے كښې چه په شهادت وغيره باندے د نجات ترتب ذكردے.نودهغے نه مراد ټول عقائد دينيه دي.اومطلب دا دے.چه كوم كس په امور معتبره في الايمان باندے ايمان راوړي. هغه به ناجي وي.نودغه شان دلته هم صرف شهادتين مراد نه دي.بلكه هغه ټول

(١)ددوى دحالاتودپاره اوګورئ (تهذيب الأسماء واللغات(١/٢٧٨، ٢٨١) عمدة القارى(١/١١٦) وتذكرة الحفاظ (١/٣٧، ٤٠) وسير أعلام النبلاء (٣/٢٠٣، ٢٣٩)_

امور مراد دي.د کومو چه په ايمان کښې يقين او اعتقاد کول ضروري وي.

**قوله: وَإِقَامِ الصَّلَاةِ**: د ..اقامت صلاة.. معنی ده.مونځ په هر جهت او هر حيثيت سره ټيک کول.په دے کښې د مونځ فرائض.واجبات.سنن .مستحبات او بيا په دے باندے دوام او ددے التزام دا ټول امور د اقامت دين په مفهوم کښې داخل دي.

**قوله: وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ**: په دے کښې د ..صوم.. اضافت ..رمضان..طرف ته شوے دے.او ..رمضان.. بغير د .شهر.. نه استعمال شوے دے.په دے کښې اختلاف دے.چه د رمضان سره د ..شهر.. لفظ استعمالول ضروري دي او که نه؟

دجمهورو عالمانو رحمهم الله په نيزد ..شهر.. نه بغير د ..رمضان.. تلفظ صحيح دے.

دبعضے عالمانو رحمهم الله په نيز بغيرد ..شهر.. نه د ..رمضان.. ونيل مکروه دي.څکه چه ابن عدي حديث نقل کړے دے.چه «**لاتقولوا رمضان فإن رمضان من أسماء الله تعالى ولكن قولوا شهر رمضان**»(۱)

دځه حضراتو وينا ده.که څه قرينه وي.چه دهغے نه معلوميږي.چه د رمضان نه مراد هم مياشت ده.نو جائز ګني مکروه دے.حديث باب اونور حديثونه د جمهورو تائيد کوي.(۲) والله اعلم.

**دحديث په الفاظو کښې تقديم او تاخير**. ددے نه پس په دے پوهه شئ.چه ددے حديث په الفاظو کښې څه اختلاف دے.

په بخاري کښې په دے مقام کښې حج په صوم باندے مقدم کړے شوے دے.امام مسلم رحمه الله دا په خپل صحيح کښې په څلورو سندونو باندے ذکر کړے دے.په اول او څلورم سند کښې ئے صوم په حج باندے مقدم کړے دے.او په دويم او دريم سند کښې ئے حج په صوم باندے مقدم کړے دے.(۳)

دامام بخاري رحمه الله په نيز چه کوم دتقديم الحج على الصوم روايت دے.دبخاري ترتيب هم ددے موافق دے.څکه چه دزکاة نه د فراغت نه پس ئے کتاب المناسك راوړے دے.او دهغے د فراغت نه پس ئے کتاب الصوم راوړے دے.

بيا په مستخرج ابي عوانه کښې هم دا روايت مروي دے.په هغے کښې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائي.«اجعل صيام رمضان آخرهن كما سمعت»(۴)

---

(۱) الکامل لابن عدی (۵۳/۷) ترجمة نجيح أبي معشر المدينی السندی مولی بنی هاشم)_

(۲) د تفصيل دپاره اوګورئ أوجز المسالک (۵/۶ ۷) کتاب الصيام باب ماجآء فی رؤية الهلال والفطر فی رمضان)_

(۳) صحيح مسلم کتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام ودعائمه العظام)_

(۴) عمدة القاري (۱۲۱/۱)_

بهرحال دلته دا شبه پيدا شوه چه رسول الله ﷺ حج په صوم باندے مقدم کړے دے يا ددے په عکس
ددے جواب داسے خو آسان دے چه مونږ په دے کښے يوروايت په ..روايت بالمعنى.. باندے حمل کړو خکه چه روايت بالمعنى دجمهورو په نيزتيك دے
خودلته يواشكال دا هم شوے دے چه د مسلم په يوسند كښے دا راغلى دى چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه چه كله دا حديث بيان كړلو.نووے فرمائيل«وصيام رمضان والحج» ددوى په سامعينو كښے يوكس يزيد بن بشرسكسكى حديث تير كړل او وے وئيل«الحج وصيام رمضان» نو دوى اوفرمائيل«لا،صيام رمضان والحج، هذا سمعته من رسول الله ﷺ»(١)نومعلومه شوه چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه بتقديم الصوم على الحج اوريدلى دى.
بعضے حضراتو دلته كښے هم هغه د روايت بالمعنى قول اختيار كړے دے.اووئيلے ئے دى چه دمسلم هغه روايت اصل دے.چه په هغے كښے صوم رمضان په حج باندے مقدم شوے دے.اوپه بخارى كښے يوراوى تقديم اوتاخير كړے دے.هغه ته د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نهى معلومه نه وه.( )
امام نووى رحمه الله فرمائى.دلته دوه احتمالات اظهر دى.يودا چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا روايت د نبى ﷺ نه دوه خله اوريدلے وى.يوخل د تقديم الحج على الصوم او په بل خل تقديم الصوم على الحج اوريدلے دے.دوى په مختلفو وختونوكښے په دواړو طريقو سره دا روايت اوړولے دے.كله چه هغه سرى فتح وركړله. نوحضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه منع كړلو.چه ته په داسے خبره باندے ولے فتح راكوے.چه دهغے تاته كما حقه علم اوتحقيق نشته.ما د رسول الله ﷺ نه هم داسے اوريدلے دے.څنګه چه ما بيان كړلو.ددوى په دے روايت كښے د نورو الفاظو نفى ده.
دويم احتمال دا دے.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه په دواړو طريقو دا روايت د نبى ﷺ نه اوريدلے وى.اوهم دغه شان ئے روايت كولو.خوچه كله هغه كس فتح وركړله.نودهغوى نه هغه صورت هير شوے وى.دكوم چه هغه ترديد اوكړلو.نوځكه هغوى ..لا.. اووئيل.اودهغے ترديد ئے اوكړلو.(٣)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د بخارى روايت، په روايت بالمعنى باندے محمول دے. يا خو راوى د تعدد مجلس په وجه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه واؤ نه ريدل.يا مجلس ته خوحاضر شوے وو.خوهير شوى وو ترے.(٤)

(١) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام ودعائمه العظام رقم(١٢٠)_
(٢) شرح نووى على صحيح مسلم (٣٢/١) كتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام)_
(٣) پورتنئ حواله)_
(٤)فتح البارى(٥٠/١)_

حافظ رحمه الله فرمائي.چه امام نووي رحمه الله دنسيان كوم احتمال صحابي رضي الله عنه ته منسوب كولو رجحان ښكاره كړے دے.دا صحيح نه دے.بلكه احتمال د نسيان راوي طرف ته منسوب كول مناسب دى.«تطرق النسيان إلى الراوى عن الصحابي أولى من تطرقه إلى الصحابي» بيا خاص كرچه امام بخاري رحمه الله دحنظله په سند سره دلته روايت كړے دے.هم ددے حنظله نه په مسلم كښے بالعكس روايت نقل دے.بيا هم دا حنظله په مسند ابى عوانه كښے په يو بل انداز سره د تقديم الصوم على الحج روايت نقل كوى.لكه مونږ چه ئے وړاندے الفاظ ذكركړل.دا تنويع په دے خبره دلالت كوى.چه دوى روايت بالمعنى كړے دے.دلته دا نشي وئيلے.چه صحابي رضي الله عنه په درے طريقو سره دا حديث اوريدلے دے.خكه چه دا خبره بعيده ده.(١)

په دے جوابونو خودا اشكال ختميږى.البته دا اشكال پيدا كيږى.چه په بخاري شريف كښے روايت بالمعنى منل د بخاري رحمه الله دشان سره موافق نه دى.خكه چه امام بخاري رحمه الله خپل روايت اصل گرخولے دے.اود كتابونو ترتيب ئے هم دا كيخودے دے.

نوددے جواب به دا وركولے شى.چه دلته روايت بالمعنى نه دے.بلكه دامام نووي رحمه الله په بيان كړى دوو صورتونوكښے اولنے صورت دے.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا روايت د نبي ﷺ نه په دواړو طريقو سره اوريدلے وو.اوهغه به دواړه قسمه روايات كول.يوخل چه هغوى بتقديم الصوم روايت اوكړلو.نويو كس ورته فتح وركړله.چه تاسو بتقديم الحج روايت كوئ.نوپه هغه باندے دوى رد اوكړلو.چه زه څنگه اوروم كوم.صحيح اورول كوم.ما د رسول الله ﷺ نه هم داسے اوريدلى دى.

ددے نه د دويم صورت نفى خكه نه كيږى.چه «هكذا سمعته من رسول الله ﷺ» مطلب دا نه دے.چه ما د رسول الله ﷺ نه هم دا اوريدلى دى.اودا هم داسے دے.لكه څنگه چه په حديث كښے دحضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه قصه راغلے ده.چه هغوى دحضرت هشام بن حكيم بن حزام سره خواه كښے تيرشو.هغه په مونځ كښے سورة فرقان لوستلو.حضرت عمر رضي الله عنه ته دهغه قراءت اجنبى محسوس شو.خكه چه هغه څنگه قراءت كولو.حضرت عمر رضي الله عنه د نبي ﷺ نه هغه شان نه وو اوريدلے.دمانخه نه پس هغه حضرت هشام لاس نيولے نبي ﷺ ته بوتلو.اوقصه ئے ورته بيان كړه.نبي ﷺ اول د هشام نه سورة واوريدلو.اووے فرمائيل.«هكذا أنزلت»(٢) دُ دويم قراءت نفى ئے اونكړله.دغه شان چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائل.چه «هكذا سمعته..» ددے نه د دويم روايت نفى نه كيږى.والله اعلم.

حافظ ابن صلاح رحمه الله دلته دحضرت ابن عمر رضي الله عنه د رد كولونه ددے خبرے ثابتولو كوشش هم كړے دے.چه ،،واو،، دترتيب دپاره استعماليږى.(٣)

---

(١) فتح البارى(١/٥٠)_

(٢) دپوره واقعه دتفصيل دپاره اوگورئ جامع ترمذى كتاب القراءت باب ماجاء أنزل القرآن على سبعة أحرف)_

(٣) شرح نووى على صحيح مسلم (١/٣٢)كتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام ودعائمه العظام)_

خودا خبره تپلئ نه ده.اول خو د جمهور په نيز..واو.. په ترتيب باندے دلالت نه کوى.دويمه دا ممكن ده چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د نبى ﷺ د الفاظو د خيال ساتلو د وجے ترديد اوكړلو.اګرچه روايت بالمعنى جائز دے.خوبعينه په دے ترتيب باندے ساتل غوره دى.اودا هم داسے دے.چه نبى ﷺ سعى كوله .نو وے فرمائل .«نبدأ بما بدأ الله به»(۱) اوبيا نبى ﷺ د صفا نه سعى شروع كړه.خكه چه آيت ﴿إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللَّهِ﴾(۲)كښے د ..صفا.. ذكر مقدم دے.نونبى ﷺ ددے ذكر مقدم كيدو رعايت اوكړلو.او د سعى ابتداء ئے د صفا نه اوكړله.دلته كښے هم حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دنبى ﷺ د الفاظودترتيب رعايت كولو.اود دويم صورت ترديد ئے اوكړلو ددے وجے نه چه ..واو.. په ترتيب باندے دلالت كوى.والله اعلم.

**د ايمان او اعمال بليغ تشبيه** بيا پوهه شئ.چه نبى ﷺ د دےحديث په مختصرو الفاظو كښے يوه اهمه خبره اوخودله.اودا ئے بيان كړل.چه په اسلام كښے بنيادى طور تصديق ته دټولونه زيات اهميت حاصل دے.ددے نه پس داعمالو نمبر دے.نبى اكرم ﷺ ددے اهميت اونوعيت طرف ته د اشارے دپاره يومثال وركړلو.چه داسے اوګنړئ چه يوه خيمه وى.اوخيمه په خپل عمود (ستن) او اطناب (ګيرچاپيره پړى) باندے ولاړه وى.دغه شان د ايمان د آسمان هومره د اوچت عمارت مثال دے. چه په دے كښے دننه اصل بنياد شهادتين دى.اوددے نه پس بيا داعمالو درجه ده.لكه څنګه چه بنياد په نظر سره نه راځى.دغه شان تصديق باطنى په قلب كښے د دننه كيدو د وجے په نظرنه راځى.اوس دا اعمال اربعه په كومه درجه كښے دى.اوددے نوعيت څه دے؟ددے په باره كښے صراحة خونشى وئيلے.خوداحاديثو دمطالعے نه دا معلوميږى.چه په دے كښے دټولونه زيات اهميت مونځ ته حاصل دے.بعضے عارفينو ﷺ دابيان كړے دے.چه په دے څلوروعباداتو كښے دوه اصل دى.اودوه تابع دى.صلاة اصل دے. او زكاة تابع دے.اوحج اصل دے صوم تابع ده.

ددے د پوهيدلو دپاره دا زده كړئ.چه ټول عبادتونه ددے دپاره مقرر شوى دى.چه بنده دخپل خالق بندګى اوكړى.اود خالق دوه قسمه شان دے.يود سلطنت عظمت اوملوكيت شان دے.اودويم ئے جمالى يعنى د محبوبيت شان دے.چه څومره عبادات دى.په هغے كښے دا دواړه قسمه شانونه ځليږى.په هرعبادت كښے دالله تعالى دعظمت اومحبت خيال ساتلے شوے دے. خوپه بعضے عباداتو كښے شان عظمت اودهغه شان محبت غالب دے.او په بعضو عبادتونو كښے ملوكيت غالب دے.يعنى دالله تعالى د شان سلطنت ظهور زيات وى.اوپه بعضو كښے دشان محبت ظهور زيات وى.په صلاة اوزكواة كښے د شان سلطنت زيات ظهور دے.اوپه حج اوصوم كښے د شان محبت زيات ظهوردے

مونځ څه څيزدے؟ لكه چه په يودربار كښے حاضرى ده.سركارى اعلان كونكى اعلان اوكړلو.

---

(۱) الحديث أخرجه مالك فى الموطأ عن جابر رضي الله عنه فى كتاب الحج باب البدء بالصفا فى السعى وأخرجه مسلم فى الحديث الطويل فى صفة حجة النبى ﷺ انظر كتاب الحج باب حجة النبى ﷺ )_

(۲) سورة البقرة:۱۵۸)_

ــمدستي تياري اوشوه.پاك صفا شي.اودربار ته حاضر شي.

اوزكاة څه څيز دے؟د زكواة مثال داسے دی لكه چه د شاهي دربار نه سرى ته انعام ملاويږي. اود بادشاه دطرفه داحكم هم كيږي چه كله بهر ته اوځي.اود دربار نه بهرفقيران اومسكينان ويني.نوهغوى ته څه وركوي.

اوپه حج اوصوم كښے د شان محبوبيت ظهور زيات وي.ځكه چه د محبت ميوه خوراك څكاك. اوخوب پريخودل.اود محبوب لارو كوڅو كښے ګشت كول دي.چه كله د چا په سر كښے د عشق سودا وی.نودتولو نه وړاندے هغه خوراك څكاك پريږدي اوبيا ئے خوب ختم شي.اوپه آخره كښے داسے اوشي.چه هغه دځپل محبوب د لارو كوڅو چكرونه لګول شروع كړي الله تعالى دځپل محبوبيت د اظهار دپاره روژه فرض كړه.نوخوراك څكاك پريږده.اود شپے تروايح كوه.اوكله چه په انسان كښے د عشق څه خوند ملاؤ شو نوددے نه وړاندے مرحله راغله.اوحج فرض شو.ددےوجے د روژو نه پس د حج مياشتے وي.

بهرحال دالله تعالى چه څومره عبادتونه دي.په ټولو كښے دالله تعالى شان سلطنت وعظمت او شان جمال ومحبوبيت په نظرراځي.خوپه څه كښے كم او په څه زيات. (١)

ما دا عرض كولو.چه په دے اركانو كښے كوم ركن ته اهميت حاصل دے.هغه ددے تقرير نه په پوهه كښے راځي.چه مونځ اصل اوزكواة تابع دے.دغه شان حج اصل اوروژه تابع ده.بنكاره ده چه صلاة ته به په زكواة ترجيح حاصل وي.اوحج ته په صوم باندے ترجيح حاصل وي.

باقي پاتے شو مونځ اوحج.چه په دے كښے د نبي ﷺ فيصله وړاندے كيخودے شي . چه نبي ﷺ فرمائيلي دي.د قيامت په ورځ به دټولو نه وړاندے د بنده نه د مونځ په باره كښے تپوس كيږي. (٢)دا ددے خبرے دليل دے.چه مونځ د ټولو نه اهم دے.ځكه چه ددے په باره كښے به دټولو نه وړاندے تپوس كيږي. والله سبحانه اعلم

بهرحال نبي ﷺ په دے حديث كښے د اسلام تشبيه دهغه خيمۀ سره وركړے ده.چه په هغے كښے يوعمود اوڅلور اطناب وي.عمود په مينځ كښے وي.هغه ستن ده چه په هغے باندے خيمه ولاړه وي.اوڅلوراطناب څلور پړي دي.

په دے تشبيه كښے مقصد دا دے.چه لكه څنګه په يوه خيمه كښے عمود ولاړ وي نو خيمه به قائمه وي.اوكه عمود په زمكه راپريځوی.نوهغه خيمه به هم په زمكه دننه خوره شي.اوبے مصرفه اوبے استعماله به شي.نه په هغے سره دګرمۍ نه حفاظت ملاويږي.اونه د يخنۍ نه بچ كيدل.هم دغه شان په اسلام كښے د «شهادة أن لااله الاالله وأن محمداً رسول الله» حيثيت د عمود

---

(١) فتح الملهم(١/٥١٨، ٥١٩)_

(٢) سنن نسائی (١/٨١)كتاب الصلاة باب المحاسبة على الصلوات جامع ترمذی أبواب الصلاة باب ماجآء أن أول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلاة رقم.٤١٣) سنن ابوداود كتاب الصلاة باب قول النبي ﷺ كل صلاة لايتمها صاحبها تتم من تطوعه رقم (٨٦٦، ٨٦٤) سنن ابن ماجه كتاب إقامة الصلاة باب أول ماجآء فی أول ما يحاسب به العبد الصلاة:رقم(١٤٢٥، ١٤٢٦)_

دے.ترځوچه دا شهادت موجود وی .نواسلام به موجود وی.اوکه دا شهادت موجود نه وی.نوکه مونځ روژه،حج اوزکواة ټول موجود وی.ددے څه اعتبار نشته.لکه څنګه چه په خیمه کښے عمود نه وی.اوڅلور واړه رسۍ په میخونو پورے تړلے شوے وی.نوخیمه په زمکه پرته وی.اودریدے نشی.اوددے نه فائده نشی اخستے.هم په دے طریقه که شهادت نه وی.نود باقی ارکانو څه فائده نشته.په آخرت کښے د «نجاة من الخلود فی النار» حقیقی فائده په شهادت باندے موقوف ده.

بیا دغه شان که په خیمه کښے رسۍ د یومیخ نه پرانستے شی.نوبل طرفه خیمه سسته شی.اوزوړنده شی.اودا د کمزورۍ نښه ده.دغه شان که شهادت موجود وی.خو مونځ نه وی.نوداسلام خیمه به هم ددغه طرفه سسته شی.که د بل طرف نه ته رسۍ پرانیځې.نودهغه طرف نه به هم سسته شی.دغه شان که ته د مونځ سره روژه هم پریږدے.نودبل طرف نه به هم اسلام کمزورے شی.

بهرحال خلاصه دا چه دشهادت حیثیت دعمود دے.اود باقی څلورو ارکانونه د فائدے اخستلو دپاره د عمود قائم کیدل ضروری دی.اودا چه رسۍ د اوموږو سره تړل پکاردی.که په رسوکښے بعضے یا ټولے سستے شی.نوپه خیمه کښے دننه کمزوری راځی.

دغه شان شهادت که وی.اوپه ارکان اربعه کښے ټول یا بعضے پریخودے شی.نوپه اسلام کښے به هم کمزوری راځی.

**حضرت حسن بصری رحمه الله اومشهورشاعرفرزدق:** روایت دے.چه حضرت حسن بصری رحمه الله او فرزدق په یوه جنازه کښے جمع شول . نوحضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل. «ما اعددت لمثل هذه الحالة؟» تاددے حالت دپاره څه تیارے کړے دے؟فرزدق اوونیل.«شهادة أن لا إله إلا الله» حضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل.«هذا العمود فأين الأطناب»دا خو عمود دے.اطناب څه شو؟دخیمے نه د پوره فائدے اخستلودپاره د عمود سره سره د اطناب هم ضرورت وی.دهغے هم اهتمام کول پکار دی؟[1]

بهرحال ددے بلیغ تشبیه نه د شهادت حیثیت واضح شو.چه دا اساس اوبنیاد دے.اود باقی ارکانو حال هم معلوم شو.چه ددے حیثیت دشهادتینو پشان خو نه دے.خوچه په دے کښے یوهم پاتے شی.نوداسلام په عمارت کښے کمزوری راځی.اودا به مکمل نه وی.

په دے کښے د مرجئو هم رد دے.چه دوی اعمال ضروری نه ګڼړی.که په خیمه کښے د عمود سره اطناب ضروری دی.نوشهادت سره باقی ارکان هم ضروری دی. دا غیرضروری نشی ګرځولے.

(۱) شرح کرمانی(۱/۸۰)۔

**یواشکال اودهغې جواب:** دلته یواشکال دے.هغه دا چه داسلام خو نور هم ډیرارکان دی. دجهاد حکم دے. د حقوقوسره متعلق نوره یرفرائض دی.دهغې ذکرنشته.صرف د پنځه څیزونو په ذکر سره اکتفاء شوے ده؟

ددے جواب دا دے.چه په دے پنځو څیزونو څکه اکتفاء شوے ده.چه دا مشهور دی.

بعضے حضرات فرمائی.چه عبادات به یاقولی وی یا غیرقولی.شهادتین قولی دی. او غیر قولی به یاترکی وی لکه روژه اویابه وجودی وی.بیا وجودی به یا بدنیه وی.یا مالیه یا مرکبه من البدن والمال دلته کښې دهریوپه بعضے مثالونو باندے اکتفاء اوکړے شوه.په پنځو کښې حصر مقصود نه دے.

داسے هم ونیلی شی.چه عبادات به یا د قلب سره متعلق وی یا نه. داولنی صورت مصداق شهادتین دی.اوکه متعلق بالقلب نه وی.نوبیا دوه صورتونه دی.یا به ایجابی وی یا به سلبی وی.دسلبی مصداق روژے دی.اوکه ایجابی وی.نوبیا به دا یا متعلق بالبدن وی یا متعلق بالمال یا متعلق بالبدن والمال جمیعاً وی.متعلق بالبدن مونځ شو.بال زکواة شو.اودبالبدن والمال جمیعاً مصداق حج شو.دلته د مثال په طور یو یو څیز ذکر کړے شو.

یوه توجیه هم هغه ده.کومه چه وړاندے تیره شوے ده.چه په «لا إله إلا الله محمد رسول الله» کښې دالله تعالی حاکمیت،توحیداو د رسول الله ﷺ د رسالت اقرار دے.اودالله تعالی دوه قسمه شوون دی.یوشان حاکمیت اوبل شان محبوبیت،دشان حاکمیت ظهور په مونځ اوزکواة کښې اوشو.اودشان محبوبیت اظهارپه روژه اوحج کښې اوشو.په دے پنځوکښې حصرمقصودنه دے.**یوه نکته:** علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.چه علامه انورشاه کشمیری رحمه الله د مذاکره په دوران کښې یومضمون ذکر کړے دے.چه په کوم ځائے کښې د شهادت عنوان سره د توحید ذکر وی.نودے سره به هلته د رسالت ذکر هم وی.په حدیث الباب کښې هم دا صورت دے.اوپه کوم ځائے کښې چه د شهادتین عنوان نه وی.نوهلته عام طور داسے کیږی.چه صرف دتوحید په ذکر باندے اکتفاء کولے شی.د رسالت ذکر نه وی.لکه دنبی ﷺ ارشاد گرامی دے «من کان آخر کلامه لا إله إلا الله دخل الجنة» (۱) او «لقنوا موتاکم قول لا إله إلا الله» (۲) دغه شان «أفضل الذکر لا إله الا الله» (۳)

(۱) سنن أبي داود کتاب الجنائزباب في التلقين رقم(۳۱۱۶)_

(۲) دپورتنی حواله حدیث نمبر(۳۱۱۷)_

(۳) سنن ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء أن دعوة المظلوم مستجابة رقم (۳۳۸۳)_

حضرت کشمیری رحمه الله ددے فرق نکته دا بیان کړے دہ.چه دشهادت نه مقصد د زړه د عقیده اوایمان اظهارکول دی.په «لااله الا الله» کښے دوه احتمالات دی.کله خوددے په وئیلو کښے دعقیدهٔ اظهارمقصود وی اوکله دعقیده اظهارنه وی صرف ذکر مقصود وی.په خلاف د «محمد رسول الله» په دے کښے صرف اظهار د عقیدهٔ مقصود وی.چاهم دا په ذکر کښے نه ده شمار کړے چونکه د شهادت په عنوان سره دعقیدهٔ بیان کیږی.نوځکه ددے سره د نبی ﷺ رسالت هم ذکر کوی.اود شهادت دعنوان نه بغیرذکر هم مقصود وی.نوځکه د رسالت د یادولو نه بغیر صرف په توحید باندے اکتفاء کولے شی.(۱)

تنبیه دلته کښے لږ غوندے اشکال پیدا کیږی.چه «محمد رسول الله» هرکله په ذکر کښے داخل نه دے.نوصوفیائے کرام رحمهم الله ددے تلقین ولے کوی؟

ددے جواب دادے.چه ذکر کونکو ته چه د «لااله الا الله» سره د «محمد رسول الله» یوځائے کولو کوم تلقین کولے شی.دا ددے وجے نهٔ چه دا د دویم د ذکر حصه ده . بلکه ددے وجے چه هسے نه د «لااله الا الله» په کثرت تکرار اوپه دے کښے د مشغولتیا په وجه دے د رسالت دعقیدهٔ نه غفلت اوکړی.اوپه دے کښے څه قسم کمزوری راشی.نوځکه وئیلی شی.چه د«لااله الا الله» سره دا هم په مینځ مینځ کښے وئیلی شی.

**حافظ ابن تیمیه رحمه الله اوذکرمفرد** حافظ ابن تیمیه رحمه الله دیرلوئے شخصیت وو اودیرربانی بزرګ وو.هغوی د ..الله ،الله.. ذکر مفرد په سختئ سره انکار کړے دے اوفرمائیلے ئے دی. چه دا ذکر بدعت دے.ځکه چه دا علم دے.اود علم په باربار وئیلو کښے څه فائده نشته.ذکر پکار دے چه .سبحان الله.. وی چه په دے کښے دالله تعالی تقدیس بیان شوے دے. ..الحمدلله.. وی.چه په دے کښے دالله تعالی حمد اوثنا بیان شوے ده...لااله الا الله، چه په دے کښے د الله تعالی د توحید بیان دے.صرف ،الله الله.. وئیل دا یے مقصوده اوبے فائدے دی خو ددوی دا خبره ډیره کمزورے ده.اودهغوی دشان سره مناسب نه ده.ځکه چه دا کتل دی چه په ذکر کولو کښے دچا فائده مقصود ده.بنکاره ده.چه دالله تعالی په کښے څه فائده نشته.ځکه که یو کس ،،سبحان الله سبحان الله.،وائی.نودالله په شان تقدیس کښے څه اضافه نه راځی.دغه شان د «لااله الله» په وئیلو سره دالله تعالی په صفت وحدانیت کښے څه اضافه نه راځی.البته ذکرکونکی ته په دے باندے فائده ملاویږی.چه د ،،سبحان الله،، په تکرار سره دده په زړه کښے د الله تعالی شان قدوسیت راسخ کیږی.دغه شان په تحمید

---

(۱) درس بخاری(۱۴۲/۱) وفضل الباری(۲۹۹/۱، ۳۰۱)۔

اوتقدیس سره دالله تعالی محمودیت اووحدانیت په زړه کښې راسخ کیږی.بعینه هم دا فائده په..الله الله.. ذکرمفرد باندے هم مرتب کیږی.په دے سره د سړی په زړه کښے دالله تعالی د صفات کمالیه استحضار اورسوخ راځی.څکه چه ..الله.. د «ذات واجب الوجود مستجمع لجمیع صفات الکمال» دپاره علم گرځولے شوے دے.ښکاره چه د ..الله الله.. په تکرار سره به ددے ذات اودده د صفاتو استحضار راځی اودا به په زړه کښے راسخ کیږی.لکه چه کوم فوائد په نورو ذکرونو کښے دی.نوپه دے کښے هم شته.

بیا ددے نه علاوه دے ته بدعت ونیل څنګه ټیك کیدے شی.حالانکه په حدیث کښے دی.

«لاتقوم الساعة حتی لایقال فی الله: الله الله»(۱)

دا خبره دے ښکاره وی.چه د ذکرمفرد په جواز باندے آیت قرآنی ﴿قُلِ اللّٰهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ﴾(۲) سره استدلال کولے شی.چه دلته صرف ..الله.. موجود دے.خودا استدلال کمزورے دے.څکه چه دا د سوال جواب دے.دلته ..الله..مفرد مراد نه دے.بلکه د ماقبل سره دملا وهلو نه پس به دا مرکب کیږی.(۳) والله اعلم.

**دامام بخاری رحمه الله مقصد** امام بخاری رحمه الله ددے حدیث په راوړلو کښے دا ښائی.چه ایمان مرکب دے.اوچه کوم څیزمرکب وی.هغه قابل د نقصان اوزیادت وی.دامام بخاری رحمه الله مقصد هم دا ښکاره کوی.چه ایمان د پنځو څیزونو نه مرکب دے.چونکه دا پنځه څیزونه په هرکس کښے مکمل نه وی.څوك په مونځ کښے کوتاهی کوی.څوك د زکواة په ادا کولو کښے اوڅه خلق دحج اوروژے په ادا کولو کښے سستی کوی.دا ټولے داسلام علامات دی.په دے کښے دتفاوت په اعتبارسره د ایمان په مراتبو کښے هم فرق راځی.امام بخاری رحمه الله خپله مدعی داسے ثابتوی.چه داعمالو کمے زیاتے د ایمان په کمی زیاتی باندے دلالت کوی.

ددے جواب دا دے.چه احناف رحمهم الله د ایمان دترکیب او ددے د زیادت اونقصان نه مطلقاً منکر نه دی.هغوی هم دا منی.البته دوی اعمال د کامل ایمان جزء ګڼړی.نوڅه اختلاف پاتے نشو.(۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.



(۱) صحیح مسلم (۸۴/۱) کتاب الإیمان باب ذهاب الإیمان آخرالزمان۔

(۲)سورة الأنعام:۹۱)۔

(۳) دتفصیل دپاره اوګورئ (۳۰۰/۱)۔

(۴) فضل الباری(۳۱۳/۱)۔

# ۲=باب امور الایمان

وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ﴾(۱)

**قوله**: وَقَوْلِهٖ ﴿قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ....﴾(۲): په بعضې نسخوکښې د «أمورالإيمان» په ځائې «أمرالدين» دې.په دې صورت کښې به جنس اخستلې شي(۳) په دې کښې درې احتمالات دي.

① يوداچه دا اضافت بيانيه دې.يعني «باب الأمورالتي هي الإيمان» دا دامام بخارى رحمه الله د مدعا مطابق دې.

② دويم صورت دا دې.چه اضافت په معنى د ،،في،، دې.تقديريه دا وي.«باب الأمورالداخلة في الإيمان» دا صورت هم دامام بخارى رحمه الله د مدعا مطابق دې.

③ دريم صورت دادې.چه دا اضافت لاميه دې.اوداسې به وئيلې شي.«باب الأمورالتي هي مكملة للإيمان» په دې صورت کښې دا اعمال د ايمان جزء نه دې . بلکه مکملات دي.اود امام بخارى رحمه الله مدعا ترې نه ثابتيږي.(۴)

**د ترجمة الباب مقصد اود ماقبل سره ربط**: امام بخارى رحمه الله وړاندې اصول بيان کړل.او اوس د فروعو بيانول غواړي.(۵)

دشارحينو رحمهم الله دکلام نه معلوميږي.چه امام بخارى رحمه الله يا خو دا خودل غواړي.چه ايمان يوداسې مکمل څيز دې.چه د ډيرواجزاؤ اوارکانو د يوځائې کيدونه پوره کيږي.اويا دا خودل غواړي.چه ايمان يوحقيقت مرکبه دې.چه ددې ډير اجزاء ترکيبيه دي.چه ددې د يو ځائې کيدو نه پس ددې تحقق کيږي.په اولنى صورت کښې خولکه چه امام بخارى رحمه الله دا اشاره اوکړله.چه دا امور مکملات د ايمان دي .اوپه دويم احتمال دا اشاره ده.چه ددې امورو په وجود سره دايمان د حقيقت وجود راځي.خوامام بخارى رحمه الله چه څه په «أبواب كتاب الإيمان» کښې ذکر کړي دي . د هغې نه معلوميږي.چه اعمال د ايمان مکملات دي.(۶)

---

(۱) البقرة:۱۷۷)_

(۲) المؤمنون:۱)_

(۳) فتح البارى(۵۰/۱)_

(۴) عمدة القارى(۱۲۲/۱)وفتح البارى(۵۰/۱) ولامع الدرارى(۵۴۷/۱، ۵۳۸)_

(۵) فضل البارى(۳۱۳/۱)_

(۶) عمدة القارى(۱۲۲/۱)_

دحضرت گنگوهي رحمه الله نه منقول دي. هغوي فرمائي چه وړاندې دحضرت ابن عمر رضي الله عنه په حديث كښې د پنځو اجزاؤ ذكر وو چاته به دا گمان راتلو چه اركان بس پنځه دي.اوهم پنځه ضروري دي.امام بخاري رحمه الله دا باب راوړلو.اودا خودل غواړي.چه دايمان نور افعال اواعمال هم شته.ايمان په پنځو څيزونو كښې منحصر نه دي.(۱)

دحضرت گنگوهي رحمه الله نه دا هم منقول دي.چه امام بخاري رحمه الله كله دايمان د بساطت اوتركيب دبحث نه فارغ شو.نواوس امام بخاري رحمه الله مقتضيات دايمان بيانوي.اوپه دې خبره تنبيه وركوي.چه د مومن شان دا نه دې.چه د تصديق كولو نه پس به په اعمالو كښې كوتاهي كوي.بلكه اعمال كوم چه د ايمان مقتضيات دي.مؤمن به ددې اعمالو پوره كول غواړي.(۲)

دا هم ممكن ده.چه امام بخاري رحمه الله اول اجمالاً دا اوخودل.چه ايمان د قول اوعمل مجموعه ده.په دې كښې كمې اوزيادت راځي.اوس دلته اجمالي طور د ايمان شعبو ته اشاره كول غواړي.اودا خودل غواړي.چه د ايمان ډيرې شعبې دي.ځكه ئې په دې باب كښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث «الإيمان بضع وسبعون شعبة» ذكر كړې دې.اوددې باب نه پس چه وړاندې كوم بابونه راځي.په هغې كښې ئې د شعب ايمان تفصيل بيان كړې دې.لكه چه اول ئې اجمالاً دا اوخودل.چه دايمان ډيرې شعبې دي.اوبيا په وړاندې بابونو كښې په دغې كښې د بعضو شعبو تفصيل او تعيين كوي.د كومو متعلق چه امام بخاري رحمه الله د «الإيمان بضع وسبعون شعبة» روايت ذكر كړې دې.

يوه خبره تاسو دا هم كولې شئ.چه امام بخاري رحمه الله ددې باب په راوړلو كښې په مرجئو باندې رد كوي.چه تاسو وائي چه طاعت مفيد نه دې.اومعصيت مضر نه دې.حالانكه دايمان سره د ډيرو احكامو اواعمالو تعلق دې.كه دغه احكام او اعمال ادا نكړې شي.نواسلام بيخي نامكمل پاتې كيږي.د اسلام دتكميل دپاره صرف په پنځو څيزونو اكتفا نشي كولې.بلكه ددې نه سوا د نورو فروعو هم ضرورت دې.نو په پنځو باندې هم د مرجئو رد اوشو.اوكله چه نورو امورو ته امام بخاري رحمه الله اشاره اوكړله.نو دا مزيد رد شو.(۳)

دلته كښې امام بخاري رحمه الله دخپل مقصد دپاره دوه آياتونه ذكر كړل.يو ﴿لَيْسَ الْبِرَّ...الخ﴾ اوبل آيت ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ...الخ﴾

**د آيت دترجمې سره ربط** په دې كښې د اولنى آيت متعلق دحضرت ابوذر رضي الله عنه نه مروى دي.چه دوى د نبي صلى الله عليه وسلم نه د ايمان په باره كښې تپوس اوكړلو.نو نبي صلى الله عليه وسلم په جواب كښې دا آيت اولوستلو.(۴)

---

(۱) تعليقات لامع الدراري(۵۴۶/۱)_

(۲) لامع الدراري(۵۴۹/۱)_

(۳) ايضاح البخاري(۱۷۱/۱)_

(۴) رواه عبدالرزاق –كذا في الفتح (۵۱/۱) قال الحافظ ورجاله ثقات)_

چونكه دا روايت على شرط البخاري نه وو.نوځكه امام بخاري رحمه الله روايت پريخودلو .او په دے باره كښے ئے آيت ذكر كړلو.(١)
خو سوال دا دے چه دا څنګه معلومه شوه.چه دا امور كوم چه په آيت شريفه كښے ذكر دی.دا په ايمان كښے داخل دی؟
ددے جواب دا دے چه په آيت كښے ونيلے شوی دی.
﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ﴾ دلته كښے ﴿الْمُتَّقُونَ﴾ نه مراد «المتقون من الشرك والمعاصي والأعمال السيئة» دی.اود شرك اومعاصی نه بچ كيدونكی مومنان دی.نومومن داسے كس ته وائي.څوك چه د پورتنو اوصافو مالك وی.نومعلومه شوه.چه په ايمان كښے دا څيزونه داخل دی.(٢)
دغه شان په دويم آيت كښے خو صراحةً د مؤمن صفات شمارلے شوی دی.لكه چه د دواړو آياتونو د «باب أمور الإيمان» ترجمے سره پوره ربط دے.
**د آياتونو په ترتيب كښې نكته:** دلته تاسو ګورئ چه په دے كښے اولنے آيت د سورة بقره دے او دويم آيت د سورة مؤمنون دے.د «باب أمور الإيمان» د ترجمے تقاضا دا وه.چه ترتيب برعكس وو . ځكه چه د امام بخاري رحمه الله مدعا دا ده.چه ايمان د اعمالو نه مركب دے.په دے مدعا او مقصد باندے دلالت كولو دپاره ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ آيت زيات واضح دے ځكه چه په دے كښے د مؤمنون لفظ موجود دے.ددے نه پس د ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾..إلخ﴾ په ذريعه د مومنانو صفات شمارلے شوی دی.دا صفات كاشفه دی.كوم چه دا ښائی.چه دا اعمال په ايمان كښے داخل دی.په خلاف د اولنی آيت ځكه چه هلته د ﴿الْبِرَّ﴾ لفظ استعمال شوے دے.هلته كښے ددے تاويل ضرورت دے.چه د ﴿الْبِرَّ﴾ اطلاق په ايمان باندے شوے دے.اوددے نه مراد ايمان دے.ددے باوجود امام بخاري رحمه الله داسے اونكړلو.
ددے وجه هم هغه روايت دے.كوم چه مونږ وړاندے بيان كړلو.چه نبي ﷺ دايمان په تفسير كښے د سورة بقره پورته ذكر شوے آيت تلاوت كړلو لكه چه په دے آيت كښے صراحةً امور ايمان ذكر شوی دی.نوځكه دوی دا آيت مقدم كړلو.(٣)
ددے نه علاوه دا هم ممكن ده.چه په﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ كښے ذكر شوی صفات ،صفات كاشفه نه وی.بلكه مادحه وی.دامام بخاري رحمه الله مدعا د صفات كاشفه په صورت كښے پوره كيدله.د مادحه په صورت كښے به دا د كمال ايمان بيان وو.لكه چه دا كمالات ذكر كولے شی.كوم چه د مؤمنانو دپاره قابل د مدح او تعريف دی.چونكه دا احتمال موجود وو.

(١) فتح الباري(١/٥١)_
(٢) پورتنئ حواله)_
(٣) ارشاد الساري للقسطلاني(١/٩٢)_

نوځکه ئے دا مقدم نکړلو.ددے په مقابله کښے ئے هغه آيت مقدم کړلو.کوم چه د ايمان د تفسير په باره کښے وارد شوے دے.والله اعلم

**تنبيه** تاسو په دے مقام باندے ګورئ چه امام بخارى د ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ نه پس بغير د څه فصل نه ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ آيت ذکر کوى.ددے په باره کښے زده کړئ.چه د اصيلى په نسخه کښے دلته د دواړو آيتونو په مينځ کښے ..واو.. موجود دے.او د ابن عساکر په نسخه کښے ..وقوله.. فصل موجود دے.(١)

په دے مقام باندے حافظ ابن حجر رحمه الله دا احتمال ذکر کړے دے.چه ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ د ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ تفسير دے. شارحينو رحمهم الله ددے ترديد کړے دے.(٢)

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه په دے آيت کښے الله تعالى د ذکر شوى صفاتو د حاملينو ذکر اوکړلو.او دے طرف ته ئے اشاره اوکړله.او د ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ په ذريعه لګه چه دا ښانى.چه ددے صفاتو حاملين بس متقيان دى.اوس دلته داسے کومه يوه خبره پاتے شوے ده.چه دهغے تفسير ته ضرورت وى.بيا دا دعوه د څه حد پورے په هغه وخت کښے ټيک کيدے شوه.چه دواړه آياتونو متصل وو.حالانکه دلته په قرآن کښے ديو آيت نه بلکه د ډيرو سورتونو فاصله ده.نودا تفسير ګرځول ډيره بعيده ده.(٣)

بهرحال په کومو نسخو کښے چه دلته څه فصل نشته.نودهغے په باره کښے مونږ دلته دا وئيلى شو.چه چونکه دا خبره ښکاره ده.چه دا دواړه آيتونه بيخى جدا جدا دى. څه قسم التباس په کښے نشته.نوځکه د څه فاصل ضرورت محسوس نکړے شو.(٤)

## دآياتونو تفسير:

**قوله: ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ...﴾:** کله چه د تحويل قبله حکم راغلو.نوخلقو عجيبه عجيبه خبرے کول شروع کړے.چاوئيل صاحبه ستاسو پيغمبر خوواني.چه زه نبى يم.او د انبياؤ قبله ئے پريخودله.دبنى اسرائيلو پيغمبران د زرګونو په شمارو.اودهغوى قبله بيت المقدس وو .نبى ﷺ بيت المقدس پريخودلو.اوداالله تعالى په حکم ئے بيت الله قبله جوړه کړله.بيا هم هغوى اعتراض اوکړلو.چه دا څنګه پيغمبر دے؟

بعضو وئيل.دده عجيبه حالت دے.دده عدم استقلال ته ګورئ.کله بيت المقدس ته مونځ کوى.اوکله بيت الله طرف ته.دے په يوحال باندے نه پاتے کيږى.

د داسے خلقو په جواب کښے دا آيت نازل شو.اودا په کښے اوخودلى شو.چه ايمان دا نه دے.چه تاسو مشرق طرف ته مخ کړئ يا مغرب طرف ته.بلکه ايمان خودا دے.چه الله تعالى کوم

---

(١) ارشاد السارى للقسطلانى(١/٩٢)_

(٢) پورتنئ حواله)_

(٣) عمدة القارى(١/١٢٣)_

(٤) پورتنئ حواله)_

طرف ته د مخ كولو حكم اوكړى.هغه طرف ته سمدستى مخ كړے شى.اود هغه د حكم سمدستى تعميل اوكړے شى.(١)
دا داسے اوګنړئ چه ديو كس په باره كښےدا معلومه وى.چه دا وفادار دے.دخپل مالك دحكم پوره منل كوى.دده د ژوند مقصد هم دا دے.چه د خپل مالك حكم اومنى.داسے كس يوطرف اوجهت نه پيژنى.بلكه صرف دا خبره پيژنى.چه زما د مالك رضا په كوم څيز كښے ده.ترڅوچه د مالك حكم وو.چه بيت المقدس طرف ته مونځ كوه.نوهغه هم هغه طرف ته مونځ كوى.اوكله چه د مالك حكم راغلو.چه اوس بيت الله طرف ته اوګرځه.نوهغه په دے كښے د څه حكمت پوښتنه نه كوى.او نه د حكم په تعميل كښے توقف كوى.بلكه هغه سمدستى خپل مخ بيت الله طرف ته اړوى.
لكه چه په دے آيت كښے دا حقيقت بيان شوے دے.چه اصلى عبادت او طاعت دالله تعالى حكم پوره كول دى.
په دے باندے په نورو الفاظو كښے داسے پوهه شئ.چه يوصورت د ..بر.. وى.او يو حقيقت د ..بر.. وى.په صورت د ..بر.. كښے كه حقيقت موجود نه وى.نوهغه صورت به بيخى بيكاره وى.كه د ..بر.. حقيقت په كښے راشى.نوهغه به فائده مند وى.
ګورئ منافقان مونځ كوى.په جهاد كښے شركت كوى.دشهادتينو اقرار كوى.ددے باوجود الله تعالى فرمائى. ﴿وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ﴾(٢) دغه شان فرمائى﴿إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾ (٣)
تاسوګورئ چه په دوى كښے صورت صلاة،صورت جهاد وغيره موجود دے. خو چونكه حقيقت ايمان اوتصديق قلبى نشته.نوځكه په دے آياتونوكښے د دوى حقيقت بيان كړے شو.
هم دا صورت حال دټولو كافرانو دے.كوم چه نيك اعمال كوى.خودهغوى دا نيك اعمال فائده مند نه دى.قرآن كريم كښے ارشاد دے.﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍۭ بِقِيْعَةٍ يَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ مَآءً حَتّٰىٓ إِذَا جَآءَهٗ لَمْ يَجِدْهُ شَيْـًٔا﴾(٤)
دكافرانو د اعمالو مثال داسے دے.لكه صحرا او په هموار ميدان كښے چه شګه وى. سړے په دے باندے د لرے نه د اوبو ګمان كوى.خوچه كله هغے ته نزدے ورشى. نو اوبه نه وى.دغه شان ددے خلقو په اعمالو كښے صورت موجود دے. خو حقيقت موجود نه دے.
چه دا خبره زده شوه.نواوس به دا زده كړئ.چه يو وى د استقبال في الصلاة صورت.هغه برابره ده كه بيت المقدس طرف ته وى اوكه بيت الله طرف ته.او يودے د دے حقيقت ،دا حقيقت به په هغه وخت كښے متحقق كيږى.چه ايمان وى.كه يو سړے بيت الله طرف ته مخ

(١) تفسير قرطبى(٢/٢٣٨،٢٣٧)_
(٢) سورة المنافقون:١)_
(٣) سورة النساء:١٤٥)_
(٤) سورة النور:٣٩)

کوي.اودهغه په زړه کښې ایمان نه وي.نوهغه دالله تعالی تابعداري کونکې نه دے.دغه شان که یو سړے بیت الله طرف ته مونځ کوي.اودهغه په زړه کښې ایمان نه وي.نوصورت خو د استقبال دے.خوحقیقت داستقبال نه دے.ځکه چه دعمل حقیقت په ایمان سره متحقق کیږي.

﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّائِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ﴾

دے آیت مبارك دخپل اختصار باوجود پوره شریعت راګیر کړے دے.ځکه چه ټول شریعت په درے قسمونو باندے تقسیم کیدے شي.

① یوصحت اعتقاد .انسان ته د کمال حاصلولو دپاره د ټولو نه وړاندے د خپل خیالاتو اوعقائدو د ټیك کولو ضرورت پیښیږي.که د یو سړي عقیده صحیح نه وي.نوکه هغه هرڅنګه وي.دالله تعالی په زمکه باندے بوج دے.هم د عقائدو تصحیح طرف ته دلته په ﴿وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ﴾ کښې اشاره شوے دے.

② دویم قسم حسن اخلاق ومعاشرت دے. د عقائدو د صحت نه پس انسان ته پکار دي.چه په حسن اخلاق اوحسن معاشرت باندے موصوف شي.په ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّائِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ﴾ کښې د دے حسن اخلاقو بیان دے.

③ دریم قسم تهذیب نفس دے.بیا د دے تهذیب نفس دوه صورتونه دي.

(الف) یوصورت دا دے.چه د بنده تعلق دالله تعالی سره ټیك وي.د تهذیب النفس دے شاخ طرف ته په ﴿وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ﴾ سره اشاره شوے ده.

(ب) دویم صورت دا دے.چه دالله تعالی د بندګانو سره تعلق صحیح وي.دے طرف ته اشاره ده په ﴿وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ﴾ کښې.

بهرحال دا اولنی آیت دے.چه دا ئې راوړلو.نولکه چه امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړي.چه د ..بر.. نه مراد ایمان دے.اود ایمان په تفسیر کښې دا ټول اعمال داخل دي.نومعلومه شوه.چه ایمان مرکب دے.

تاسودا ونیلے شئ.چه په دے آیت کښې په مرجئو باندے رد دے.هغوی دا ګنړي.چه د اعمالو دایمان سره څه تعلق نشته.دلته کښې الله تعالی دایمان سره متعلق ډیر اعمال بیان کړل.دا ټول اعمال د ایمان مکملات دي.دا ټول اعمال د ایمان فروعات او مقتضیات دي.نوبیا د اعمالو په باره کښې دا ونیل څنګه ټیك دي.چه د دے د ایمان سره څه تعلق نشته.دا خبره په ذهن کښې اوساتئ.چه دلته د احنافو رحمهم الله تردید مقصود نه دے.ځکه چه امام بخاري رحمه الله اود احنافو رحمهم الله په مینځ کښې څه فرق نشته.ځکه دنفس ایمان دپاره اعمال هغه هم جزء نه ګنړي.اوموږ هم. په نفس ایمان کښې هغه هم د کمی زیاتی قائل نه دے.اوموږ هم د کمی زیاتی قائلین نه یو.

كه تاسو دا وائے چه د امام بخاری رحمه الله دا احنافو رحمهم الله سره اختلاف خو مشهور دے هم په دے بنیاد هغه په احنافو رحمهم الله باندے رد کوی.نو تاسو په دے صورت کښے دا ونیلے شئ چه دلته دایمان ذکر نشته.بلکه د ،،بر،، ذکر دے.چونکه ،،بر،، دایمان اثر دے.خکه په حدیث کښے د ایمان تفسیر په ،،بر،، سره شوے دے.ددے وجے نه چه ،،بر،، او ،،ایمان،، دواړه مترادف دی.نو دامام بخاری رحمه الله استدلال تیک نه دے.

د دویم آیت ﴿قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ...الخ﴾ په باره کښے مونږ وړاندے بیان کړے دے.چه په دے صفاتو کښے دوه احتمالات دی.یو احتمال دا دے چه دا صفات مادحه دی.په دے صورت کښے به دا صفات د کمال ایمان تعریف وی.او کمال ایمان خو مونږ هم مرکب ګنړو.دویم احتمال دا دے چه دا صفات کاشفه او ګرخولی شی .په دے صورت کښے به بیشکه دا ثابته شی.چه دا خیزونه په ایمان کښے داخل دی .خو تاسو ونیلے شئ چه په دے کښے امام بخاری رحمه الله مقصود په مرجئو باندے رد دے.والله اعلم.

## الحديث التّاسع

[۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوعَامِرٍ الْعَقَدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ(١) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسِتُّونَ شُعْبَةً وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد** رحمه الله: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله بن جعفر بن اليمان بن انس جعفی بخاری مسندی دے.د دوی نسب کښے چه کوم ،،یمان،، دے.دا هم هغه دے.د چا په لاس چه د امام بخاری رحمه الله په نیکونو کښے مغیره اسلام راوړے وو.دا ثقه او حافظ دے.د اصول سته په مصنفینو رحمهم الله کښے صرف بخاری او ترمذی د دوی نه احادیث اخستے دی.په ۲۲۹ﻫ کښے وفات شوی دی.(٢)

دوی ته ،،مسندی،، ولے ونیلے شی؟ددے وجه عالمان لیکی.چه دوی به همیشه د مسند احادیثو په تلاش کښے اوسیدل.مراسیل او منقطعات طرف ته د دوی رغبت نه وو.امام حاکم رحمه الله فرمائی.چه دوی ته ،،مسندی،، ددے وجے ونیلی شی.چه دوی په ماوراء النهر

(١) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الإيمان.باب بيان عدد شعب الإيمان وأفضلها وأدناها رقم.(١٦١، ١٦٢) والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه.باب ذكر شعب الإيمان رقم(٥٠٧، ٥٠٩ وأبوداود فى سننه فى كتاب السنة باب فى رد الإرجاء رقم(٤٦٧٦ والترمذى فى جامعه فى كتاب الإيمان .باب ما جآء فى إستكمال الإيمان وزيادته ونقصانه رقم.(٢٦١٤ وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم(٥٧)_

(٢) عمدة القاى (١٢٣/١) وتقريب التهذيب (ص.٣٢١)_

کښې د ټولو نه وړاندې د صحابو ﷺ مسانيد جمع کړي وو.(۱) والله اعلم

② **ابوعامر عقدي رحمه الله:** دا ابوعامر عبدالملك بن عمروبن قيس عقدي «بفتح العين المهملة والقاف» بصري دے.دامام مالك رحمه الله شاګرد دے.اود امام احمد رحمه الله استاذ دے.ټول حافظان د دوی په جلالت او ثقاهت باندې متفق دي.په ټول صحاح سته کښې د دوی روايات موجود دي.په ۲۰۴ه يا ۲۰۵ه کښې وفات شوی دی.(۲)

③ **سليمان بن بلال رحمه الله:** دا ابومحمد يا ابوايوب سليمان بن بلال قرشي تيمي مدني دے.عبدالله بن دينار رحمه الله او د دوی نه علاوه د نورو ډيرو تابعينو ﷺ نه ئې احاديث اوريدلی دي.او عبدالله بن المبارك رحمه الله غوندې بې مثاله محدثينو ﷺ د دوی نه سماع کړې ده.
په اصول سته کښې د دوی روايات موجود دي.بلکه په دې نوم په اصول سته کښې بل راوی موجود نه دے.په ۱۷۷ه کښې وفات شوی دی.(۳)

④ **عبدالله بن دينار رحمه الله:** دا ابوعبدالرحمن عبدالله بن دينار قرشي عدوی مدني دے.دحضرت ابن عمر ﷺ مولي وو.دوی د حضرت ابن عمر ﷺ او دهغوی نه علاوه د نورو ډيرو حضراتو نه احاديث اوردلے دي.او د دوی نه د دوی خوئې عبدالرحمن او نورو حضراتو د حديثو سماع کړې ده.دوی په اتفاق سره ثقه دي.په ۱۲۷ه کښې وفات شوی دی.په اصول سته کښې د دوی روايات موجود دي(۴)

⑤ **ابوصالح رحمه الله:** ابوصالح ددوی کنيت دے.او د دوی نوم ذکوان دے.لقب ئې سمان اوزيات دے.ځکه چه دوی به د کوفې نه تيل او غوړي راوړل.او ددې کاروبار به ئې کولو. ثقه او ثبت دے.په صحابو ﷺ او تابعينو ﷺ کښې دډيرو حضراتو نه روايت کوی.او د دوی نه روايت کونکو کښې د تابعينو ﷺ يوه لويه ډله شامله ده.
امام اعمش رحمه الله د دوی نه يو زر احاديث اوريدلی دي.په ۱۰۱ه کښې په مدينه منوره کښې وفات شوی دی.د دوی احاديث په صحاح سته کښې موجود دي.(۵)

⑥ **حضرت ابوهريره رضي الله عنه:** جليل القدر حافظ اوفقيه ومکثر صحابي دے.دوی د اسلام راوړلو نه پس خپل ځان د نبي ﷺ نه د استفاده اخستلو.د علم حاصلولو او ددې خورولو نه وقف کړ وو . په ۷ه کښې د خيبر په کال مسلمان شوے وو.او بيا د دوی مور د نبي اکرم ﷺ د دعا په برکت مسلمانه شوې وه.د مور د اسلام راوړلو نه پس حضرت

(۱) عمدة القاري(۱/۱۲٤)-
(۲) عمدة القاي ر(۱/۱۲۳( وتقريب التيب (ص.۲۵۰)_
(۳) عدة القاري(۱/۱۲۳ وتقريب التهذيب (ص.۲۵۰)_
(۴) عمدة القاري (۱/۱۲۳) وتقريب (۲.۳۰۲_
(۵) عمدة القاري(۱/۱۲۳. ۱۲٤ وتقريب التهذيب (۲۰۳_

ابوهريره رضی الله عنه نبی ﷺ ته درخواست کړے وو.چه یارسول الله! دالله تعالی نه دعا اوکړئ.چه ما او زما مور الله تعالی د خپلو مؤمنانو بندګانو په زړونو کښے خوښ جوړ کړی.نبی اکرم ﷺ د دوی دپاره دعا اوکړله.حضرت ابوهريره رضی الله عنه به فرمائيل.«فما خلق مؤمن يسمع بى ولا يرانى إلا أحبنى» (١)

حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.«ابوهريرة أحفظ من روى الحديث فى دهره»(٢)

**كثرت روايت او د رواياتو شمار:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه به هغه شپږ مکثرين صحابو رضی الله عنهم کښے په اول نمبر دے.دچا نه چه د ټولو نه زيات روايات مروى دى.خلقو به په دے خبره تعجب هم کولو.چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه ددے باوجود چه متاخرالاسلام دے.دومره زيات احاديث بيانوى.خو حضرت ابوهريره رضی الله عنه به خپله دا اعتراض نقل کوى .او فرمائى.چه ما سره چرته هم د مال جمع کول فکر نه وو.مهاجرين به د بازار نه نه اوزګاريدل.او انصارو سره د خپلو زمکو فکر وو.اوزه به هر وخت د نبى اکرم ﷺ په خدمت کښے حاضر اوسيدم.که د خيټے دکولو دپاره به راته خوراک ملاؤ شو.نو خوراک به مے اوکړل.ګنى صبر به مے کولو.بيا د رسول الله ﷺ دعا هم زما سره وه.څکه چه يو ځل نبى ﷺ اوفرمائيل.څوك به خپل څادر خور کړى.چه د هغے نه پس به زما نه اوريدلے خبره نه هيروى.ما خپل څادر خور کړلو.نوهغه ئے د خپلے سينے سره اولګولو.ددے نه پس زما نه هغه خبره نه ده هيره شوے کومه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلے ده.(٣)

دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه په مسند بقية بن مخلد کښے ۵۳۷۴ (پنځه زره درے سوه څلور اويا) احاديث مروى دى.اودا دټولونه لوئے تعداد دے.کوم چه دبل صحابى رضی الله عنه نه مروى نه دے.

بعضے خلقو په دے باندے اعتراض کړے دے.چه دا څنګه کيدے شى.حالانکه په خپله حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائى.«ما من أصحاب النبى ﷺ أحد أكثر حديثا عنه منى إلا ما كان من عبدالله بن عمرو،كان يكتب ولا أكتب»(٤)ددے نه خو دا معلوميږى.چه د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روايات د حضرت ابوهرير رضی الله عنه نه زيات وو.

د دے يو جواب دا ورکړے شوے دے.چه استثناء دلته منقطع ده.او تقدير دا دے.«لكن الذى كان من عبدالله وهو الكتابة لم يكن منى» مطلب دا دے.چه زما نه زيات څوك مکثر نه وو.البته عبدالله بن عمرو به احاديث ليکل.او ما به نه ليکل.په دے کښے دا احتمال هم شته.چه د هغه احاديث زيات وو.اودا احتمال هم شته.چه د هغه احاديث زيات نه وو.

---

(١) صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب من فضائل أبى هريرة الدوسى.)

(٢) تهذيب الأسماء واللغات (٢٧٠/٣٢)_

(٣) صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة ﷺ باب من فضائل أبى هريرة الدوسى .)

(٤) صحيح بخارى كتاب العلم باب كتابة العلم رقم(١١٣)

خوكه مونږ استثناء متصل اومنو نو ددے جواب دا دے چه مونږ ته د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما کوم احادیث رارسیدلی دی هغه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د احادیثو نه ډیر کم دی.په یو قول کښے د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما د روایاتو شمار ۵۰۰ خودلے شوے دے او بعضے محدثینو رحمهم الله د دوی د روایاتو شمار ۷۰۰ نقل کړے دے.(۱) ددے څو وجوهات دی.

() اولنۍ وجه دا ده.چه حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما به په عبادت کښے زیات مشغول وو.په علم کښے د هغوی مشغولیت کم پاتے شوے وو.ددے وجے د هغوی روایات کم دی.

() دمختلف ملکونو د فتح کیدو نه پس د حضرت عبدالله بن عمرو( رضی الله عنهما) قیام زیات په مصر او طائف کښے وو.دے مقاماتو طرف ته د طالبانو توجه دومره نه وه.څومره چه مدینے منورے طرف ته وه.اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه په مدینه منوره کښے تر وفاته پورے فتوی او تحدیث کښے مصروف وو.اوپه دغه وخت کښے مدینه د علم مرکز وو.

() دریمه وجه دا ده.چه مونږ وړاندے ذکر کړی دی.چه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه سره د نبی صلی الله علیه وسلم دعا وه.چه څه به ئے یوخل واوریدل.هغه به ترے نه هیریدل.

() څلورمه وجه دا بیان شوے ده.چه حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما ته په شام کښے د اهل کتابو ډیر کتابونه ملاؤ شوی وو.هغه به دغه کتابونه کتل.ددے وجے ډیرو تابعینو امامانو رحمهم الله د هغوی نه روایت نه اخستل.(۲)

بهرحال حضرت ابوهریره رضی الله عنه په ټولو صحابو رضی الله عنهم کښے کثیرالروایة دے پنځه زره درے سوه څلور اویا احادیث د دوی نه مروی دی.په دے کښے متفق علیه درے سوه پنځویشت دی.امام بخاری رحمه الله په درے اویا کښے منفرد دے.او امام مسلم رحمه الله په یو سل نوی احادیثو کښے .صرف د شاګردانو شمار ئے اته سوه لیکلی شی. چه په دوی کښے صحابه رضی الله عنهم هم وو.او تابعین رحمهم الله هم.(۳)

**دحضرت ابوهریره رضی الله عنه تفقه** حضرت ابوهریره رضی الله عنه په اتفاق سره په فقهاء صحابو کښے وو. بلکه په فقهی مسائلو کښے به ئے د نورو فقهاء صحابو سره معارضه هم کوله.د احنافو رحمهم الله د اصولو په بعضے کتابونو کښے دوی ته ،،غیر فقیه،، ونیلے شوے دے.دا خبره ټیک نه ده.بیا دا خبره نه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه منقول ده.اونه د دوی په مشهورو شاګردانو کښے د چا نه، بعضے اصولیینو عیسی بن ابان رحمه الله ته ددے خبرے نسبت کړے دے.خو په دے نسبت کښے هم کلام دے.

خلاصه دا چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه صرف د حدیث په روایت کښے نه بلکه په فقه او افتاء کښ هم په لویو صحابو کښے شمار دے.(۴)

---

(۱)تقریربخاری اردو)۔
(۲) ددے ټولو وجوهاتو دپاره اوګورئ فتح الباری (۲۰۷/۱) کتب العلم باب کتابة العلم)۔
(۳) عمدة القاری(۱۲٤/۱)۔
(۴)تکملة فتح الملهم (۳٤۰/۱، ۳٤۱) کتاب البیوع باب حکم بیع المصراة)۔

**د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نوم** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په نوم کښې ډیر سخت اختلاف دے.تردے چه حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی: «اختلفوا في اسم أبي هريرة واسم أبيه اختلافاً كثيراً لا يحاط به ولا ينضبط في الجاهلية والإسلام»(١) یعنی حضرت ابوهریره رضی الله عنه او د دوی د پلار د نوم په باره کښې دومره اختلاف دے.چه په جاهلیت او اسلام کښې دومره اختلاف په بل نوم کښې نشته.حافظ ابن عبدالبر رحمه الله شل اقوال شمارلی دی.ابن الجوزی رحمه الله په «التلقیح» کښې په دے کښې اتلس اقوال ذکر کړی دی.او امام نووی رحمه الله فرمائی.د دیرشو اقوالو نه زیات دی.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ما دا ټول نومونه په تهذیب التهذیب کښې ذکرکړی دی.خو دیرشو ته نه رسی.د امام نووی رحمه الله قول صرف د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په نوم باندے نه بلکه دهغه اود هغه د پلار دواړو په نومونو باندے محمول دے.(٢)

بهرحال راجح دا دے.چه د اسلام ته وړاندے د دوی نوم عبد شمس وو.د اسلام راوړلو نه پس عبدالله یا عبدالرحمن نوم ورته کیخودے شو.او د دوی د پلار د نوم په باره کښې راجح دا ده.چه صخر وو.(٣)

**د حضرت ابوهریره رضی الله عنه کنیت او ددې وجه** : په جامع ترمذی کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی. چه زما د کنیت وجه دا ده.چه ما به د خپل کور د خلقو چیلۍ څرولے.ما سره یوه وړه غونډے پیشو وه.د شپے به ما هغه د وونې دپاسه کینوله.اود ورځے به مے ځان سره ساتله.او هغے سره به مے لوبے کولے.نوځکه زما کنیت ابوهریره رضی الله عنه کیخودے شو.(٤)

یوه قول دا دے.چه نبی ﷺ د دوی په لستوڼی کښې پیشو اولیدله.نو نبی ﷺ اوفرمائیل: «یا أباهریرة» نودا ئے کنیت شو.(٥)

ابومعشر مدائنی د محمد بن قیس نه نقل کړی دی.چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه به فرمائیل.

«لاتكنوني أباهريرة فإن النبي ﷺ كناني أباهر، الذكر خير من الأنثى»(٦)

خو په احادیثو کښې د دوی کنیت د نبی اکرم ﷺ نه دواړه قسم راغلے دے.په صحیح مسلم کښې اوږد حدیث دے.په هغے کښې نبی کریم ﷺ یو باغ ته تشریف اوړے وی.کله چه ناوخته شی. نو صحابه کرام رضی الله عنهم د دوی په لټون کښې اوځی . حضرت ابوهریره رضی الله عنه باغ ته ورداخل شو. نبی ﷺ ترے تپوس اوکړلو: «ابوهریرة؟» یعنی آیا ته ابوهریره ئے.دغه شان په دے

(١) الإستيعاب بهامش الإصابة (٢٠٣، ٢٢/٤) ترجمة أبي هريرة رضي الله عنه_
(٢) فتح الباري (٥١/١)_
(٣) الإصابة (٢٠٣/٤، ٢٠٤)_
(٤) جامع ترمي كتاب المناقب باب مناقب لأبي هريرة رضي الله عنه رقم (٣٨٤٠)_
(٥) عمدة القاري (١٢٤/١)_
(٦) الإصابة (٢٠٦/٤)_

حديث كنبے په «يا أباهريرة» سره خطاب هم كړے دے.(١)
دغه شان د بخاري شريف په روايت كنبے دي «حدثنا شعيب يا أباهر» هم د بخاري شريف په يويل روايت كنبے دي «يا أباهر»(٢)
«ابوهريرة» منصرف دې كه غيرمنصرف؟ ملا على قارى رحمه الله فرمائي چه اصل خو دا دے چه «هريرة» مجرور اوونيلي شي. ځكه چه دا علم نه دے د علم جزء دے چونكه صرف يو سبب دے نوځكه دا منصرف وئيل پكار دي. هم دا د عالمانو رحمهم الله يوے ډلے ټيك ګرځولے دے خو د محدثينو رحمهم الله په ژبه دا غير منصرف مشهور دے. ځكه چه دا د كلمه واحده په شان ده. نو د دوو سببو په وجه به دے ته غير منصرف وئيلي شي (٤) والله اعلم.
**وفات او مدفن** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه وفات د اته اتيا كالو په عمر كنبے په ٥٧هـ .٥٨هـ يا ٥٩هـ كنبے شوے وو. اوپه مدينه منوره كنبے په جنت البقيع كنبے دفن شوے وو. بعضے خلقو ددوى مدفن عسفان خودلے دے. خو ددے څه اصل نشته.(٥) رضي الله تعالى عنه وأرضاه وحشرنا معه في زمرة محبيه.

**قوله: الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسِتُّونَ شُعْبَةً:** بضع: د باء په كسره سره ده. فتح هم يو لغت دے د بضع د مصداق په باره كنبے مختلف اقوال دي.
① مشهور قول دا دے چه د دريو نه تر نهه پورے ددے اطلاق كيږي. په دے باندے قزاز جزم كړے دے.
② ابن سيده وائي چه د دريو نه تر لسو پورے ددے اطلاق كيږي.
③ يو قول د يو نه تر نهه پورے دے.
④ يوقول د دوو نه تر لسو پورے دے.
⑤ او يو قول د څلورو نه تر نهه پورے دے.(٦)
په دے كنبے اولنے قول مشهور دے. اوددے تائيد د ترمذي شريف د حديث نه هم كيږي. په هغے كنبے دا دي چه كله دا آيت كريمه (٧) نازل شول شو. نو صديق اكبر رضي الله عنه د مكے د مشركانو سره شرط اولګوو. او موده ئے د نهه كالو نه كمه مقرر كړله. په دے باندے نبي اكرم صلى الله عليه وسلم

---

(١) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الدليل على إن من مات على التوحيد دخل الجنة قطعاً رقم (١٥٦)_
(٢) صحيح بخاري .كتاب الأطعمة باب قول الله تعالى: كلوا من طيبات ما رزقناكم رقم(٥٣٧٥)_
(٣) صحيح بخاري كتاب الرقاق باب كيف عيش النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه رقم(٦٤٥٢)_
(٤) مرقاة (٦٩/١) كتاب الإيمان )_
(٥) عمدة القاري (١٢٤/١) وتقريب التهذيب (٦٨٠، ٦٨١)_
(٦) فتح الباري(٥١/١)_
(٧) سورة روم:١-٤)_

اوفرمائیل. «ألا احتطت يا أبابكر، فإن البضع ما بين الثلاث إلى التسع» [1] چه اے ابوبکر! تا ولے احتیاط اونکړلو. ځکه چه د ،،بضع،، اطلاق د دریو نه تر نهه پورے کیږی.

**د روایاتو اختلاف** دا روایت په بخاری شریف کښے د ابوعامر عقدی په سند سره د ،،بضع وستون،، په الفاظو سره راغلے دے.

په مسلم شریف کښے ددے دوه طریقے دی.

یوه طریقه د «عبیدالله بن سعید وعبد بن حمید، عن أبی عامر العقدی» په واسطه ده. په هغے کښے د «بضع وسبعون» الفاظ دی.

دویمه طریقه «زهیر بن حرب، عن جریر عن سهیل عن عبدالله بن دینار، عن أبی صالح عن أبی هریرة» سند سره ده. په دے کښے «بضع وسبعون أو بضع وستون» الفاظ دی. یعنی په شک سره وارد دی. [2]

په سنن نسائی کښے یو روایت په دریے طرقو سره مروی دے. په دے کښے په اولنو دوو طریقو کښے «بضع وسبعون» الفاظ دی. او په آخری طریق کښے ددے حدیث اولنے جزء یعنی «الإیمان بضع وسبعون شعبة...» موجود نه دے. صرف آخری جزء یعنی «الحیاء شعبة من الإیمان» په کښے مروی دے. [3]

په سنن ابی داوٗد کښے د «بضع وسبعون» الفاظ دی. [4]

په سنن ترمذی کښے ددے دوه طرق دی. په دے کښے په اولنی طریق کښے خو «بضع وسبعون بابا» دی. او په دویم طریق کښے «الإیمان أربعة وستون بابا» وارد دی. [5]

ابن ماجه هم دا نقل کړے دے. اود مسلم د شک د روایت پشان ئے ذکر کړے دے. یعنی «الإیمان بضع وستون أو سبعون بابا» [6]

په صحیح ابو عوانه کښے «ست وسبعون أو سبع وسبعون» الفاظ دی. [7]

ددے ټولو روایاتو خلاصه دا شوه چه :

() په بعضے روایاتو کښے د «بضع وستون» الفاظ دی.

() په بعضو کښے د «بضع وسبعون» الفاظ دی.

---

(۱) جامع ترمذی کتاب التفسیر باب ومن سورة الروم رقم(۳۱۹۱) _
(۲) صحیح مسلم کتاب الإیمان باب بیان عدد شعب الإیمان .. رقم(۱۶۱، ۱۶۲)_
(۳) سنن نسائی باب الإیمان باب ذکر شعب الإیمان رقم(۵۰۰۷، ۵۰۰۹)_
(۴) سنن ابی داود کتاب السنة باب فی رد الإرجاء رقم (۴۶۷۶)_
(۵) جامع ترمذی کتاب الإیمان باب ما جآء فی إستکمال الإیمان وزیادته ونقصانه رقم (۲۶۱۴)_
(۶) سنن ابن ماجه المقدمة باب فی الإیمان رقم (۵۷)_
(۷) فتح الباری (۵۲/۱)_

() په بعضو کښې دشك سره د ((بضع وستون أو بضع وسبعون)) يا ((ست وسبعون أو سبع وسبعون))
الفاظ دي.

() اوپه يو روايت کښې د ((اربعة وستون بابًا)) الفاظ هم شته.
دا آخرنې روايت اول خو حافظ رحمه الله معلول گرځولې دے.هسې هم دا د صحيحينود رواياتو په مقابله کښې مرجوح دے.نو ددے نه د بحث ضرورت نشته.(١)
باقي پاتې شول نور روايات نوپه هغې کښې چه کوم بغير د شك نه واقع شوي دي .هغې ته د شك په رواياتو ترجيح حاصله ده.اوس صرف دوه قسمه روايات پاتې کيږي.يو د ((بضع وستون)) روايت.او بل د ((بضع وسبعون)) روايت .دا دواړه رواياتونه صحيح دي.
امام بيهقي رحمه الله د بخاري روايت ((بضع وستون)) راجح گرځولې دے.د هغوي وينا دا ده.چه سليمان بن بلال بغير د څه شك نه ددے روايت کړے دے.(٢)
خو په دے دليل کښې دا ويره ده.چه دسليمان بن بلال په طريق کښې ابوعوانه حديث نقل کړے دے.په هغې کښې شك سره ((بضع ستون أو بضع وسبعون)) الفاظ دي.(٣) نو د امام بيهقي رحمه الله دا دليل صحيح نه دے.
حافظ ابن الصلاح رحمه الله د بخاري روايت په دے بناء باندے راجح گرځولې دے . چه په دے کښې عدد اقل دے.او عدد اقل متيقن وي.(٤)
امام ابوعبدالله الحليمي، قاضي عياض ،امام نووي رحمه الله او يو جماعت د ((بضع وسبعون)) روايت راجح گرځولې دے.ځکه چه دا د قبيله د زيادة الثقات ځنې دے.او زيادت د ثقه قبلولې شي.که دے د خپل ځان نه د اوثق مخالف نه وي.(٥)
علامه کرماني رحمه الله په دے باندے اعتراض کړے دے.چه دا د زيادة الثقه صورت نه دے.چونکه په زيادة الثقة کښې د الفاظو اضافه وي.حالانکه دلته د رواياتو اختلاف دے.(٦)
علامه کرماني رحمه الله فرمائي.چه په دے دواړو رواياتو کښې څه تعارض نشته.ځکه چه عدد اکثر د عدد اقل نفي نه کوي.
هغوي فرمائي.چه دلته دا احتمال هم شته.چه ((بضع ستون)) روايت مقدم وي.او د ((بضع وسبعون)) روايت مؤخر وي.لکه چه اول نبي ﷺ ته د ((بضع وستون)) علم شوے وو.او بيا د ((بضع

---

(١) پورتنۍ حواله_
(٢) شرح نوى على صحيح مسلم (٤٧/١) كتاب الإيمان باب بيان عدد شعب الإيمان ...)_
(٣) فتح الباري(٥١/١)_
(٤) فتح الباري(٥٢/١)_
(٥) شرح نووي(٤٧/١)_
(٦) شرح کرماني(٨٢/١)_

وسبعون» نو دواړه روايات ټيک دي.([1])

خود علامه کرماني رحمه الله جواب ټيک نه معلوميږي.ځکه چه دلته روايت يو دے.او طرق ئے جدا جدا دي.نو هرکله چه مخرج يو وي.نو د جدا جدا عدد او په دے کښے د تطبيق کولو څه سوال پيدا کيږي.([2])

بيا چونکه د «بضع وسبعون» زيادت معنى لره متضمن دے.لکه چه د علامه کرماني رحمه الله اعتراف هم دے.نو د امام نووى رحمه الله وغيره خبره صحيح معلوميږي.([3])

ملا علي قاري رحمه الله فرمائي.چه ښکاره دا ده.چه ددے نه مراد د څه خاص عدد تحديد نه دے.بلکه مراد ترے تکثير دے.ځکه په آيت کريمه ﴿إِن تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ﴾([4]) کښے تکثيرمراد دے.او د عدد اختلاف د واقعاتو په تعدد باندے حمل کولے شي. اګرچه د يو روايت د طرفه وي.([5])

که عدد د تکثير دپاره اومنلے شي.نو علامه عيني رحمه الله د ،،ستون،، او ،،سبعين،، دواړو حکمتونه بيان کړي دي.

هغوى د ،،ستين،، حکمت بيانوي.چه عدد به يا زياتي وي يا ناقص يا برابر.عدد زائده هغه عدد ته وائي.چه د هغے د اجزاء مجموعه د هغه عدد نه زيات وي . لکه د دولسو عدد دے. ددے پنځه اجزاء جوړيږي.نصف ،،۶،، ثلث،،۴،، ربع ،،۳،، سدس ،،۲،، او نصف سدس ،،۱،، اوددے مجموعه شپاړس جوړيږي.(۶+۴+۳+۲+۱= ۱۶) دا د دولس د عدد نه زيات دے.

عدد ناقص: هغه عدد ته وائي.چه د هغے د اجزاؤ مجموعه د هغے د عدد نه کم وي .لکه د څلورو عدد شو.چه ددے دوه اجزاء دي.نصف ،،۲،، او ربع ،،۱،، او ددے مجموعه درے ده.(۲ +۱= ۳)ښکاره ده.چه د دريو عدد د څلورو د عدد نه کم دے.

عدد مساوي: هغه عدد دے.چه د هغے د اجزاؤ مجموعه ددے عدد سره برابر وي.لکه د شپږو عدد شو.ددے درے اجزاء جوړيږي.نصف ،،۳،، ثلث،،۲،، او سدس ،،۱،، ددے مجموعه هم شپږ ده.(۳+۲+۱=۶)

په دے درے قسمه اعدادو کښے هغه عدد ته فضيلت حاصل دے.کوم چه تام او مساوي وي. يعني شپږ.دا د شپږو عدد اکائي ده.کله چه مبالغه مقصود وي.نو دا دهايانو ته اړولے شي. او ددے دهائي شپيته جوړيږي.

---

(۱) مخکښې حواله)_

(۲) فتح البارى(۵۲/۱)_

(۳) فتح الملهم (۶۱۰/۱)_

(۴) التوبة:۸۰)_

(۵) مرقاة المفاتيح (۶۹/۱)_

علامه عینی رحمه الله د ..سبعین.. حکمت بیانوی اوفرمائی چه ..د اووه عدد داسے عدد دے چه د عدد ټول قسمونه ددے لاندے راځي.ځکه چه دعدد یو تقسیم وی فرد او زوج طرف ته.بیا په دے دواړو کښے د هر یو دوه دوه قسمونه دی.یو فرد او بل مرکب د فرد اول مثال درے دی.او فرد مرکب پنځه دی دغه شان د زوج اول دوه دی.او د زوج مرکب څلور دی.بنکاره ده.چه دا ټول اعداد د اووه د لاندے دے

بیا د عدد یو بل تقسیم هم دے.په دے اعتبار سره دے دوه قسمونه دی یو عدد ناطق او بل عدد اصم.د عدد ناطق مثال څلور دی.اود اصم مثال شپږ دی اود اووه عدد دے دواړو ته شامل دے

ترکومے پورے چه د دواړو اعدادو سره د ((بضع)) د اضافه تعلق دے نودا ځکه روستوکړے شوے دے.چه ((بضع)) اطلاق په شپږو باندے هم کیږی او په اووه باندے هم.ځکه چه ((بضع ما بین اثنین الی عشرة)) دپاره دے.لکه چه ..ستین.. سره چه کوم ..بضع.. دے هغه په شپږو باندے دال دے.او د شپږو عدد ..ستین.. دپاره د اصل درجه لری.دغه شان ..سبعین.. سره چه کوم ..بضع.. دے.هغه په اووه عدد باندےدال دے.اود اووه عدد د سبعین دپاره د اصل درجه لری.لکه چه ..بضع.. لفظ ئے راوړلو.دا د دے اعدادو اصل طرف ته هم اشاره کوی

بعضے حضراتو وئیلي دی.چه عربیان ..سبعین.. د مبالغے دپاره زیات استعمالوی په دے باندےئے د اووه اضافه اوکړله.او ددے تعبیر ئے په ..بضع.. سره اوکړلو.ددےوجه دا ده چه دا اکمل الاعداد دے.ځکه چه شپږ اولنے عدد تام دے.دےسره چه یو ملاؤ شی نو دا عدد اووه جوړیږی.لکه چه اوس کامل شو.ځکه چه ((لیس بعد التمام سوی الکمال)) بیا سبعین غایة الغایة دے.ځکه چه د آحادو او اکائیانو غایات عشرات یعنی دهیائے وی.(۱)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله یو تسامح** حافظ رحمه الله د بخاری شریف ددے حدیث لاندے فرمائیلی دی.((لم تختلف الطرق عن أبي عامر شیخ شیخ المؤلف في ذلك)) (۲) یعنی ددے حدیث راوی کوم چه سلیمان بن بلال دے.د دوی په شاگردانو کښے اختلاف راغلے دے خو ابوعامر عقدی کوم چه د سلیمان بن بلال شاګرد دے.د هغوی په شاګردانو کښے اختلاف نشته

دحافظ رحمه الله دا خبره ټیك نه ده ځکه چه هم په مسلم شریف کښے د ابوعامر دوه شاګردان دی.عبیدالله بن سعید او عبد بن حمید.دواړه د ابوعامر نه ((بضع وستون شعبة)).کوم چه د بخاری روایت دے.ددےپه ځائے ((بضع وسبعون شعبة)) نقل کوی.(۳)

دغه شان په نسائی کښے دابوعامرشاګرد محمد بن عبدالله بن المبارك دے.هغوی هم ((بضع

---

(۱) عمدة القاری(۱۲۷/۱)_

(۲) فتح الباری(۵۱/۱)_

(۳) صحیح مسلم (۴۷/۱) کتاب الإیمان باب بیان عدد شعب الإیمان ..)_

وسبعون شعبة» نقل کوی.(١)

**د شعب ایمان په باره کښې څو کتابونه** په نصوصو کښې د شعب الایمان تفصیل په تعین سره چرته موجودنه دے.البته مختلفو عالمانو ﷺ دخپل علم اوفهم په اعتبارسره دا شمارلی دی. په دے باره کښې مختلف تصانیف هم په وجود کښې راغلی دی.امام ابوعبدالله حلیمی رحمه الله د ((فوائد المنهاج)) په نوم په دے موضوع باندے کتاب لیکلے دے.

حافظ ابوبکر بیهقی او شیخ عبدالجلیل رحمهماالله هم په دے موضوع باندے کتابونه لیکلی دی دواړه د خپل خپل کتاب نوم ((شعب الایمان)) کیخودے دے. اسحاق بن القرطبی رحمه الله هم په دے موضوع باندے ((کتاب النصائح)) په نوم سره تصنیف

کړے دے.او امام ابوحاتم رحمه الله هم په دے موضوع باندے د((وصف الإیمان وشعبه)) په نوم کتاب لیکلے دے.(٢)

بیا په آخرکښې مشهور محدث علامه محمد مرتضی زبیدی رحمه الله د ابن حبان او عبدالجلیل رحمهماالله د محنت خلاصه د ((عقدالجمان)) په نوم سره لیکلے دے. (٣) جزاهم الله تعالی.

**د شعب ایمان تحقیق:** امام ابوحاتم بن حبان بستی رحمه الله فرمائی.چه زه دد ے حدیث د لوستلو نه پس د دے شعبو په تتبع کښې لګیا شوم.اول مے احادیث اوکتل.او هغه امور مے شمار کړل.کوم چه په احادیثو کښې په امور و د ایمان کښې شمارلے شوی دی.نودا شمار کم راووتلو.بیا مے د قرآن کریم طرف ته رجوع اوکړه.او په هغے کښې چه کومو څیزونو ته ایمان وئیلے شوے وو.هغه مے شمار کړل.نود هغے شمار هم کم راووتلو.بیا مے قرآن او حدیث دواړه ملاؤ کړل.او چه کله مے جمع کړل.اومکررات مے حذف کړل .او اومے کتل.نو دد ے شمار د عدد موافق راووتلو.

د ابوحاتم بن حبان رحمه الله د دے طریقے د تحقیق عالمانو تعریف کړے دے.او حافظ رحمه الله دا اقرب الی الصواب ګرځولے دے.(٤)

دد ے شعب ایمانیه تفصیل ابن حبان رحمه الله په خپل کتاب ((وصف الإیمان وشعبه)) کښې ذکر کړے دے.دا کتاب معدوم دے.حافظ ابن حجر رحمه الله ته هم دا کتاب نه دے ملاؤ شوے.هغوی د مختلفو عالمانو د تفصیلاتو نه اخذ کړے دے.او په خپله اندازه سره ئے دا ذکر کړے دے.

هغوی ټول اعمال په درے حصو کښې تقسیم کړی دی.اعمال متعلقه بالقلب.اعمال متعلقه باللسان او اعمال متعلقه بالبدن.په دے کښې د اعمال قلبیه تعداد څلیریشت دے.اود اعمال

---

(١) سنن نسائی (٢/٢٦٨) کتاب الإیمان وشرائعه باب ذکر شعب الإیمان )_

(٢) عمدة القاری(١/١٢٨)_

(٣)الأعلام للزرکلی (٧/٧٠)_

(٤) فتح الباری(١/٥٢)

لسان تعداد اووه دے.او د اعمال بدنیه تعداد اته دیرش دے.دا تول یوکم اویا خیزونه شول.بیا په دے کښے دننه بعضے خیزونه ضمنی دی.چه هغه مستقل شمار کړے شی.نو یو کم اتیا شعبے جوړیدے شی.(۱)

حضرت شیخ الاسلام علامه شبیراحمد صاحب عثمانی رحمه الله فرمائی.چه امام ابن حبان رحمه الله دا شعبے د قرآن کریم او احادیثو نه په لټون سره راویستے دی.خو زما خیال دا وو.چه ټولے شعبے هم د قران نه راویستے شی.په دے وجه ما د قرآن کریم تتبع شروع کړله.اود لټون او تتبع ډیره مےوسیع کړه.ابن حبان رحمه الله صرف هغه خیزونه شمار کړی وو.چه په هغے باندے صراحة دایمان اطلاق شوے وو.اوما هغه هم شمار کړل.چه په هغے باندے د ایمان د لفظ اګرچه صراحة اطلاق نه وو.خو هغه د ایمان د صفت متقضاء وه.اود هغےمنشاء هم ایمان وو.په دے طریقه چه ما اول تتبع اوکړله. نوشمار ۶۷ ته اورسیدل.بیا چه مے غور اوکړلو.نو په قرآن پاك کښے بعضے داسے شعبے هم بیان شوی دی.چه داصل په اعتبار سره چه دوه یوځائے کړے شی.نو هغه یو هم شمارلے شی.او په خپل ځائے هغه دواړه مستقل شعبے هم شمارلے شی.مثلاً انفاق فی سبیل الله هم د ایمان یوه شعبه ده.اوپه قرآن پاك کښے ځائے په ځائے ددے تذکره ده.زکواة هم د انفاق في سبیل الله یو فرد دے.خو زکواة ددے یو داسے اهم فرد دے.چه دا د شریعت په نظر کښے مستقل یوه فریضه ګڼړلے شی.اوس دا ممکن ده.چه د واقع خیال اوساتلے شی.اوزکواة په انفاق في سبیل الله کښے داخل کړے شی.اودواړه یوه شعبه شمار کړے شی.او دا هم ممکن ده.چه د زکواة اهمیت ملحوظ اوساتلے شی.اودا یوه مستقله شعبه شمار کړے شی.شریعت د یو حکم د اهمیت ښکاره کولو دپاره کله داسے هم کوی.دا د شریعت په ،،ماموراتو،،کښے یو مثال پیش کړے شو.

په منهیاتو کښے داسے قسم یو مثال دا دے.چه ((اجتناب من الزور)) دایمان یوه شعبه ده .ددے یو اهم فرد د دروغو د شهادت نه اجتناب هم دے.،،شهادة الزور،، په حدیث کښے مستقل طور په اکبر الکبائر کښے شمار کړے شوے دے.او رسول الله ﷺ ددے د تغلیظ ښکاره کولو دپاره دا درے خله بیان کړے دے.(۲)

اوس که غواړے.نو شهادة زور په مطلق کذب کښے داخل کړه.ددے نه اجتناب یو مستقله شعبه اوګرځوه.اوکه غواړے.نو ((اجتناب عن الکذب)) یو ځانله جدا شعبه اوګرځوه.اود دےاهم ترین فرد ((اجتناب عن شهادة الزور)) بله مستقله شعبه اوګرځوه.داسے قسم شعبے چه کله شمار کړے شوے.نو شپږ شعبے داسے ملاؤ شوے.چه هغه مستقل هم شمارلے شی.او په بل کښے ضم

---

(۱)راجع للتفصیل فتح الباری(۱/۵۲، ۵۳)_

(۲) دحضرت ابوبکره رضی الله عنه نه نقل دی.((قال قال النبی ﷺ ..ألا أنبئکم بأکبرالکبائر - ثلاثاً- قالوا بلی یا رسول الله قال الإشراک بالله وعقوق الوالدین وجلس وکان متکئاً فقال:ألا وقو الزور قال فما زال یکررها حتی قلنا لیت سکت.. وفی روایة خالد عن الجریری ..ألا وقول الزور وشهادة الزور.. اوګګورئ صحیح بخاری کتاب الشهادات باب ما قیل فی شهادة الزور رقم (۲۶۵٤) وفتح الباری(۵/۲۶۳)_

کولے هم شي. که ضم شوے او منلے شي. نوشمار ٦٧ جوړیږي. او که مستقل شمار کړے شي. او اضافه په کښې او کړے شي. د دے شمار درے اویا تـه رسي. د دے ټولو تفصیل زما په یو یاداشت کښے ذکر دے.

په دے تحقیق سره دا معمه هم حل شوه. چه د ((ستون)) او ((سبعون)) اختلاف که چرته په حقیقت کښے د نبي ﷺ په کلام کښے وي. نو د دے یوه وجه دا هم کیدے شي. او مزید دا چه په دے تقریر سره یو بل تطبیق حاصلیږي. که داسے قسم شعبے یو شمار کړے شي. نو ..بضع وستون.. یعني اووه شپیته شعبے به شي. او که مستقل شمار کړے شي. نو ..بضع وسبعون.. یعني درے اویا شعبے به شي. (١)

**نکته** په حدیث کښے ئے ((الإيمان بضع وستون شعبة)) فرمائیلی دي. او په قرآن کریم کښے دي. ﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ﴾ (٢) د قرآني تعبیر نه د محدثینو او فقهاء ثلاثه ﷺ د نقطه نظر تائید کیږي. ځکه چه د کلمه طیبه نه مراد ایمان دے. او د دے تشبیه ئے د شجره سره ورکړے ده. او اعمالو ته قرآن پاك فرع وئیلے ده. نو معلومه شوه. چه د محدثینو ﷺ تعبیر د قرآن کریم د تعبیر سره مطابق دے. چه ایمان په منزله د شجره او اعمال په منزله د اغصان دي. د متکلمینو ﷺ تعبیر د دے نه مختلف دے. هغوی فرمائي. چه ایمان په منزله د اصل او جرړے دے. او اعمال په منزله د اغصان دي. اغصان او ښاخونه د ونې او شجر جزء دي. لیکن د جرړے او اصل جزء نه دے. بلکه په دے باندے متفرع دي. بهرحال د دے نقطه نظر په اعتبار سره قرآني تعبیر د حضرات محدثینو او فقهاؤ ﷺ مطابق دے. باقي په اصل مدعا باندے په دے سره څه اثر نه غورځیږي. ځکه چه د دواړو په نیز اعمال ضروري دي. او د ایمان تکمیل د ټولو په نیز په اعمالو موقوف دے. د اعمالو نه بغیر نه ایمان ترو تازه کیدے شي. او نه په دے کښے ترقي راتلے شي. والله اعلم بالصواب.

**قوله**: <u>وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ</u>: حیاء د ایمان یوه شعبه ده.

اشکال دا دے. چه ((الإيمان بضع وستون شعبة)) کښے حیاء هم داخله وه. نو دا ئے جدا ولے ذکر کړه؟ د دے جواب دا دے. چه حیا یوه داسے شعبه ده. چه دا په باقي ټولو شعبو کښے مددګاره او معاون ده. د دے وجے امام راغب رحمه الله د حیاء تعریف کوي. ((الحياء انقباض النفس عن القبائح وتركه كذلك)) (٣) یعني د قبیح او ګناهونو نه اجتناب کول او لرے اوسیدل دا حیاء ده. نو کوم سړے چه صاحب حیاء وي. ښکاره ده. چه هغه به د ټولو ماموراتو پابندي کوي. ځکه چه د دے پابندي نه کول قبیح دي. او د ټولو منهیاتو نه به اجتناب هم کوي. ځکه چه ارتکاب د

---

(١) فضل الباري (٣١٧/١، ٣١٨ دغه شان درس بخاري (١٥٢/١)_

(٢) سورة ابراهيم آيت: ٢٤)_

(٣) المفردات في غريب القرآن (١٤٠)_

منهیاتو هم قبیح دے.لکه چه حیاء یوه داسے شعبه ده.چه د ایمان د نورو تولو شعبو په تحصیل کښے ډیره معاون او مددګاره ده.ددے اهمیت د وجے نبی اکرم ﷺ «الحیاء شعبة من الإیمان» اوفرمائیل .اودا ئے جدا ذکر کړله.

..شعبة..کښے تنوین د تعظیم دپاره دے.او دا «الحیاء شعبة عظیمة من الإیمان» په معنی کښے ده.

بعضے حضراتو وئیلی دی.چه دلته نبی کریم ﷺ د ..حیاء.. ذکر جدا خکه اوکړلو.چه حیا یو فطری او خلقی او جبلی صفت دے.فطرة سړے حیادار وی.نودا شبه کیدے شوه.چه چونکه دا یو فطری امر دے.نو خکه د ایمان شعبه نه ده.خکه چه په شعب ایمان باندے اجر ملاویږی.او اجر په کسبیاتو باندے ملاویدل پکار دی.په فطریاتو باندے د اجر ملاویدوڅه سوال دے؟ددے شبهے د لرے کولودپاره ئے اوفرمائیل. چه «الحیاء شعبة من الإیمان» سوال پیدا کیږی.چه هر کله حیاء امر فطری دے.نودا بیا په شعب ایمان کښے داخلول نه وو پکار.خکه چه ایمان په خپله کسبی دے.نوپکار ده.چه ددے ټولے شعبے هم کسبی وی.

ددے جواب دا دے.چه دلته کومه حیاء د ایمان شعبه ښائی.ددے نه هغه امر فطری مراد نه دے.بلکه تخلق بالامر الفطری یعنی تخلق باالحیاء مراد دے.مطلب دا دے.چه په تاسو کښے الله تعالی کومه حیاء فطرتی طور کیخودے ده.تاسو هغه استعمال کړئ.شریعت چه د دومره څیزونو نه منع کړے ده.د هغے نه اجتناب او حیال اوکړئ.او د کومو څیزونو چه ئے حکم کړے دے.د هغے د کولو دپاره د حیاء نه کار واخلئ.ډیر کسان داسے وی.چه په هغوی کښے دا فطری جذبه موجود وی.خو ددے باوجود په دے باندے تخلق نه اختیاروی.او ددے په مقتضا باندے عمل نه کوی.سرورکائنات د ﷺ دے طرف ته اشاره کړے ده.

امام ترمذی رحمه الله روایت نقل کړے دے.«عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قال:قال رسول الله ﷺ استحیوا من الله حق الحیاء قال قلنا یا رسول الله إنا نستحیی والحمد لله قال لیس ذلك ولكن الإستحیاء من الله حق الحیاء أن تحفظ الرأس وما وعی والبطن وما حوی وتذكر الموت والبلی ومن أراد الآخرة ترك زینة الدنیا فمن فعل ذلك فقد استحیا من الله حق الحیاء»(۱)

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.دالله تعالی نه داسے حیا کوئ.خنګه چه دحیا حق دے.صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړلو.دالله شکر دے.یارسول الله! مونږ خو دالله تعالی نه حیاء کوو.نبی ﷺ اوفرمائیل.دا مطلب نه دے.بلکه د الله نه د حیاء کولو حق دا دے.چه سړے د خپل سر سترګو غوږونو وغیره اوڅه چه په دے کښے شامل دی.ددے حفاظت اوکړی.اودا ټول د الله تعالی د نافرمانئ نه بچ کړی.خپله خیټه د حرام مال د خوړلو نه اوساتی.خپله شرمګاه دے هم چه خیټه په کښے شامل ده.د حرامو نه اوساتی. مرګ دے یادوی.اود هډوکو د زړیدو خیال دے اوساتی.چه د بدن دا تازګی به باقی نه وی.کوم سړے چه آخرت خپل مقصود ګنړی.هغه د

(۱) سنن ترمذی کتب صفة القیامة باب (۲۴) رقم الحدیث (۲۴۵۸)۔

دنیا زینت او د دنیا شانست طرف ته توجه نه ورکوی.کوم سړے چه دا کار کوی.هغه په حقیقت کښې د حیاء حق ادا کوی.
حضرت مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.چه په حدیث جبریل علیه السلام کښې د احسان ذکر دے.(۱)

«أن تعبد الله كأنك تراه، فإن لم تكن تراه فإنه يراك» د دے احسان مفهوم هم هغه دے.کوم چه د حیاء دے.چه انسان هر وخت دا گنړی.چه الله تعالی ماته گوری.او زه د الله تالی په دربار کښې حاضر یم.لکه چه هغه وینم.کله چه سړی ته دا خیال مستحضر وی.هغه بیا گنا نه کوی.نه د مامور به ترك د هغه نه کیږی.اونه د منهی عنه ارتکاب (۲)
اوهم دا خبره په حیاء کښې وی.چه سړے د الله تعالی نه شرمیږی.هغه دا سوچ کوی .که څوك مے نه وینی.نو الله تعالی خو مے وینی.په دے خیال سره هغه بیا د گناه د ارتکاب جرات نه کوی.خودا خیال د سړی په زړه کښې په هغه وخت کښې راسخ کیږی.چه کله د الله تعالی ذکر په کثرت سره کوی.او کوم خلق چه غافل وی.د الله تعالی د یاد سره د هغوی څه تعلق نه وی.نو بیا نفس او شیطان دوی ښه ښکار کوی .چونکه د حفاظت ذریعه د الله تعالی یاد دے.نوځکه دا په جوهر قلب کښې شاملول پکار دی.د دے نه بغیر نفس او شیطان ته د گمراه کولو موقع لګیا وی ملاویږی.
شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله د سید الطائفه حضرت جنید بغدادی رحمه الله نه د حیا تعریف نقل کړے دے.«الحياء حالة تتولد من رؤية الآلاء ورؤية التقصير»(۳)چه سړے د الله سبحانه وتعالی نعمتونه د سترګو وړاندے ساتی.اودده نه چه کومے کوتاهیانے کیږی.اودالله تعالی د حق ادا کلو کښې ترے قصور کیږی.هغه د نظر وړاندے ساتی.د چا په وینا خو کیدے شی.چه هغه په ضد شی.او توجه اونکړی. بلکه چه په خپله سوچ اوکړی.چه د الله تعالی څومره احسانات دی.او زما د کوتاهیانوفهرست څومره اوږد دے.په دے مراقبے سره چه داطاعت د جذبے کوم کیفیت پیدا شی.هغه حیا ده.د دے دپاره د خصوصی مراقبه ،او فکر اهتمام ضروری دے.افسوس دے.چه د دنیا د وړو وړو حقیر خواهشاتو دپاره څومره اهتمام کیږی. خو مونږ چرته په تنهائے او خلوت کښې نه کینو.چه سوچ اوکړو.چه د الله تعالی په مونږ باندے څومره احسانات دی.او د دے باوجود مونږ څومر گناهګار یو.د منعم حقیقی او خالق ومالك حق ادا کولو کښې څنګه څنګه تقصیرات او کوتاهئ زمونږ نه کیږی.هرکله چه د داسے سوچ موقع نه ملاویږی.اودے طرف ته چرته توجه هم نه کیږی.نو بیا آخر په سړی کښې به حیا څنګه پیدا شی.مونږ ته پکار دی.چه د دے خبرے اهتمام اوکړو.چه لږ غوندے وخت د دے دپاره اوباسو.که د مانځه نه د فراغت نه پس وی.یا د قران مجید د تلاوت نه پس وی.چه لږ

(۱) انظر صحیح مسلم فاتحة كتاب الإيمان)_
(۲) فضل الباری(۱/۳۱۹، ۳۲۰_
(۳) اشعة اللمعات(۱/۴۶)_

غونډے سوچ کوو. د شي د اوداۀ کيدو نه وړاندے لږ غونډے سوچ کوو. اودا په خپلو معمولاتو کښے داخل کړو.
دحضرت جنيد بغدادي رحمه الله په تعريف او د امام راغب رحمه الله په تعريف کښے د ثمره او نتيجه په اعتبار سره څه فرق نشته. ځکه چه د امام رغب رحمه الله په تعريف کښے دا ووچه په نفس کښے د قبائحو نه انقباض پيدا کيږي. او دلته هم کله چه سړے د الله تعالى د نعمتونو او خپلو تقصيراتو موازنه اوکړي. نو يقيناً چه په ده کښے به داسے کيفيت پيدا شي. چه هغه به د قباحتونو نه د بچ کيدو فکر کوي.
امام العصر حضرت کشميري رحمه الله فرمائي. چه بعضے اخلاق حسنه کوم چه د ايمان مبادي دي. هغه په ايمان باندے مقدم دي. لکه امانت شو. ارشاد نبوي دے «لا إيمان لمن لا أمانة له»
(۱)امانت ئے په ايمان باندے مقدم گرځولے دے. هم دا صورت په حياء کښے هم پکار ردے.(۲)
د حضرت کشميري رحمه الله مطلب دا دے چه بعضے صفات د ايمان نه وړاندے موجود وي. او ايمان د هغے د قائم او برقرار ساتلو تاکيد کړے وي. مونځ روژه، زکواة وغيره دا څيزونه د ايمان نه وړاندے موجود نه وي. ددے حکم د ايمان نه پس ورکړے شوے دے. خو امانت او حياء دا دواړه داسے صفتونه دي. کوم چه د ايمان نه وړاندے موجود وي. اوبيا الله سبحانه وتعالى د ايمان نه پس د دے د قائم او برقرار ساتلو تاکيد کړے دے. په «لا إيمان لمن لا أمانة له» کښے د امانت د حفاظت تاکيد دے. اودغه شان «استحيوا من الله حق الحياء» کښے د حياء د حفاظت حکم دے. د حضرت شاه صاحب رحمه الله اشارة دے طرف ته ده. چه دلته کومه «الحياء شعبة من الإيمان» جدا ذکر شوے ده. دا هم دد وجے ده. چه د ايمان صفت وړاندے موجود وو. او اوس ددے د قائم او برقرار ساتلو دپاره مزيد تاکيد فرمائيلي شي. والله اعلم
ددے نه علاوه يوه خبره بله هم شوے ده. چه په حقيقت کښے دلته اختصار دے. سوال دا وو چه «الإيمان بضع وستون شعبة» کښے حياء داخل وه. نو بيا ددے د جدا ذکر کولو څه وجه وه؟
ددے جواب دا ورکړے شوے دے. چه دلته په روايت کښے اختصار دے. په بل روايت کښے راځي. «فأفضلها قول لا إله إلا الله، وأدناها إماطة الأذى عن الطريق والحياء شعبة من الإيمان»(۳) نبي ﷺ حياء جدا بيان نکړله. بلکه د ايمان چه کومے گڼړے شعبے دي. په هغے کښے ئے افضل بيان کړله.

(۱) أخرجه احمد في مسنده عن أنس ﷺ (۱/۱۳۵، ۱۵٤، ۲۱، ۲۵۱) والبيهقي في سننه الكبرى عنه ﷺ (۶/۲۸۸) كتاب الوديعة باب ما جآء في الترغيب في أداء الأمانات وفي شعب الإيمان له عنه ﷺ (٤/۷۸ الثاني والثلاثون من شعب الإيمان وهو باب في ايفاء بالعقود رقم (٤۲۵٤ وعن ثوبان ﷺ (٤/۳۲۰) الخامس والثلاثون من شعب الإيمان وهو باب في الأمانات وما يجب من أداءها إلى أهلها رقم (۵۲۵۵، ۵۲۵۵)
(۲) فيض البارى (۱/۷۹)_
(۳) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب بيان عدد شعب الإيمان)_

او په هغې كښې ئې د ادنى ذكرهم شوې وو بيائې شعبه متوسطه هم بيا كړله.نو دا اعتراض چه حياء ئې خاص كر جدا ولې ذكر كړه ،ختم شو.

**د حياء قسمونه** ددې نه پس زده كړئ.چه د حياء درې قسمونه دى.

① حياء شرعى ② حياء عقلى ③ حياء عرفى

كه د حياء سبب امر شرعى وى.او په حياء نه كولو كښې دا كس شرعاً د ملامتيا مستحق وى.نو هلته حياء شرعى وى.

او كه د حياء سبب امر عقلى وى.او ددې په ترك كولو باندې د اهل عقل په نيز د ملامتيا مستحق وى.نو هلته حيا عقلى وى.

او كه د حيا سبب څه امر عرفى وى.او ددې امر د پريخود په وجه په عرف كښې هغه د ملامتيا او مذمت مستحق گرځولې شى.نو هلته حياء عرفى وى.(١)

خوحضرت علامه انور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه زما په نيز د حياء شرعى او عرفى تقسيم ټيك نه دې.بلكه امر واحد دې.البته د متعلق په اعتبار سره ددې دا تقسيم كيدې شى.(٢) دحضرت شاه رحمه الله خبره هم ټيك ده.په دې كښې او په قول مشهور كښې كوم چه وړاندې بيان شو.څه تعارض نشته.

**كه حياء په درې قسمونو كښې څه تعارض وى نو ددې د دفع كولو صورت.** ددې نه پس دا زده كړئ. چه په حياء شرعى اوحياء عقلى كښې څه تعارض نشته.دا نشى كيدې.چه يو څيزشرعاً قبيح وى.اوعقلاً مستحسن وى.ياعقلاًقبيح وى.اوشرعاًمستحسن وى.بلكه اعتبارعقل سليم لره دې.كوم څيز چه شرعاً قبيح وى.د عقل سليم په نيز به هم هغه قبيح وى.هغه د عقل په نيز مستحسن نشى كيدې.دغه شان كوم څيز چه عقلاً قبيح وى.د شريعت په نظر كښې هم هغه قبيح وى.هغه د شريعت په نظر كښې مستحسن نشى كيدې.نو په حياء شرعى او حياء عقلى كښې د تصادم سوال نشته.البته په حياء شرعى او حياء عرفى كښې تعارض راتلې شى.

كه په حياء شرعى او حياء عرفى كښې تعارض راشى.نو مونږ به گورو.چه هغه كار چه د هغې په كولو كښې عرفاً حياء كيږى.هغه امر شرعى طور فرض دې.واجب دې سنت دې.يا مستحب ؟كه هغه امر عندالشرع فرض وى.نوددې حياء عرفى ترك به فرض وى.اوكه هغه واجب وى.اوكه دا حياء عرفى د هغې سره مزاحم وى .نو ددې حياء عرفى ترك به واجب وى.او كه هغه امر عندالشرع سنت وى.او حياء عرفى د هغې نه منع كوى.نو ددې حياء عرفى ترك به سنت وى.اوكه هغه امر مستحب وى.او حياء عرفى د هغې دپاره مانع وى.نو ددې حياء عرفى پريخودل به مستحب وى.

خوكه يو كارداسې وى.چه هغه مباح وى.اودنبى ﷺ نه ثابت نه وى.اوحياء عرفى په كښې مانع وى.نو بيشكه تاسو هلته په حيا عرفى باندې عمل كوئ.اودغه كار مه كوئ.(٣) والله اعلم.

---

(١) فضل البارى (٣٢٢/١)_

(٢) فيض لابارى (٧٩/١)_

(٣) فضل البارى(٣٢٢/١، ٣٢٣)_

# ۳=باب: الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ

## الحديث العاشر

[۱۰] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ وَإِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا (۱) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ

**د ماقبل سره ربط او د ترجمې مقصد** امام بخاری اول د ایمان حقیقت ((هو قول وفعل)) او دده صفت ((یزید وینقص)) ثابت کړل.اود امام بخاری مقصد د مرجئو تردید وو.هلته کښې امام بخاری د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما روایت ((بنی الإسلام علی خمس....)) ذکر کړے وو.په هغې کښې د اصول ایمان ذکر وو.بیا امام بخاری رحمه الله د شعب ایمان تذکره اوکړله.چه ایمان په دے اصولو کښې منحصر نه دے.بلکه د ایمان نورے شعبې هم شته .او هغه شپیته یا اویا دی.

هلته هم د مرجئو تردید مقصود وو.اوس دد ے نه پس ((المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده)) ترجمه امام بخاری رحمه الله قائمه کړله.اودا خودل غواړی.چه مؤمن او مسلمان دپاره ضروری دی.چه هغه به بل ته د ضرر رسولو نه خان بچ ساتی.دده دپاره ضروری ده.چه دے به د نورو خیرخواه او خیر غوښتونکے وی.دد ے نه د مرجئو تردید کیږی.هغوی وائی.چه د طاعت څه فائده نشته.او معصیت نقصان نه ورکوی.امام بخاری خودل غواړی.که مسلمان نورو مسلمانانو ته د ضرر رسولو نه خان بچ ساتی.نو دد ے نیکئ په سبب به هغه کامل مسلمان جوړ شی.دا د طاعت لویه فائده ده.اوکه یو مسلمان بل مسلمان ته په لاس یا په ژبه باندے د تکلیف رسولو د ګناه مرتکب شو.نو هغه د مسلمان وئیلو مستحق نه دے.دا د معصیت څه کم نقصان دے؟

په ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله هم د حدیث الفاظ ذکر کړی دی.خکه چه دوی کله کله هم د حدیث د الفاظو نه ترجمه جوړوی.

---

(۱) الحديث أخرجه البخاری فی کتاب الرقاق أيضا باب الإنتهاء عن المعاصی رقم(۶۴۸۴) ومسلم فی صحيحه فی کتاب الإيمان باب بيان تفاضل الإسلام وأی أموره أفضل والنسائی فی سننه و فی کتاب الإيمان وشرائعه باب صفة المسلم وابوداود فی سننه فی کتاب الجهاد باب فی الهجرة هل انقطعت رقم(۲۴۸۱) واحمد فی مسنده (۱۶۳/۲، ۱۹۲، ۱۹۵، ۲۳، ۲۰۵، ۲۰۹، ۲۱۲) والدارمی فی سننه (۳۸۸۰/۲ کتاب الرقاق باب فی حفظ اليد رقم(۲۷۱۶)۔

# رجال الحدیث

① **آدم بن ابی ایاس** دا ابوالحسن آدم بن ابی ایاس عبدالرحمن العسقلانی دے.دوی په خراسان کښے پیدا شوی وو.په بغداد کښے لوئے شوے وو.اود هغه ځائے د شیوخو نه ئے علم حاصل کړے وو.بیا کوفه ،بصره،حجاز او شام طرته ئے سفر کړے وو.عسقلان ئے خپل وطن گرځولے وو.او هلته په ۲۲۰ ،ھ یا ۲۲۱ھ کښے وفات شوے وو.

ابوحاتم رحمه الله فرمائي.((هو ثقة مأمون من خيار عباد الله تعالى))

ددوی روایات امام بخاری،امام نسائی ،امام ترمذی او امام ابن ماجه رحمهم الله په خپلو خپلو کتابونو کښے راوړی دی.(۱)

دا امیر المؤمنین شعبه بن الحجاج بن الورد عتکی واطی بصری دے.ابوبسطام ئے کنیت دے.د دوی په جلالت شان او امامت باندے ټول متفق دی.

امام سفیان ثوری رحمه الله فرمائي.((شعبة أمير المؤمنين في الحديث))

امام احمد رحمه الله فرمائي.((كان أمة وحده في هذا الشأن))

په عراق کښے د رجالو د تفتیش او د حدیث د دفاع کار د ټولو نه وړاندے دوی شروع کړے وو.په ۱۶۰ھ کښے وفات شوی وو.د اصول سته مصنفینو د دوی روایات نقل کړی دی.(۲) رحمه الله تعالی.

② **عبدالله بن ابي اسفر:** دا عبدالله بن ابی السفر ثوری کوفی دے.ثقه دے.

د ترمذی نه علاوه په باقی اصول سته کښے د دوی احادیث موجود دی.دا ثقه دے . د مروان بن محمد په عهد خلافت کښے دوی وفات شوی وو.(۳)

علامه عینی رحمه الله فرمائي.،،السفر،،چه چرته هم د نوم په طور راشی.نو د فاء د سکون سره به وی.اوچه کله د ،،ابوالسفر،، یعنی د کنیت په طور راشی.نو هلته به د فاء په فتحه سره وی.دلته کښے هم د فاء فتحه ده.البته بعضے حضرات دلته په فاء باندے سکون وائی.(۴)

③ **اسماعیل** رحمه الله: دا اسماعیل بن ابی خالد احمسی بجلی کوفی دے.د حضرت انس رضی الله عنه نه علاوه ئے د نورو ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه احادیث اوریدلی دی.د دوی نه د علم حاصلونکو کښے د سفیان ثوری رحمه الله غوندے امام المحدثین هم شته.

دوی ثقه ،ثبت، صالح اومتقن وو.دوی ته ،،میزان،، وئیلې شی.په کوفه کښے په ۱۴۵ھ یا ۱۴۶ھ کښے وفات شوے وو.په اصول سته کښے د دوی احادیث مروی دی.(۵)

---

(۱) عمدة القاری (۱/۱۳۰) وتقریب التهذیب (ص.۸۶ شعبه (۱۳۲)_

(۲) عمدة القاری (۱/۱۳۰ وتقریب التهذیب (ص.۲۶۶ رقم الترجمة (۲۷۹۰)_

(۳) عمدة پورتنی حواله وتقریب التهذیب (ص.۳۰۶) رقم الترجمة (۳۳۵۹)_

(۴) عمدة القاری پورتنی حواله)_

(۵) عمدة القاری (۱/۱۳۰) وتقریب التهذیب (۱۰۷) رقم الترجمة (۴۳۸_

⑨ شعبي رحمه الله دا ابوعمرو عامر بن شراحيل شعبي كوفي دے.جليل الدر ثقه تابعي فقيه او فاضل دے.په صحابه كرامو كښے ئے د يو لوئے ډلے نه كسب فيض كړے وو.پخپله فرمائي.

((أدركت خمسمائة صحابي)) مكحول رحمه الله فرمائي.((ما رأيت أفقه منه))

د دوی نه د امام قتاده رحمه الله نه علاوه نورو ډيرو تابعينو روايت كړے دے.د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په شپږم كال پيدا شوے وو.په كوفه كښے د قضاء په منصب باندے هم پاتے شوے وو.په ۱۰۳ھ يا ۱۰۴ھ يا ۱۰۵ھ يا ۱۰۶ھ كښے وفات شوے وو.(۱) رحمه الله تعالى.

**حضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضى الله عنهما** دا مشهور صحابي حضرت عبدالله بن عمروبن العاص بن وائل بن اشم بن سعيد (بالتصغير) الهمي دے.د دوی كنيت ابومحمد. ابوعبدالرحمن يا ابونصير دے.په عبادله اربعه كښے يو دے.

د دوی شمار په حقيقت كښے په حضرات صحابه مكثرين كښے پكار وو.خوچونكه د دوی روايات مونږ ته كم رارسيدلى دى.نوځكه دوی په مكثرين في الحديث صحابو رضي الله عنهم كښے نشى شمارلے.(۲)

دا هم هغه صحابي دے.چه د نبي صلى الله عليه وسلم نه ئے د كتابت حديث اجازت غوښتے وو.(۳) اود احاديثو يوه مجموعه ئے تياره كړے وه.چه د هغے نوم دوی ((الصحيفة الصادقة)) كيخودے وو.(۴)

په وړاندينى باب كښے د حضرت ابوهريره رضي الله عنه تذكرے لاندے مونږ دا ذكر كړے وو.چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به فرمائيل.((ما من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم أحد أكثر حديثاً عنه مني إلا ما كان من عبدالله بن عمرو،كان يكتب ولا أكتب))(۵) دا بيله خبره ده.چه مونږ ته د دوی روايات نه دى رارسيدلے.د دے څه وجوهات دى.مونږ په تفصيل سره د حضرت ابوهرير رضي الله عنه په تذكره كښے دد ے ذكر كړے دے.((فارجع إليه إن شئت))

د دوی روايات كوم چه مونږ ته رارسيدلى دى.هغه ټول اووه سوه دى.چه په هغے كښے متفق عليه اوولس احاديث دى.بيا اته احاديثو كښے امام بخاري منفرد دے.او په شلو كښے امام مسلم(۶) دوی د خپل پلار حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه نه وړاندے مسلمان شوے وو.د دوی او د دوی د پلار په عمر كښے يوولس يا دولس كاله فرق خودلے شى.(۷)

---

(۱) عمدة (۱۳۰/۱ وتقريب (ص،۲۸۷ رقم الترجمة (۳۰۹۲)_

(۲) د عبادله اربعه په باره كښے تفصيل په ..بدء الوحي.. كښے د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د تذكره لاندے تير شوے دے.دغه شان د مكثرين صحابو تفصيل هم په ..بدء الوحي.. كښې د دويم حديث لاندے د حضرت عائشے رضي الله عنها په تذكره كښے تير شوے دے.

(۳) سنن درامى (۱۳۶،۱۳۷/۱) المقدمة باب من رخص فى كتابة العلم رقم(۴۸۵، ۴۸۶)_

(۴) طبقات ابن سعد(۲۶۲/۴) ترجمة عبدالله بن عمروبن العاص (۳۷۳/۲)_

(۵) صحيح بخارى كتاب العلم باب كتابة العلم رقم(۱۱۳)_

(۶) عمدة القارى(۱۳۱/۱) وتهذيب الأسماء واللغات (۲۸۲/۱)_

(۷) طبقات ابن سعد (۲۶۲/۴ وتهذيب الأسماء واللغات(۲۸۱/۱)_

په صحابه کرامو ﷺ کښې د ټولو نه لوئې عابد اوزاهد مشهور وو .دغه شان د کتب سابقه په مطالعه کښې هم د نورو نه ممتاز وو.(١)

د اصح قول مطابق په ايام حره کښې د طائف په مقام د دې وفات شوے دے.(٢)

**قوله: الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ:** مسلمان هغه دے.چه دهغه د ژبې او لاس د تکليف نه نور مسلمانان محفوظ وى.

((المسلم)) کښې الف لام د عهد دپاره دى.((المسلم الكامل)) په معنى دے.يعنى کامل مسلمان هغه دے.چه نور مسلمانان د هغه د ژبې او لاس د شر نه محفوظ وى.(٣)

حضرت علامه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائى.چه د علمى تحقيق د حد پورے خو ټيک ده.ته وئيلے شے.چه الف لام دپاره د عهد دى.او د ((المسلم الاكمل))يا((المسلم الممدوح)) په معنى کښې دے.خو په دے صورت کښې په کلام کښې زور باقى نه پاتے کيږى.که الف لام د جنس دپاره واخستے شى.نو مطلب به دا شى.چه د مسلمان د لقب هغه کس حق دار او مستحق دے. چه دچا دپښو لاسو او ژبې د شر نه نور محفوظ وى.که څوك نورو ته تکليف او ضرر رسوى.نو هغه ته موذى او ضار وئيلى شى.مسلمان ورته نشى وئيلے.په دے صورت کښې تنبيه او زجر زيات دے.دا بيخى داسے ده.لکه چه اهل عرب ..ابل.. باندے د ..مال.. او په ,,عرب.. باندے د ,,ناس.. اطلاق کوى.((المال الإبل))او((الناس العرب)) حالانکه د ابل نه علاوه نور مالونه او د عربو نه علاوه نور انسانان هم شته.خو د ابل د اهميت خودلو دپاره د جنس مال اود عربو د اهميت خودلو دپاره د جنس ناس اطلاق په ابل او عرب باندے کولے شى.

دغه شان قاعده ده.چه په خانه کعبه باندے د ..بيت.. اطلاق ددے د عظمت د اظهار دپاره کولے شى.دغه شان په کتاب سيبويه باندے د ..الكتاب.. اطلاق هم ددے د عظمت د اظهار دپاره دے.دلته کښې هم که الف لام دجنس دپاره واخستلے شى.او مطلب دا شى.چه د کوم کس د لاس او ژبې د شر نه نور خلق محفوظ نه وى.هغه د مسلمان وئيلو مستحق نه دے. لکه چه دا د ((تنزيل الناقص بمنزلة المعدوم)) د قبيله څنې دے.چه مسلمان صرف هغه کس ته وئيلى شى.چه نور خلق د ده د شر نه محفوظ وى.دا عنوان که اختيار کړے شى.نو په دے کښې به خلقو ته تنبيه وى.او دوى به د تکليف رسولو نه د بچ کيدو اهتمام کوى.که مونږ نورو ته تکليف يا ضرر اورسولو.نومونږ د مسلمان وئيلو مستحق نه يو.نومونږ ته ددے نه بچ کيدل پکار دى.(٤)

په خلاف د اولنى صورت که هلته تاسو د ((المسلم الكامل)) ترجمه کوئ.نو سړے دا سوچ کولے

(١) طبقات ابن سعد (٤/٢٦١.٢٦١.٢٦١) وسير أعلام النبلاء (٨١/٣)_

(٢) تقريب التهذيب (٣١٥) رقم الترجمة (٣٤٩٩)_

(٣) عمدة القارى(١٣٢/١)_

(٤) فيض البارى(٨٠/١)دغه شان ايضاح البخارى(١٧٩/٢)_

شي.چه په ما كښې نور هم ډير نقائص دي.كه دا يوه كوتاهي راكښې هم وي.نودا څه خبره ده.
په دے كښې دومره زجر او تنبيه نشته.لكه څومره تنبيه چه په الف لام د پاره د جنس كښې ده.
حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله ليكلي دي.چه زمونږ فقهاء دا مسئله ليكي .كه عوام د غيبت متعلق د مسئلے تپوس اوكي.چه په دے باندے روژه ماتيږي؟ نو هغه حديث

دے ورته واورولے شي.چه په هغے كښې فرمائيلے شوي دي.«الغيبة يفطر الصوم» چه غيبت د روژے ماتونكے دے.او په دے سره روژه باقي نه پاتے كيږي . د دے نه زياتي ورته څه مه وائے.البته كه يو كس د كولو نه پس تپوس اوكړلو په هغه وخت كښې داصل مراد مناسب تشريح كولے شي.(۱) دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دي.كه ددوي نه به چا څه مسئله تپوس اوكړلو.چه د قاتل عمد دپاره توبه شته.؟كه هغه ته به پته اولګيدله.چه تراوسه پورے ئےڅوك قتل كړے نه دي.بلكه د قتل اراده لري.نوځكه د مسئلے تپوس كوي.نوهغه ته به ئے د آيت د ظاهر مطابق مسئله خودله.چه توبه نشته.﴿ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيهَا......﴾(۲) اوكه پته به ورته اولګيدله.چه قتل ئےكړے دے.خو اوس پښيمانه دے.اود توبے په غرض راغلے دے.نو بيا به ئے ورته واقعي مسئله خودله.چه توبه قبليږي.(۳) غرض دا چه د عالمانو دپاره د حال د تقاضا رعايت ضروري دے.(۴)
بعضے حضراتو فرمائيلي دي.چه په حقيقت كښې دلته دا خودل وو.چه مسلم د ..اسلام.. نه ماخوذ دے.نود مسلمان علامت دا كيدل پكار دي.چه د ده نه نورو ته تكليف اونه رسي.
دلته دا علامت بيانول مقصود دي.چه په هغے سره دمسلمان په
اسلام باندے استدلال كولے شي.اوپه كومه نښه چه هغه مسلمان ګڼړلے شي.اوهغه دا چه نور خلق دده د شر نه محفوظ وي.چاته دده نه تكليف نه وي.(۵)

**يوه شبه او دهغې جواب:** دلته د حديث د الفاظو «المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» نه معلوميږي. كه يوكس نورو ته تكليف نه رسوي.نو هغه مسلمان دے.كه مونځ كوي.اوكه نه

---

(۱) په غيبت سره روژه ماتيږي.يا نه؟د جمهورو عالمانو په نيز نه فاسيدږي.البته دامام سفيان ثوري رحمه الله په نيز روژه ماتيږي.په متن كښې ذكر شوي الفاظ د حديث ((الغيبة يفطرالصوم)) احقرته ملاؤ نشو.البته د بعضے تابعينو آثار په دے باره كښې مروي دي.امام غزالي رحمه الله د امام مجاهد: رحمه الله اثر نقل كړے دے((خصلتان تفسدان الصوم الغيبة والكذب)) امام مجاهد رحمه الله نه چه كوم الفاظ مشهور دي.هغه دا دي.((خصلتان من حفظهما سلم له صومه :الغيبة والكذب)) (هكذا رواه ابن ابي شيبة) دغه شان عبيده سلماني رحمه الله نه منقول دي((اتقوا المفطرين الكذب والغيبة) اوګورئ عمدة القاري(۲۷۶/۱۰ كتاب الصوم باب من لم يدع قول الزور والعمل به في الصوم)_
(۲) النساء:۹۳)_
(۳) تفسير ..الدرالمنثور..(۱۹۸/۲) آيت ﴿ ومن يقتل مؤمناً متعمداً فجزاؤه جهنم ..﴾ دغه شان فتوى د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه هم منقول ده.پورتنۍ حواله)_
(۴) فضل الباري(۳۲۵/۱)_
(۵) فضل البار(۳۲٤/۱)

کوی .روژه نیسی اوکه نه نیسی.دغه شان نور فرائض ادا کوی که نه ادا کوی . ځکه چه په دے کښے د یو څیز ذکر نشته.

ددے جواب دا دے.چه دلته «المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده» سره «مع مراعاة باقی الأرکان»قید هم ملحوظ دے.(۱) یعنی دا نه ده.چه دومره خبره د مسلمان کیدو دپاره کافی ده.بلکه د اسلام د نورو ارکانو سره ددے اهتمام ضروری دے.

دویم جواب دا ورکړے شوے دے.چه دلته صرف دومره خبره خودلے شوے ده.چه په مسلمان کښے د سلامتیا د وصف وجود پکار دے.د یو څیز د اهمیت د وجے د هغے تذکره شوے ده.دے نه دا ځنګه لازمیږی.چه د اسلام د نورو احکامو او ارکانوڅه حیثیت نشته.او مسلمان ددے د ادا کولو مکلف نه دے.ددے خو دلته څه ذکر نشته.(۲)

**أیا غیر مسلم د تکلیف نه بچ کول ضروری نه دی؟** بیا دلته «المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده» کښے د ..مسلمون.. په قید باندے دا اشکال دے.چه د شر نه حفاظت داهل اسلام دپاره خاص نه دے.نور انسانان هم د خپل شر نه بچ کول پکار دی.بلکه د تکلیف نه خو ځناورو حفاظت هم ضروری دے.په بخاری شریف کښے روایت دے.«عذبت إمرأة فی هرة حبستها حتی ماتت جوعاً فدخلت فیها النار،قال فقالوا والله أعلم لا أنت أطعمتها ولا سقیتها حین حبستیها ولا أنت أرسلتها فأکلت من خشاش الأرض» (۳)ددے نه معلومه شوه.چه ځناورو ته هم د تکلیف رسولو ممانعت دے.بیا د «المسلم» قید ولے اولګولے شو؟

ددے جواب دا دےچه «خرج هذا القید مخرج الغالب»ځکه چه د مسلمان واسطه زیات تر د مسلمانانو سره راځی.د شپے او ورځے دده ګډون او ملاویدل د مسلمانانو سره وی.په دے وجه د «المسلمون» قید ذکر کړے شو.(۴) یا دا قید ددے دپاره دے.چه په دارالاسلام کښے زیات اوسیدونکی چه دده ورسره واسطه وی.مسلمانان وی.

یا داسے اووایه.چه د کافرانو دوه قسمونه دی.ذمی او حربی که هغه ذمی وی.نو«دماؤهم کدمائنا وأموالهم کأموالنا وأعراضهم کأعراضنا» د اصولو په بنا باندے هغوی په «المسلمون» کښے داخل دی.اګرچه هغوی په حقیقت کښے مسلمانان نه وی.خوهغوی حکماً په اهل اسلام کښے داخل کړے شوی دی.ځکه چه د هغوی د وینو مالونو او اعراضو دحرمت هم هغه حکم دے.

---

(۱) فتح الباری(۵۳/۱)_
(۲) امدادالباری(۳۴۲/٤)_
(۳) صحیح بخاری کتاب المساقاة باب فضل سقی الماء رقم (۲۳۶۵) وکتاب بدء الخلق باب إذا وقع الذباب فی شراب أحدکم فلیغمسه.إلخ رقم(۳۳۱۸)وکتاب أحادیث الأنبیاء باب(بلاترجمة بعدباب حدیث الغار)رقم (۳۴۸۲)
(۴) فتح الباری(۵۳/۱)_

کوم چه د مسلمانان د وینو مالونو او اعراضو دے.
د اهل حرب کافرانو دوه قسمونه دی.یو مصالحین چه دهغوی سره صلح شوے وی . دویم محاربین چه هغوی سره صلح نه وی شوے.چا سره چه صلح شوے وی .هغوی ته دتعرض اجازت نشته.او د صلح مطابق د هغوی د مالونووینو او اعراضودحفاظت ذمه واری به وی.نودا هم ضمناً د «المسلمون» په قید کنبے داخل دی.
باقی پاتے شو محاربین کافران کوم چه اهل حرب دی.اود هغوی سره څه صلح نه ده شوے.نو بیشکه هغوی داسے دی.چه هغوی ته تکلیف او نقصان اورسولے شی.اودا هم ددے وجے چه هغوی د اسلام مقابله کول او د اسلام لاره نیول پریږدی.نو بس دوی به مستثنی وی.او باقی به مستثنی نه وی. هغوی حکماً په «المسلمون» کنبے داخل دی.(۱)

په دویم روایت کنبے راځی.«والمومن من أمنه الناس علی دمائهم وأموالهم» (۲)دلته کنبے د ،،الناس،، لفظ عام دے.او په دے کنبے مسلمان،ذمی او حربی مصالح ټول داخل دی.

تاسو دا هم وئیلے شئ:چه د «المسلمون» تخصیص دلته د دوی د عظمت د وجے شوے دے.
باقی د محاربینو کافرانو نه علاوه چاته هم نقصان رسول جائز نه دی.دغه شان ضمناً ځناور هم ددےحفاظت په حکم کنبے داخل دی.
**من لسانه ویده**: د لسان په شر کنبےسب وشتم، لعن طعن او بهتان وغیبت دا ټول داخل دی.د هریو نه بچ کیدل واجب او ضروری دی.

«من لسانه» ئے اوفرمائیل.او «من قوله» ئے اونه فرمائیل.ځکه چه په ژبه باندے ضرر رسول بغیر د تکلم او تلفظ نه هم کیږی.لکه چه سړے خپله ژبه راوباسی.او په غصه شی.په دے باندے هم تکلیف رسی.نو د ژبے لفظ ئے ځکه استعمال کړلو.چه په دے کنبے تلفظ او قول هم شامل شی.او د «إخراج اللسان من الفم» صورت په کنبے هم داخل شی.

«ویده» ذکر ئے اوکړلو.د لاس په ضرر کنبے وهل او قتل هم داخل دی . دفع او هدم هم ،دغه شان په دے کنبے کتابت بالباطل هم داخل دے.
بعضے حضراتو وئیلی دی.چه تکلیف خو په نورو اندامونو باندے هم رسولے شی.نو بیا د «ید» تخصیص ولے اوکړے شو؟

ددے وجه دا ده.چه سلطنت افعال داهم د «ید» نه ښکاره کیږی.اخذ وبطش ،وصل وقطع،منع و اعطاء داټول په لاس سره کیږی.یعنی زیات افعال د لاس په ذریعه کیږی.ځکه ددے ذکر اوکړے شو.د نورو اندامونو نه احتراز مقصود نه دے.

(۱) د تفصیل دپاره اوګورئ فضل الباری (۳۲۵/۱) وعمدة القاری(۱۳۳/۱)۔
(۲) سنن نسائی (۲۶۶/۲) کتاب الإیمان وشرائعه باب صفة المؤمن – وجامع ترمذی کتاب الإیمان باب ما جاء أن المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده رقم (۲۶۲۷)۔

یا داسے اووایه چه ((قبض علی مال الغیر)) نه چونکه په ..ید.. سره تعبیر کولے شی.نو قتل وضرب وغیره سره چه کوم نقصان د ((قبض علی مال الغیر)) په صورت کښے وی.د شاملولودپاره دلته د ،،ید.. عنوان اختیار کړے شو.(۱)

**لسان په ..ید، باندې ولې مقدم کړې شوه؟** دلته دا سوال شوے دے چه ..لسان.. په ..ید.. باندے ولے مقدم کړے شو .نوددے وجه دا ده.چه په ژبه باندےکوم تکلیف رسولے شی.هغه عام هم وی.اوتام هم وی.خکه چه په لاس سره خو هغه چاته نقصان رسولے شی .خوك چه تاته مخامخ وی.اوعام طور هم داسے کیږی.او په ژبه باندے هغه سړی ته هم نقصان رسولے شی.خوك چه دلته حاضر نه وی.یا غریب مړ شوے وی.یا پیدا شوے هم نه وی.چونکه د ژبے شر عام او تام دے.خکه ونیلے شوی دی.

جراحات السنان لها التيام ولا يلتام ما جرح اللسان

په ژبه چه کوم زخم اولگی.هغه کله هم نه ختمیږی.بلکه تازه وی.او د لاس زخم څه موده پس تیك شی.باقی نه پاتے کیږی.(۲)

**قوله وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ:** دلته کښے هم هغه صورت دے.چه یا به ته الف لام د عهد دپاره اخلے.او د ..هاجر. نه به .مهاجر کامل مراد وی.

اویا به ته الف لام د جنس دپاره گرخوے.او مطلب به دا وی.چه هجرت هم هغه معتبر دے.چه په هغے کښے گناه نه وی.اود مهاجر ونیلو مستحق هم هغه کس دے .چه گناه ئے پریخودے وی. خکه چه د وطن پریخودل بذات خود څه مطلوب څیز نه دے.دیو وطن نه بل وطن ته هجرت کول خوددے دپاره وی.چه اولنی وطن کښے دالله تعالی په حکمونو باندے عمل کول گران وو.نوخکه هغه پریخودے شی.او بل وطن ته هجرت کولے شی.نو د هجرت اصل مقصد د گناه پریخودل دی.ددے وجے چه کوم سړے وطن پریږدی.او دارالاسلام ته راشی.که هغه د گناهونو ارتکاب بیا هم کوی.نو هغه د مهاجر ونیلو لائق نه دے.

بیا ((المهاجر من هجر ما نهی الله عنه)) کښے یوه وجه دا هم بیان شوے ده.چه په اصل کښے به د مکے مهاجرینو د مکے نه هجرت کولو او مدینے منورے ته به راتلل .نود انصارو د طرفه به دهغوی سره د ایثار مظاهره کیدله.هغوی به خپل مالونه هم دوی ته پیش کول.او بعضے وخت که د انصاری به څو ښخے وے.نو هغه به ئے ورته هم پیش کولے.او ونیل به ئے.چه ستا کومه یوه خوښه وی.زه ورته طلاق ورکوم.ته ورسره نکاح اوکړه.نوخکه نبی ﷺ تنبیه ورکړله.چه په هجرت کښے دا څیزونه مطلوب او مقصود مه گرخوئ.کنی د هجرت عمل به ضائع شی.اووے فرمائیل.چه د گناهونو نه د بچ کیدو اهتمام کوئ.په دے سره به د هجرت مقصد هم پوره شی . او هجرت حقیقی به هم حاصل شی.

(۱) د تفصیل دپاره اوگورئ فتح الباری(۱/۵٤) وعمدة القاری(۱/۱۳۲، ۱۳۳)_
(۲) عمدة القاری(۱/۱۳۲)_

یو خبره دا هم وه.چه کله نبی ﷺ مکه مکرمه فتح کړله.نود فتح مکه نه پس چه څوک مسلمانان شوی وو.هغوی ته افسوس او ارمان وو.که مونږ هم وړاندے اسلام قبول کړے وو. نومونږته به هم د هجرت فضیلت حاصل شوے وو.کوم چه ډیر لوئے فضیلت دے.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.چه «لولا الهجرة لکنت أمرء من الأنصار»[1] که د هجرت فضیلت نه وے.نو زما به دا تمنا او ارمان وو.چه هم په انصارو کښے ووم.خو د هجرت د فضیلت د وجے زه دا ارمان نه کوم.نودا حضرات چه د فتح مکه نه پس مسلمانان شوی وو.او د هجرت شرافت ورته نه وو حاصل شوے.هغوی ته افسوس وو.د هغوی د تسلئ او اطمینان قلب دپاره نبی اوفرمائیل. چه حقیقی هجرت خو دا دے.چه د ګناهونو نه هجرت اوکړے شی.او د کومو څیزونو نه چه الله تعالی منع کړے ده.د هغے نه اجتناب اوکړے شی.اودا فضیلت تاسو اوس هم حاصلولے شئ.د دے حضراتو د تسلئ او اطمینان دپاره لګه چه نبی ﷺ دا ارشاد فرمائیلے وو.[2]

**د هجرت حکم** دهجرت قسمونه وړاندے د اول حدیث په ضمن کښے د «فمن کانت هجرته» د لاندے تیر شوی دی.دلته د خلاصے په طور دا زده کړئ.چه د هجرت یو ظاهری قسم دے.او بل باطنی قسم[3]

د هجرت ظاهری حکم دا دے.چه سړے په دارالکفر کښے اوسیږی.او هلته د اسلامی احکامو ادا کولو دپاره ده ته ګنجائش نه وی.نو دده دپاره هجرت کول فرض دے.اوکه هلته د اسلامی احکامو ادا کولو کښے څه خلل نه وی.نو دده دپاره هجرت فرض خو نه دے.البته خوښ او مستحب بیا هم دے.ځکه چه د مسلمانانو په یو ځائے څومره زیاته اجتماع وی.نو هومره د اسلام او مسلمانانو په حق کښے زیاته خیګړه وی.

د هجرت دویم قسم کوم چه هجرت باطنی دے.دے ته هجرت حقیقی هم وئیلی شی.یعنی هجرت «من الذنوب والمعاصی» ځکه چه هجرت «من دارالکفر إلی دارالإسلام» کیږی.دا بذات خود څه مقصود نه دے.دا خو ددے دپاره وی.چه د ګناهونو او د اسلام د احکامو پریخودلو نه سړے بچ شی.نوځکه دا هجرت «من الذنوب والمعاصی» حقیقی هجرت او باطنی هجرت دے.ښکاره ده چه دا هجرت په ټولو باندے لازم او ضروری دے.

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْدِاللّٰهِ وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا دَاوُدُ هُوَ ابْنُ أَبِي هِنْدٍ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَاللّٰهِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دا تعلیق دے.اوددے مقصد دا دے.چه وړاندے کوم روایت د عبدالله بن ابی السفر او اسماعیل

(۱) صحیح بخاری کتاب مناقب الأنصار .باب قول النبیﷺ لولا الهجرة لکنت إمرأ من الأنصار رقم،(۳۷۷۹) وکتاب التمنی باب ما یجز من اللو رقم (۷۲۴۴ و(۷۲۴۵ وجامع ترمذی کتاب المناقب باب فضل الأنصار وقریش رقم(۳۸۹۹)_
(۲) فتح الباری(۵۴/۱) وارشاد الساری(۹۴/۱)_
(۳) فتح الباری(۵۴/۱)_

په طریقه سره ذکرشوے دے.په هغے کښےد..شعبی..ذکر وو.خو هلته د شعبی نوم نه وو خودلے شوے.دلته کښے اوخودلے شو.چه د هغه نوم عامر دے.بیا هلته چه د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه حضرت شعبی رحمه الله کوم روایت کوی هغه د ..عن..په لفظ سره دے.او په ..عن. کښے داتصال او انقطاع دواړو احتمال وی.نو دلته ئے «قال سمعت عبدالله بن عمرو» اوفرمائیل.او د سماع تصریح ئے اوکړله.

لکه چه د دے تعلیق نه دوه فائدے حاصلے شوے.یو خو د راوی امام شعبی رحمه الله نوم معلوم شو.او بله د سماع تصریح اوشوه.او اولنے روایت معنعن وو.په هغے کښے د سماع او عدم سماع دواړو احتمال وو.په دے تعلیق سره احتمال دعدم سماع ختم شو.(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ابن منده رحمه الله نقل کړی دی.چه دا حدیث «وهیب بن خالد عن داود عن الشعبی عن رجل عن عبدالله» په طریق سره هم مروی دی .لکه چه د شعبی رحمه الله او صحابی رضی الله عنه په مینځ کښے یو مجهول کس دے.په دے صورت کښے به د تعلیق فائده دا شی. چه کله شعبی رحمه الله ته په یوه واسطه د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت ملاؤ شو.نو هغوی براه راست د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما سره ملاقات اوکړلو..او د حدیث سماع ئے ترے اوکړله .دکوم ذکر چه په دے تعلیق کښے صراحةً موجود دے.(۲)

د ابومعاویه دا تعلیق اسحاق بن راهویه رحمه الله په خپل مسند کښے موصولاً کړے دے. او ابن حبان رحمه الله هم په خپل صحیح کښے ددے تخریج کړے دے.د هغوی الفاظ دا دی.«سمعت عبدالله بن عمرو یقول: ورب هذه البنیة لسمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: المهاجر من هجر السیئات والمسلم من سلم الناس من لسانه ویده»(۳)

**قوله: وَقَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** دا دویم تعلیق دے.ددے د نقل کولو مقصد دا دے.چه دلته عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهما په مطلق ..عبدالله.. سره ذکر شوے دے.اود محدثینو رحمهم الله په نیز د صحابو رضی الله عنهم په طبقه کښے چه کله عبدالله مطلق ذکر شی.نو د هغے نه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مراد اخلی.(۴) نو خکه دا شبه کیدے شوه.چه کیدے شی.دا د امام شعبی رحمه الله بل سند وی.چه هغه ئے د عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما په ځائے د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل کوی.په دے باندے ئے تنبیه ورکړله.چه اول مونږ تصریح کړے ده.چه دا عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما دے.د باب په اصل روایت کښے هم دعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما تصریح راغلے ده.نو ته پوهه شه.چه دلته

(۱) فتح الباری(۱/۵٤)_
(۲) فتح الباری(۱/۵٤)_
(۳) پورتنئ حواله)_
(۴) امداد الباری(٤/٤٤٣)_

عبدالله مطلق راغلې دے. د دے نه هم هغه عبدالله بن عمرو رضي الله عنه مراد دے.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مراد نه دے.

**د ترجمة الباب مقصد** د ترجمة الباب مقصد وړاندے بيان شوے دے بيا ئے واورئ.چه امام بخاری رحمه الله په مرجئو باندے رد کوی.خکه چه د هغوی وينا ده.چه «الطاعة لا تفيد والمعصية لا تضر» امام بخاری رحمه الله اوخودل.چه ستاسو خيال غلط دے.معصيت به مضر ولے نه وی؟کامل اسلام نه وی. سړے د مسلمان ونيلو حقدار نه وی.کله چه هغه په خپله ژبه يا لاس نورو ته تکليف رسوی. معلومه شوه.چه معصيت مضر دے.او که يو کس د معصيت نه بچ کيږی.او خپل خان د نورو خلقو د تکليف رسولو نه بچ ساتی.نو په دے باندے په اسلام کښے کمال راځی.او هغه سړے د مسلمان ونيلو حقدار دے .نو دا خيال چه طاعت مفيد نه دے.او معصيت مضر نه دے.غلط دے.

## ۴=بَاب اَيُّ الاسلام اَفْضَلُ

## الحديث الحادي عشر

[۱] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْقُرَشِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو بُرْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ قَالَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ

**ما قبل سره ربط** د اولنی باب نه يوه شبه پيدا شوے وه.چه «المسلم من سلم المسلمين من لسانه ويده» نه معلومه شوه.که يو سړے نورو ته تکليف رسوی.نو هغه مسلمان او مومن نه پاتے کيږی. نو ددے نه د خوارجو اومعتزلو تائيد کيږی. هغوی هم دا وائی.چه په ارتکاب د کبيره سره سړے مومن نه پاتے کيږی. او تاسو هم دا وايے چه مسلمان هغه دے.چه د هغه د ژبے او لاس نه چا ته تکليف اونه رسی.

ددے اشکال لرے کولو دپاره امام بخاری رحمه الله «أي الإسلام أفضل» ترجمه قائمه کړه.دا خودل غواړی.چه د اسلام درجات دی.که يو سړے د خپل شر نه نورو ته تکليف رسوی.نو هغه د ادنی درجے اسلام خاوند دے.د اسلام نه خارج نه دے.

## رجال الحديث

**قوله**: سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى : سعيد بن يحيى بن سعيد اموی دے ابوعثمان ئے کنيت دے.د ابن ماجه رحمه الله نه سوا د باقی ټولو اصحاب اصولو استاذ دے.

ابوحاتم رحمه الله فرمائی.دوی صدوق دے.امام نسائی او يعقوب بن سفيان رحمهما الله فرمائی. چه دوی او د دوی والد دواړه ثقه دی.امام علی بن المدينی رحمه الله فرمائی.چه دوی د خپل

پلار په مقابله کښې اثبت دی.صالح بن محمد رحمه الله فرمائی.دوی ثقه دی.البته کله کله ترے غلطی کیږی.په ۲۴۹ھ کښې دوی وفات شوے دے.(۱)

**قوله**: يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: دا د اولنی راوی پلار دے.امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی.

«هو من أهل الصدق وليس به بأس» په یو بل روایت کښې ابن معین رحمه الله دے ثقه گرځولے دے.

دغه شان محمد بن عبدالله بن عمار موصلی او دارقطنی رحمهما الله دوی ته ثقه ونیلی دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«صدوق یغرب» د اتیا کالو په عمر کښې په ۱۹۴ھ کښې وفات شوی دی.(۲)

**قوله**: بُرْدَةَ: دا برید «بضم الباء الموحدة وفتح الراء المهملة» – ابن عبدلله بن ابی برده بن ابی موسی اشعری دے.دوی دخپل پلار.نیکه.حسن بصری او عطاء رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.او ددوی نه رویت کونکو کښې حضرت عبدالله بن المبارک رحمه الله غوندے اعلام محدثین شته.ابن معین رحمه الله د دوی توثیق کړے دے.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«ثقة يخطئ قليلاً»(۳)

**قوله**: أبو بردة: دا عامر یا حارث بن ابو موسی اشعری دے.دا ددے نه د وړاندے راوی نیکهٔ دے.ددواړو کینت یو دے.البته په نومونو کښې فرق شته.د نمسی نوم برید دے.اود نیکه نوم عامر یا حارث دے.

دوی د خپل پلار حضرت علی ،حضرت ابن عمراوحضرت عائشے رضی الله عنها نه روایات اوریدلی دی.او د دوی نه عمربن عبدالعزیز او امام شعبی رحمهما الله اودوی نه علاوه نورو ډیرو حضراتو روایات اخستے دی.دقاضی شریح رحمه الله نه پس د کوفے قاضی پاتے شوے دے.په حدیث کښې ثقه دے.اصحاب سته د دوی د روایاتو اخراج کړے دے.د اتیا کالونه ئے زیات عمر وو.په ۱۰۳ھ یا ۱۰۴ھ په کوفه کښې وفات شوے دے.(۴)

**قوله**: أَبُو مُوسَى اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: دا مشهور صحابی دے.د دوی نوم عبدالله بن قیس دے. دنبی ﷺ مدینے ته د هجرت نه وړاندے ئے تشریف راوړے وو.اوپه اسلام مشرف شوے وو.بیا یمن ته تلے وو.بیا ئے د حبشه هجرت کړے وو.د حبشه نه مدینے ته د فتح خیبر نه پس د اصحاب السفینتین سره هجرت کړے وو.حافظ ابوبکربن ابی داود السجستانی رحمه الله فرمائی.چه حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه کښې د دے نه علاوه یو بل فضیلت دا

---

(۱) عمدة القاری(۱/۱۳۴) وتقریب التهذیب (ص.۲۴۲ رقم الترجمة (۲۴۱۵)_
(۲) تهذیب الکمال (۳۱/۳۱۸-۳۲۲) وتقریب (۲.۵۹۰) رقم الترجمة (۷۵۵۴_
(۳) عمدة القاری(۱/۱۳۴) وتقریب (ص.۱۲۱) رقم الترجمة ۶۵۸)
(۴) عمدة القاری(۱/۱۳۵) وتقریب (۲/۲۱) رقم الترجمة (۷۹۵۲_

وو. كوم چه بل صحابي ته نه وو حاصل. دوی درے هجرتونه کړی دی. اولنے هجرت د يمن نه نبي کريم ﷺ طرفته، دويم هجرت د مکے مکرمے نه حبشه ته، اودريم هجرت د حبشه نه مدينے منورے ته، ليکن دا خبره دے بنکاره وی چه دلته هم اولنے قول صحيح دے چه دوی د مکے نه يمن ته تلے وو. بيا حبشه اودبيا د حبشه نه مدينے منورے ته راغلے وو.

نبي کريم ﷺ دوی د زبيد، عدن او دساحل يمن گورنر مقرر کړے وو. بيا عمر بن الخطاب رحمه الله دوی د کوفے او بصرے عامل مقرر کړے و.

حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه نه درے سوه شپيته روايتونه مروی دی. په دے کښے متفق عليه پنځوس احاديث دی. او بيا امام بخاری رحمه الله په څلورو احاديثو کښے منفرد دے او امام مسلم رحمه الله په پنځلس حديثونو کښے.

دحضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه شمار په صحابو رضي الله عنهم کښے په عالمانو او مفتيانو کښے کيږی.

د صحيح قول مطابق حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه په ۴۴ھ کښے وفات شوے وو. (۱)

**قوله: أَيُّ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ:** صحابه کرامو رضي الله عنهم د نبي کريم ﷺ نه تپوس اوکړلو چه «أي الإسلام أفضل؟» بعضے حضراتو د دے تقدير «أي خصال الإسلام أفضل؟» راويستے دے (۲) او بعضے حضراتو «أي ذوي الإسلام أفضل» تقدير راويستے دے. (۳) دا دويم تقدير د اولنی تقدير نه اولی دے. (۴) ځکه چه په جواب کښے د صاحب اسلام ذکر دے. نبي ﷺ په جواب کښے «من سلم المسلمون من لسانه ويده» اوفرمائل. اود مسلمان ذکر ئے اوکړلو. د خصلت ذکر ئے نه دے کړے. که چرته د «أي خصال الإسلام» تقدير راويستے شي. نو په سوال او جواب کښے به مطابقت نه وی. دويمه خبره دا هم ده. چه د دے حديث په بعضے طرق کښے «أي المسلمين أفضل» مذکور دے. (۵) او په جواب کښے هم هغه «من سلم المسلمون من لسانه ويده» ونيلے شوی دی. نو د «أي المسلمين» مطابق چه «أي الإسلام» راويستے شي. نو زياته بهتره به وی. اودا به هله وی. چه «أي ذوي الإسلام» مقدر اومنلے شي.

په دے تقدير سره د علامه کرمانی رحمه الله سوال او جواب غير ضروری گرځي. هغوی سوال کړے دے چه صحابه کرامو رضي الله عنهم د اسلام په باره کښے يعنی د خصلت په باره کښے سوال کړے

(۱) تهذيب الأسماء واللغات (۲۶۸/۲، ۲۶۹)_ وسير أعلام النبلاء (۳۸۰/۲، ۴۰۲)_ وعمدة القاری (۱۳۵/۱)

(۲) فتح الباری (۵۵/۱)_

(۳) پورتنۍ حواله)_

(۴) پورتنۍ حواله

(۵) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب بيان تفاضل الإسلام وأي أموره أفضل رقم (۱۷۳)_

وو.اوپه جواب کښې نبي ﷺ اوفرمائيل چه ((من سلم)) يعنې ((أى الخصلة)) ذکر ئې اوکړلو.لکه چه په سوال او جواب کښې مطابقت نشته.
بيا هغوی ددے جواب ورکړے دے.چه د نبي کريم ﷺ جواب د معنى په اعتبار سره بيخي مطابق بلکه په زياتي معنى باندے مشتمل دے.ځکه چه په دے سره ددے خصلت په وجه افضيلت معلوميږي.او تقدير دا دے. ((خصلة من سلم المسلمون.....)) يعنې د ((ذوى الإسلام)) د تقدير په صورت کښې ددے ضرورت نشته.چه ((خصلة)) مقدر اومنلے شي.(۱)
دا باب چونکه د اولني باب د تشريح په طور راغلے دے.هلته کښې اشکال شوے وو.نوامام بخاري رحمه الله دا باب قائم کړلو.اوددے اشکال جواب ئې ورکړلو.نوځکه دا ونيل چه ددے ترجمه مقصد د مرجئو ترديد دے.يا نه دے.د حاجت نه زياتي خبره ده.اصلي مقصد دا شبه لرے کول دي.ضمناً په کښې ترديد هم راغلو والله اعلم.

## ۵=بَاب إِطْعَامُ الطَّعَامِ مِنْ الْإِسْلَامِ

## الحديث الثاني عشر

[۳]حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ [۲۸،۵۸۸۲]

**په تراجمو کښې د امام بخاري تفنن** دلته کښې ترجمه ده.((إطعام الطعام من الإسلام)) په دے کښې د ..اسلام.. لفظ راغلے دے.په وړاندے باب کښې فرمائي.((من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه)) دلته د ايمان لفظ دے.بيا دلته ئې ((من الإسلام)) مؤخر کړے دے.او په وړاندے باب کښې ئې ((من الإيمان)) مقدم کړے دے.ددے نه پس وړاندے باب دے.((حب الرسول ﷺ من الإيمان)) هلته ئې ((من الإيمان)) روستو کړے دے.دا اتفاقي خبره هم کيدے شي.خو د امام بخاري رحمه الله پشان متيقظ او دقت پسند بزرګ د شان سره داسے اتفاق لرے معلوميږي. نوځکه بهتره هم دا ده.چه دا په تفنن باندے حمل کړے شي.د دوی منشا دا ده.چه په طبيعت کښې تازګي قائمه وي.که په تراجمو کښې يوشان والے وي.نو په طبيعتونو کښې د ستومانتيا پيدا کيدو ويره وي.د شوق قائم ساتلو دپاره داسے قسم تبديليانے راوړي.موږ خلق اهل لسان نه يو.ځکه دا لطائف نه محسوس کوو.کوم خلق چه اهل لسان دي.هغوی ته په دے خبرو خوند ملاويږي.(۲)

(۱) شرح کرماني (۱/)_
(۲) امدادالباري(۴/۳۴۹)_

د ترجمة الباب مقصد او د ماقبل وما بعد سره مناسبت ددے نه په وړاندینی باب باندے یو اشکال کیدلو.چه که یو کس نورو ته تکلیف رسوی.نوهغه هډو مسلمان نه دے.(په دے خو د خوراجو او معتزلو تائید کیږی.) نوامام بخاری رحمه الله هغه اشکال ختم کړلو.چه داسے نه ده.بلکه د اسلام درجات دی.که یوسړے نورو ته تکلیف نه رسوی.هغه کښے کمال اسلام موجود دے.اوکه یو سړے نوروته تکلیف رسوی.نودهغه ایمان او اسلام ناقص دے.هلته د ((تنزل الناقص بمنزلة المعدوم)) صورت اختیار کړے شوے دے.کوم چه د اهل بلاغت په نیز مشهور دے.اوامام بخاری رحمه الله دا ترجمه ددے دپاره قائمه کړه.چه هغه دا خودل غواړی.چه یوه درجه خو د اسلام ده.چه سړے نورو ته تکلیف اونه رسوی.او ددے نه اوچته درجه دا ده.چه نورو ته دتکلیف رسولو نه ځان ساتلو سره سره هغوی ته فائده رسوی.دا ددے په مقابله کښے اوچت مقام دے.چه ،،مواسات،، ورته وائی.ددے نه پس وړاندے فرمانی((من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه))دا ددے نه هم اوچته درجه ده.چه سړے نورو ته د خپل ځان سره برابر درجه ورکوی.چه کوم څیز د خپل ځان دپاره خوښوی.هغه د نورو دپاره هم خوښ کړی.دا د ،،مواسات،، نه هم اوچته درجه ده.بیا ددے نه هم اوچته درجه ده.چه ((حب الرسول من الإيمان))چه سړے خلقو ته په خپل ځان باندے ترجیح ورکړی . مثلاً د رسول اکرم ﷺ سره دومره محبت وی.چه د خپل ذات او ځان سره هم هغه محبت نه وی.دا نورو ته د ترجیح ورکولو مسئله ده.اودا ښکاره ده.چه عام نه ده . دا د هغه خواصو او اهل فضائلو دپاره ده.په چا کښے چه ایمان په اعلی او اکمله درجه موجود وی.بیا ئے ددے نه پس یوه بله درجه بیان کړے ده.چه د هغے ذکر په ((علامة الإيمان حب الأنصار)) کښے راځی.یعنی چه نورو ته په خپل ځان باندے ترجیح ورکړی.اود خپل ځان نه زیات د هغوی سره محبت ساتی.اوهغوی سره د دوی محبت دومره وی.چه د هغوی کوم متعلقین او انصار دی.د هغوی سره هم د دوی محبت پیدا شی.د سړی چه کله څه څیز سره محبت وی.نو د هغے د متعلقاتو سره ئے هم محبت وی.دلته د رسول الله ﷺ خاص متعلقین حضرات انصار دی چا چه د نبی ﷺ د حمایت او نصرت او امداد کارنامے کړے وے.نو د ایمان اعلی درجه دا ده.چه د نبی کریم ﷺ سره محبت د خپل ځان سره د محبت نه دومره زیات کړے شی.چه څوك د نبی ﷺ انصار او معاونین دی.چه د هغوی سره محبت هم د ده په زړه کښے راسخ شی.

خلاصه دا چه اولنۍ درجه دا ده.چه نورو ته د تکلیف رسولو نه ځان بچ کړی.دویمه درجه دا ده.چه نورو ته فائده اورسوی.دریمه درجه دا ده.چه نور خپل ځان سره برابر کړی.یعنی د نورو دومره خیال ساتی.لکه څنګه چه د خپل ځان ساتی.څلورمه درجه دا ده.چه نورو ته په خپل ځان باندے ترجیح ورکړی.او پنځمه درجه دا ده.چه د اهل ترجیح او اهل محبت سره د دوی محبت دومره وی.چه د هغوی د متعلقینو سره هم دده محبت پیدا شی.دا یو خاص ترتیب دے.او ددے مطابق په ((إطعام الطعام من الإسلام)) کښے د مواسات یعنی دویمے درجے بیان دے.کوم چه د وړاندے باب ((من سلم المسلمون من لسانه ويده)) نه اوچته درجه ده.نودا وینا چه د اولنۍ او دویمے ترجمے مقصد یو دے.په دواړو کښے څه فرق نشته.مناسب نه ده.

# رجال الحديث

**قوله**: عمروبن خالد: دا عمروبن خالد بن فروخ بن سعيد تميمي دے.خزاعي ورته هم وائي.اصل کښے د حران دے.ځکه ورته حراني وائي.په مصر کښے ئے استوګنه اختيار کړے وه.ځکه د دوی شمار په مصريانو کښے کيږی.د دوی کنيت ابوالحسن دے.دليث بن سعد او عبيدالله بن عمر رحمهماالله وغيره نه ئے احاديث اوريدلی دی.او د دوی نه روايت کونکی ابوزرعه او ابوحاتم رحمهماالله وغيره دی.

ابوحاتم د دوی په باره کښے فرمائی.چه دوی صدوق دی.اواحمد بن عبدالله فرمائی.«ثبت ثقة مصری» د دوی نه په اصول سته کښے صرف امام بخاری رحمه الله روايات اخستے دی.اوباقی حضراتو ترے نهٔ دی اخستے.البته ابن ماجه د يو کس په واسطه د دوی نه روايات اخستی دی.په مصر کښ په ۲۲۹ھ کښے وفات شوے وو.(١)

**قوله**: ليث: دا مشهور فقيه او امام ليث بن سعد مصری دے.د دوی حالات مونږ په «بدء الوحی» کښے د دويم حديث لاندے ذکر کړی دی.«فارجع إليه إن شئت»

**قوله**: يزيد: دا يزيد بن ابی حبيب دے.د ابوحبيب نوم سويد دے.او د يزيد کنيت ابورجاء دے.دا جليل القدر تابعی دے.په صحابوٓ رضی الله عنهم کښے ئے د حضرت عبدالله بن الحارث بن جزء الزبيدی او ابوالطفيل عامربن واثله رضی الله عنهما نه احاديث اوريدلی دی.او ددوی نه علاوه په تابعينو رحمهم الله کښے ئے د يو لوئے جماعت نه کسب علم کړے دے.د دوی نه په روايت کونکو کښے سليمان تيمی، ابراهيم بن يزيد او يحيی بن ايوب رحمهم الله شامل دی.او ددوی نه علاوه د مصر په اکابرينو کښ ډير حضرات دی.

ابن يونس رحمه الله فرمائی.چه د دوی نه وړاندے به په مصر کښے صرف په فتن او ملاحم باندے خبرے اترے کيدے.اوهم ددے متعلق احاديث به بيانولی شو.دا اولنے شخصيت دے.چه په مصر کښے ئے د حديث او فقه علم ښکاره کړلو.اود حلالو او حرامو په باره کښے ئے د خبرو سلسله شروع کړله.

يزيد بن ابی حبيب په هغه درے بزرګانو کښے يو دے.څوک چه حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله په مصر کښے د فتوی ورکولو دپاره مقرر کړی وو.دوی به په مصر کښے فتوی ورکوله.ډيرحليم اوعاقل وو.په ۵۳ھ کښے پيدا شوے وو.او په ۱۲۸ھ کښے وفات شوے وو.(٢)

---

(١) عمدة القاری(١/١٣٧) وتقريب (٤٢٠) رقم الترجمة (٥٠٢٠)_

(٢) عمدة القاری(١/١٣٧) وتقريب (ص.٦٠٠ رقم الترمة (٧٧١)_

**قوله**: ابوالخير: دا مرثد بن عبدالله يزنى مصرى دى حضرت عمروبن العاص سعيد بن يحيى او حضرت ابوايوب انصارى رضى الله عنه نه روايت كوى.ثقه او فقيه دے.په ۹۰ هـ كښې وفات شوے دے.اصحاب صحاح سته د دوى نه په خپلو كتابونو كښې روايات نقل كړى دى.(۱)

() عبدالله بن عمرو رضى الله عنه د دوى حالات په ((باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) كښې تير شوي دى.

**قوله**: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: د دے رجل مبهم په باره كښې حافظ رحمه الله فرمائى.((لم أعرف أسمه)) بيا فرمائى.((قيل إنه أبوذر وفى ابن حبان أنه هانى بن يزيد والد شريح)) (۲)

**قوله**: أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ(۳)

د نبى صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوشو.چه ((أى الإسلام خير؟)) يعنى ((أى خصال الإسلام خير)) د اسلام كوم خصلتونه ښه دى؟دلته كښې د ((خصال)) تقدير منلے شى.ځكه چه راروان هم د خصلتونو ذكر دے.(۴)

د دے سوال په جواب كښې نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.((تطعم الطعام وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف)) دلته ((تطعم)) او ((تقرأ)) د ((أن تطعم)) او ((أن تقرأ)) په معنى كښې دى.اود مصدر په تاويل كښې دى.لكه ((تسمع بالمعيدى خير من أن تراه)) د ((أن تسمع)) په معنى كښې دے.(۵)

اطعام طعام مطلق دے. په ((تطعم الطعام)) كښې هٔ قيد نشته كه دوست وى.اوكه رشته دار، نزدے وى اوكه لرے، د دے علاقے وى.او كه د لرے. بيا دا هم تعميم دے.كه دغه طعام اعلىٰ وى اوكه ادنى وى.چه هٔ تاسره وى.په هغه ئے اوخره.په ((تطعم الطعام)) كښې خودا قيد هم

---

(۱) عمدة (۱۳۷/۱) وتقريب (ص.۵۲٤) رقم الترجمة (۶۵٤۷)_

(۲) فتح البارى(۵۶/۱)

(۳) الحديث أخرجه البخارى ايضاً فى كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإيمان رقم(۲۸ وفى كتاب الإستئذان باب السلام للمعرفة وغيرالمعرفة رقم(۶۲۳۶ ومسلم فى صحيح فى كتاب الإيمان باب بيان تفاضل الإسلام وأى أموره أفضل رقم(۱۶۹) والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه باب أى الإسلام خير .......رقم(۵۰۰۳) وابوداود فى سننه فى كتاب الأدب باب فى إفشاء السلام رقم (۵۱۹٤) وابن ماجه فى سننه فى كتاب الأطعمة باب إطعام الطعام (۳۲۵۳)_

(۴) فتح البارى(۵۶/۱)_

(۵) پورتنئ حواله_

نشته.چه په مړه خيټه پرے خوراك كوه.كه تا سره لږ وي.نو د «طعام الواحد يكفى الاثنين» مطابق د يوكس طعام دے دوه كسان اوخوري.ګذاره خو بهرحال د يوكس په خوراك د دوو هم كيږي.خكه دا هم ضروري نه ده.چه په مړه خيټه پرے خوراك اوكړي.دے سره سره دا هم ضروري نه ده.چه په اطعام طعام كښے هم روټئ خوړل داخل دي.بلكه په دے كښے يخ او ګرم هم شامل دي.چائے پرے اوڅكوه.بوتل پرے اوڅكوه.چونكه په قرآن مجيد كښے د څكاك دپاره هم دا لفظ استعمال شوے دے.﴿فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّيْ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهٖ﴾ (١) خكه په اطعام طعام كښے روټئ وركول هم داخل دي.او چائے او اوبه او پيئ او شربت څكول هم داخل دي.منشا ئے دا ده.چه د«من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليكرم ضيفه» (٢) مصداق پكار ده چه ته ئے.ددے نه ډډه كول نه دي پكار.

**د شيخ الاسلام حضرت مدني قدس سره طرز عمل** مونږ خو كتلي دي.چه د شيخ الاسلام حضرت مدني رحمه الله سره چه به سبق ختم شو .د سبق نه پس به حضرت په چوكئ باندے اودريدلو.او په پوره دارالحديث كښے به ئے نظر واچولو.چه كوم خلق نوے راغلي دي. دارالعلوم ديوبند يوه مركزي اداره وه .د لرے او نزدے نه به خلق ددے د ليدو دپاره راتلل. چونكه د حضرت ذات ته مركزيت حاصل وو.دحضرت د درس وخت به وو.خلق به هلته راتلل.دسبق نه پس به حضرت نوي راتلونكي كسان كتل.بيا به ئے هغوي راغوبنتل.اوخپل ځان سره به ئے كور ته بوتلل.اوروټئ به ئے پرے خوړله.حالانكه عين ممكن وه.چه په طالبانو كښے به د هغه څوك كوربه موجود وو.يا په استاذانو كښے به دهغه څه كوربه موجود وو.خو هغوي به په دے احتمال باندے اكتفاء نه كوله.بلكه روزانه به اهتمام وو.چه دا خلق به ئے لټولو.سترګو به ئے هغوي لټول.او بيا به ئے كور ته د روټئ دپاره بوتلل.اوس كه يو كس به ورته اووئيل.چه زه د فلاني ميلمه يم.زما دپاره هغه اهتمام كړے دے.نوهغه ته به اجازت وركړے شو . او كوم خلق چه به داسے نه وو.هغوي به حضرت خپل كور ته بوتلل.اوس هغوي به كله لس كسان هم وو.اوكله به پنځه هم وو.په شمار كښے به كمے بيشے راتللو.

**قوله**: **وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلٰى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَّمْ تَعْرِفْ**:تاسو به كتلي وي.چه په ټولو قومونو كښے رواج دے.چه كله دوي په خپل مينځ كښے يوځائے شي.نو د قولي تحفه تبادله كوي.څوك څه وائي.او څوك څه وائي.د هندوانو په نيز د تحيه جدا طريقه ده.د انګريزانو په نيز جدا طريقه د .اود نورو قومونو په نيز جدا .اسلام ددے دپاره د «السلام عليكم» يا د «سلام عليكم» طريقه اختيار كړے ده.يو سړے چه كله بل سره ملاؤ شي.نو «السلام عليكم» اووائي. بل جواب كښے «وعليكم السلام» اووائي .د تحفو تبادله په خپل مينځ كښے من قبيل الاقوال

(١) سورة بقرة:٢٤٩)_

(٢) صحيح بخاري كتاب الأدب باب من كان يومن بالله واليوم الآخر فلا يوذ جاره رقم(٦٠١٨) و(٦٠١٩) وباب حق الضيف رقم(٦١٣٥) و(٦١٣٦) و(٦١٣٨)_

ده.په خلقو كښې دشمنئ وى.يو دبل د سردشمن وو.هم ددے عداوتونو او دشمنود وجې هغوى د ..حلف.. سلسله قائمه كړے وه.يوه قبيله د بلې قبيلې او يو سړے دبل سړى حليف وو.دے به دهغه د جان محافظ وو.اود هغه د جان حفاظت به ئے كولو ددے نه بغير دهغوى ملاقات د خطرو نه خالى نه وو. نواسلام ((السلام عليكم)) تحيه مقرر كړله چه د اول نه ورته اطمينان وركړى چه زه ستا د سلامتيا خوانشمند يم.زما د طرف نه ته مطمئن اوسه.زه به تا ته څه ضرر او نقصان نه دركوم.دويم كس په جواب كښې وائى.((وعليكم السلام)) اوهغه هم دا اطمينان وركوى.چه زه هم ستا د سلامتيا خواهشمند يم.زما د طرفه به هم تا ته څه تكليف او ضرر نه رسى.

دالله سبحانه وتعالى تحيه هم دا ده.لكه چه د ﴿سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ﴾ (١) نه معلوميږى.

خودا به په غرض د اكرام او تكريم وى.مونږ خو((السلام عليكم)) د دعا په نيت وايو.خوالله تعالى خو دعا كونكے نه دے.نوځكه به دا ونيلے شى.چه هلته مقصود اكرام او تكريم دے.يعنى د ا اطمينان وركول دى.چه تاسو به زمونږ په نيز دلته د مكرم او معزز ئے.نوځكه ئے ﴿سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ﴾ اوفرمائيل.

دا د فرښتو تحيه هم ده.په حديث كښې راځى.چه نبى كريم ﷺ ته حضرت جبريل عليه السلام د حضرت خديجه رضي الله عنها په باره كښې فرمائيلى وو.((فاذا أتتك هى فقرأ عليها السلام من ربها ومنى)) (٢)

دغه شان د حضرت عائشے رضي الله عنها په باره كښے هم راغلى دى.((هذا جبريل يقرئك السلام)) (٣)

حضرت آدم عليه السلام چه كله الله سبحانه وتعالى پيدا كړلو.نو په هغه وخت كښے ئے ورته اوفرمائيل.((اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَىٰ أُولَٰئِكَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَالُوا السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ)) (٤)

الله سبحانه وتعالى مونږته په ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا﴾ (٥) كښې هدايت كړے دے.كه تاسو د چا كور ته ورځئ.نو ((السلام عليكم)) وائې.او اجازت غواړې.او بيا اسلام دا د مسلمانانو شعار گرځولے دے.قرآن كريم وائى.﴿وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰٓى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا﴾ (٦) ((السلام عليكم)) ويونكى ته دا مه وائې.چه هغه مومن نه دے.دا

---

(١) سورة يس:٥٨)_

(٢) صحيح مسلم (٢/٢٨٤) كتاب الفضائل باب من فضائل خديجة رضى الله عنها دغه شان اوگورئ مجمع الزوائد (٩/٢٢٤، ٢٢٥) كتاب المناقب باب فضل خديجة بنت خويلد زوجة رسول الله ﷺ )_

(٣) صحيح بخارى كتاب فضائل الصحابة باب فضل عائشة رضى الله عنها رقم(٣٧٦٨)_

(٤) صحيح بخارى كتاب أحاديث الأنبياء باب خلق آدم وذريته رقم(٣٣٢٦)_

(٥) سورة النور:٢٧)_

(٦) سورة نساء:٩٤)_

خو د اهل اسلام شعار دے.كله چه هغوى ((السلام عليكم)) اووائى.نو هغه به مومن گنړلے شى.دغه شان نبى اكرم ﷺ په ((تقرء السلام على من عرفت ومن لم تعرف)) كښے ذكر كړى دى.چه تاسو اطعام طعام كوئ.او چه څوك پيژنئ.هغوى ته هم سلام كوئ.اوچه څوك نه پيژنئ.نو هغوى ته هم سلام كوئ.

ددے نه بعضے خلق مستثنى دى.لكه كافران كه ذميان وى اوكه غير ذميان.هغوى باندے د سلام د ابتداء اجازت نشته.دغه شان په عاصى مجاهر باندے څوك چه په جهره او علانيه گناه كوى.هغه ته هم د سلام كولو نه منع شوے ده.دغه شان كه يو سړے متيازے كوى.يا غسل كوى.يا تلاوت كوى.يا دعا كوى.يا ذكر كښے مشغول وى.يا په درس او تدريس كښے مشغول وى.نوهغه ته به هم سلام نشى كولے.مختلف مواقع دى.كوم چه فقهاؤ بيان كړى دى.او ددوى د استثناء معقول وجوهات موجود دى.(١)

البته كه يو حاكم ظالم وى.اوهغه ته ابتداء بالسلام اونكړے شى.نو د ضرر او تكليف احتمال وى.نوهلته اجازت وركړے شوے دے.اگرچه هغه غير مسلم ولے نه وى . ليكن حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى.كه هغه غير مسلم وى. كه هغه ته د ضرر د ويرے د وجے د ابتدء بالسلام نوبت راشى.يا جواباً سلام ته ضرورت پيښ شى. نو په هغه وخت كښے هم كه د سلام لفظ استعمال نكړى.نو بهتره ده.په جواب كښے دے ((هداك الله)) اووائى.آداب هم وئيلى شى.(٢)

نن صبا دا رواج شوے دے.چه چا سره پيژند گلو وى.هغه ته سلام كوى. اوچا سره چه پيژند گلو نه وى.هغه ته سلام نه كوى.دا خو ټيك ده.كه د چا د مسلمان كيدو خبر نه وى.اوويريږى.چه دا به مسلمان نه وى.نو سلام دے نشى كولے.خوكه دا ويره نه وى.اوپه زړه كښے دا احتمال نه راځى.نو بيا ته سلام كوه.په ابتداء بالسلام كښے عاجزى ده.د متكبرينو طريقه ده.چه هغوى دبل د سلام انتظار كوى.او په ابتداء بالسلام كښے دخان سپك والے گنړى.نوځكه د ابتداء بالسلام اهتمام كول پكار دى.اوتاسو ته معلومه ده.چه ابتداء بالسلام مسنون ده.او رد د سلام واجب دے.خودا مسنون د واجب نه افضل دے.(٣)

**د يو قسم سوالونو په جواب كښې د مختلفو جوابونو د واريدو وجوهات** دلته په حديث كښے.

سوال ((أى الإسلام خير)) وو.او په جواب كښے ((تطعم الطعام وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف)) اوفرمائيلے شو. دلته اشكال پيدا كيږى .چه سوال يو شان دے.خو په جواب كښے

---

(١) بذل المجهود (٤٢/١، ٤٣) كتاب الطهارة باب فى الرجل يردالسلام وهو يبول )_

(٢) فضل البارى(٣٢٨/١)_

(٣) تفسير قرطبى (٢٩٨/٥، ٢٩٩) قوله تعالى ﴿ وإذا حييتم بتحية فحيوا بأحسن منها أو ردوها تفسير كبير(٢١١/١٠، ٢١٥) وأوجزالمسالک (٩٦/١٥، ١٠) العمل فى السلام وردالمحتار (٤١٦/٦ كتاب الحظر والاباحة (مطبوعه ايچ ايم سعيد كمپنى )_

مختلف امور ذکر شوی دی.مثلاً د حضرت ابوهریره ﷺ په حدیث کښے دی.په هغے کښے سوال دے.«أی العمل أفضل؟» نو نبی ﷺ په جواب کښے فرمائی.«الإیمان بالله ورسوله، قیل ثم ماذا؟ قال الجهاد فی سبیل الله، قیل ثم ماذا؟ قال: حج مبرور»(١)

دغه شان د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په حدیث کښے دی.چه هغوی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړلو«أی العمل أحب إلی الله؟»نو نبی ﷺ اوفرمائیل.«الصلاة علی وقتها قال ثم أی؟ قال ثم برالوالدین قال: ثم أی؟ قال: الجهاد فی سبیل الله»(٢)

سوال دا دے.چه ددے څه وجه ده چه سوال یو یا متقارب دے او جوابونه مختلف دی.

**عالمانو ددې اشکال ډیر جوابونه ورکړی دی.** ١) یو جواب دا دے چه په اصل کښے د جواب دا اختلاف د سائلینو دحال داختلاف د وجے دے.د سائلینو د حالاتو د اختلاف د وجے نبی کریم ﷺ جواب مختلف ورکړے دے.(٣) تاسو به کتلی وی.چه سائل مونځ کوی.په جهاد کښے هم څی.ایمان هم راوړی.خو هغه لږ غوندے بخل کوی اوپه هغه کښے تکبر غوندے محسوس کیږی.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.«تطعم الطعام وتقرأ السلام علی من عرفت ومن لم تعرف» چه په اطعام طعام سره د بخل نفی اوشی.او «تقرأ السلام علی من عرفت ومن لم تعرف» سره د تکبر نفی اوشی.

یو سائل ته ئے اوکتل.چه هغه په مونځ اود مورپلار په تابعدارئ کښے کوتاهی کوی .نو هلته نبی ﷺ اوفرمائیل.«الصلاة علی وقتها» او د«برالوالدین» ذکر ئے اوکړلو .او بیا دا هم کیږی.چه سائل یو وی.اود جواب په وخت کښے په جمع کښے څو کسان وی.په چا کښے یوه کوتاهی وی.اوپه چا کښے بله کوتاهی وی.نو د سائل رعایت هم نبی ﷺ کړے دے.او د نورو حاضرینو هم.بهرحال د اد جواب اختلاف «لإختلاف حال السائلین» د وجے دے.

٢) بعضے حضرات وائی چه په اصل کښے دا اختلاف د وخت د اختلاف په وجه دے.(٤) یوه زمانه وه.چه که گرانی وی.قحط راشی.یو سړے د نبی ﷺ نه تپوس اوکړلو.چه زه د نفلی حج دپاره خم.ستاسو څه مشوره ده؟نبی ورته اوفرمائل. چه ته حج ته مه څه.بلکه خلقو ته روټئ ورکوه.دغه شان یوه زمانه وه.چه په ایمان راوړلو کښے به ډیرے سختے پیښیدلے.او د مشرکانو ظلم او زیاتی خلق د اسلام نه منع کول.نو نبی ﷺ په خصوصیت سره «إیمان بالله ورسوله» ذکر اوفرمائیل.او د ایمان بالله سره نبی ﷺ د نورو څیزونو ذکر هم اوکړلو.کوم چه

---

(١) صحیح بخاری (٨/١) کتاب الإیمان باب من قال إن الإیمان هوالعمل)_

(٢) صحیح بخاری(٧٦/١) کتاب مواقیت الصلاة باب فضل الصلاة لوقتها)_

(٣) شرح نووی علی صحیح مسلم(٤٨/١) کتاب الإیمان باب بیان تفاضل الإسلام وأی أموره أفضل)_

(٤) فتح الباری (٥٦/١)_

د زمانے د حالاتو په اعتبار سره ضروري وو .اود ترجيح مستحق وو.

() بعضے حضراتو دا ونيلي دي.چه د جوابونو اختلاف د متكلم د شؤون په وجه دے.د متكلم خپل حالت په يو وخت كنبے څه وي.او په بل وخت كنبے بل وي.دنبي كريم ﷺ نظر به په يو وخت كنبے د الله تعالى په قهر او غضب وو.نو نبي ﷺ اوفرمائيل.چه ((لايدخل الجنة قتات))[1] په بل وخت كنبے د نبي ﷺ نظر دالله تعالى په شان رحمت باندے وو.نونبي ﷺ اوفرمائيل.چه ((من كان آخر كلامه لاإله إلا الله دخل الجنة))[2] نو د نبي په شؤونو او په دوی باندے راتلونكو كيفياتو او حالاتو كنبے چونكه اختلاف وو.نو د هغے په اعتبار سره به نبي ﷺ جواب وركولو.پخپله په مونږ باندے هم دا كيفيات مختلفه وارديږي.زمونږ حال خو دا دے چه كله په كيفياتو كنبے په مونږ باندے د نفس غلبه وي.اوكله د شيطان تاثير خپل زور ښائي.او په رسول الله ﷺ به چه د شوونو كوم اختلاف راتلو.هغه به د شوون الهيه تابع وو.د نفس او شيطان څه سوال نه وو.([3])

() بعضے حضرات فرمائي.چه ګورئ د نبي كريم ﷺ نه پس حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه د ټولو نه افضل دے.دا خو تاسو ته معلومه ده.چه فضيلت كلي حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته حاصل دے.او د فضيلت كلي مطلب دا دے.چه ((من حيث المجموع)) په ټولو صحابو رضي الله عنهم كنبے افضل صحابي دے.هغه حضرت ابوبكر رضي الله عنه دے.خو ددے فضيلت كلي باوجود په بعضے نور صحابو رضي الله عنهم كنبے جزئي فضيلت موندے شي.يعني يو خاص قسم فضيلت بعضے بعضے صحابو رضي الله عنهم سره مختص دے.مثلا ((أرحم أمتي بأمتي أبوبكر، وأشدهم في أمر الله عمر، وأصدقهم حياء عثمان، وأعلمهم بالحلال والحرام معاذبن جبل وأفرضهم زيد بن ثابت، وأقرؤهم أبي، ولكل أمة أمين، وأمين هذه الأمة أبوعبيدة بن الجراح))[4] وغيره ددے صحابو رضي الله عنهم چه كوم فضائل بيان شوي دي.دا جزئي فضائل دي.ددے جزئي فضائلو د وجے چه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته كوم فضيلت مطلقه او فضيلت كلي حاصل دے.هغه نه متاثر كيږي.د ټولوصفاتو اعتبار كه اوكړے شي.او په صحابو رضي الله عنهم يا په امت كنبے د ((أفضل من الكل)) لټول اوكړے شي .نو هغه به حضرت

---

(۱) صحيح بخارى كتاب الأدب باب ما يكره من النميمة رقم(۶۰۵۶ وصحيح مسلم كتاب الإيمان باب بيان غلظ تحريم النميمة وسنن أبي داود كتاب الأدب باب في القتات رقم(۴۸۷۱) وسنن ترمذى كتاب البر والصلة باب ما جآء في النمام رقم(۲۰۲۶)_

(۲) سنن أبي داود كتاب الجنائز باب في التلقين رقم(۳۱۱۶)_

(۳) دشوون نبويه د تفصيل دپاره اوكوګرئ فتح الملهم (۱/ ۵۹۴ـ ۵۹۶) كتاب الإيمان باب الدليل على أن من مات على التوحيد دخل الجنة قطعاً)_

(۴) جامع ترمى كتاب المناقب باب مناقب معاذبن جبل وزيد بن ثابت.وأبي وأبي عبيدة بن الجراح رضي الله عنه رقم(۳۷۹۰، ۳۷۹۱، ۳۶۷۹)_

ابوبكر رضي الله عنه راخيژى.لكه څنګه چه په رسولانو كښے نبى كريم ﷺ ته فضيلت كلى حاصل دے.خو ددے فضيلت كلى باوجود په خپله نبى ﷺ بعضے پيغمبرانو دپاره جزئى فضيلتونو بيان كړى دى.

نبى ﷺ فرمائيلى دى.چه د قيامت په ورځ چه كله زه د خپل قبر نه راپاسم.نو حضرت موسى عليه السلام به اووينم.چه هغه به دعرش پښه نيولے وى.(١) دا د هغوى جزئى فضيلت دے.

دغه شان نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى.چه كله قيامت شى.او حشر الاجساد من القبور اوشى.نو د ټولو نه وړاندے به حضرت ابراهيم عليه السلام ته جامے اغوستولے شى.(٢)

د هغوى دا فضيلت هم جزئى دے.

حضرت سليمان عليه السلام ته داسے حكومت وركړے شوے و.چه په پيريانو باندے هم د هغوى حكومت چليدلو.(٣) په دے حكومت كښے به هغوى د ټولو ځناورو خبرے هم پيژندلے.اود هغے مطابق به ئے عملى اقدامات كول.دا د حضرت سليمان عليه السلام جزئى فضيلت دے.

ښكاره ده چه نبى كريم ﷺ ته دا جزئى فضيلتونه نه دى وركړے شوے.نوڅوك به دا وئيلى شى.چه په كومه طريقه نبى كريم ﷺ ته فضيلت كلى حاصل دے.نوهغه په جزئى فضيلت سره نه متاثر كيږى.هم دغه شان حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته كلى فضيلت حاصل وو.د نورو صحابو رضي الله عنهم په جزئى فضائلو سره هغه كلى فضيلت نه متاثر كيږى.

دغه شان دلته ډير اعمال دى.چه هغے ته جزئى فضيلت حاصل دے.مثال په طور «تطعم الطعام وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف» ته په دے اعتبار سره فضيلت حاصل دے.چه په دے كښے د بخل ا كبر نفى ده.اود بخل او كبر نفى د ټولو په نيز خوښ عمل دے.څوك هم ددے د خوبۍ نه انكار نه كوى.نو ددے فضيلت په دے اعتبار سره د ے.چه په دے كښے د چا اختلاف نشته.جهاد د فضيلت يو عمل دے.او په دے كښے ډير لوئے فضيلت دے.خو څه كسانو ته دا ګران وى.چه دا وينه تويول دى.په دے كښے سفك دماء وى.او په «تطعم الطعام وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف» كښے څوك اختلاف نشى كولے.

يو فضيلت د مشقت په اعتبار سره وى.«أجركم على قدر نصبكم»، «العطايا على متن البلايا» چه څومره مشقت وى.هغه هومره فضيلت به وى.په دے اعتبار سره كه تاسو اوګورئ نو په ايمان

(١) عن أبي سعيد رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال:الناس يصعقون يوم القيامة .فأكون أول من يفيق. فإذا أنا بموسى آخذ بقائمة من قوائم العرش ..) صحيح بخارى كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى ﴿وواعدنا موسى ثلاثين ليلة وأتممناها بعشر... رقم(٣٣٩٨)_

(٢) عن ابن عباس رضى الله عنهما عن النبى ﷺ قال: إنكم محشورون حفاةً عراةً غرلاً ثم قرأ ﴿كما بدأنا أول خلق نعيده.وعداً علينا .إنا كنا فاعلين﴾ وأول من يكسى يوم القيامة إبراهيم.. صحيح بخارى كتاب الأنبياء باب قول الله تعالى ﴿ واتخذالله إبراهيم خليلاً﴾ رقم (٣٣٤٩)_

(٣) كمافى قوله تعالى:﴿ومن الجن من يعمل بين يديه بإذن ربه.. وقليل من عبادى الشكور﴾ سورة سبا :١٢، ١٣)

بانده كښې د تولو نه زيات مشقت دے مونږ خو نسلي طور مسلمانان يو.او زمونږ ايمان تقليدي دے اګرچه دا نسلي او تقليدي ايمان هم معتبر دے.لكه څنګه چه وړاندے بيان اوشو خو تاسو لږ سوچ اوكړئ چه يو سړے د لات او عزی عبادت كوي.هغه خپل مشكل كشا او حاجت روا ګڼړی.د هغه ډير تعظيم كوي.او تندے په زمكه اږدي.اوهغه ته سجده كوي.دا رسم د هغه د پلار نيكه نه نسلاً بعد نسل راروان وي.اوس چه هغه سړے په الله باندے ايمان راوړي.او دهغه معبودانو نفي اوكړي.د چا چه هغه ډير تعظيم كولو.هغه ئے حاجت روا او مشكل كشا ګڼړلو.اوبيا د دوی د بے بسئ اقرار كوي.هغوی ته باطل معبودان واني .او نسلاً بعد نسل د خانداني روايت نه اوګرځي.نودا معمولي خبره نه ده.دا ډيرګران كار دے.

د مبتدعينو په حال باندے غور اوكړئ يو سړے بدعتي وي.كه په زرګاهو كرته ئے پوهه كړے چه د بدعت نه توبه اوباسه.اود سنت عاشق جوړ شه.هغه خپل بدعت په هيڅ قيمت پريخودو ته تيار نه وي.چه هغه ته كله ته اووائے چه ددے خو په قرآن او حديث كښې چرته څه ثبوت نشته.هو هغه به درته آخري جواب هم دا دركوي. چه دا يو ښه كار او نيك كار دے.كه دا اوكړے شي.نو په دے كښې څه حرج دے؟د لاجوابه كيدو نه پس هغه د حرج خبره راړواندے كړي.خو بدعت نه توبې ويستلو ته تيار نه وي.نو بيا يو دين پريخودل او بل دين اختيارول څه آسان كار نه دے.

دغه شان «ايمان بالله» نه پس نبي ﷺ جهاد في سبيل الله ذكر كړلو.په جهاد في سبيل الله كښې كوم مشكلات دي؟تاسو پيژنئ چه سر په تلي كښې كيږدي.اوخپل خان په خطراتو كښې اچوي.دا آسان كار نه دے.خكه خو الله سبحانه وتعالى ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾ (١) فرمائي.او دوی ته د جنت زيرے وركوي.او ددے دپاره د «اشترى» لفظ استعمالوي.

دغه شان په حج كښې ډير مشقت دے.سړے د يو ملك نه بل ملك ته ځي.د ژبے نه هم ناواقف وي.د هغه خائے د رسم او رواج نه هم واقف نه وي.په قدم قدم باندے پيسه لكه د اوبو پشان خرچ كوي.او د اجنبي او ناواقف خلقو د غير همدردانه سلوك نه متاثر كيږي.خو حاجي دا ټول څيزونه په روښانه تندي سره برداشت كوي.نو د ايمان جهاد او حج چه كوم افضيلت بيان شوے دے.هغه د مشقت په وجه سره دے.

دغه شان په يوحديث كښې دي.چه نبي ﷺ د «أي العمل أحب إلى الله؟» په جواب كښې «الصلاة على وقتها» ذكر كړلو.هلته احبيت په دے اعتبار سره دے.چه په مانځه كښې د الله سبحانه وتعالى او د بنده په مينځ كښې د عبديت تعلق قائم وي.هغه الله تعالى ته ډيره عاجزئ اختيار كړي.په دے باندے په مونځ كښے احبيت پيدا كيږي.

---

(١) سورة توبة:١١١_

په دے حديث كښے نبى ﷺ د ((الصلاة على وقتها)) نه پس ((برالوالدين)) ذكر كړے دے.ددے وجه چه په دے كښے د مور پلار اطاعت او تابعدارى هغوى ته عاجزى اختيارول وى.په قرآن مجيد كښے هم دى.﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ﴾ (١) دخپل ذات سره الله سبحانه وتعالى مور پلار ذكر كړى دى.﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾(٢) دلته كښے هم د خپل عبادت سره د مور پلار سره د حسن سلوك بيان شوے دے.

ددے نه پس په دے حديث كښے نبى ﷺ د جهاد ذكركړے دے.په جهاد كښے د امير وړاندے د خپلے عاجزئ اقراروى.او مجاهد د امير په حكم خپل خان قربانى كولو ته تيار وى.نو مونځ، برالوالدين ،اوجهاد كښے عاجزئ ،اطاعت او تابعدارئ په جهاتو سره فضيلت حاصل دے.

حاصل دا دے.چه په مختلفو وجوهاتو سره په اعمالو كښے فضيلت موجود وى.په يوه موقع باندے ئے د يو خاص جهت دفضيلت لحاظ ساتلے دے.او مخصوص اعمال ئے بيان كړى دى.اوكله ئے د بل جهت د فضيلت اعتباركړے دے.او دهغے سره متعلق اعمال ئے ذكر كړى دى.په مختلفو اعمالو كښے جزئى فضائل موجود وى.هم دا جزئى فضيلتونه د جواب په وخت كښے د نظر وړاندے ساتلے شوى دى.(٣)

() يو جواب دا وركړے شوے دے.چه دا مختلف اجناس دى.په دے اجناسو كښے د بعضے اجناسو نبى ﷺ د يو سوال په جواب كښے ذكر كړى دى.او د بعضے اجناسو ئے دبل سوال په جواب كښے ذكر كړے دے.او د بعضے اجناسو ئے د دريم سوال په جواب كښے .والله اعلم بالصواب.

هذا آخر ما أردنا إيراده من شرح أبواب كتاب الإيمان ويليه إن شاء الله تعالى في المجلد الثاني باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه

والحمد لله الذى بنعمته تتم الصالحات والصلاة والسلام على رسوله محمد أفضل الموجودات وأكرم المخلوقات وعلى آله وأصحابه وتابيعه لهم بإحسان ما دامت الأرض والسماوات.

الحمد لله

احقر مترجم ترے د ګل په شپه په كال (٣ .رمضان ١٤٢٥) مطابق ١٧/١٠/٢٠٠٤) فارغ شو.الله دے د نوروجلدونو د تكميل توفيق هم وركړى. او حضرت شيخ الحديث مدظلهم العالى مع مرتبين ته دے صحت او عافيت وركړى. آمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وآله وصحبه وسلم

---

(١)سرة لقمان : ١٤)_

(٢) سورة الإسراء:٢٣)_

(٣) فتح الملهم (١٦٢٤، ٦٢٧ كتاب الإيمان باب بيان تفاضل الإسلام وأى أموره أفضل)_

بسم الله الرحمن الرحيم

# ((مصادر ومراجع))


① القرآن الكريم: كلام رب العالمين۔

② ابن ماجه اورعلم حديث: (مصنف) مولانا عبدالرشيد نعمانی، مدظلهم، مطبع: مير محمد كتب خانه مركزعلم وادب،

③ الأبواب والتراجم: حضرت مولانا محمد ادريس كاندهلوى صاحب رحمه الله (متوفى ١٣٩٣ھ) مكتبه جميلى لاهور۔

④ الابواب والتراجم لصحيح البخارى: شيخ الحديث مولانا محمد زكريا صاحب (متوفى ١٤٠٢ھ مطابق ١٩٨٢ء) ايچ ايم سعيد كمپنى پاكستان چوك كراچى۔

⑤ اتحاف السادة المتقين بشرح أسرار إحياء علوم الدين: علامه سيد محمد بن محمد الحسينى الزبيدى المشهور بمرتضى رحمه الله (متوفى ١٢٠٥ھ) دار احياء التراث العربى

⑥ الاتقان فى علوم القرآن: حافظ جلال الدين عبدالرحمن سيوطى رحمه الله (متوفى ٩١١ھ) شركة مكتبة مصطفى البابى الحلبى مصر،

ألاجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الكاملة: امام عبد الحى لكهنوى رحمه الله (متوفى ١٣٠٤ ھ) مكتب المطبوعات الإسلامية بحلب۔

⑦ إحياء علوم الدين مع شرح إتحاف السادة المتقين: امام محمد بن محمد الغزالى رحمه الله (متوفى ٥٠٥ ھ) دار إحياء التراث العربى، بيروت،

⑧ إختصار علوم الحديث: ابوالفداء عماد الدين إسماعيل بن شهاب الدين عمر المعروف بابن كثير رحمه الله (متوفى ٧٧٤ھ) دار التراث، القاهرة (١٣٩٩ھ مطابق ١٩٧٩ء)،

⑨ الأربعون النوويه، بشرح الإمام ابن دقيق العيد، ابوزكريا يحيى بن شرف الدين النووى رحمه الله (متوفى ٦٧٦ھ)

⑩ إرشاد السارى شرح صحيح البخارى: ابوالعباس شهاب الدين أحمد بن محمد القسطلانى رحمه الله (متوفى ٩٢٣ھ) المطبعة الكبرى الأميرية، مصر طبع سادس ١٣٠٤ھ

⑪ إرشاد القارى الى صحيح البخارى: حضرت مفتى رشيد أحمد صاحب لدهيانوى رحمه الله، محمد سعيد اينڈ سنز كراچى طبع اول،

⑫ أرواح ثلاثه: حكيم الأمت مجدد الملت حضرت مولانا أشرف على تهانوى رحمه الله (١٣٦٢ھ) دار الإشاعت كراچى،

⑬ أساس البلاغة: جار الله ابوالقاسم محمود بن عمر الزمخشرى (متوفى ٥٣٨ھ)، دار المعرفة للطباعة والنشر بيروت ١٣٩٩ھ مطابق ١٩٧٩ء،

۲۳ الاستیعاب فی اسماء الأصحاب بهامش الإصابة: ابوعمر یوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ھ) دار الفکر للطباعة والنشر والتوزیع، بیروت

۲۴ أشعة اللمعات: شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمہ اللہ (متوفی ۱۰۵۲ھ) مکتبہ نوریہ رضویہ سکھر پاکستان،

۲۵ الإصابة فی تمیز الصحابة: شهاب الدین ابوالفضل أحمد بن علی القسطلانی المصری المعروف بابن حجر رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ) دار الفکر. بیروت

۲۶ أصول البزدوی: فخر الإسلام أبوالحسن علی بن محمد البزدوی (متوفی ۴۸۲ھ) الصدف پبلشرز کراچی

۲۷ الأعلام: خیر الدین محمود بن محمد الزرکلی رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۹۶ھ مطابق ۱۹۷۶ء) دار العلم للملایین طبع ثامن، جولائی ۱۹۸۹ء

۲۸ أعلام الحدیث: إمام أبوسلیمان احمد بن محمد الخطابی رحمہ اللہ (متوفی ۳۸۸ھ) مرکز إحیاء التراث الإسلامی جامعه أم القری مکة المکرمة،

۲۹ إعلام الموقعین عن رب العالمین: شمس الدین أبوعبدالله محمد بن أبی بکر المعروف بابن قیم رحمہ اللہ (متوفی ۷۵۱ھ) دار الجیل. بیروت

۳۰ الإمام البخاری إمام الحفاظ والمحدثین: علامه تقی الدین الندوی مدظلهم. المکتبة الحدیثة. العین. الأمارات العربیه المتحدة طبع ثالث ۱۴۰۵ مطابق ۱۹۸۵ء

۳۱ إمداد الباری: حضرت مولانا عبدالجبار أعظمی رحمہ اللہ (متوفی) مکتبه. حرم مراداباد

۳۲ إمعان النظر: علامه قاضی محمد أکرم نصرپوری سندهی رحمہ اللہ (من علماء القرن الحادی عشر) شاه ولی الله اکیدمی سندھ

۳۳ أنوار الباری: مولانا سید أحمد رضا بجنوری مدظلهم. مدینه پریس بجنور

۳۴ أنوار التنزیل وأسرار التاویل: ناصر الدین أبوسعید عبدالله بن عمر البیضاوی الشافعی رحمہ اللہ (متوفی ۶۹۲ھ)

۳۵ أوجز المسالك إلی مؤطأ مالك: شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا صاحب رحمہ اللہ (متوفی ۱۴۰۲ھ) ادارۂ تالیفاتِ اشرفیه ملتان،

۳۶ إیضاح البخاری: حضرت مولانا سید فخر الدین محمد صاحب رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۹۲ھ) مکتبه مجلس قاسم المعارف دیوبند

۳۷ الباعث الحثیث شرح إختصار علوم الحدیث: شیخ أحمد محمد شاکر رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۸۸ھ) دار التراث قاهرة، مصر ۱۳۹۹ھ مطابق ۱۹۷۹ء

۳۸ بدایة المجتهد ونهایة المقتصد: قاضی ابوالولید محمد بن أحمد بن رشد قرطبی رحمہ اللہ (متوفی ۵۹۵ھ) شرکة ومطبعة مصطفی البابی الحلبی. مصر طبع خامس ۱۴۰۱ھ مطابق ۱۹۸۱ء

(۳۰) البداية والنهاية: حافظ عماد الدين أبو الفداء إسماعيل بن عمر المعروف بابن كثير رحمہ اللہ (متوفی ۷۷۴ھ) مکتبة المعارف. بیروت. طبع ثانی ۱۹۷۷ء

(۳۱) البدر الساری. حاشیہ فیض الباری: حضرت مولانا بدر عالم میرٹھی رحمہ اللہ (۱۳۸۵ھ) ربانی بکڈپو دھلی ۱۹۸۰ء

(۳۲) بذل المجهود: حضرت العلامہ خلیل أحمد سهارنپوری رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۴۶ھ) مطبع ندوة العلماء لکنهو. ۱۳۹۳ھ مطابق ۱۹۷۳ء

(۳۳) بستان المحدثین: حضرت شاہ عبد العزیز صاحب رحمہ اللہ (متوفی ۱۲۳۹ھ) ایچ ایم سعید کمپنی پاکستان، چوک کراچی طبع سوم ۱۹۸۳ء،

(۳۴) البلاغ (مفتی أعظم نمبر) دار العلوم کراچی ۱۳۹۹ء،

(۳۵) بلغة الأريب في مصطلح آثار الحبيب: سید محمد بن محمد المعروف بالمرتضى الزبیدی رحمہ اللہ (متوفی ۱۲۰۵ھ) مکتب المطبوعات الإسلامیہ بحلب طبع دویم ۱۴۰۸ھ،

(۳۶) بیان القرآن: حکیم الأمت حضرت مولانا أشرف علی صاحب تهانوی نور اللہ مرقدہ (متوفی ۱۳۶۲ھ) شیخ غلام علی اینڈ سنز لاهور،

(۳۷) پرانے چراغ: مولانا سید أبو الحسن علی ندوی رحمہ اللہ، مجلس نشریات اسلام کراچی،

(۳۸) تاج العروس من جواهر القاموس: أبو الفیض سید محمد بن محمد المعروف بالمرتضى الزبیدی رحمہ اللہ (۱۲۰۵ھ). دار مکتبة الحیاة بیروت لبنان،

(۳۹) تاریخ بغداد ومدینة السلام: حافظ أحمد بن علی المعروف بالخطیب البغدادی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ھ). دار الکتب العربی بیروت لبنان،

(۴۰) تاریخ الخمیس فی احوال أنفس نفیس: شیخ حسین بن محمد بن الحسن الدیار بکری المالکی رحمہ اللہ (متوفی ۹۶۶ھ)، مؤسسة شعبان بیروت،

(۴۱) تاریخ دار العلوم دیوبند: مرتبہ سید محبوب رضوی رحمہ اللہ ادارۂ اهتمام دار العلوم دیوبند طبع اول ۱۳۹۷ھ

(۴۲) تاریخ دعوت وعزیمت: حضرت مولانا سید أبو الحسن علی ندوی رحمہ اللہ. مجلس نشریات إسلام پاکستان،

(۴۳) التاریخ الکبیر: أمیر المؤمنین فی الحدیث محمد بن إسماعیل البخاری رحمہ اللہ (متوفی ۲۵۶ھ). دار الکتب العلمیة بیروت،

(۴۴) تاریخ مشائخ چشت: شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا کاندهلوی قدس سرہ (متوفی ۱۴۰۲ھ) نشریات إسلام کراچی،

(۴۵) تبصرہ علی المدخل الی علوم الحدیث للحاکم: حضرت مولانا عبد الرشید نعمانی رحمہ اللہ (متوفی) الرحیم اکیڈمی کراچی،

(٤٦) تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف أبوالحجاج جمال الدين يوسف بن عبدالرحمن المزی رحمہ اللہ (متوفی ٧٤٢ھ)
المکتب الإسلامی بیروت طبع دویم ١٤٠٣ھ مطابق ١٩٨٣ء
(٤٧) تحفة القاری فی حل مشکلات البخاری: حضرت مولانا محمد إدریس صاحب کاندھلوی رحمہ اللہ (متوفی ١٣٩٤
ھ). مکتبہ عثمانیہ لاہور،
(٤٨) تدریب الراوی شرح تقریب النواوی: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ٩١١ھ) المکتبة
العلمیة مدینہ منورة،
(٤٩) تدوین حدیث: حضرت مولانا سید مناظر أحسن گیلانی رحمہ اللہ (متوفی ١٣٧٥ھ). مکتبہ إسحاقیہ جونامارکیٹ کراچی،
(٥٠) تذکرہ حضرت مولانا فضل الرحمن گنج مرادابادی رحمہ اللہ. حضرت مولانا سید أبوالحسن علی ندوی رحمہ اللہ.
مجلس نشریات اسلام کراچی،
(٥١) تذکرة الحفاظ: حافظ أبوعبدالله شمس الدین محمد بن أحمد بن عثمان ذهبی رحمہ اللہ (متوفی ٧٤٨
ھ). دارالمعارف العثمانیہ الهند،
(٥٢) تذکرة الرشید: حضرت مولانا عاشق إلهی صاحب میرتھی رحمہ اللہ (متوفی ١٣٦٠ھ) إدارة إسلامیات لاہور،
(٥٣) التعلیقات علی الدراسات: حضرت مولانا عبدالرشید نعمانی رحمہ اللہ صاحب. لجنة إحیاء الأدب السندی،
(٥٤) تعلیقات علی ذیل تذکرة الحفاظ لإبن فهد المکی: علامہ محمد زاهد الکوثری رحمہ اللہ (متوفی ١٣٧١ھ)
دار إحیاء التراث العربی،
(٥٥) تعلیقات علی الرفع والتکمیل للکنوی: شیخ عبدالفتاح أبوغدة حفظه الله. مکتب المطبوعات الإسلامیه.
حلب طبع دریم، ١٤٠٧ھ مطابق ١٩٨٧ء
(٥٦) تعلیقات علی شروط الائمة الخمسة للحازمی: علامہ محمد زاهد الکوثری رحمہ اللہ (متوفی ١٣٧١ھ). مطبوعہ مع
سنن إبن ماجه. قدیمی کتب خانه کراچی،
(٥٧) تعلیقات علی شروط الائمة الستة للمقدسی. علامہ محمد زاهد الکوثری رحمہ اللہ (متوفی ١٣٧١ھ). کتب خانه کراچی،
(٥٨) تعلیقات علی علوم الحدیث لإبن الصلاح. دکتور نور الدین عتر. دار الفکر بیروت ١٤٠٦ھ مطابق ١٩٨٦ء
(٥٩) تعلیقات علی مسند الإمام أحمد: علامہ أحمد محمد شاکر. دار المعارف مصر،
(٦٠) تعلیق التعلیق: حافظ أحمد بن علی المعروف بإبن حجر العسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ٨٥٢ھ) المکتب الإسلامی
ودار عمار،
(٦١) تفسیر عثمانی: شیخ الإسلام شبیر أحمد عثمانی رحمہ اللہ (متوفی ١٣٦٩ھ) مجمع الملك فهد سعودی عرب،
(٦٢) التفسیر الکبیر (مفاتیح الغیب) إمام أبوعبدالله فخر الدین محمد بن عمر الحسین رازی رحمہ اللہ (متوفی ٦٠٦ھ).
مکتب الاعلام الإسلامی طهران،

(۶۳) تفسير القرآن العظيم: حافظ أبو الفداء عماد الدين إسماعيل بن عمر ابن كثير دمشقی رحمہ اللہ (متوفی ۷۷۴ھ) دار الفکر بیروت،

(۶۴) تقریب التہذیب: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ) دار الرشید حلب ۱۴۰۶ھ،

(۶۵) التقریب والتیسیر لمعرفة سنن البشیر النذیر: ابوزکریا یحیی بن شرف الدین النووی رحمہ اللہ (متوفی ۶۷۶ھ) المکتبة العلمیة مدینہ منورہ،

(۶۶) تقریر بخاری شریف اردو: شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب متوفی رحمہ اللہ (۱۴۰۲ھ مطابق ۱۹۸۲ء) مکتبة الشیخ کراچی،

(۶۷) التقریر والتحبیر: علامہ شمس الدین أبوعبداللہ محمد بن محمد بن محمد بن أمیر حاج رحمہ اللہ (متوفی ۸۷۹ھ) المکتبة الکبری الأمیریة بولاق مصر طبع اول ۱۳۱۷ھ،

(۶۸) التقیید والإیضاح لما أطلق وأغلق من کتاب ابن الصلاح: حافظ أبوالفضل زین الدین عبدالرحیم بن الحسین العراقی رحمہ اللہ (متوفی ۸۰۶ھ) مکتبہ سلفیہ مدینہ منورہ طبع اول ۱۳۸۹ھ،

(۶۹) تکملہ فتح الملہم: شیخ الإسلام محمد تقی عثمانی مد ظلہم. مکتبہ دار العلوم کراچی،

(۷۰) التلخیص الحبیر فی تخریج أحادیث الرافعی الکبیر: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ). دار نشر الکتب الإسلامیہ لاہور،

(۷۱) تلخیص المستدرک (مع المستدرک): حافظ شمس الدین محمد بن أحمد بن عثمان ذہبی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۸ھ). دار الفکر بیروت،

(۷۲) التمہید لما فی الموطأ من المعانی والأسانید: حافظ أبوعمر یوسف بن عبداللہ بن محمد بن عبدالبر مالکی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ھ). المکتبة التجاریة مکة المکرمہ،

(۷۳) تنظیم الأشتات فی حل عویصات المشکوٰة: مولانا ابوالحسن (متوفی ھ) میر محمد کتب خانہ آرام باغ کراچی،

(۷۴) تہذیب الأسماء واللغات: إمام ابوزکریا یحیی بن شرف الدین النووی رحمہ اللہ (متوفی ۶۷۶ھ) إدارة الطباعة المنیریہ،

(۷۵) تہذیب التہذیب: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ) دائرة المعارف النظامیہ حیدرآباد دکن ۱۳۲۵ھ،

(۷۶) تہذیب الکمال: حافظ جمال الدین أبوالحجاج یوسف بن عبدالرحمن مزی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۲ھ). مؤسسة الرسالہ طبع اول ۱۴۱۳ھ،

(۷۷) توجیہ النظر إلی أصول الأثر: علامہ طاہر بن صالح بن أحمد الجزائری رحمہ اللہ (۱۳۳۸ھ مطابق ۱۹۲۰ء) دار المعرفة بیروت،

(۷۸) تیسیر القاری شرح صحیح البخاری: مولانا نور الحق بن شیخ عبدالحق محدث دہلوی رحمہ اللہ (متوفی ۱۰۷۳ھ) مطبع علوی لکھنو،

(٧٩) الثقات: حافظ أبوحاتم محمد بن حبان بستی رحمہ اللہ (متوفی ۳۵۴ھ) دار المعارف العثمانیہ حیدر آباد ۱۳۹۳ھ،

(٨٠) جامع الأصول من حديث الرسول: علامہ مجد الدین أبوالسعادات المبارك بن محمد بن الأثير الجزری رحمہ اللہ (متوفی ۶۰۶ھ) دار الفکر بیروت،

(٨١) جامع بيان العلم وفضله وما ينبغي في روايته وحمله: حافظ أبوعمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر مالکی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ھ). دار احیاء التراث العربی بیروت،

(۸۲) جامع ترمذی: إمام أبوعیسی محمد بن عیسی بن سورۃ ترمذی رحمہ اللہ (متوفی ۲۷۹ھ) ایچ ایم سعید کمپنی کراچی،

(۸۳) الجامع الصغیر فی احادیث البشیر النذیر: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ھ). مکتبہ إسلامیہ سمندری لائل پور،

(۸۴) الجامع الکبیر: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ھ) نسخة مصورة عن دار الکتب المصریہ.

(۸۵) الجامع لأحكام القران: إمام أبوعبدالله محمد بن أحمد الأنصاری القرطبی رحمہ اللہ (متوفی ۶۷۱ھ) دار الفکر بیروت،

(۸۶) الجواهر المضية في طبقات الحنفية: حافظ أبومحمد محی الدین عبدالقادر قرشی رحمہ اللہ (متوفی ۷۷۵ھ) میر محمد آرام باغ کراچی،

(۸۷) الجواهر والدرر في ترجمة شيخ الإسلام إبن حجر: حافظ شمس الدین أبوالخیر محمد بن عبدالرحمن سخاوی رحمہ اللہ (متوفی ۹۰۲ھ). لجنة إحياء التراث الإسلامی مصر،

(۸۸) چراغ محمد (سوانح شیخ الإسلام حضرت مدنی رحمہ اللہ): علامہ محمد زاهد الحسینی مدظلہم. دار الإرشاد اٹک پاکستان،

(۸۹) حاشية السندی علی البخاری (مطبوعہ مع صحیح بخاری): إمام أبوالحسن نور الدین محمد بن عبدالهادی سندهی رحمہ اللہ (متوفی ۱۱۳۸ھ). قدیمی کتب خانہ کراچی،

(۹۰) حاشیہ صحیح بخاری: حضرت مولانا أحمد علی سهارنپوری رحمہ اللہ (متوفی ۱۲۹۷ھ). قدیمی کتب خانہ کراچی،

(۹۱) حاشیہ قواعد فی علوم الحدیث: شیخ عبدالفتاح أبوغدہ حفظہ اللہ. مکتب المطبوعات الإسلامیہ. حلب،

(۹۲) حاشیہ لامع الدراری: شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب متوفی رحمہ اللہ (۱۴۰۲ھ) مکتبہ إمدادیہ مکہ مکرمہ،

(۹۳) حجة الله البالغة: حضرت شاہ ولی اللہ أحمد بن عبدالرحیم دهلوی رحمہ اللہ (متوفی ۱۱۷۶ھ) إدارة الطباعة المنيرية مصر ۱۳۵۲ھ،

(۹۴) حیات شیخ الهند: حضرت مولانا سید أصغر حسین صاحب دیوبندی رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۶۴ھ) دار الفکر بیروت،

(۹۵) حلية الأولياء: حافظ أبونعیم أحمد بن عبدالله بن أحمد أصبهانی شافعی (متوفی ۴۳۰ھ) دار الفکر بیروت،

(٩٦) الخصائص الكبرى (كفاية الطالب اللبيب في خصائص الحبيب) حافظ جلال الدين عبد الرحمن سيوطی رحمه الله (متوفی ٩١١ھ). دار الكتب العلمية بيروت،

(٩٧) خلاصه تذهيب تهذيب الكمال: علامه صفی الدين خزرجی رحمه الله (متوفی ٩٢٣ھ بعد روستو). مكتب المطبوعات الإسلامية حلب،

(٩٨) الدرر الكامنة في اعيان المائة الثامنة: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله (متوفی ٨٥٢ھ). دائرة المعارف العثمانية حيدر اباد دكن ١٣٩٢ھ،

(٩٩) درس بخاری: شيخ الإسلام شبير احمد عثمانی رحمه الله (متوفی ١٣٦٩ھ). (ضبط وترتيب مولانا عبد الوحيد صديقی فتحپوری). مكتبه عارفين پاكستان چوك كراچی،

(١٠٠) الدر المختار مع ردّ المحتار: علامه علاء الدين محمد بن محمد الحصكفی رحمه الله (متوفی ١٠٨٨ھ) مكتبه رشيديه كوئٹه ايچ ايم سعيد كمپنی كراچی،

(١٠١) الدر المنثور في التفسير بالماثور: علامه حافظ جلال الدين عبد الرحمن سيوطی رحمه الله (متوفی ٩١١ھ) مؤسسة الرسالة،

(١٠٢) دلائل النبوة: حافظ أبونعيم أحمد بن عبد الله بن أحمد أصبهانی رحمه الله (متوفی ٤٣٠ھ). دار النفائس،

(١٠٣) دلائل النبوة: حافظ أبوبكر أحمد بن الحسين بن علی البيهقی رحمه الله (متوفی ٤٥٨ھ). مكتبه أثريه لاهور،

(١٠٤) ديوان الحماسه: أبوتمام حبيب بن أوس بن حارث طائی رحمه الله (متوفی ٢٣١ھ). مير محمد آرام باغ كراچی،

(١٠٥) ديوان الشافعی: إمام محمد بن إدريس بن عباس الشافعی رحمه الله (متوفی ٢٠٤ھ) دار الجيل بيروت،

(١٠٦) ذب ذبابات الدراسات عن المذاهب الأربعة المتناسبات: علامه مخدوم عبد اللطيف سندهی لجنة إحياء الأدب السندی،

(١٠٧) ردالمحتار مع الدر المختار: علامه محمد أمين بن عمر بن عبد العزيز عابدين دمشقی شامی رحمه الله (متوفی ١٢٥٢ھ) مكتبه رشيديه كوئٹه ايچ ايم سعيد كمپنی كراچی،

(١٠٨) رساله شرح تراجم أبواب البخاری رحمه الله (مطبوعه مع صحيح بخاری). حضرت مولانا شاه ولی الله رحمه الله (متوفی ١١٧٦ھ) قديمی كتب خانه كراچی،

(١٠٩) الرسالة المحمدية (عربی خطبات مدارس) حضرت مولانا سيد سليمان ندوی رحمه الله (متوفی ١٩٥٣م)،

(١١٠) الرسالة المستطرفة لبيان مشهور كتب السنة المشرفة: علامه محمد بن جعفر كتانی رحمه الله (متوفی ١٣٤٥ھ) مير محمد آرام باغ كراچی،

(١١١) الرفع والتكميل في الجرح والتعديل: علامه أبوالحسنات عبد الحی لكهنوی رحمه الله (متوفی ١٣٠٤ھ). مكتب المطبوعات الإسلامية حلب. دريم طبع ١٤٠٧ھ،

(۱۱۲) روح المعانی فی تفسیر القرآن العظیم والسبع المثانی: أبوالفضل شهاب الدین سید محمود آلوسی بغدادی رحمه الله (متوفی ۱۲۷۰ھ) مکتبہ إمدادیہ ملتان،
(۱۱۳) الروض الأنف: إمام أبوالقاسم عبدالرحمن بن عبدالله السهیلی رحمه الله (متوفی ۵۸۱ھ) مکتبہ فاروقیہ ملتان ۱۳۹۷ھ،
(۱۱۴) سبیل الهدی بتحقیق شرح قطر الندی: شیخ محمد محی الدین عبدالحمید رحمه الله (متوفی ۱۳۹۳ھ) مکتبة السعادة مصر پولسم طبع،
(۱۱۵) السعایة فی کشف ما فی شرح الوقایة: علامہ عبدالحی لکھنوی رحمه الله (متوفی ۱۳۰۴ھ) سہیل اکیڈمی لاہور،
(۱۱۶) سنن ابن ماجه: إمام أبوعبدالله محمد بن یزید بن ماجه رحمه الله (متوفی ۲۷۳ھ). قدیمی کتب خانہ،
(۱۱۷) سنن ابن ماجه (تحقیق محمد فؤاد عبدالباقی): إمام أبوعبدالله محمد بن یزید بن ماجه رحمه الله (متوفی ۲۷۳ھ). دار الکتب المصری قاهرة / دار الکتاب اللبنانی بیروت،
(۱۱۸) سنن ابی داؤد: إمام أبوداؤد سلیمان بن الأشعث السجستانی رحمه الله (متوفی ۲۷۵ھ) ایچ ایم سعید کمپنی کراچی،
(۱۱۹) سنن ابی داؤد (تحقیق محمد محی الدین عبدالحمید): إمام أبوداؤد سلیمان بن الأشعث السجستانی رحمه الله (متوفی ۲۷۵ھ). دار إحیاء السنة النبویة،
(۱۲۰) سنن دارمی (مسند دارمی): إمام أبومحمد عبدالله بن عبدالرحمن دارمی رحمه الله (۲۵۵ھ) قدیمی کتب خانہ کراچی،
(۱۲۱) سنن دارقطنی: حافظ أبوالحسن علی بن عمر دارقطنی رحمه الله (متوفی ۳۸۵ھ) دار نشر الکتب الإسلامیة لاهور،
(۱۲۲) السنن الکبری: إمام حافظ أبوبکر أحمد بن الحسین بن علی البیهقی رحمه الله (متوفی ۴۵۸ھ) نشر السنة ملتان،
(۱۲۳) سنن نسائی: إمام أبوعبدالرحمن أحمد بن شعیب النسائی رحمه الله (۳۰۳ھ) قدیمی کتب خانہ کراچی،
(۱۲۴) سنن نسائی (بحاشیہ مولانا عطاء الله حنیف): إمام أبوعبدالرحمن أحمد بن شعیب النسائی رحمه الله (متوفی ۳۰۳ھ). مکتبہ سلفیہ لاہور،
(۱۲۵) سوانح قاسمی: علامہ سید مناظر احسن گیلانی رحمه الله (متوفی ۱۳۷۵ھ مطابق ۱۹۵۶ء) میر محمد آرام باغ کراچی،
(۱۲۶) سیر أعلام النبلاء: حافظ أبوعبدالله شمس الدین محمد بن أحمد بن عثمان ذهبی رحمه الله (متوفی ۷۴۸ھ) مؤسسة الرسالة،
(۱۲۷) السیرة الحلبیة (انسان العیون فی سیرة الأمین المأمون): علامہ علی بن برهان الدین الحلبی رحمه الله (متوفی ۱۰۴۴ھ) المکتبة الإسلامیہ بیروت،
(۱۲۸) سیرة المصطفی: حضرت مولانا محمد ادریس کاندھلوی رحمه الله (متوفی ۱۳۹۴ھ مطابق ۱۹۷۴ء) مکتبہ عثمانیہ لاہور،
(۱۲۹) السیرة النبویة لابن هشام (مع الروض الأنف) إمام أبومحمد عبدالملک بن هشام المعافری المصری رحمه الله (متوفی ۲۱۳ھ) مکتبہ فاروقیہ ملتان،

(١٣٠) السيرة النبوية (بهامش السيرة الحلبية: سيد احمد زيني دحلان رحمه الله (متوفى ١٣٠٤ھ) المكتبة الإسلاميه بيروت،

(١٣١) سيرت النبی ﷺ: علامه شبلی نعمانی رحمه الله (متوفى ١٣٣٢ھ) ومولانا سيد سليمان ندوی (متوفى ١٩٥٣ء) دار الإشاعت کراچی،

(١٣٢) شرح أصول إعتقاد أهل السنة والجماعة: حافظ أبو القاسم هبة الله بن الحسن بن منصور الطبری اللالکائی رحمه الله (متوفى ٤١٨ھ) دار طيبة الرياض،

(١٣٣) شرح شرح نخبة الفكر: حضرت ملا على القاری رحمه الله (متوفى ١٠١٤ھ). مكتبه اسلاميه كوئته،

(١٣٤) شرح العقيدة الطحاويه: علامه صدر الدين علی بن علی بن محمد بن ابی العزحنفی رحمه الله (متوفى ٧٩٢ھ) قديمی کتب خانه کراچی،

(١٣٥) شرح معانی الآثار: امام أبو جعفر احمد بن محمد بن سلامة بن سلمه طحاوی رحمه الله (متوفى ٣٢١ھ) مير محمد آرام باغ کراچی،

(١٣٦) شرح معانی الآثار: إمام أبو جعفر احمد بن محمد بن سلامة بن سلمه طحاوی رحمه الله (متوفى ٣٢١ھ) مير محمد آرام باغ کراچی،

(١٣٧) شرح المنظومة البيقونية: عبد الله سراج الدين. دار التراث الإسلامی حلب ١٣٩٤ھ،

(١٣٨) شرح النووی علی صحيح مسلم (مطبوعه مع صحيح مسلم) إمام أبو زكريا يحيى بن شرف النووی رحمه الله (٦٧٦ھ). قديمی کتب خانه کراچی،

(١٣٩) شرح الوقاية (مع السعاية) صدر الشريعة عبيد الله بن مسعود بن تاج الشريعة (٧٤٧ھ) سهيل اکيڈمی لاهور،

(١٤٠) شروط الأئمة الخمسة: (مطبوعه مع سنن إبن ماجه). حافظ أبو بكر محمد بن موسى بن عثمان حازمی رحمه الله (متوفى ٥٨٤ھ) قديمی کتب خانه کراچی،

(١٤١) شعب الإيمان: إمام حافظ احمد بن الحسين بن علی البيهقی رحمه الله (متوفى ٤٥٨ھ). دار الكتب العلمية بيروت، ١٤١٠ھ،

(١٤٢) شمائل ترمذی: إمام أبو عيسى محمد بن عيسى بن سورة الترمذی رحمه الله (٢٧٩ھ). مير محمد آرام باغ کراچی،

(١٤٣) شيخ الإسلام سيد حسين احمد مدنی رحمه الله: فريد الوحيدی. قومی کتاب گھر ذاكرنگر جامعه مليه اسلاميه نئی دهلی،

(١٤٤) صحيح بخاری شريف: إمام أبو عبد الله محمد بن إسماعيل البخاری رحمه الله (متوفى ٢٥٦ھ) قديمی کتب خانه کراچی،

(١٤٥) صحيح مسلم (مع شرح نووی) إمام أبو الحسين مسلم بن الحجاج القشيری رحمه الله (متوفى ٢٦١ھ) قديمی کتب خانه کراچی،

